## د، حتى يسمع من يليه من الصف الاول، جواب

حضرات شافعيه په دې سلسله كښې د يو بل حديث نه استدلال كوي دابن عم دابی هريره حديث چه كوم وړاندې راروان دې او په ابن ماجه كښې هم دې چه دهغې الفاظ دا دې، كان رسول الله ﷺ اذا تلا غير المغضوب عليهم ولا الضالين قال آمين حتى يسمع من يليه من الصف الاول، او د ابن ماجه په روايت كښې، فيرتج بها المسجد زيادت هم دې.

زمونږ د طرف نه د دې جواب دا دې چه دا حديث ضعيف دې ځكه چه د دې په سند كښې بشر بن رافع دې د چا چه امام بخاری، يحيٰ بن معين او امام نسائی تضعيف كړې دې او ابن حبان خو دا فرمائی چه دا سړې موضوعی احاديث روايت كوی د دېنه علاوه يوه خبره بله هم ده او هغه دا چه دا حديث ستا په حق كښې مفيد د مدعٰی نۀ دې ځكه چه د دې حديث نه خو دا معلومېږی چه د دوئ آمين لره د صف اول په مقتديانو كښې څو خلقو كوم به چه حضور ﷺ ته به نژدې وو هغوی به اوريدلو، د دېنه خو د جهر ثبوت نۀ كيږی، او دا مطلب دې دپاره دې چه من الصف الاول كښې من تبعيضيه دې بيانيه نۀ دې او دا من بيانيه كيدې هم نۀ شی چه ټول اول صف واله به اوريدلو ځكه چه په دې مطلب باندې دا عقلی اشكال به وی چه دا څۀ خبره ده چه رومبی صف واله خو به ټولو د دې ځائې نه تر هغه ځائې پورې اوريدو او د دويم صف او دريم صف واله هغه مونځ كونكی به نۀ اوری كوم چه د امام په محاذات كښې وی حال دا دې چه د دوئ فاصله امام ته په نسبت سره د ډيرو اول صف واله نه كم ده.

[۹۳۵] (¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سُمَيٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ السَّمَّانِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَالَ الْإِمَامُ: غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ سورة الفاتحة آية ۷، فَقُولُوا: آمِينَ، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی بېشكه نبي ﷺ ويلي دي: كله چې ووايي امام غير المغضوب عليهم و لا الضالين نو تاسو وايي آمين، بېشكه د چا وينا چې برابره شي د وينا د ملائكو سره نو بخښنه به وشي د مخكنو ګناهونو.

[۹۳۶] (²) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَنَّهُمَا أَخْبَرَاهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ فَأَمِّنُوا، فَإِنَّهُ مَنْ وَافَقَ تَأْمِينُهُ تَأْمِينَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ". قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "آمِينَ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی بېشكه رسول الله ﷺ ويلي دي: كله چې امين ووايي امام نو تاسو هم امين وايي، بېشكه د چا امين چې امين د ملائكو سره برابر شو، نو هغه ته به وبخښلی شي هغه ګناهونه چې مخكې يي كړي وي. ويلي دي ابن شهاب: وو رسول الله ﷺ چې ويل يي آمين.

---

¹): صحيح البخاري/الأذان ۱۱۱ (۷۸۰)، ۱۱۳ (۷۸۲)، وتفسير الفاتحة ۳ (۴۴۷۵)، والدعوات ۶۳ (۶۴۰۲)، سنن النسائي/الافتتاح ۳۴ (۹۳۰)، موطا امام مالك/الصلاة ۱۱ (۴۵)، مسند احمد (۲/۲۳۸، ۴۵۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۳۸ (۱۲۸۱)، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۷۶)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الصلاة ۱۸ (۴۱۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۷۳ (۲۵۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۴ (۸۵۱) (صحيح)

²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۳۲۳۰، ۱۵۴۲) (صحيح)

## د حضرت امام بخاری استدلالات

امام بخاری رحمه الله زمونږ دلته په باب کښې چه کوم څلورم حدیث دې، عن ابی هریره رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم قال اذا قال الامام غیر المغضوب علیهم و لا الضالین فقولوا آمین، د دې حدیث نه د مقتدی په آمین بالجهر وئیلو باندې استدلال فرمائیلې دې هغه داسې چه حضور صلی الله علیه وسلم فرمائی چه کله امام فاتحه پوره کړی نو مقتدیانو لره پکار دی چه هغوی دې آمین اووائی، د امام بخاری په ذهن کښې دا دی چه د قول متبادر معنی قول بالجهر دې یعنی په زوره دې اووئیلې شی حالانکه دا بس هسې خبره ده دغه شان حضرت امام بخاری رحمه الله د دې باب په پنځم حدیث سره چه دهغې الفاظ دا دی. عن ابی هریره رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال اذا امّن الامام فامّنوا، په دې سره هغوی د امام په آمین بالجهر باندې استدلال فرمائیلې دې ځکه چه مقتدیانو ته د امام دآمین وئیلو علم هغه وخت کیدې شی کله چه هغه جهراً اووائی خو دا خبره هم څۀ زیاته صفا او صریح نۀ ده ځکه چه د دې معنی دا هم کیدې شی چه کله امام د آمین مقام ته اورسی نو تاسو هم آمین وائی او دا د وړاندې نه معلومه ده چه د آمین مقام د فاتحې په ختمیدو باندې دې.

### د حنفیه دلائل

اوس په دې سلسله کښې د حنفیه او مالکیه دلائل واورئی.

**اول دلیل** : قال تعالی، اُدعوا ربّکم تضرُّعا و خُفیه، آمین هم دعا ده لهذا هغه هم خفیة پکار ده،

**دلیل ثانی** : د وائل بن حجر حدیث په طریق د شعبه کوم چه په مسند احمد ترمذی او مسند ابوداؤد طیالسی کښې موجود دې او دا وړاندې تیر شوې دی چه روایت د شعبه زمونږ په نیز د سفیان په روایت باندې راجح دې.

**دلیل ثالث** : حدیث د ابوهریره رضی الله عنه یعنی د باب څلورم حدیث کوم چه په بخاری شریف کښې هم موجود دې،اذا قال الامام غیر المغضوب علیهم ولاالضالین فقولوا آمین، د دې حدیث نه معلومیږی چه امام آمین سرا وائی ځکه که دا تسلیم کړې شی چه امام آمین بالجهر وائی نو د دې تقاضا دا وه چه د مقتدی آمین دې د امام په آمین باندې مرتب کړې شی نۀ د سورة فاتحه په آخری آیت باندې. په آخری آیت باندې ځکه معلق کړې شوې دې چه جهرا هغه لوستلې شی، او که کوم سړې دا اووائی چه د دې باب په پنځم حدیث کښې، اذا امن الامام فامنوا، راغلې دی، نو مونږ په اووایو چه د دې توجیه خوممکن ده کوم چه وړاندې تیره شوې ده، خو تاسو اوښائې که د امام آمین جهرا اومنلې شی نو په دې باندې پورتنې حدیث په کوم کښې چه د مقتدی آمین لره غیر المغضوب علیهم ولا الضالین باندې معلق کړې شوې دې څۀ توجیه به وی؟

**دلیل رابع** : د سمرة بن جندب حدیث یعنی حدیث السکتتین په کوم باندې چه کلام مخکښې په خپل مقام باندې تیر شوې دې دا حدیث په دې باندې دال دې چه امام آمین سرا وائی ځکه چه د حدیث مضمون دا دې چه حضور صلی الله علیه وسلم مونځونو کښې دوه سکتې کیدې شی یو د افتتاح صلوة په وخت کښې دا سکته خو د ثناء لوستلو دپاره وه او دویمه سکته غیر المغضوب علیهم ولا الضالین باندې، دا سکته د آمین دپاره وه، او که دا سکته د امام د آمین

دپاره اونۀ منلې شی بلکه د بل کوم مقصد دپاره وی او دا اووئیلې شی چه امام لره آمین بالجهر وئیل دی د دې سکتې نه پس، نو تقدم المقتدی علی الامام فی التامین به لازم شی ځکه چه په دې حدیث د ابوهریره رضی الله عنه کښې پورته ذکر شوې په دې خبره باندې تصریح ده چه کله امام غیر المغضوب علیهم و لا الضالین اولولی نو تاسو آمین وایئ، نو چه کله د مقتدی تامین د سوره فاتحې په ختم باندې د امام دسکتې په وخت کښې اوشی او ستاسو په قول باندې امام د سکتې نه پس آمین اووائی نو په دې صورت کښې تقدم علی الامام موندل ظاهر دی کوم چه په اتفاق سره ممنوع دی.

## حضرت سهارنپوری رحمه الله رائې

د باب رومبی حدیث یعنی د وائل بن حجر حدیث چه دهغی یو طریق کښې رفع بها صوته او په بل طریق کښې خفض بها صوته مذکور دې، په دې باندې تفصیلی کلام په شروع کښې تیر شوې دې، هغه حضرات د سفیان طریق لره او احناف د شعبه طریق لره ترجیح ورکوی، د حضرت سهانپوری رائې په بذل المجهود کښې دا ده چه دواړه حدیثونه په خپل خپل ځائې باندې صحیح دی هیڅ یو لره په بل باندې هیڅ ترجیح نشته دې او په هر حال کښې په دوئ کښې په ظاهر کښې تعارض دې، نو ځکه د رفع د تعارض شکل دا دې چه داسې اووئیلې شی چه حضور صلی الله علیه وسلم کله کله آمین بالجهر وئیلې دې د امت د تعلیم دپاره او دا مطلب نۀ دې چه دوئ به همیشه دې لره په جهر سره وئیلو ځکه چه آمین دعا ده او اصل په دعا کښې اخفاء ده، قرینه په دې باندې د اکابرو صحابه کرامو رضی الله عنهم عمل دې [1] لکه حضرت عمر او علی رضی الله عنهما، چنانچه علامه عینی د حضرت عمر او علی رضی الله عنهما په باره کښې په روایت د طبرانی فی تهذیب الآثار کښې نقل کړې دی، لم یکن عمر و علی رضی الله عنهما یجهران بسم الله الرحمٰن الرحیم و لا بأمین، او دغه شان امام طحاوی رحمه الله هم د دې تخریج کړې دې، او هم داسې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه هم عدم الجهر مروی دې.

## د شوق نیموی رائې

او علامه شوق نیموی د رفع د تعارض یو بل صورت اختیار کړې دې، هغه دا چه د رفع نه مراد رفع یسیر واغستلې شی (معمولی غوندې جهر) او د خفض نه مراد خفض غیر شدید یعنی څۀ اندازه رو، لهذا اوس په دواړو کښې هیڅ تعارض پاتې نۀ شو او مطلب دا دې چه حضور صلی الله علیه وسلم به په مانځه کښې آمین نۀ ډیر په زوره وئیلو او نه بالکل ورو بلکه داسې چه صرف د رومبی صف خنې نزدې ولاړ ئې واوری، کما جاء فی حدیث ابن عم ابی هریره حتی یسمع من یلیه من الصف الاول.

---

[1] احقر عرض کوی که مقصود مطلقًا په دې سلسله کښې د متعارضه روایاتو جمع کول وې نو دا تقریر ډیر مناسب وو خو داسې نۀ ده بلکه دلته مقصود په روایت د سفیان او روایت د شعبه کښې تطبیق ورکول دی نو په دې کښې اشکال دې ځکه چه دا دواړه دوه مستقل حدیثه نۀ دی بلکه هم یو حدیث په دوو مختلفو طریق باندې دې پس مخرج د حدیث واحد دې او د دې راوی صحابی هم یو دې نو بیا دې لره جدا جدا په دوو وختونو باندې محمول کول مشکل دی. ۱۲منه

## د امام بيهقي يو نقد

امام بيهقي په سنن كبرىٰ كښې فرمائي چه دا حديث يعني حديث د وائل خپله د شعبه نه داسې مروى دې څنګه چه سفيان روايت کوى يعني په ځائې د خفض بها صوته رفع بها صوته دې، د دې جواب په بذل المجهود كښې دا ليکلې دې چه د شعبه دا روايت روايت شاذه دې، بعضې رواتو د شعبه نه داسې روايت کړې دې خو هغوى په دې كښې متفرد دى، د دېنه علاوه د شعبه ټول تلامذه او ملګرو خفض بها صوته روايت کړې دې،

و هذا أخر ما اردنا ذكره فى هذا البحث، والله الموفق.

په دې باب كښې مصنف د اووۀ احاديثو تخريج کړې دې په کومو كښې تر اوسه پورې په پنځو احاديثو باندې كلام تير شو.

[۹۳۷]()حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ رَاهَوَيْهِ، أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ بِلَالٍ،أَنَّهُ قَالَ: يَارَسُولَ اللَّهِ، "لَاتَسْبِقْنِي بِآمِينَ".

دبلال نه روايت دى، بېشكه هغه ويلي دي: اى دالله رسوله! مه مخكې كيږه زمانه په امين سره.

قوله، عن بلال انه قال يا رسول الله لا تسبقنى بآمين،

## شرح حديث

د حديث بظاهر مطلب دا دې چه حضرت بلال ﷺ په مانځه كښې امام پسې قراءت کولو څۀ حصه د دې په ړومبئ سكته كښې کومه چه د دعا د استفتاح دپاره وى، يا د امام د قراءت دسكتو په مينځ كښې به ئې اغستلو او کومه حصه به چه باقي پاتې شوه د هغې په باره كښې به ئې د حضور ﷺ نه عرض اوکړو چه کله تاسو د قراءت فاتحه نه فارغ شئ نو روستو په آمين وئيلو كښې تيزى مۀ کوئ لږ غوندى توقف کوئ چه زۀ د فاتحې باقي حصه اولولم او بيا تاسو سره په آمين كښې شريك شم او دموافقت امام فى التامين فضيلت راته حاصل شى.

مذكوره حديث د فاتحه خلف الامام سره متعلق دې خو چونکه په دې كښې د آمين ذكر هم دې نو څکه مصنف دا دلته راوړې دې، د دې حديث نه هم ظاهرى او سطحى طور باندې د آمين بالجهر ثبوت کيږى خو تحقيقى او يقينى طور باندې نۀ.

## تحقيق روايت

دويمه خبره دا ده چه په دې حديث باندې د محدثينو كلام دې، ابوحاتم فرمائي، رفعه خطأ، دابن ابى شيبه د روايت نه معلوميږى چه دا جمله لا تسقبنى بآمين د حضرت ابوهريره ﷺ ده كله چه هغه په بحرين كښې مؤذن وو، او دا خبره هغوى دخپل جومات امام علاء بن الحضرمى ته کړې وه، او د بيهقى د روايت نه دا معلوميږى چه د ابوهريره ﷺ دا خطاب مروان سره وو ابوهريره ﷺ د هغۀ مؤذن وو، نيز دا دې واضح وى چه د ابن ابى شيبه واله روايت لره امام بخارى ﷺ هم تعليقا ذكر کړې دې، زمونږ د دې بيان نه دا ثابته شوه چه دا حديث موقوف على ابى هريره ﷺ دې او د دې تعلق د حضرت بلال ﷺ او د حضور ﷺ سره هيڅ نشته دې، نيز دا روايت منقطع هم دې د ابوعثمان سماع د بلال نه نۀ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۰٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲/٦) (ضعيف)

ده ثابته، او زهٔ دا هم وایم چه دغه شان خطاب د حضور ﷺ سره مناسب هم نهٔ دې خلاف د ادب محسوسیږي.

[۹۳۸]() حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ عُتْبَةَ الدِّمَشْقِيُّ، وَمَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، عَنْ صُبَيْحِ بْنِ مُحْرِزٍ الْحِمْصِيِّ، حَدَّثَنِي أَبُو مُصَبِّحٍ الْمَقْرَائِيُّ، قَالَ: كُنَّا نَجْلِسُ إِلَى أَبِي زُهَيْرٍ النُّمَيْرِيِّ، وَكَانَ مِنَ الصَّحَابَةِ، فَيَتَحَدَّثُ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ، فَإِذَا دَعَا الرَّجُلُ مِنَّا بِدُعَاءٍ، قَالَ: اخْتِمْهُ بِآمِينَ، فَإِنَّ آمِينَ مِثْلُ الطَّابَعِ عَلَى الصَّحِيفَةِ. قَالَ أَبُو زُهَيْرٍ: أُخْبِرُكُمْ عَنْ ذَلِكَ، خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ، فَأَتَيْنَا عَلَى رَجُلٍ قَدْ أَلَحَّ فِي الْمَسْأَلَةِ، فَوَقَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَمِعُ مِنْهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَوْجَبَ إِنْ خَتَمَ"، فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: بِأَيِّ شَيْءٍ يَخْتِمُ؟ قَالَ: "بِآمِينَ، فَإِنَّهُ إِنْ خَتَمَ بِآمِينَ فَقَدْ أَوْجَبَ"، فَانْصَرَفَ الرَّجُلُ الَّذِي سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَى الرَّجُلَ، فَقَالَ:
اخْتِمْ يَا فُلَانُ بِآمِينَ وَأَبْشِرْ. وَهَذَا لَفْظُ مَحْمُودٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: الْمَقْرَاءُ: قَبِيلٌ مِنْ حِمْيَرَ.

مونږ ته حدیث بیان کړی دی ابو مصبح المقرائي، هغه وایي: وو مونږ چې کېناستلو به زهیر النمیري سره، او هغه د صحابو نه وو، نو ښائسته خبرې به یې کولې، کله چې به یو سړي زمونږ نه دعا کوله هغه به ویل: ختم یې کړه په امین سره. بېشکه امین پشان د مهر دی په کاغذ باندې، ویلي دي ابو زهیر: زه خبر درکوم تاسو ته د هغې نه؟ مونږ ووتلو د رسول الله ﷺ سره یوه شپه، مونږ یو سړي ته راغلو چې په اصرار یې کولو په سوال کې، نو ودریدلو نبي ﷺ اوریدل یې د هغه نه، نو نبي ﷺ وویل: واجب شوه که چېرې مهریې ولګوه. نو یو سړي وویل د قوم نه: په کوم شي باندې مهر ولګوي؟ هغه وویل: په آمین سره، که چېرې هغه په امین سره مهر ولګوه نو واجب شوه. لاړلو هغه سړی چې تپوس یې کړی د نبي ﷺ نه نه، نو راغی هغه سړي ته، ویې ویل: مهر لګوه په آمین سره ای فلانی، او زیری واخله. دا لفظ د محمود دی. ویلي دي ابوداود: ویلي شوي دي چې مقراء د حمیر نه دی.

**تشریح: قوله:** حدثنا الولید بن عتبة.. عن صبیح بن محرز الحمصي..، صُبیح په ضمه د صاد او فتح د صاد یعنی مصغر او مکبر دواړه شان سره منقول دي.

## د لفظ المقرئي تحقيق

حدثني ابو مصبح المقرئي : په بعضو نسخو کښې داسې دی یعنی د راء پس همزه او یاء او په بعضو نسخو کښې المقری په وزن د المعطی بغیر د همزې، او په بعضو نسخو کښې المقرائی درا او همزې په مینځ کښې الف سره، یو اختلاف خو دا دې چه دا لفظ ممدود دې یا مقصور، دویم اختلاف دا دې چه دا په ضمه د میم او فتح د میم دواړه شانه ضبط کړې دې (د دې تحقیق تعلق خودضبط د کلمې سره وو، وړاندې د دې نسبت په باره کښې واورئ) بعض علماء وائی چه دا نسبت مقرا طرف ته دې کوم چه په دمشق کښې یو قریه ده په دې صورت کښې به میم مفتوح وی، او بعضې وائی چه دا نسبت مقرا په وزن د مکرم طرف ته دې کوم چه په یمن کښې یو ښار دې په کوم کښې چه د عقیقو کان (معدن) دې د هغه خائې محدثینو ته المقرئیون وئیلې کیږي، د دې ټولو نه معلومه شوه چه دا د القراءت نه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۴۲) (ضعیف)

ماخوذ نهٔ دي لکه څنګه چه وائي، القارئ المقرئ.

**قوله : فاذا دعا الرجل منا بدعاء قال اختمه بامين فانّ أمين مثل الطابع على الصحيفة:**

د حديث مضمون دا دي چه ابو زبير کوم چه د صحابوٴ نه دي هغوی به مونږ ته ښائسته ښائسته احاديث اورول يا ښه ښه خبري به ئې کولې د هغوی دا عادت وو چه کله به زمونږ نه چا دعا غوښتله نو هغوی به دهٔ ته فرمائيل چه په خپله دې دعاء لره په آمين سره ختموه، (يا داسې ترجمه اوکړئ) په دې باندې د آمين مهر اولګوه څکه چه آمين په شان د مهر دې کوم چه په يو کتاب يا تحرير باندې لګولې شي.

## بَابُ التَّصْفِيقِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دی په بيان د تقونو ويستلو کې په مانځه کې

[۹۳۹]([1])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "التَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ وَالتَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ".

د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي، فرمايلي دي رسول الله صلی الله علیه وسلم: تسبيح د سړو لپاره دی، او تق ويستل د لاس نه د ښځو لپاره دی.

**تشريح: قوله:** التسبيح للرجال والتصفيق للنساء، يعنی که امام ته په مانځه کښې کومه سهوه را پيښه شي نو که روستو ترينه سړې وی نو د سبحان الله په ذريعه سره دې امام له تنبيه ورکړی او که مقتدی ښځه ده نو هغه د لاس اوپړقوی د جمهور علماء او ائمه ثلاثه هم دا مذهب دې په دې مسئله کښې د امام مالك اختلاف مشهور دې هغه فرمائی چه لقمه ورکونکې سړې وی يا ښځه دواړو دپاره تسبيح مشروع دی هغه وائی چه د حديث مطلب دا نهٔ دې کوم چه جمهور وائی بلکه مطلب دا دې چه تسبيح مردانه فعل او تصفيق يعنی لاس پړقول دا زنانه فعل دې، ای التصفيق خارج الصلوة من شان النساء، يعنی حضور صلی الله علیه وسلم د انکار او مذمت په طور باندې فرمائی، او د جمهورو د مطلب تائيد د دې حديث نه کيږی چه دهغی الفاظ دا دی کوم چه په وړاندې حديث کښې راروان دی، اذا نابکم شئ فی الصلوة فليسبح الرجال و ليصفح النساء، او د تصفيح طريقه کومه چه وړاندې په کتاب کښې هم مذکور ده دا ده چه د ښی لاس دوه ګوتې د ګس لاس په تلی باندې اووهلې شی او دويم قول دا دې چه د احد الکفين پشت لره په بطن اخری باندې اووهی او هغه تصفيق کوم چه مذوم دې هغه دا دې چه احد الکفين لره په بطن اخری باندې اووهلې شی د کوم د وجه نه چه آواز په زوره سره پيدا کيږی دا د لهو او لعب د قبيلې نه دې او ړومبې تصفيق هغه د تنبيه دپاره دې.

[1]: صحيح البخاري/العمل في الصلاة ٥ (١٢٠٣)، صحيح مسلم/الصلاة ٢٣ (٤٢٢)، سنن النسائي/السهو ١٥ (١٢٠٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٥ (١٠٣٤)، (تحفة الأشراف: ١٥١٤١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٦٠ (٣٦٩)، مسند احمد (٢/٢٦١، ٣١٧، ٣٧٦، ٤٣٢، ٤٤٠، ٤٧٣، ٤٧٩، ٤٩٢، ٥٠٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٩٥ (١٤٠٣) (صحيح)

[۹۴۰](۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي حَازِمِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَهَبَ إِلَى بَنِي عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ لِيُصْلِحَ بَيْنَهُمْ، وَحَانَتِ الصَّلَاةُ فَجَاءَ الْمُؤَذِّنُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَ: أَتُصَلِّي بِالنَّاسِ؟ فَأُقِيمَ، قَالَ: نَعَمْ، فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ، فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ فِي الصَّلَاةِ، فَتَخَلَّصَ حَتَّى وَقَفَ فِي الصَّفِّ فَصَفَّقَ النَّاسُ، وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ لَا يَلْتَفِتُ فِي الصَّلَاةِ، فَلَمَّا أَكْثَرَ النَّاسُ التَّصْفِيقَ الْتَفَتَ فَرَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَشَارَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِ امْكُثْ مَكَانَكَ، فَرَفَعَ أَبُو بَكْرٍ يَدَيْهِ فَحَمِدَ اللَّهَ عَلَى مَا أَمَرَهُ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ذَلِكَ، ثُمَّ اسْتَأْخَرَ أَبُو بَكْرٍ حَتَّى اسْتَوَى فِي الصَّفِّ، وَتَقَدَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ، مَا مَنَعَكَ أَنْ تَثْبُتَ إِذْ أَمَرْتُكَ؟" قَالَ أَبُو بَكْرٍ: مَا كَانَ لِابْنِ أَبِي قُحَافَةَ أَنْ يُصَلِّيَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا لِي رَأَيْتُكُمْ أَكْثَرْتُمْ مِنَ التَّصْفِيحِ؟ مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ فِي صَلَاتِهِ فَلْيُسَبِّحْ، فَإِنَّهُ إِذَا سَبَّحَ الْتُفِتَ إِلَيْهِ، وَإِنَّمَا التَّصْفِيحُ لِلنِّسَاءِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا فِي الْفَرِيضَةِ.

د سهل بن سعد نه روایت دی بېشکه رسول الله ﷺ لاړلو بني عمرو بن عوف ته د صلح دپاره، او نزدې شو وقت د مونځ، راغی مؤذن ابوبکر رضي الله عنه ته، وېې ویل: ایا ته خلقو ته مونځ کوې چې اقامت وکړم؟ هغه وویل: آو، نو مونځ وکړو ابوبکر نو راغی رسول الله ﷺ او خلق په مانځه کې وو، نو راغی تردې چې په صف کې ودرېدو، نو لاسونه تق وهل خلقو، او ابوبکر نه کتل په مانځه کې، هرکله چې خلقو تقې زیاتې کړې نو وېې کتل، نو رسول الله ﷺ یې ولیدلو، نو هغه ته رسول الله ﷺ اشاره وکړه چې په خپل ځای باندې پاتې شه، نو ابوبکر خپل لاسونه اوچت کړل، د الله حمدیې ووېله په هغې باندې چې د الله رسول ورته امر وکړو، بیا ابوبکر وروسته شو تردې چې په صف کې ودرېدو، او مخکې شو رسول الله ﷺ، هرکله چې فارغ شو وېې ویل: ای ابوبکر! ته څه شي منع کړې کله چې درته ما امر وکړو چې په خپل ځای پاتې شه. وویل ابوبکر: مناسب نه د ابن ابي قحافه لپاره چې مونځ وکړي مخکې د رسول الله ﷺ نه، وویل رسول الله ﷺ: څه دي مالره چې تاسو مې ولیدلئ چې لاسونه تقول مو زیات کړل؟ چاته چې په مانځه کې څه شی پېښ شي نو تسبیح دې وایي، کله چې څوک تسبیح ووایي نو هغه ته به کتل کېږي، بېشکه لاسونه تقول دا د ښځو لپاره دی. ویلي دي ابوداود: دا په فرضو کې.

**تشریح: قوله:** ان رسول الله صلی الله علیه وسلم ذهب الی بنی عمرو بن عوف لیصلح بینهم. الخ،

## مضمون حدیث

یو ځل د قبیله عمرو بن عوف کومه چه د انصارو یوه قبیله وه او قبا ته راغلی وو په اتفاق سره د دوئ په خپلو کښې جنګ اوشو نو حضور ﷺ د دوئ په مینځ کښې د صلحې کولو دپاره د ماسپښین مونځ کولو نه پس تشریف یوړو او د تلو په وخت کښې حضور ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته اوفرمائیل که زما واپسی تر مازیګر پورې او نۀ شوه نو د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه باندې مونځ اوکړه، چنانچه د مازیګر وخت راغلو او د حضور ﷺ

(۱): صحيح البخاري/العمل في الصلاة ٥ (١٢٠٤)، صحيح مسلم/الصلاة ٢٢ (٤٢١)، (تحفة الأشراف: ٤٧٤٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الإمامة ٧ (٧٨٥)، ١٥ (٧٩٤)، السهو ٤ (١١٨٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٥ (١٠٣٤)، موطا امام مالك/قصة الصلاة ٢٠ (٦١)، مسند احمد (٣٣٦٧٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٩٥ (١٤٠٤) (صحيح)

واپسی تر هغه وخته پورې نۀ وه شوې نو ځکه صديق اکبر په جومات کښې مونځ شروع کړو اوس ړومبې رکعت ئې کړې وو چه حضور ﷺ تشریف راوړلو او صفونه ئې څيرې کړل او ړومبی صف ته اورسیدو او شامل شو خلقو دصديق اکبر رضی الله عنه متوجه کولو دپاره تصفيق اوکړو، کله چه خلقو تصفيق زيات کړو نو بيا هغه متوجه شو او محسوس ئې کړه چه حضور ﷺ تشريف راوړې دې نو په دې باندې دوئ د واپس کيدو اراده اوکړه دې دپاره چه حضور ﷺ مونځ ورکړی نو دوئ په اشارې سره منع کړو (کله چه صديق اکبر رضی الله عنه دا اوکتل چه حضور ﷺ ما پسې مونځ کولو دپاره تيار دې نو هغوی په دې باندې د الله پاک شکر ادا کولو دپاره) دواړه لاسونه اوچت کړل (څنګه چه په دعا کښې پورته کوی) د الله حمد او ثناء ئې اوکړه خو ابوبکر صديق رضی الله عنه هلته پاتې نۀ شو تر دې چه روستو راغلو او صف کښې اودريدو او حضور ﷺ د امام په ځائې باندې اورسيدو او مونځ ئې ورکړو.

## د مونځ په حالت کښې استخلاف د امام کله جائز دې

په دې حديث کښې يوه اختلافی مسئله ده هغه دا چه يو مونځ يو امام شروع کړی او په مينځ کښې په خپله روستو شی او بل سړې مونځ کولو دپاره وړاندې کړی داسې کول د شوافعو او مالکيه په نيز جائز دی، نووی د شوافعو قول صحيح او صاحب منهل د مالکيه قول هم دا ليکلې دې او داحنافو په نيز لکه څنګه چه په بذل کښې د درمختار نه نقل کړې دی چه بلا عذره استخلاف جائز نۀ دې آو که اول امام د قراءت مفروض اندازه او نۀ کړې شی د څه وجه نه ورته حصر پيښ شی نو بيا بل سړې مونځ ورکولې شی ګينی نۀ شی ورکولې، زمونږ علماء د دې واقعی توجيه دا کوی چه دلته صديق اکبر رضی الله عنه باندې د حضور ﷺ د راتلو د وجه نه حصر واقع شوې وو. والله تعالٰى اعلم.

**فائده:** هم داسې قسمه قصه په کتاب الطهارت کښې د مسح علی الخفين په باب کښې تيره شوې ده هلته د ړومبې نه مونځ ورکونکې حضرت عبدالرحمٰن بن عوف وو په دواړو کښې فرق دا دې لکه چه هلته تير شوې دی چه حضرت عبدالرحمٰن بن عوف هم د حضور ﷺ په راتلو باندې روستو کيدل اوغوښتل خو د حضور ﷺ په اشاره باندې هم هلته ئې مونځ اوکړو اودلته قصه د صديق اکبر رضی الله عنه د روستو کيدو ده په دې باندې کلام هلته تير شوې دې.

[٩٤١](1)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: كَانَ قِتَالٌ بَيْنَ بَنِي عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ، فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَاهُمْ لِيُصْلِحَ بَيْنَهُمْ بَعْدَ الظُّهْرِ، فَقَالَ لِبِلَالٍ: "إِنْ حَضَرَتْ صَلَاةُ الْعَصْرِ وَلَمْ آتِكَ، فَمُرْ أَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ،" فَلَمَّا حَضَرَتِ الْعَصْرُ أَذَّنَ بِلَالٌ، ثُمَّ أَقَامَ، ثُمَّ أَمَرَ أَبَا بَكْرٍ فَتَقَدَّمَ، قَالَ فِي آخِرِهِ: إِذَا نَابَكُمْ شَيْءٌ فِي الصَّلَاةِ فَلْيُسَبِّحِ الرِّجَالُ، وَلْيُصَفِّحِ النِّسَاءُ".

د سهل بن سعد نه روايت دی هغه ويلې دې: د بنی عمرو بن عوف په مينځ کې جنګ وو، نو دغه خبره رسول الله ﷺ ته ورسيده نو هغه راغی دوی ته چې صلح وکړي د دوی په مينځ کې د ماسپخين نه وروسته، هغه وفرمايل بلال ته: که چيرې د مازيګر مانځه وخت راغی او

(1): صحيح البخاري/الأحكام ٣٦ (٧١٩٠)، سنن النسائي/الإمامة ١٥ (٧٩٤)، (تحفة الأشراف: ٤٦٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣٢/٥، ٣٣٦)، دي/الصلاة ٩٥(١٤٠٤) (صحيح)

زه راغلی نه وم، نو امر وکړه ابوبکر ته چې مونځ وکړي خلقو ته. کله چې مازیګر راغی اذان وکړو بلال، بیایي اقامت وکړو، بیایي امر وکړو ابوبکر ته، نو مخکې شو، هغه ویلي دي په اخیر د هغې کې: کله چې تاسو ته څه شی پیښ شي په مانځه کې نو سړي دي تسبیح وایي، او تصفیح دې کوي زنانه.

[۹۴۲]([1])حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنْ عِيسَى بْنِ أَيُّوبَ، قَالَ: قَوْلُهُ التَّصْفِيحُ لِلنِّسَاءِ: تَضْرِبُ بِأُصْبُعَيْنِ مِنْ يَمِينِهَا عَلَى كَفِّهَا الْيُسْرَى.

د عیسی بن ایوب نه روایت دی هغه ویلي دي: قول د هغه (التصفیح للنساء) مونږ به وهلو په دوه ګوتو د ښي لاس سره ورغوی د چپ لاس.

## بَابُ الإِشَارَةِ فِي الصَّلاَةِ
### باب دی په بیان د اشاره کې په مانځه کې

[۹۴۳]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ شَبُّوَيْهِ الْمَرْوَزِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، قَالاَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُشِيرُ فِي الصَّلاَةِ".

د انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی بېشکه نبي صلی الله علیه وسلم وو چې اشاره یې کوله په مانځه کې.

قوله، عن انس بن مالک ان النبی صلی الله علیه وسلم کان یشیر فی الصلوة.

### شرح حدیث

په دې کښې دوه احتماله دي یو دا چه په اشارې سره مراد اشاره بالسبابه وی کومه چه په تشهد کښې وی خو چونکه تشهد او د دې د متعلقاتو ابواب خو به وړاندې راځي نو ځکه د مصنف مراد دا نۀ شي کیدې لهذا د اشارې نه اشاره لاجل الحاجة مراد ده لکه چه د سلام په جواب کښې اشاره کول یا بله خبره پوهه کولو دپاره.

[۹۴۴]([3])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ الأَخْنَسِ، عَنْ أَبِي غَطَفَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "التَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ، يَعْنِي فِي الصَّلاَةِ، وَالتَّصْفِيقُ لِلنِّسَاءِ، مَنْ أَشَارَ فِي صَلاَتِهِ إِشَارَةً تُفْهَمُ عَنْهُ فَلْيَعُدْ لَهَا، يَعْنِي الصَّلاَةَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ وَهْمٌ.

د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي، چې فرمایلي دي رسول الله صلی الله علیه وسلم: تسبیح د سړو لپاره دی. یعني په مانځه کې. او تصفیق د زنانو لپاره دیز، چا چې مانځه کې داسې اشاره وکړه چې سړي ترېنه فهم اخسته نو اعاده دې وکړي. یعني د مانځه. ویلي دي ابوداود: دا حدیث وهم دی. خو د رد السلام دپاره د اشارې باب وړاندې تیر شوې دې نو ځکه هم دویم احتمال مراد دې، زمونږ فقهاؤ تصریح کړې ده چه که کوم سړې مونځ کونکی سره خبرې اوکړي او دې په څۀ باندې پوهه کړی نو دا جائز ده او مونځ کونکې په خپله د دې جواب په لاس یا د سر په اشارې سره ورکولې شی خو ردالسلام بالاشاره لره زمونږ فقهاؤ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۱۸۸) (صحیح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۴٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۳۸) (صحیح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۴۵۵) (ضعیف)

مکروه لیکلې دی، كما تقدم في بابه.

قوله، من اشار في صلوته اشارة تفهم عنه فليعد لها، د حديث دا جمله د وړاندینی حدیث خلاف ده ځکه چه د دینه معلومیږی که کوم سړی په مانځه کښې اشارةً کومې خبرې باندې بل پوهه کړی نو دهٔ لره د مونځ اعاده کول پکار دی، نو ځکه مصنف فرمائی، قال ابوداؤد هذا الحديث وهم، دارقطني او بيهقي هم دې زيادت لره غير صحيح ګرځولې دې او دا کیدې شی چه دا د ابن اسحاق راوی قول وی، دغه شان د دې حدیث په سند کښې ابوغطفان دې، وئیلې شوې دی چه هغه رجل مجهول دې خو دا صحیح نهٔ ده ابوغطفان چه دهغه نوم ابوطریف دې ثقه راوی دې، او یا د دې حدیث به دا توجیه کولې شی چه په دې کښې داعاده صلوة امر په طریقې د استحباب سره دې نهٔ په طریقې د وجوب سره. فليعد لها، په دې کښې لام زائد دې او ضمیر راجع دې صلوة طرف ته یعنی فليعد الصلوة، یا لام د الی په معنی کښې دې او. فليعد د عود نه دې، ای فليعد الی الصلوة، پکار ده چه مونځ ګذار طرف ته رااوګرځی.

## بَابٌ فِي مَسْحِ الْحَصَى فِي الصَّلَاةِ

### باب دی په بیان دهوارولو د کانوکې په مانځه کې

[٩٤٥](١)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ شَيْخٍ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا ذَرٍّ يَرْوِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ فَلَا يَمْسَحِ الْحَصَى".

د ابو الاحوص نه روایت دی، د مدینې یو شیخ دی، هغه اوریدلې دي د ابوذر نه. هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه، هغه ویلي دي: کله چې پاڅېږي یو کس ستاسو نه مانځه ته بېشکه رحمت د هغه سره مخ کېږي، نو نه دې مسح کوي کاڼي.

**تشریح:** د حدیث مضمون دا دې چه کله سړې مونځ شروع کړی نو د مونځ په حالت کښې د الله تعالی رحمت دهٔ طرف ته متوجه وی لهذا د دې رحمت حاصلولو دپاره مونځګذار لره هم دې طرف ته متوجه کیدل پکار دی په یو داسې مشغولیدل نهٔ دی پکار د کوم د وجه نه چه د مونځ نه توجه لرې شی مثلا سجدې ته د تلو په وخت کښې د سجدې د ځائې نه خاوره یا کانړی نهٔ دې لرې کول پکار، په حدیث کښې د کانړی ذکر دې ځکه چه په هغه زمانه کښې په مسجد نبوی کښې کانړی خواورهٔ کړې شوې وو.

د جمهورو علماؤ په نیز باندې مسح الحصٰى په مانځه کښې مکروه دی او د ظاهریه په نیز حرام دی خو یو ځل لرې دکولو اجازت په حدیث کښې مذکور دې، بعضو د دې ممانعت حکمت دا لیکلې دې چه دا د تواضع منافی دې او بعضې دا وائی چه د دې مصلحت دا دې چه کانړی د سجدو نه محروم نشی ځکه چه هر کانړی دا غواړی چه مونځګذار په ما باندې سجده اوکړی لکه چه د مصنف ابن ابی شیبه په روایت مقطوعه کښې دی.

(١): سنن الترمذي/الصلاة ١٦٣ (٣٧٩)، سنن النسائي/السهو ٧ (١١٩٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٣ (١٠٢٧)، (تحفة الأشراف: ١١٩٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٠/٥، ١٦٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١١٠ (١٤٢٨) (ضعيف)

[٩٤٦] (¹) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ مُعَيْقِيبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَمْسَحْ وَأَنْتَ تُصَلِّي، فَإِنْ كُنْتَ لَا بُدَّ فَاعِلًا فَوَاحِدَةً تَسْوِيَةَ الْحَصَى".

د معيقب نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ ويلي دي: ته مه مسح کوه او حال دا چې ته په مانځه کې يې، که چېرې ته خامخا کونکی يې نو يو ځل برابر د کانړو دي.

**تشريح: قوله:** فان كنت لابد فاعلا فواحدة تسوية الحصٰى : دا آخری لفظ د يوراوی د اړخ نه د مسح الحصٰى تفسير دې، په ترکيب کښې بظاهر دا د مبتداء محذوف خبر دې تقدير د عبارت دا دې، وهو (ای المسح) تسوية الحصٰى، چه د مسحې نه مراد تسوية الحصٰى دی.

## بَابُ الرَّجُلِ يُصَلِّي مُخْتَصِرًا

### باب دی په بيان د سړي کې چې مونځ کوي او لاسونه يې په تشو باندې ايخودي وي

دا باب مکرر دې د دينه لس، دولس بابه وړاندې باب فی التخصر تير شوې دې خو هلته مصنف يو بل حديث فرمائيلې دې کوم چه دلته مذکور نۀ دې هغه دې او کتلې شی هلته تير شوې دې، حضور ﷺ د، صلب فی الصلوة، نه منع فرمائيلې ده.

[٩٤٧] (²) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ كَعْبٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الِاخْتِصَارِ فِي الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي يَضَعُ يَدَهُ عَلَى خَاصِرَتِهِ.

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: منع کړي ده رسول الله ﷺ د اختصار (لاس کېخودلونه په تشو) نه په مانځه کې. ويلي دي ابوداود: يعني چې ږدي خپل لاس په تشې باندې.

**تشريح: قوله:** نهي رسول الله ﷺ عن الاختصار فی الصلوة، او د بخاری شريف په روايت کښې دی، نهی عن التخصر فی الصلوة، داختصار او تخصر په تفسير کښې ګڼ اقوال دی او د دې حکم او حکمت د منع د دې ټولو څيزونو بيان په وړاندې ځائې کښې تير شوې دې.

## بَابُ الرَّجُلِ يَعْتَمِدُ فِي الصَّلَاةِ عَلَى عَصًا

### باب دی په بيان د سړي کې چې تکيا کوي په مانځه کې په امسا باندې

[٩٤٨] (³) حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْوَابِصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ شَيْبَانَ، عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، قَالَ: قَدِمْتُ الرَّقَّةَ، فَقَالَ لِي بَعْضُ أَصْحَابِي: هَلْ لَكَ فِي رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: قُلْتُ: غَنِيمَةٌ، فَدَفَعْنَا إِلَى وَابِصَةَ، قُلْتُ لِصَاحِبِي: نَبْدَأُ، فَنَنْظُرُ إِلَى دَلِّهِ، فَإِذَا عَلَيْهِ قَلَنْسُوَةٌ لَاطِئَةٌ ذَاتُ أُذُنَيْنِ، وَبُرْنُسُ خَزٍّ أَغْبَرُ، وَإِذَا هُوَ مُعْتَمِدٌ عَلَى عَصًا فِي صَلَاتِهِ، فَقُلْنَا: بَعْدَ أَنْ سَلَّمْنَا؟ فَقَالَ: حَدَّثَتْنِي أُمُّ قَيْسٍ بِنْتُ مِحْصَنٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمَّا أَسَنَّ وَحَمَلَ اللَّحْمَ اتَّخَذَ عَمُودًا فِي مُصَلَّاهُ يَعْتَمِدُ عَلَيْهِ".

---

¹): صحيح البخاري/العمل في الصلاة ٨ (١٢٠٧)، صحيح مسلم/المساجد ١٢ (٥٤٦)، سنن الترمذي/الصلاة ١٦٧ (٣٨٠)، سنن النسائي/السهو ٨ (١١٩٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٦٢ (١٠٢٦)، (تحفة الأشراف: ١١٤٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٦/٣، ٤٢٥/٥، ٤٢٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١١٠ (١٤٢٧) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٥٤٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العمل في الصلاة ١٧ (١٢٢٠)، صحيح مسلم/المساجد ١١ (٥٤٥)، سنن الترمذي/الصلاة ١٦٩ (٣٨٣)، سنن النسائي/الافتتاح ١٢ (٨٨٩)، مسند احمد (٢٣٢/٢، ٢٩٠، ٢٩٥، ٣٣١، ٣٩٩)، سنن الدارمي/الصلاة ١٣٨ (١٤٦٨) (صحيح)

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٣٤٥) (صحيح)

د هلال بن یساف نه روایت دی هغه ویلي دي: زه راغلم رقي ته ماته زما بعضو ملګرو وویل: ایا ستا یو سړي ته شوق شته د ملګرو د نبي ﷺ نه؟ هغه وایي ما وویل: دا خو غنیمت دی، مونږ یي وابصه ته بوتلو، ما خپل ملګري ته وویل: مونږ به د هغه صفاتو ته ګورو، نو په هغه باندې خولۍ وه جوخته دوه غوږونو والا، او یو اوچته خولۍ وه د ریښمو چې خړرنګې وه، او هغه په تکیا کونکی په امسا باندې په مانځه کې، مونږ وویل وروسته د سلام نه، هغه وویل: ماته حدیث بیان کړی دی ام قیس بنت محصن: بېشکه رسول الله ﷺ چې هرکله بوډا شو او غوښه یي واخسته، یوه ستنه یي جوړه کړه د م انځه په ځای کې چې تکیایي کوله په هغې.

**تشریح: قوله:** عن هلال بن یسافٍ قال قدمت الرَّقة.. الخ،

## شرح حدیث

د حدیث مضمون دا دې چه زهٔ مقام رقه (د یو ځائې نوم دې)ته اورسیدم نو ماته زما بعضې ملګرو اووئیل، (زیاد بن ابی الجعد، کما فی مسند احمد) آیا تالره یو صحابی سره د ملاقات رغبت شته دې، مطلب دا وو چه دلته په دې ښار کښې د یو صحابی قیام دې (یعنی اوسیږی) که هغهٔ سره لیدل غواړی نو راځه، قال کنت غنیمة، ما ورته اووئیل دا ملاقات خو یو ډیر لوئې نعمت او غنیمت دې هغه وائی بیا مونږ لاړو د وابصة بن معبد په خدمت کښې، قلت لصاحبی نبداء فننظر الی دله، بلال بن یساف وائی چه ما خپل ملګری ته اووئیل اوس مونږ په تلو سره به رومبې کار دا کوو چه د دې صحابی حلیه به ګورو، فاذا علیه قلنسوة لا طیة ذات اذنین، مونږ چه لاړو اومولیدل چه د هغهٔ په سر باندې داسې ټوپئ ده کومه چه سر سره یوځائې ده یعنی پورته نهٔ ده او هغه ټوپئ دوه غوګونو واله وه (ځنګه چه زمونږ په اطرافو کښې بعضې خلق د ژمی په موسم کښې د غوږونو د حفاظت دپاره په سروی) او یوه ورینه چپنه خاورینی رنګ واله ئې اغوستې وه، خزاس کپړې ته وائی کومه چه د وړئ او ریښم نه اودلي کیږی یعنی مخلوط نهٔ خالص ریښم او نهٔ خالص وړئ، د دې اطلاق په خالص ریښمی کپړه باندې هم کیږی، و اذا هو معتمد علی عصا فی صلوته، یعنی چه کله مونږ هلته اورسیدو نو اوموکتل چه هغه داسې ټوپئ او چپنه اغوستې وه او دغه وخت هغه د لرګی په سهارې سره ولاړ وو مونځ ئې کولو، مسئله دا ده چه اعتماد فی الصلوة په نفل کښې مطلقا جائز دې او فرض کښې بغیر د عذر نه مکروه ده.

## دمعذور دپاره د قیام فی الصلوة مسئله

دلته په بذل المجهود کښې دا مسئله لیکلې ده چه کوم معذور یا ضعیف سړې په فرض مونځ کښې بغیر د سهارې نه په قیام باندې قادر نهٔ وی نو دهٔ نه قیام ساقطیږی نه بلکه په سهاره باندې به په ولاړه مونځ کول ضروری دی که سهاره د چا انسان وی یا د یو لرګی وغیره، په ناسته باندې کول جائز نهٔ دې تر دې که کوم سړې په پوره قیام باندې قادر نهٔ وی نو څومره وخت چه قیام کولې شی قیام کول واجب دی او بیا که غواړی نو کیدېنی، په طحطاوی کښې لیکلې دی چه خصوصا د صاحبینو په مسلك باندې دا قیام ځکه ضروری

دې چه هغوی قادر بقدرة الغير لره قادر گرځوي، او د منهل نه معلوميږي چه دا مذكوره بالا مستندا قيام د حنفيه، حنابله او شافعيه د يو جماعت په نيز باندې هم واجب دې خو دا ده چه د مالكيه په دې كښې اختلاف دې هغوی په داسې صورت كښې د قيام د وجوب قائل نهٔ دی، په بذل كښې د حضرت گنگوهی د تقرير نه هم دا نقل كړې دی كوم چه پورته فقهاؤ نه نقل كړې شوې دی چه حتی المقدور قيام ضروری دې.

## د حضرت گنگوهی كمال احتياط

په خپله د حضرت گنگوهی قدس سره په سوانح كښې ليكلي دی چه حضرت په خپل آخری زمانه كښې د شدت ضعف او مرض په حالت كښې د دو خادمانو په سهارې په اودريدو او فرض مونځ به ئې ادا كولو.

# بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْكَلَامِ فِي الصَّلَاةِ

## باب دی په بيان د منع كې د خبرونه په مانځه كې

**تشريح: قوله:** فنزلت و قوموا لله قانتين فامرنا بالسكوت و نُهينا عن الكلام،

## (د كلام فی الصلوة نسخ په مدنيه منوره كښې)

[٩٤٩] [1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ الْحَارِثِ بْنِ شُبَيْلٍ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: كَانَ أَحَدُنَا يُكَلِّمُ الرَّجُلَ إِلَى جَنْبِهِ فِي الصَّلَاةِ، فَنَزَلَتْ: وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ سورة البقرة آية ٢٣٨ "فَأُمِرْنَا بِالسُّكُوتِ وَنُهِينَا عَنِ الْكَلَامِ".

د زيد بن ارقم نه روايت دی هغه ويلي دي: وو به يو كس زمونږ چې خبرې به يې كولې د نزدې ملګري خپل سره په مانځه كې، نو نازل شو (و قوموا لله قانتين) اودريږئ الله ته په عاجزۍ سره. نو مونږ ته امر وشو په سكوت سره، او مونږ منع شو د خبرو نه.

د دې حديث نه معلومه شوه چه د كلام فی الصلوة نسخ په مدينه منوره كښې شوې ځكه چه دا آيت د كوم نه چه نسخ كيږی په اتفاق سره مدنی دې، د حضراتو شافعيو رائې دا ده چه نسخ الكلام فی الصلوة په مكه مكرمه كښې شوې دې، د دې څهٔ اندازه وضاحت په باب رد السلام فی الصلوة كښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په حديث، فلما رجعنا من عند النجاسی، په ذيل كښې تير شوې دې او زيات مفصل كلام به په باب السجود السهو كښې د حديث ذواليدين د لاندې انشاء الله تعالی راشی.

# بَابٌ فِي صَلَاةِ الْقَاعِدِ

## باب دی په بيان د مونځ ناست كې

دا خبره مشهوره ده كه نفل مونځ بغير د عذر نه په ناسته اوكړې شی نو د دې ثواب نيم دې او كه عذر سره وی نو بيا ثواب پوره دې.

[1]: صحيح البخاري/العمل في الصلاة ٢ (١٢٠٠)، وتفسير البقرة ٤٢ (٤٥٣٤)، صحيح مسلم/المساجد ٧ (٥٣٩)، سنن الترمذي/الصلاة ١٨٥ (٤٠٥)، وتفسير البقرة (٢٩٨٦)، سنن النسائي/السهو ٢٠ (١٢٢٠)، (تحفة الأشراف: ٣٦٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٨/٣) (صحيح)

[٩٥٠]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالٍ يَعْنِي ابْنَ يَسَافٍ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: حُدِّثْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا نِصْفُ الصَّلَاةِ" فَأَتَيْتُهُ فَوَجَدْتُهُ يُصَلِّي جَالِسًا، فَوَضَعْتُ يَدَيَّ عَلَى رَأْسِي، فَقَالَ: "مَا لَكَ يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو؟"، قُلْتُ: حُدِّثْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَّكَ قُلْتَ: "صَلَاةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا نِصْفُ الصَّلَاةِ"، وَأَنْتَ تُصَلِّي قَاعِدًا، قَالَ: "أَجَلْ وَلَكِنِّي لَسْتُ كَأَحَدٍ مِنْكُمْ".

د عبد الله بن عمرو نه روایت دی هغه ویلي دي: ماته حدیث بیان شوی دی بېشکه رسول الله ﷺ ویلي دي: د سړي په ناسته مونځ دا نیم مونځ دی، نو زه راغلم ما هغه ومونډلو چې مونځ یې کولو په ناسته، ما خپل لاسونه په سر باندې کېخودل د تعجب د وجې نه، هغه وویل: څه دي تالره ای عبد الله بن عمرو! نو ما وویل: ای د الله رسوله! بېشکه تا ویلي دي: مونځ د سړي په ناسته دا نیم مونځ دی، او ته مونځ کوې په ناسته، هغه وویل: آو، لکن زه نیم پشان د یو کس ستاسو نه.

**تشریح: قوله:** قال اجل و لکنی لست کاحد منکم... د دینه معلومه شوه چه د حضور ﷺ دا خصوصیت دې چه دوئ ته به قاعدا مونځ بغیر د عذر نه کولو باندې هم پوره ثواب ملاویږی.

[٩٥١]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ الرَّجُلِ قَاعِدًا، فَقَالَ: "صَلَاتُهُ قَائِمًا أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهِ قَاعِدًا، وَصَلَاتُهُ قَاعِدًا عَلَى النِّصْفِ مِنْ صَلَاتِهِ قَائِمًا، وَصَلَاتُهُ نَائِمًا عَلَى النِّصْفِ مِنْ صَلَاتِهِ قَاعِدًا".

د عمران بن حصین نه روایت دی، بېشکه هغه تپوس وکړو د نبي ﷺ نه د مونځ د سړي په ناسته، هغه وفرمایل: مونځ د هغه په ولاړه دا افضل دی د مونځ د هغه نه په ناسته، او مونځ د هغه په ناسته دا نیمایي دی د هغه مونځ چې په ولاړیې کوي، او مونځ د هغه په اودو دا نیمایي دی د مونځ د هغه په ناسته.

**تشریح: قوله:** عن عمران بن حصین انه سال النبی ﷺ عن صلوة الرجل قاعدا فقال.. و صلوته نائمًا علی النصف من صلوة قاعدًا، د حدیث مضمون دا دې چه د صلوة قاعدا ثواب د صلوة قائما نه نیم دې او صلوة نائما یعنی مضطجعا ثواب د صلوة قاعدا نه نیم دې، معلومه شوه چه په ولاړه باندې دمونځ کولو ثواب په ملاستې مونځ کولو نه څلور چنده زیات دې.

## شرح حدیث باندې تفصیلی کلام

د دې حدیث په تشریح کښې شراحو ډیر څۀ تفصیل لیکلي دي مونږ هم مختصرا بیان کوو، رومبې دوه خبرې ازده کړئ اول دا چه فرض مونځ بغیر د عذر نه په ناسته یا په ملاسته په

[1]: صحيح مسلم/المسافرين ١٦ (٧٣٥)، سنن النسائي/قيام الليل ١٨ (١٦٦٠)، (تحفة الأشراف: ٨٩٣٧)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٤١ (١٢٢٩)، موطا امام مالك/ صلاة الجماعة ٦ (١٩)، مسند احمد (١٦٢/٢، ١٩٢، ٢٠١، ٢٠٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١٠٨ (١٤٢٤) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ١٧ (١١١٥)، ١٨ (١١١٦)، ١٩ (١١١٧)، سنن الترمذي/الصلاة ١٦٢ (٣٧١)، سنن النسائي/قيام الليل ١٩ (١٦٦١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٤١ (١٢٣١)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٣/٤، ٤٣٥، ٤٤٢، ٤٤٣) (صحيح)

اتفاق سره جائز نۀ دي او که په عذر سره اوکړي نو جائز دي بلکه په ثواب کښې هم څۀ کمې نشته پوره ثواب به ورته ملاويږي، دويمه خبره دا ده چه نفل مونځ اګر که په ناسته بغير د عذر نه جائز دي خو په دې کښې ثواب نيم دي او که عذر سره وي نو په دې کښې به ثواب پوره وي خو په ملاسته نفل مونځ کول بغير د عذر نه عند الجمهور جائز نۀ دي.

**(اشکال)**: د دې تمهيد نه پس د دې حديث په باره کښې واورئ که دا حديث په مفترض باندې محمول کوی نو لامحاله معذور سړې به مراد وی ځکه چه فرض خو په ناسته يا په ملاسته بغير د عذر نه جائز نۀ دې، خو په دې کښې به دا اشکال وی چه بيا د اجر تنصيف ولې دې، لهذا په مفترض باندې به محمول نۀ وی او که دې لره په متنفل باندې محمول کوی نو بيا دوه صورتونه دی يا به معذور وی يا غير معذور، که معذور دې نو تنصيف د اجر ولې؟ او که غير معذور دې نو قاعدا نفل کول اګر که جائز دې خو په ملاسته باندې کول جائز نۀ دی، حال دا دې چه په حديث کښې هغه مذکور دې.

حاصل دا شو چه که حديث لره مفترض معذور باندې محمول کوی نو تنصيف داجر ولې دې او که په متنفل غير معذور باندې محمول کوی نو هغه نائما کله جائز دې؟ آو البته دحسن بصری رحمه الله او بعضې سلفو په نيز جائز دې، کما نقله الترمذی فی جامعه، هم داسې يو روايت د شافعيه نه هم دې، حافظ ابن حجر وائی چه متاخرين شافعيه د دې حديث په بناء باندې هم دې قول لره (جواز التفل مضطجعا بلا عذر) ترجيح ورکړې ده، او داسې يو روايت د جواز د مالکيه نه هم منقول دې څنګه چه قاضی عياض فرمائيلې دی، دغه شان غالبًا بعضې کتب احنافو کښې هم يو قول د دې د جواز[1] ليکلې دې خو د مشهور قول پيش نظر په مذاهب اربعه کښې نفل بلا عذره مضطجعا جائز نۀ دې،

**(رومبی جواب)**: لهذا دا حديث د تاويل محتاج دې، امام خطابی د دې توجيه دا کړې ده چه دا په هغه معذور مفترض باندې محمول دې کوم چه قيام يا قعود باندې خو قادر دې خو ډير په سختنه او مشقت سره، مثلا يو سړې دومره کمزورې دې چه هغه په ناسته خو فرض مونځ کولې شی خو ډير په سختئ سره نو که داسې سړې په ملاسته باندې مونځ اوکړی نو جائز دې خو که په ناسته باندې اوکړی نو دوچند ثواب به وی ګينی نيم به وی، هم داسې يو سړې په ولاړه باندې مونځ کولو باندې خو قادر دې خو په ډير مشقت سره نو که دا سړې په ناسته مونځ اوکړی نو جائز دې خو که په ولاړه مونځ اوکړی نو دوچند ثواب به وی ګينی نيم به وی.

**(دويم جواب)**: او حضرت اقدس ګنګوهی رحمه الله دې حديث لره خو محمول کړې په هغه قسمه معذور باندې دې کوم چه د خطابی په کلام کښې مذکور دې يعنی کوم چه په مشقت سره قيام او قعود باندې قادر وی خو متنفل باندې نۀ په مفترض باندې، هغه فرمائی (کما فی الکوکب) چه داسې معذور دپاره په ملاسته مونځ کول جائز دې خو فرض جائز نۀ دې يعنی کوم معذور چه فرض مونځ په ناسته باندې کولو باندې قادر خو دې خو د ډير مشقت نه پس

---

[1] ګويا په دې صورت کښې که چرې حديث په متنفل غير معذور باندې محمول کړې شی نو هيڅ اشکال نشته.

نو د حضرت په نیز دهٔ دپاره په ملاسته باندې فرض مونځ کول جائز نهٔ دی بلکه ناسته ضروری ده په خلاف د نفل نه چه هغه په ملاسته کولې شي.

## د علامه سندي رائې

علامه سندی په حاشیه د نسائي، ص :۲۴۵ ، کښې په دې حدیث باندې کلام کوی او لیکی چه د دې حدیث د وړاندې زمونږ بعضې متاخرینو په نفل مونځ کښې بغیر د عذر نه مضطجعا جائز ګرځولې دې خو اکثرو علماؤ د دې انکار کړې دې او په ملاسته باندې بغیر د عذر نه نفل کول ئې بدعت ګرځولې دې، بیا د دېنه پس هغوی د دې حدیث توجیه دا کړې ده چه د دې حدیث نه مقصود صحت د صلوة او فساد د صلوة بیان کول نهٔ دی بلکه په صلوتینو صحیحینو کښې د یو په بل باندې فضیلت بیانول مقصود دی، اوس دا چه کوم مونځ صحیح دې او کوم نهٔ دې صحیح دا به د قواعدو نه معلومیږی، پس د حدیث مطلب دا دې چه کوم مونځ په ناسته صحیح وی د هغې ثواب به په ولاړه باندې کولو سره نیم وی خوا که هغه فرض وی یا نفل هم داسې کوم مونځ چه په ملاسته صحیح وی د هغې ثواب به په ناسته باندې کولو سره نیم وی، او هغه لیکی چه دا خبره چه کومه مشهور ده چه د معذور د مونځ ثواب په ناسته یا په ملاسته باندې کولو سره ناقص کیږی دا مونږ نهٔ منو، انتهی کلامه.

ځکه چه دا خبره د عمران بن حصین د حدیث د ظاهر خلاف ده، لهذا د دې حدیث د وړاندې دا به منل وی چه د عذر په صورت کښې هم په ناسته باندې مونځ کول د ثواب د نقصان باعث دې او ددې په خلاف باندې کوم صریح دلیل نشته دې،(۱) والله تعالی اعلم.

[۹۵۲](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ طَهْمَانَ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: كَانَ بِي النَّاصُورُ، فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "صَلِّ قَائِمًا، فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا، فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ".

د عمران بن حصین نه روایت دی هغه ویلي دي: په ما باندې بواسیر وو، نو ما تپوس وکړو د نبي ﷺ نه، نو هغه وویل: مونځ کوه په ولاړه، که چېرې طاقت دې نه وي نو په ناسته باندې، او که طاقت دې نه وي نو په اړخ باندې.

**تشریح: قوله**: عن عمران بن حصین قال کان بی الناصور : او په بعضو نسخو کښې الناسور سین سره دې اودبخاری شریف په یوروایت کښې، کان بی بواسیر، او په دویم روایت کښې، و کان مبسورا، بواسیر هم د باسور جمع ده بواسیر خو مشهور مرض دې په مقعد کښې ورم پیدا شی او ناصور زخم ته وائی د دې تعلق هم د مقعد سره وی.

قوله، فان لم تستطع فقاعدا، که په ناسته باندې مونځ اوکړې شی نو د ناستې کیفیت به څهٔ وی په دې کښې اختلاف دې د امام صاحب په نیز باندې افتراش اولی دې ځنګه چه په التحیات کښې کینی هم دا یو روایت د مزنی د امام شافعی نه دې او د امام مالك او احمد او

---

(۱) لهذا اوس که مونږ داحدیث په قدرت لرونکی سړی باندې محمول کړو که هغه متنفل وی یا مفترض وی نو هیڅ اشکال به نه وی.

(۲): سنن الترمذي/الصلاة ۱۵۷ (۳۷۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳۹ (۱۲۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۳۲) (صحيح)

صاحبینو په نیز تربیع (یعنی پرلتئ) اولی دې هم دا یو روایت د امام شافعی دې.
د دې حضراتو دلیل دا دې چه د ناستې هیئت د قیام د هیئت نه مختلف دې او دا ناسته چونکه د قیام بدل ده نو ځکه د دې هیئت به هم د قعود اصلی نه مختلف پکار وی.

## د معذور مونځ به مستلقیًا وی یا مضطجعًا؟

**تشریح: قوله:** فان لم تستطع فعلی جنبٍ : په ملاسته باندې دمونځ کولو دوه صورتونه دی یو مضطجعا علی یمینه، یعنی په ښی ډډه باندې او دویم مستلقیا یعنی ستونی ستغ سملی داسی چه مخ او قدمونه ئې د قبلې په اړخ وی [1] د جمهورو په نیز ړومبې صورت اولی دې اګر چه دواړه جائز دی او شافعیه د وجوب قائل دی لهذا د دوئ په نیز که کوم سړې باوجود ددی چه مضطجعا کولو باندې قدرت وی او مستلقیا اوکړی نو مونځ به ئې صحیح نهٔ وی، او د مالکیه او حنابله په نیز صرف د استحباب درجه ده، د جمهورو دلیل حدیث الباب دې او حنفیه دا وائی چه د مستلقی اشاره به د کعبې دهوا طرف ته یعنی د دې فضاء طرف ته به واقع وی او فضاء دکعبی آسمانه پورې قبله ده په خلاف د مضطجع نه چه د دهٔ اشاره به خپلو قدمونو طرف ته وی نهٔ د قبلې په اړخ.

[۹۵۳]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي شَيْءٍ مِنْ صَلَاةِ اللَّيْلِ جَالِسًا قَطُّ حَتَّى دَخَلَ فِي السِّنِّ، فَكَانَ يَجْلِسُ فِيهَا فَيَقْرَأُ حَتَّى إِذَا بَقِيَ أَرْبَعُونَ أَوْ ثَلَاثُونَ آيَةً قَامَ فَقَرَأَهَا، ثُمَّ سَجَدَ".

د عائشې رضی الله عنها نه روایت دی هغې ویلې دي: ما هېڅ کله نه دی لیدلی رسول الله ﷺ چې قراءت یې کولو دشپې مونځ کې په ناسته، تردې چې عمریې زیات شو، نو وو هغه چې کېناستلو به په هغې کې نو لوستلو به یې، تردې چې څلوېښت او یا دېرشت ایتونه به پاتې شول نو وبه دریدلو هغه به یې ولوستل بیا به یې سجده وکړه.

**تشریح: قوله:** ما رایت رسول الله ﷺ یقراء فی شیءٍ من صلوة اللیل جالسا قط حتی دخل فی السّنّ : یعنی د تهجد مونځ به حضور ﷺ د زوروالی نه وړاندې هم په ولاړه کولو د دېنه پس په اخر عمر کښې به ئې په ناسته کولو.

**قوله:** حتی اذا بقی اربعون او ثلثون آیة قام.. الخ : یعنی کله به چه حضور ﷺ په ناسته باندې مونځ کولو نو هغه وخت بې ئې داسې کول چه کله به دیرش، څلوېښت آیتونه باقی پاتې شو نو دا به ئې په ولاړه باندې لوستل د دېنه پس به رکوع ته تلل چه تول مونځ په ناسته باندې نهٔ وی څهٔ حصه په ولاړه باندې هم اوشی.

[1] ) په دې شان چه سر او اوږو د لاندې یوه لویه تکیه کېږدی چه اشاره اوکړې شی بغیر د دېنه اشاره نهٔ شی کیدې. ۱۲منه)

[2] ): صحیح البخاري/تقصیر الصلاة ۲۰ (۱۱۱۸)، صحیح مسلم/المسافرین ۱۶ (۷۳۱)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۶۳ (۳۷۲)، سنن النسائي/قیام اللیل ۱۶ (۱٦۵۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۴۰ (۱۲۲۷)، (تحفة الأشراف: ۱٦۹۰۳، ۱٦۸٦۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۷ (۲۳)، مسند احمد (٦/۴٦، ۸۳، ۱۲۷، ۲۳۱) (صحیح)

[۹۵۴]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يُصَلِّي جَالِسًا فَيَقْرَأُ وَهُوَ جَالِسٌ، وَإِذَا بَقِيَ مِنْ قِرَاءَتِهِ قَدْرُ مَا يَكُونُ ثَلَاثِينَ أَوْ أَرْبَعِينَ آيَةً قَامَ فَقَرَأَهَا وَهُوَ قَائِمٌ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ يَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ ذَلِكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ.

عائشه چې بي بي د نبي ﷺ ده روایت کوي ببشکه نبي ﷺ وو چې مونځ یي کولو په ناسته، نو قراءت یي کولو او هغه به ناست وو، کله چې به د هغه د قراءت نه په اندازه د دېرشت او یا څلوېښت ایتونوپاتې شونو وبه دریدلو هغه به یي ولوستل، بیا به یي رکوع او سجده وکړه، بیا به یي په دویم رکعت کې کوه په پشان د هغې. ویلي دي ابوداود: نقل کړی دی دې لره عقلمة بن وقاص د عائشې نه او هغې د نبي ﷺ نه په مثل د هغې.

[۹۵۵]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ بُدَيْلَ بْنَ مَيْسَرَةَ، وَأَيُّوبَ يُحَدِّثَانِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي لَيْلًا طَوِيلًا قَائِمًا، وَلَيْلًا طَوِيلًا قَاعِدًا، فَإِذَا صَلَّى قَائِمًا رَكَعَ قَائِمًا، وَإِذَا صَلَّى قَاعِدًا رَكَعَ قَاعِدًا".

د عائشې رضي الله عنها نه روایت دی هغې ویلي دي وو رسول الله ﷺ چې مونځ یي کولو اوږده شپه په ولاړه، او اوږده شپه په ناسته، کله چې به یي مونځ کولو په ولاړه، نو رکوع به یي په ولاړه کوله، او چې کله به یي مونځ کوله په ناسته نو رکوع به یي هم په ناسته کوله.

**تشریح: قوله:** قوله كان رسول الله ﷺ يصلى ليلا طويلا قائما و ليلا طويلا قاعدا فاذا صلى قائما ركع قائما : یعنی بعضې اوقات به داسې اوشو چه د شپې به تر ډیره پورې حضور ﷺ نفلونه په ولاړه باندې کول اوبیا هم په دې شپه کښې به ئې نفلونه تر ډیر وخته پورې په ناستې باندې کول، که مونځ به ئې په ولاړه شروع کړو نو په ولاړه به رکوع ته تلو او که په ناسته به ئې شروع کړو نو په ناسته به رکوع ته تلو. حاصل دا چه بعضې رکعاتونه به ئې پوره په ولاړه باندې کول او بعضې به ئې پوره په ناسته باندې کول.

## دفع د تعارض بين الحديثين

دا حديث د مخکښې حديث خلاف دې په کوم کښې چه دا دی چه کوم مونځ به حضور ﷺ په ناسته شروع کولو نو په هغې کښې به رکوع ته د تلو نه وړاندې اودریدل، د دې تعارض مشهور جواب دا دې چه دا دوه قسمه معمول دی کوم چه په مختلفو وختونو او زمانو باندې محمول دی په یو زمانه کښې به ئې داسې کول او په بله زمانه کښې به ئې داسې نۀ کول. نۀ به ئې مدام داسې کول او نۀ مدام هغه سې، او د حضرت گنگوهی رحمه الله په تقرير کښې د دې يوه بله توجيه مذکور ده هغه دا چه د دې دويم حديث مطلب دا دې چه کله به حضور ﷺ په مانځه کښې په ناسته باندې قرات پوره کړو نو صرف رکوع ته د تلو دپاره به نۀ اودريدل بلکه رکوع

(): صحيح البخاري/ تقصير الصلاة ۲۰ (۱۱۱۹)، صحيح مسلم/المسافرين ۱۶ (۷۳۱)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۵۸ (۳۷۴)، سنن النسائي/قيام الليل ۱۶ (۱۶۴۹)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۰۹، ۱۷۷۳۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۷ (۲۳)، مسند احمد (۱۷۸/۶) (صحيح)

(): صحيح مسلم/المسافرين ۱۶ (۷۳۱)، سنن النسائي/قيام الليل ۱۶ (۱۶۴۷)، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۰۱، ۱۶۲۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۰/۶، ۲۲۷، ۲۶۱، ۲۶۵) (صحيح)

به ئې هم په دې حالت کښې کوله، او په ړومبی حدیث کښې رکوع ته د تلو نه وړاندې کوم چه د اودریدل مذکور دی هغه داسې چه په ولاړه به ئې څو آیاتونه اولوستل بیا به رکوع ته تلل، د اودریدلو نه پس سمدستی رکوع کول هلته مذکور نهٔ دی او دلته په دویم حدیث کښې د اودریدلو نه پس سمدستی رکوع ته د تلو نفی ده. فلا تعارض بین الحدیثین.

د حدیث الباب نه یوه مسئله دا هم معلومه شوه، چه څنګه نفل مونځ ټول په ناسته باندې کول جائز دی نو بغیر د عذر نه داسې کول هم جائز دی چه بعضې حصه د مونځ په ولاړه او بعضې حصه په ناسته باندې اوکړی خو د قیام نه قعود طرف ته راشی یا د قعود نه قیام طرف ته، په منهل کښې لیکلې دی چه د امام ابوحنیفه، مالك او شافعی رحمهم الله وغیره د اکثرو علماؤ دا مذهب دې، او د هدایه په آخر کښې لیکلې دی چه د صاحبینو په نیز نفل مونځ په ولاړه باندې شروع کولو نه پس بغیر د عذر نه په ناسته باندې جائز نهٔ دې.

[۹۵۶] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا كَهْمَسُ بْنُ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ "أَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ السُّورَةَ فِي رَكْعَةٍ؟ قَالَتْ: الْمُفَصَّلَ، قَالَ: قُلْتُ: فَكَانَ يُصَلِّي قَاعِدًا؟ قَالَتْ: حِينَ حَطَمَهُ النَّاسُ".

د عبد الله بن شقیق نه روایت دی هغه وایي: ما تپوس وکړو د عائشې نه، ایا وو رسول الله ﷺ چې لوستلویې سورت په هر رکعت کې؟ هغه وایي: آو مفصل. هغه وایي: ما وویل: ایا هغه به په ناسته مونځ کولو، هغه وایي:

**تشریح: قوله:** سالت عائشة اکان رسول الله ﷺ یقرأ السورة فی رکعة قالت المفصل : په بعضو نسخو کښې د السُّور په ځائې باندې السورة (مفردا) مذکور دې او د بیهقی د روایت الفاظ دا دي، هل کان رسول الله ﷺ یقرن بین السور قالت من المفصل، حاصل د سوال دا دې چه حضور ﷺ به څو څو سورتونه یو ځائې کول او په مانځه کښې به ئې لوستل نو هغوی جواب ورکړو چه آو د مفصل سورتونو نه به ئې یوځائې کول او لوستل به ئې، مفصل د قرآن پاك په اووه منزلونو کښې داخری منزل نوم دې د سورة حجرات یا د سورة ق نه تر آخر د قرآن پورې ځکه چه دا سورتونه واړهٔ واړهٔ دی او بیا بیا بسم الله سره فصل راځی نو ځکه ئې مفصل نوم ایخودلې شوې دې، اوس دا چه حضور ﷺ به کوم کوم سورتونه یوځائې لوستل هغه کوم سورتونه دی د دې بیان هم د دې کتاب په ابواب الصلوة اللیل نه پس یو باب راروان دې، ص : ۱۹۸، باب تخریج القرآن کښې راځی، چه د هغې مضمون دا دې چه، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه حضور ﷺ به د تهجد په مانځه کښې په یو رکعت کښې دوه سورتونه یوځائې لوستل، النجم والرحمٰن فی رکعة و اقتربت والحاقة فی رکعة والطور و الذاریات فی رکعة، الحدیث، دې حدیث لره به ئې په حدیث د النظائر سره تعبیر کولو ځکه چه په دې کښې مذکور دی چه، کان رسول الله ﷺ یقرأ النظائر، حضرت شیخ لیکلې دی چه صاحب د بدائع تصریح کړې ده، لایکره الجمع بین السورتین فی رکعة.

(۱): صحیح مسلم/المسافرین ۱۶ (۷۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۷۱، ۲۰۴) (صحیح)

انظر الثاني منه

قوله، حين حطمه الناس : یعنی نفل مونځ په ناسته باندې دوئ هغه وخت شروع کړو چه کله خلقو دوئ لره مات کړلو یعنی دوئ ﷺ د خلقو په خدمت کولو سره زړه زړه شول.

## بَابُ كَيْفَ الْجُلُوسُ فِي التَّشَهُّدِ

### باب دی په بیان د کیفیت د کیناستلو کې په تشهد کې

په التحيات کښې څنګه ناسته پکار ده دا مختلف فیه مسئله ده.

### مذاهب ائمه

د امام ابوحنیفه په نیز که تشهد اول وی یا آخر په دواړو کښې افتراش مسنون دې یعنی ګسه پښه غزول او په دې باندې کوناټی ایخودل او ښئ پښه اودرول، او د امام مالك په نیز مطلقا تورك دې یعنی کوناټی په زمکه باندې ایخودل او دواړه پښې په زمکه باندې غزول او ښی طرف ته رااوښکل، د ښځو په حق کښې حنفیه هم د دې قائل دی، او د امام شافعی او احمد په نیز په اول تشهد او ثانی کښې فرق دې، اول کښې افتراش او په دویم کښې تورك او په کوم مونځ کښې چه یو تشهد وی لکه د صبا او د جمعې مونځ نو په دې کښې د امام احمد په نیز افتراش دې او د امام شافعی په نیز په دې کښې هم تورك دې نو ګویا د امام احمد په نیز تورك هغه مانځه پورې خاص شو کوم چه دوه تشهد واله وی او د امام شافعی په نیز باندې دا قید نشته دې بلکه د کوم تشهد نه پس چه سلام دې خواه هغه یو تشهد واله وی یا دوو واله په هغې کښې تورك دې.

اصل منشاء د دې اختلاف خو د احادیثو اختلاف دې خو دحکمت او مصلحت په درجه کښې د شافعیه په نیز د تورك علت طول جلوس (د ناستې اوږدوالې) دې او په افتراش کښې نسبة مشقت وی او آخری تشهد طویل وی نو څکه په دې کښې تورك کیخودلې شو په خلاف د اولې قعدې نه چه په هغې کښې د مختصر کیدو د وجه نه څۀ مشقت نۀ وو نو څکه په هغې کښې افتراش کوم چه اصل دې هغه باقی اوساتلې شو دا خو شافعیه وائی او حنابله دا حکمت بیانوی چه اصل په قعود کښې افتراش دې خو روستو راتلونکی ته دا معلومه شی چه امام په کوم تشهد کښې دې نو څکه د اول او آخر د کیناستلو په کیفیت کښې فرق اوساتلې شو او په کومو مونځونو کښې چه یو تشهد وی هلته فرق او امتیاز ته څۀ حاجت نشته دې.

[۹۵۷] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، قَالَ: قُلْتُ: لَأَنْظُرَنَّ إِلَى صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُصَلِّي، "فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، فَكَبَّرَ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى حَاذَتَا بِأُذُنَيْهِ، ثُمَّ أَخَذَ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ، فَلَمَّا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ رَفَعَهُمَا مِثْلَ ذَلِكَ، قَالَ: ثُمَّ جَلَسَ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى، وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى، وَحَدَّ مِرْفَقَهُ الْأَيْمَنَ عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى، وَقَبَضَ ثِنْتَيْنِ، وَحَلَّقَ حَلْقَةً، وَرَأَيْتُهُ يَقُولُ هَكَذَا: وَحَلَّقَ بِشْرٌ الْإِبْهَامَ وَالْوُسْطَى وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ".

د وائل بن حجر نه روایت دی هغه ویلی دي، ما وویل زه به خامخا ګورم مونځ د رسول الله ﷺ چې هغه څنګه مونځ کوي، نو ودریدلو رسول الله ﷺ مخ یې کړو قبلې ته، نو تکبیرې

(۱): انظر حدیث رقم (۷۲۶)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۸۱) (صحیح)

وويله اوچت يي کړل لاسونه تردې چې برابريي کړل دواړه د غوږونو سره، بيايي ونيولو چپ لاس په ښي لاس، هرکله چې يي اراده وکړه چې رکوع وکړي اوچت يي کړل د هغې پشان. هغه وويل: بيا کېناستلو او خوره يي کړه چپه خپه، او کېښوده چپ لاس خپل په چپ ورون خپل باندې، او کړه يي کړه خپله ښې څنګل په ښي ورون باندې، او راغونډې يي کړې دوه ګوتې، او حلقه يي جوړه کړه، او ما هغه وليدلو چې داسې يي کول. او حلقه جوړه کړه بشر د ابهامي او وسطى نه، او اشاره يي وکړه په سبابې باندې.

[۹۵۸]()حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: "سُنَّةُ الصَّلَاةِ أَنْ تَنْصِبَ رِجْلَكَ الْيُمْنَى وَتَثْنِيَ رِجْلَكَ الْيُسْرَى".

د عبد الله بن عمر نه روايت دى هغه ويلي دي: سنت د مانځه دا دى چې ودروي ته خپله ښې خپه او راتاو کړې خپله چپه خپه.

**تشريح: قوله**: عن ابن عمر قال سنة الصلوة ان تنصب رجلك اليمنى و تثنى رجلك اليسرى: ابن عمر رضي الله عنه فرمائي چه په تشهد کښې د ناستې مسنون طريقه دا ده چه ښئ پښه ولاړه اوساتى او ګسه پښه راماته کړې يعنى راتوئې کړې اوپه زمکه باندې خورهٔ کړې.

دا اثر د ابن عمر مجمل دې په دې کښې دا نۀ دى بيان کړې شوې چه ګسه پښه په زمکه باندې خورهٔ کړې؟ پښه دې په کوناټو باندې اوساتى يا په زمکه باندې، که پښې باندې ايخودل مراد دى نو بيا خو به افتراش شى او که په زمکه باندې کيخودلې شى نو بيا خو به دا تورك شى دا روايت په اصل کښې د مؤطا امام مالك دې د دې په بعضو طريقو کښې خو هم داسې مجملا دې، او په يو بل روايت کښې د دې وضاحت مذکور دې هغه دا چه کوناټى په زمکه باندې اوساتى نۀ په قدم باندې لهذا دا به تورك شى، په دې روايت کښې په يو بل اعتبار سره هم اجمال دې هغه دا چه دا کيفيت د جلوس مطلقا دې لکه څنګه چه مالکيه وائى يا صرف په قعده آخيره کښې دې.

حافظ ابن حجر په فتح البارى کښې يو بل روايت وړاندې ايخودې دې او فيصله ئې کړې ده چه دلته په دې حديث کښې قعده آخيره مراد ده کما هو مسلك الشافعيه.

## د حنفيه دلائل

او حنفيه کوم چه مطلقا د افتراش قائل دې د هغوى استدلال حديث د عائشه او حديث المسئ فى الصلوة او هم داسې د وائل بن حجر روايات دى. (بذل ص ۱۵).

[۹۵۹]()حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، قَالَ: سَمِعْتُ يَحْيَى، قَالَ: سَمِعْتُ الْقَاسِمَ، يَقُولُ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ اللهِ، أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: "مِنْ سُنَّةِ الصَّلَاةِ أَنْ تُضْجِعَ رِجْلَكَ الْيُسْرَى وَتَنْصِبَ الْيُمْنَى".

عبد الله بن عمر ويلي دي: د سنت د مانځه نه دا خبره ده چې ته تکيا کړې خپله چپه خپه او

[1]): صحيح البخاري/الأذان ۱۴۵ (۸۲۷)، سنن النسائي/التطبيق ۹۶ (۱۱۵۷)، (تحفة الأشراف: ۷۲۶۹)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ۱۲(۵۱) (صحيح)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۲۶۹) (صحيح)

ودروي نبي ځپه.

[۹۶۰]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ يَحْيَى بِإِسْنَادِهِ، مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ: عَنْ يَحْيَى أَيْضًا، مِنَ السُّنَّةِ. كَمَا قَالَ جَرِيرٌ.

د يحيى نه روايت دى په په اسناد خپل سره د هغې پشان. ويلي دي ابوداود: ويلي دي حماد بن زيد هغه روايت كوي د يحيى نه هم دغه رنګه: د سنت نه دا خبره ده، لكه څنګه چې جرير ويلي دي.

[۹۶۱]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، أَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ أَرَاهُمُ الْجُلُوسَ فِي التَّشَهُّدِ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ.

د يحيى بن سعيد نه روايت دى بېشكه قاسم بن محمد، وښودلو دوى ته كېناستل په تشهد كې. نو ذكر يې كړو حديث.

[۹۶۲]()حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ الزُّبَيْرِ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ افْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى حَتَّى اسْوَدَّ ظَهْرُ قَدَمِهِ".

د ابراهيم نه روايت دى هغه ويلي دي: وو نبي ﷺ كله چې په كېناستلو په مانځه كې، خوره يې كړه خپله ګيڼه خپه تردې چې توره شوه شا د خپې د هغه.

**تشريح: قوله**: اذا جلس فى الصلوة افترش رجله اليسرى حتى اشوى ظهر قدمه: او څونكه ګسه پښه به دوئ راتاوهلو سره به غزوله نو څكه د قدم په شا باندې به ښنه جوړه شوه، په لغت كښې دى، اشوى الصف، اى الصفر لليبس، كله چه واخۀ او داونو ځانګې د اوچيدو د وجه نه زيړې شى. د باب آخرى حديث مرسل نخعى دې څكه چه ابراهيم نخعى كوم چه تابعې دې هغه دې لره براه راست د حضور ﷺ نه نقل كوى خو مشهور بين المحدثين دا دې چه مراسيل النخعي اقوى من مسانيده، كما مر فى البذل.ص، ۵. ج، ۱.)

## بَابُ مَنْ ذَكَرَ التَّوَرُّكَ فِي الرَّابِعَةِ

### باب دى په بيان د ذكر د تورك كې په څلورم ركعات كې

په دې باب كښې مصنف د ابوحميد ساعدى حديث په ګڼر طريق سره ذكر كړې دې دا حديث د رفع يدين په باب كښې هم تير شوې دې د دې په بعضې طريق كښې په قعده اولى كښې افتراش او په قعده اخيره كښې تورك مذكور دې، لكه څنګه چه د شافعيه او حنابله مسلك دې خو په دې سلسله كښې دا حديث مضطرب دې لكه څنګه چه د دې بيان په بذل،ص، ۱۷، ج، ۲، كښې تيرشوې دې اودلته هم مصنف په متن كښې بيان كړې دې.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۲۶۹) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم (۹۵۸)، (تحفة الأشراف: ۷۲۷۹، ۱۹۱۲۰۴) (صحيح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۲۶۹، ۱۸٤۰٤) (ضعيف)

[٩٦٣]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ الضَّحَّاكُ بْنُ مَخْلَدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُهُ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ أَحْمَدُ: قَالَ: أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حُمَيْدٍ السَّاعِدِيَّ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ أَبُو قَتَادَةَ، قَالَ أَبُو حُمَيْدٍ: أَنَا أَعْلَمُكُمْ بِصَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: فَاعْرِضْ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ: "وَيَفْتَحُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ إِذَا سَجَدَ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، وَيَرْفَعُ وَيَثْنِي رِجْلَهُ الْيُسْرَى فَيَقْعُدُ عَلَيْهَا، ثُمَّ يَصْنَعُ فِي الْأُخْرَى مِثْلَ ذَلِكَ"، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ: "حَتَّى إِذَا كَانَتِ السَّجْدَةُ الَّتِي فِيهَا التَّسْلِيمُ أَخَّرَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى، وَقَعَدَ مُتَوَرِّكًا عَلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ". زَادَ أَحْمَدُ، قَالُوا: صَدَقْتَ، هَكَذَا كَانَ يُصَلِّي، وَلَمْ يَذْكُرَا فِي حَدِيثِهِمَا الْجُلُوسَ فِي الثِّنْتَيْنِ كَيْفَ جَلَسَ.

د ابو حمید الساعدي نه روایت دی هغه ویلي دي: ما د هغه نه واوریدل او هغه د لسو کسانو سره وو د ملګرو د رسول الله ﷺ نه، او ویلي دي احمد: ماته خبر راکړی دی محمد بن عمرو بن عطاء، هغه وایي: ما اوریدلي دي د ابو حمید الساعدي نه، هغه د لسو کسانو سره وو د ملګرو د نبي ﷺ نه، بعضي د هغوی نه ابو قتادة دی، ویلي دي ابوحمید: زه ډېر پوهه یم د تاسو نه په مونځ د رسول الله ﷺ. هغوی وویل: پېش کړه، نو ذکر یې کړو حدیث. هغه وایي: او کولاوولي به یې ګوتې د دواړو خپو چې کله به یې سجده کوله، بیا به یې ویله: الله اکبر، او اوچتول به یې لاسونه، او راغونډوله به یې چپه خپه، کېناستلو به په هغې، بیایي کول په دویم رکعات کې د هغې پشان. نو ذکر یې کړو حدیث هغه وویل: تردې چې کله به وروستنی سجده شوه نو وروسته به یې کړه چپه خپه، او کېناستلو به په تورک سره په خپل چپ طرف باندې. زیات کړي دي احمد: هغوی وویل: تا رشتیا وویل، همدغسې مونځ یې کولو، او هغو دواړو ذکر کړی دی په خپل حدیث کېناستل په دوه رکعاتونو کې چې هغه به څنګه کېناستلو.

قوله، و یفتح اصابع رجلیه اذا سجد: یعني په سجده کښې د پښو ګوتې اودروی او دې لره لږ غوندې قبلې طرف ته مائله کړي، دا لفظ په خاء معجمه سره دې.

[٩٦٤]([2]) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ اللَّيْثِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيِّ، وَيَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، أَنَّهُ كَانَ جَالِسًا مَعَ نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَبَا قَتَادَةَ، قَالَ: "فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ جَلَسَ عَلَى رِجْلِهِ الْيُسْرَى، فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَةِ الْأَخِيرَةِ قَدَّمَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَجَلَسَ عَلَى مَقْعَدَتِهِ".

د محمد بن عمرو بن عطاء نه روایت دی، هغه ناست وو د څه نفرو سره د ملګرو د رسول الله ﷺ نه د دې حدیث، او ابو قتادة یې نه دی ذکر کړی، هغه وایي: چې کله به هغه کېناستلو په دوه رکعاتو نو کېناستلو به په چپه خپه باندې، کله چې به په وروستني رکعات کې کېناستلو نومخکې به یې کړه خپله چپه خپه، او کېناستلو به په مقعد خپل باندې.

[1]: انظر حدیث رقم: ٧٣٠، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٧) (صحیح)

[2]: انظر حدیث رقم: ٧٣٠، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٧) (صحیح)

[٩٦٥]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو الْعَامِرِيِّ، قَالَ: كُنْتُ فِي مَجْلِسٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِيهِ: "فَإِذَا قَعَدَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ قَعَدَ عَلَى بَطْنِ قَدَمِهِ الْيُسْرَى وَنَصَبَ الْيُمْنَى، فَإِذَا كَانَتِ الرَّابِعَةُ أَفْضَى بِوَرِكِهِ الْيُسْرَى إِلَى الْأَرْضِ وَأَخْرَجَ قَدَمَيْهِ مِنْ نَاحِيَةٍ وَاحِدَةٍ".

د محمد بن عمرو بن العامري نه روايت دى، هغه ويلي دي: زه وم په يو مجلس كې، (د دې حديث) هغه ويلي دي په هغې كې: چې كله به كېناستلو په دويم ركعات نو كېناستلو به په خېټه د چپې خپې، او ودروله به يې ښۍ خپه. كله چې به څلورم ركعات وو نزدې به يې كړو خپل چپ كوناټې په ځمكه، او راوېستل به يې دواړه قدمونه يو طرف ته.

[٩٦٦]()حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبُو بَدْرٍ، حَدَّثَنِي زُهَيْرٌ أَبُو خَيْثَمَةَ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الْحُرِّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ عَبَّاسٍ أَوْ عَيَّاشِ بْنِ سَهْلٍ السَّاعِدِيِّ، أَنَّهُ كَانَ فِي مَجْلِسٍ فِيهِ أَبُوهُ، فَذَكَرَ فِيهِ، قَالَ: "فَسَجَدَ فَانْتَصَبَ عَلَى كَفَّيْهِ وَرُكْبَتَيْهِ وَصُدُورِ قَدَمَيْهِ وَهُوَ جَالِسٌ، فَتَوَرَّكَ وَنَصَبَ قَدَمَهُ الْأُخْرَى، ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ، ثُمَّ كَبَّرَ فَقَامَ وَلَمْ يَتَوَرَّكْ، ثُمَّ عَادَ فَرَكَعَ الرَّكْعَةَ الْأُخْرَى فَكَبَّرَ كَذَلِكَ، ثُمَّ جَلَسَ بَعْدَ الرَّكْعَتَيْنِ حَتَّى إِذَا هُوَ أَرَادَ أَنْ يَنْهَضَ لِلْقِيَامِ قَامَ بِتَكْبِيرٍ، ثُمَّ رَكَعَ الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ فَلَمَّا سَلَّمَ سَلَّمَ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَذْكُرْ فِي حَدِيثِهِ مَا ذَكَرَ عَبْدُ الْحَمِيدِ فِي التَّوَرُّكِ وَالرَّفْعِ إِذَا قَامَ مِنْ ثِنْتَيْنِ.

د عباس او يا د عياش بن سهل الساعدي نه روايت دى، بېشكه هغه په يو مجلس كې وو چې د هغه پلار هم پكې وو، نو هغه ذكر كړه په هغې كې، هغه ويلي دي: نو هغه سجده وكړه په دواړو ورغوو، او زنګونانو، او په سپنو د قدمونو او هغه ناست وو، تورک يې وكړو، او ويې دروله خپله بله خپه. بيايي تكبير وكړو او سجده يې وكړه. بيايي تكبير وكړو ودريدلو او تورک يې ونه كړو، بيا واپس شو هغه بل ركعت يې وكړو، نو همدغسې تكبير يې وكړو بيا كېناستلو وروسته د دوه ركعاتو نه تردې چې كله به چې هغه اراده وكړه چې اوچت شي پاڅيدو ته پاڅيدلو به تكبير ته، بيايي وكړل دوه ركعاته نور، هركله به يې چې سلام ګرځولو نو سلام به يې ګرځولو خپل ښي طرف ته، او چپ طرف ته. ويلي دي ابوداود: هغه نه دې ذكر كړي په خپل حديث كې هغه چې ذكر كړي دي عبد الحميد په تورک كې او په رفع كې چې كله به پاڅيدلو د دويم ركعات نه.

[٩٦٧]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، أَخْبَرَنِي فُلَيْحٌ، أَخْبَرَنِي عَبَّاسُ بْنُ سَهْلٍ، قَالَ: اجْتَمَعَ أَبُو حُمَيْدٍ، وَأَبُو أُسَيْدٍ، وَسَهْلُ بْنُ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ، فَذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ، وَلَمْ يَذْكُرِ الرَّفْعَ إِذَا قَامَ مِنْ ثِنْتَيْنِ وَلَا الْجُلُوسَ، قَالَ: "حَتَّى فَرَغَ، ثُمَّ جَلَسَ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرَى، وَأَقْبَلَ بِصَدْرِ الْيُمْنَى عَلَى قِبْلَتِهِ".

خبر راكړى دى ماته عباس بن سهل، هغه ويلي دي: راجمع شو ابو حميد او ابو اسيد او سهل بن سعد او محمد بن مسلمة، ذكر يې كړو دا حديث. او ذكر يې نه كړه رفع د دوه ركعاتو نه، او نه جلوس، هغه ويلي دي: تردې چې فارغ شو بيا كېناستلو خوره يې كړه چپه خپه، او د ښي سپنه يې قبلې ته مخامخ كړه.

[1]: انظر حديث رقم: ٧٣٣، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٧) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم: ٧٣٣، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٢) (ضعيف)

[3]: انظر حديث رقم: ٧٣٣، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٢) (صحيح)

# بَابُ التَّشَهُّدِ

## باب دی په بیان د تشهد کښې

## ابحاث ثلاثه

په دې ځائې کښې دوه مسئلې دی، اول د تشهد حکم، دویم دا چه دا د کوم امام په نیز کوم تشهد راجح دې ځکه چه تشهد د ګڼړو صحابؤ د روایاتو نه په مختلف الفاظو سره وارد دې، دریمه خبره د تشهد د الفاظو تشریح.

### بحث اول : (د تشهد حکم)

د امام مالك په نیز تشهد اول او آخر دواړه سنت مؤکده دی، د امام شافعی او امام احمد علی القول الصحیح په نیز تشهد اول واجب او تشهد ثانی فرض دې، او د حنفیه په ظاهر الروایة کښې دواړه واجب دی او روایت ثانیه دا دې چه اول سنت او ثانی واجب دې.

### بحث ثانی : (راجح تشهد)

په روایات د حدیثو کښې درې تشهد زیات مشهور دی، ۱، تشهد ابن مسعود رضی الله عنه، ۲، تشهد ابن عباس رضی الله عنهما، ۳، تشهد عمر بن الخطاب رضی الله عنه، د ابن مسعود رضی الله عنه د تشهد الفاظ هغه دی کوم چه مونږ او تاسو لولو او د تشهد د ابن عباس رضی الله عنهما کوم چه په خپله وړاندې په دې کتاب کښې څو احادیثه روستو راروان دې د هغې الفاظ دا دی، التحیات المبارکات الصلوات الطیبات لله السلام علیك ایها النبی و رحمة الله و برکاته الی أخره، او تشهد عمر کوم چه په مؤطا امام مالك او مشکوٰة کښې هم دې د هغې لفظ دا دی، التحیات لله الزاکیات لله الطیبات الصلوات لله السلام علیك ایها النبی الی أخره، په دې درېواړو کښې حنفیه او حنابله اول تشهد او امام شافعی تشهد ثانی او امام مالك تشهد ثالث اختیار لره کړې دې،

### (د تشهد ابن مسعود رضی الله عنه وجوه د ترجیح)

د تشهد ابن مسعود ګڼړې وجې د ترجیح دی :

۱. دا تشهد د شلو نه په زیاتو طریق سره مروی دې.

۲. د ګڼړو صحابه نه مروی دې، ابوموسی اشعری، ابن عمر و عائشه رضی الله عنهم اجمعین، امام ترمذیی فرمائی، هو اصح حدیث رُوی فی التشهد، په دې کښې دوه واو راځی په خلاف دتشهد دابن عباس او عمر رضی الله عنهم نه چه په هغې کښې یو واو هم نشته دې،

### (د امام اعظم رحمه الله د ذهانت یوه عجیبه واقعه)

نو ځکه یوه قصه مشهوره ده کومه چه په حاشیه د ترمذی کښې د شرح السنة نه نقل کړې ده، یو اعرابی امام ابوحنیفه رحمه الله ته راغلو امام صاحب خپلو ملګرو سره ناست وو دې راغلو او سوال ئې اوکړو، بواو او بواوین، امام صاحب جواب ورکړو، بواوین، په دې باندې اعرابی اووئیل، بارك الله فیك کما بارك فی لا و لا، حاضرینو ته هیڅ پته او نۀ لګیده چه څۀ سوال اوشو او د دې څۀ جواب ورکړې شو، د شاګردانو په پوښتنې کولو باندې امام صاحب اوفرمائیل چه دې سړی زما نه د تشهد په باره کښې سوال کړې وو چه ستاسو په نیز

کوم راجح دي یو واو واله لکه چه د ابوموسی اشعری په تشهد کښې دي یا دوو واو واله لکه چه د ابن مسعود په تشهد کښې دي نو ما جواب ورکړو چه دوو واو واله نو هغهٔ ما ته دعاء اوکړه چه څنګه الله تعالی د زیتون په اونه کښې برکت فرمائیلي دي دغه شان دي ستا په علم کښې هم برکت اوفرمائی، قال الله تعالی، من شجرة مبارکة زیتونة لا شرقیة و لا غربیة،

۳. د دي تشهد خصوصیت دا دي چه د دي الفاظ په ټولو روایاتو کښې هم یو دی هیڅ اختلاف په کښې نشته دي.

۴. دا تشهد متفق علیه دي بخاری او مسلم دواړو دي لره اختیار کړي دي.

## بحث ثالث : (دتشهد دالفاظو تشریح)

التحیات لله، یعنی ټول انواع د تعظیم او تسلیم د الله تعالی شانه دپاره دی. ابوسلیمان خطابی مشهور شارح د حدیث دي فرمائی چه په هره زمانه کښې د هر بادشاه دپاره د سلام او آداب جدا جدا طریقي دی خو د الله پاک شایان شان په دي کښې یو هم نهٔ وو نو ځکه حضور ﷺ دي ټولو انواعو د سلام ته اشاره فرمائی[1] او دا ټول د الله پاک پورې خاص فرمائی یعنی ټول انواع دتعظیم او تسلیم صرف د الله پاک دپاره دی.

په اصل کښې د تشهد دا الفاظ کوم چه د مانځه په آخر کښې لوستلي کیږی د الله پاک د تعظیم په اظهار کښې ډیر جامع او مانع دی، زمونږ د عجمو په ژبه باندې چونکه دا ختلي دی مونږ دا فرافر یعنی په جلتئ سره لولو او د دې ژوروالی ته سوچ نهٔ کوو، هم داسې د خطبه ماثوره دا الفاظ، الحمد لله نحمده و نستعینه و نستغفره و نؤمن به و نتوکل علیه و نعوذ بالله من شرور انفسنا و من سیات اعمالنا.. الخ، ډیر لوئې جامع او مانع دی دې لره فصحاء او بلغاء د عرب ښهٔ پیژنی.

## د حضور ﷺ کمال فصاحت او بلاغت

د مسلم شریف په، ص، ۲۸۵ ، کښې په یو روایت کښې دی د یو اعرابی په وړاندې حضور ﷺ دا خطبه اولوستله هغه صحابی چه دا واوریده نو ډیر متاثره شو او حضور ﷺ ته ئې عرض اوکړو چه دا کلمات لږ بیا اووایه حضور ﷺ دویم ځلی دریم ځلی اولوستله نو هغه اعرابی اووئیل چه ما د لویو لویو کاهنانو او ساحرانو او شاعرانو کلام اوریدلي دي خو ما داسې کلمات تراوسه پورې د چا نه نهٔ دي اوریدلی کوم چه د سمندر ویخ ته رسیدلي وی، لقد بلغن نا عُرس البحر، د حضرت اقدس ګنګوهی په تقریر الحل الفهم کښې د دي جملي ډیره ښهٔ تشریح کړي ده.

[1] او دا اشاره کونکي حضور ﷺ دي د حضور ﷺ نه زیات فصیح او بلیغ نهٔ څوک تیر شوي دي او نهٔ شته او حضور ﷺ دا تعظیم او تکریم د الله پاک په دربار کښې د وړاندې کولو اسلوب اختیار فرمائیلي دي. په یوه بله موقعه باندې حضور ﷺ د الله پاک د حمد او ثناء په طور باندې فرمائیلي دی، اللهم لا احصي ثناء علیك انت کما اثنیت علی نفسك، ملا علی قاری لیکلي دی چه کما اثنیت علی نفسك نه غالبا دې آیت کریمه ته اشاره ده، فلله الحمد رب السموت و رب الارض رب العالمین، وله الکبریاء في السموات والارض وهو العزیز الحکیم،

بهر حال یو تفسیر خو دا دې چه د التحيات نه مراد ټول انواع د تعظیم او تسلیم دی او د الصلوات نه مراد صلوات خمسه یا فرائض او نوافل ټول مونځونه مراد دی او د الطيبات نه مراد کلمات طیبه دی، او یو قول دا دې چه د التحيات نه مراد عبادات قولیه او د الصلوات نه مراد عبادات فعلیه او د الطيبات نه مراد عبادات مالیه دی.

## د یو اشکال او جواب

السلام علیك باندی دا یو اشکال کیږی چه د مانځه په حالت کښې یو انسان سره خطاب کول ممنوع او مفسد د صلوة دی، یو جواب د دې دا ورکړې شوې دې چه دا د حضور ﷺ د خصائصو نه دی او د بعضو روایاتو نه دا هم معلومیږی لکه چه په بخاری شریف کښې دی چه صحابی فرمائی چه کله حضور ﷺ دنیا کښې تشریف فرما وو هغه وخت به مونږ هم دا لفظ د السلام علیك استعمالول او کله چه دوئ د دنیا نه تشریف یوړو نو مونږ د خطاب د صیغې په ځائې السلام علی النبی وئیل شروع کړل، خو په بذل کښې دا لیکلې دی چه دا د بعضې صحابؤ اجتهاد وو هغوی به په خپلې رائې سره داسې کول او د حضور ﷺ تعلیم کوم چه د امت دپاره وو هغه هم په صیغې د خطاب سره دې لهذا هم هغه قابل عمل دې، او دویمه خبره دا هم ده چه حضور ﷺ به په خپل ژوند کښې په کثرت سره سفرونو کښې وو کله به حضور ﷺ د صحابؤ د وړاندې وو او کله به حضور ﷺ نه غائب وو، هغه وخت ټولو حالاتو کښې که حالت د غیب وو یا د حضور کله چه صیغه د خطاب استعمالیدله نو د دوئ د وفات نه پس هم داسې کیدل پکار دی.

## یو بل اشکال

که څوك سړې اووائی چه د دینه خو دا معلومیږی چه حضور ﷺ حاضر او ناظر دې نو ځکه خو خطاب کولې کیږی، د دې جواب د دې مضمون نه مستفاد کیدې شی کوم چه وړاندې په لطیفه د التحيات کښې راروان دې هغه دا چه د دې الفاظو ابتداء خو د حضور ﷺ د معراج په موقع باندې کوم وخت چه حضور ﷺ دالله تعالی په حضور کښې سلام او نیاز وړاندې کولو د هغې په جواب کښې د الله پاك د طرف نه شوې وو مونږ خو د هغې الفاظو نقل کونکې یو لکه څنګه چه تاسو به اوریدلې وی چه د اعراب یو قسم اعراب حکائی وی، نو دا الفاظ هم دلته ابتدائی نهٔ دی بلکه حکائی دی، فالحمد لله اشکال رفع شو، او یو جواب د دې دا دې کوم چه د بعضې مشائخو د کلام نه مستفاد دې چه زمونږ مراد خو دا دې چه، یاالله زمونږ د عاجزانو د طرف نه د خپل نبی په بارګاه کښې السلام علیك اورسوه لکه څنګه چه زمونږ په عرف کښې په سفر باندې تلونکی واله ته وئیلې شی چه فلانکی بزرګ ته زمونږ د طرف نه السلام علیکم وړاندې کړه.

## لطیفه التحيات

په شروحو د حدیث کښې د التحيات په باره کښې لیکلې دی چه کله په واقعه د معراج کښې حضور ﷺ د الله تعالی په بارګاه کښې حاضر شو نو حضور ﷺ د الله پاك حمد او ثناء په دې مخصوص الفاظو سره عرض کړه، التحيات لله والصلوات و الطيبات، نو د الله تعالی د

طرف نه جواب ملاو شو السلام علیك ایها النبی و رحمة الله و برکاته (حضور ﷺ په هیڅ موقعه باندې هم خپل امت نۀ وو هیر کړې نو څکه) حضور ﷺ د الله پاك په بارګاه کښې عرض اوکړو السلام علینا و علی عباد الله الصالحین، مطلب دا وو چه اې الله ستا د طرف نه سلامتی صرف په ما باندې نۀ بلکه ما سره په نورو نیکو بندګانو باندې هم پکار ده، دا ټول منظر جبرئیل امین کتلو نو په دې باندې هغوی سمدستی اوفرمائیل، اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمدا عبده و رسوله.

## یو اشکال او جواب

د حضور ﷺ حمد او ثناء د الله په دربار کښې په لیلة المعراج کښې په یو مخصوص مقام باندی دسدرة المنتهی نه وړاندې شوې وه نو په دې باندې حضرت شیخ دا اشکال لیکلې دې چه جبرئیل امین خو په سدرة المنتهی ته رسیدو باندې پاتې شوې وو نو بیا په دغه وخت کښې په حمد او ثناء کښې کوم ځائې وو چه شهادتین ئې لوستلې؟ حضرت دا اشکال په خپل مکتوب ګرامی کښې کړې دې، د بنده په ذهن کښې د دې جواب دا دې چه کیدې شی په واپسئ کښې چه کله حضور ﷺ حضرت جبرئیل ته خپله قصه اوروله وی نو بیا به هغوی داسې وئیلي وی چه اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده و رسوله، والله تعالی اعلم.

[۹۶۸][1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَعْمَشِ، حَدَّثَنِي شَقِيقُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: كُنَّا إِذَا جَلَسْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ، قُلْنَا: السَّلَامُ عَلَى اللَّهِ قَبْلَ عِبَادِهِ السَّلَامُ عَلَى فُلَانٍ وَفُلَانٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقُولُوا السَّلَامُ عَلَى اللَّهِ، فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ السَّلَامُ، وَلَكِنْ إِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ: التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ، فَإِنَّكُمْ إِذَا قُلْتُمْ ذَلِكَ أَصَابَ كُلَّ عَبْدٍ صَالِحٍ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، أَوْ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، ثُمَّ لِيَتَخَيَّرْ أَحَدُكُمْ مِنَ الدُّعَاءِ أَعْجَبَهُ إِلَيْهِ فَيَدْعُوَ بِهِ".

عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وئیلي دي: وو مونږ چې کله به د رسول الله ﷺ سره په مانځه کې کښناستلو مونږ به ویل: سلام دې وي په الله باندې مخکې د بندګانو د هغه نه، سلام دې وي په فلان او فلان، وویل رسول الله ﷺ: تاسو مه وایي چې سلام دې وي په الله بیشکه الله پاك پخپله سلام دی، لکن کله چې کینې یو کس ستاسو نه نو ودې وایي: ټول قولی عبادتونه (ستائینې) الله لره دي، او بدنې عبادتونه او مالي عبادتونه، سلام دې وي په تا باندې ای نبي او رحمت د الله دې وي او برکتونه د الله دې وي په هغه، سلام دې وي په مونږ او په بندګانو د الله چې نیکان دي، کله چې تاسو داسې وایي نو دا رسیږي هر یو نیک بنده ته په اسمان او ځمکه کې ـ او یا په مابین د اسمان او ځمکه کې ـ زه ګواهي کوم چې نشته لائق دی عبادت مګر یو الله، او زه ګواهي کوم چې بېشکه محمد د الله بنده او رسول دی،

[1]: صحيح البخاري/الأذان ١٤٨ (٨٣١)، ١٥٠ (٨٣٥)، والعمل في الصلاة ٤ (١٢٠٢)، والاستئذان ٣ (٦٢٣٠)، ٢٨ (٦٢٦٥)، والدعوات ١٧ (٦٣٢٨) والتوحيد ٥ (٧٣٨١)، صحيح مسلم/الصلاة ١٦ (٤٠٢)، سنن النسائي/التطبيق ١٠٠ (١١٦٣، ١١٦١)، والسهو ٤١ (١٢٧٨)، ٤٣ (١٢٨٠)، ٥٦ (١٢٩٩)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٤ (٨٩٩)، (تحفة الأشراف: ٩٢٤٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٠٣ (٢٨٩)، والنكاح ١٧ (١١٠٥)، مسند احمد (١/٣٧٦، ٣٨٢، ٤٠٨، ٤١٣، ٤١٤، ٤٢٢، ٤٢٣، ٤٢٨، ٤٣١، ٤٣٧، ٤٣٩، ٤٤٠، ٤٥٠، ٤٥٩، ٤٦٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٨٤ (١٣٧٩) (صحيح)

بیا دې غوره کړي یو کس ستاسو نه هغه دعاء چې هغه ته ډېره خوښه وي نو هغه دې وکړي.
**قوله:** حدثنا مسدد.. الخ، قوله، لا تقولوا السلام على الله فان الله هو السلام : امام نووی فرمائي چه مطلب دا دې چه سلام د الله تعالی په نومونو کښې خپله یو نوم دې بیا د السلام على الله څۀ مطلب دې، او بعضې نورو شارحینو دا لیکلي دی چه سلام چه کوم دې هغه په اصل کښې د سلامتئ دعا ده چه دهغې محتاج بندګان دی الله ته د دې ضرورت نشته دې هغه خو په خپله سلامتیا ورکونکې دې.
قوله، ثم ليتخير احدكم من الدعاء اعجبه اليه : یعني د تشهد نه پس چه کوم سړی ته کومه دعاء خوښه وی او د دۀ د حال مناسب وی هغه دې د الله نه اوغواړی.

## د تشهد په اخیره کښې دعاء

په دې حدیث کښې دا مسئله اختلافی ده چه په مانځه کښې کوم کوم قسم دعاء غوختلی شی په دې باندې دلته مفصل کلام په باب دعاء الاستفتاح کښې قال مالك لاباس بالدعاء في الصلوة في اوله و اوسطه. الخ، په ذیل کښې تیر شوې دې د خلاصې په طور باندې دومره واورئ چه په دې کښې درې مذهبه دی عند الجمهور ادعیه ماثوره یعنی هغه دعاګانې کومې چه په قرآن او حدیث کښې راغلې دی لوستلې شی، او د حنفیه په کتابونو کښې لیکلې دی چه هغه دعاګانې چه د قرآن د الفاظو سره مشابه وی د کومو سوال چه د غیر الله نه نۀ شی کیدې هغه لوستلې شی، او بعضې علماؤ لکه ابراهیم نخعی فرمائی، لا يدعى الا بما يوجد في القرآن.

[٩٦٩] (١) حَدَّثَنَا تَمِيمُ بْنُ الْمُنْتَصِرِ، أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ يَعْنِي ابْنَ يُوسُفَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُنَّا لَا نَدْرِي مَا نَقُولُ إِذَا جَلَسْنَا فِي الصَّلَاةِ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ عُلِّمَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ. قَالَ شَرِيكٌ: وَحَدَّثَنَا جَامِعٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي شَدَّادٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، بِمِثْلِهِ، قَالَ: "وَكَانَ يُعَلِّمُنَا كَلِمَاتٍ، وَلَمْ يَكُنْ يُعَلِّمُنَاهُنَّ كَمَا يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ: اللَّهُمَّ أَلِّفْ بَيْنَ قُلُوبِنَا، وَأَصْلِحْ ذَاتَ بَيْنِنَا، وَاهْدِنَا سُبُلَ السَّلَامِ، وَنَجِّنَا مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ، وَجَنِّبْنَا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ، وَبَارِكْ لَنَا فِي أَسْمَاعِنَا وَأَبْصَارِنَا وَقُلُوبِنَا وَأَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ، وَاجْعَلْنَا شَاكِرِينَ لِنِعْمَتِكَ مُثْنِينَ بِهَا قَابِلِيهَا وَأَتِمَّهَا عَلَيْنَا".

د عبد الله نه روایت دی هغه ویلې دې: وو مونږ چې نه پوهېدو چې څه شی ووایو په مانځه کې، او وو رسول الله ﷺ چې ښودلی شوی وو ورته، ذکر یې کړه د هغه پشان. ویلې دې شریک: او مونږ ته حدیث بیان کړی دی جامع یعنې ابن ابي شداد، د وائل نه، او هغه د عبد الله نه، په مثل د هغې، هغه ویلې دې: او وو چې راښودلې یې مونږ ته کلمې او هغه نه وو چې مونږ ته یې ښودلې هغې لره، څنګه یې چې مونږ ته تشهد راښودلو. ای الله ته مینه واچوې زمونږ په زړونو کې، او روغه راولې زمونږ په مینځ کې، او راوښیٔ مونږ ته لارې د سلامتیا، او نجات راکړې مونږ ته د تیارو نه رڼا ته، او توبه قبوله کړې زمونږ، بېشکه ته توبه قبلونکی یې او رحیم یې، وګرځوې مونږ شکریه کونکي ستا د نعمت، ثنا ویونکي د

(١): تفرد به أبو داود (ضعيف)

هغې، د هغې قبلونکي او پوره يي کړي په مونځ.

**تشريح: قوله**: و کان يعلمنا کلمات و لم يکن يعلمناهن کما يعلمنا التهشد : يعنی حضور ﷺ به مونځ ته يوه بله دعا خودله خو هغه به ئې دومره اهتمام سره نۀ خودله څومره اهتمام سره به ئې چه تشهد خودلو او يا مطلب دا دې چه دا دويمه دعاء به حضور ﷺ د تشهد نه هم زيات په اهتمام سره خودله هغه دعاء وړاندې په کتاب کښې مذکور ده، زۀ په سبق کښې طالبانو ته وايم چه دا ډيره ښۀ او ډيره جامع مانع دعا ده دا ضرور يادول او لوستل پکار دی د مانځه په اخيره کښې د سلام نه وړاندې او د دينه علاوه نورې دعاګانې هم لوستلې شی بلکه زۀ خو دا هم وايم چه د حديثو په کتابونو کښې په سونو بلکه په زرګونو دعاګانې راغلې دی هر سړی لره پکار دی چه دا دعاګانې دې خپل وړاندې کيږدی او د کتابونو نه د خپل خپل حال مناسب منتخب کول او په يو کاپئ کښې ليکل پکار دی د هميشه دپاره د وظيفې په توګه باندې د لوستلو دپاره.

[٩٧٠](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الْحُرِّ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُخَيْمِرَةَ، قَالَ: أَخَذَ عَلْقَمَةُ بِيَدِي فَحَدَّثَنِي، أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ أَخَذَ بِيَدِهِ، وَأَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ بِيَدِ عَبْدِ اللهِ "فَعَلَّمَهُ التَّشَهُّدَ فِي الصَّلَاةِ، فَذَكَرَ مِثْلَ دُعَاءِ حَدِيثِ الْأَعْمَشِ، إِذَا قُلْتَ هَذَا أَوْ قَضَيْتَ هَذَا فَقَدْ قَضَيْتَ صَلَاتَكَ، إِنْ شِئْتَ أَنْ تَقُومَ فَقُمْ، وَإِنْ شِئْتَ أَنْ تَقْعُدَ فَاقْعُدْ".

د قاسم بن مخيمرة نه روايت دی هغه ويلي دي، علقمه زما لاس ونيولو، ماته يي حديث بيان کړو چې عبد الله بن مسعود زما لاس ونيولو، او رسول الله ﷺ ونيولو لاس د عبد الله، ويي ښودلو هغه ته تشهد په مانځه کې، نو ذکر يي کړه پشان د دعاء د حديث د اعمش: کله چې تا وويله دا او يا دې پوره کړه دا نو تا خپل مونځ پوره کړو، که چېرې ستا خوښه وي چې پاځېږې نو پاځېږه، او که چېرې دې خوښه وي چې کېنې نو کېنه.

**تشريح: قوله**: فذکر مثل دعاء حديث الاعمش : د اعمش حديث د دې باب رومبي حديث دې خو په دې کښې خو کومه دعا مذکور نۀ ده څکه صاحب منهل ليکلې دی چه دلته لفظ د دعا نۀ دې پکار بلکه داسې کيدل پکار دی، فذکر مثل حديث الاعمش، دويمه خبره دا ده چه د ذکر د ضمير مرجع هم يو شارح نۀ دی ليکلې لهذا ضمير به مطلق راوی طرف ته راجع وی.

**قوله، اذ قلت هذا او قضيت هذا فقد قضيت صلوتك** : امام خطابی فرمائی چه د دې جملې په باره کښې د رواتو اختلاف دې بعضې دې لره مرفوعا روايت کوی او بعضې موقوفا او هغه وړاندې ليکی چه که د دې رفع ثابت شی نو بيا به دا دليل وی په دې خبره باندې چه دتشهد نه پس صلوة علی النبی واجب نۀ دې.

## په مانځه کښې د درود حکم

زۀ وايم چه مسئله مختلف فيه ده د حنفيه او مالکيه خو دا مذهب دې، البته د امام شافعی او احمد په نيز باندې فرض دې يعنی قعده اخيره کښې، دلته په بذل کښې يوه مسئله بله هم ليکلې ده هغه دا چه د دينه معلوميږی چه قعده اخيره په مقدار د تشهد باندې فرض ده،

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٤٧٤)، وانظر رقم (٩٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٢/١) (شاذ)

زۀ وايم چه د جمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه مذهب هم دا دې خو د مالکيه په دې کښې اختلاف دې هغوی د فرضيت قائل نۀ دی، کما فی الانوار الساطعه، دغه شان د دې حديث نه دا هم معلومه شوه ه تسليم فی الصلوة فرض نۀ دې لکه څنګه چه حنفيه وائی خلافا للجمهور، د دې بحث د باب الوضوء په شروع کښې په وتحليلها التسليم کښې تير شوې دې.

[٩٧١](١) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، سَمِعْتُ مُجَاهِدًا يُحَدِّثُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي التَّشَهُّدِ: "التَّحِيَّاتُ لِلَّهِ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ". قَالَ: قَالَ ابْنُ عُمَرَ: زِدْتُ فِيهَا" وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ". قَالَ ابْنُ عُمَرَ: زِدْتُ فِيهَا" وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ".

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دی، هغه روايت کوي د رسول الله ﷺ نه په باره د تشهد کې: ټول قولی عبادتونه (ستائيني) د الله لپاره دي چې بدني او مالي عبادتونه دي، سلامتيا دې وي په تا باندې ای نبي رحمت او برکت د الله دې وي. هغه وايي: ويلي دي ابن عمر: تا زيادت کړو په هغې کې: (و برکاته) سلامتيا دې وي په مونږ او په نيکانو بندګانو د الله، زه ګواهي کوم چې نشته مستحق د عبادت مګر يو الله دی. وويل ابن عمر: ما زيات کړو په هغې کې: (وحدَه لا شريکَ له. او زه ګواهي کوم چې بېشکه محمد د الله بنده او رسول دی.

[٩٧٢](٢) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يُونُسَ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ حِطَّانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الرَّقَاشِيِّ، قَالَ: صَلَّى بِنَا أَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ، فَلَمَّا جَلَسَ فِي آخِرِ صَلَاتِهِ، قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: أُقِرَّتِ الصَّلَاةُ بِالْبِرِّ وَالزَّكَاةِ، فَلَمَّا انْفَتَلَ أَبُو مُوسَى أَقْبَلَ عَلَى الْقَوْمِ، فَقَالَ: أَيُّكُمُ الْقَائِلُ كَلِمَةَ كَذَا وَكَذَا، قَالَ: فَأَرَمَّ الْقَوْمُ، فَقَالَ: أَيُّكُمُ الْقَائِلُ كَلِمَةَ كَذَا وَكَذَا، فَأَرَمَّ الْقَوْمُ، قَالَ: فَلَعَلَّكَ يَا حِطَّانُ أَنْتَ قُلْتَهَا، قَالَ: مَا قُلْتُهَا، وَلَقَدْ رَهِبْتُ أَنْ تَبْكَعَنِي بِهَا، قَالَ: فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: أَنَا قُلْتُهَا، وَمَا أَرَدْتُ بِهَا إِلَّا الْخَيْرَ، فَقَالَ أَبُو مُوسَى: أَمَا تَعْلَمُونَ كَيْفَ تَقُولُونَ فِي صَلَاتِكُمْ؟ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَنَا، فَعَلَّمَنَا، وَبَيَّنَ لَنَا سُنَّتَنَا، وَعَلَّمَنَا صَلَاتَنَا، فَقَالَ: "إِذَا صَلَّيْتُمْ فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ، ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَحَدُكُمْ، فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا، وَإِذَا قَرَأَ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ سورة الفاتحة آية ٧، فَقُولُوا: آمِينَ، يُجِبْكُمُ اللَّهُ، وَإِذَا كَبَّرَ وَرَكَعَ فَكَبِّرُوا وَارْكَعُوا، فَإِنَّ الْإِمَامَ يَرْكَعُ قَبْلَكُمْ وَيَرْفَعُ قَبْلَكُمْ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَتِلْكَ بِتِلْكَ، وَإِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، فَقُولُوا: اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، يَسْمَعُ اللَّهُ لَكُمْ، فَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَالَ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، وَإِذَا كَبَّرَ وَسَجَدَ فَكَبِّرُوا وَاسْجُدُوا، فَإِنَّ الْإِمَامَ يَسْجُدُ قَبْلَكُمْ وَيَرْفَعُ قَبْلَكُمْ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَتِلْكَ بِتِلْكَ. فَإِذَا كَانَ عِنْدَ الْقَعْدَةِ فَلْيَكُنْ مِنْ أَوَّلِ قَوْلِ أَحَدِكُمْ أَنْ يَقُولَ التَّحِيَّاتُ الطَّيِّبَاتُ الصَّلَوَاتُ لِلَّهِ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ"، لَمْ يَقُلْ أَحْمَدُ: وَبَرَكَاتُهُ، وَلَا قَالَ: وَأَشْهَدُ، قَالَ: وَأَنَّ مُحَمَّدًا.

---

(١): تفرد به أبو داود، وراجع: موطا امام مالك/الصلاة ١٣(٥٣)، (تحفة الأشراف: ٧٣٩٦) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الصلاة ١٦ (٤٠٤)، سنن النسائي/الإمامة ٣٨ (٨٣١)، والتطبيق ٢٣ (١٠٦٥)، ١٠١ (١١٧٣)، والسهو ٤٤ (١٢٨١)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ٢٤ (٩٠١)، (تحفة الأشراف: ٨٩٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٠١، ٤٠٥، ٤٠٩)، سنن الدارمي/الصلاة ٧١ (١٣٥١) (صحيح)

د حطان بن عبد الله الرقاشي نه روايت دی هغه ويلي دي: مونږ ته ابو موسی اشعري ومونځ وکړو، کله چې کېناستلو په اخير د مانځه کې، وويل يو سړي د قوم نه، ثابت شوی دی مونځ په نيکۍ او پاکۍ سره، هرکله چې وګرځيدلو ابو موسی مخامخ شو قوم ته، ويې ويل: تاسو کې کوم دا فلانۍ فلانۍ کلمه وويله؟ هغه وايي: چې قوم چوپ شو، هغه وويل: په تاسو کې کوم داسې کلمه وويله؟ قوم چوپ شو، هغه وويل: شايد چې تا ويلي وي حطانه! هغه وويل: ما نده ويله، بېشکه زه ووېريدم چې ته به ما چوپ کړې په هغې سره، هغه وايي: چې يو سړي د قوم نه وويل: ما وويله زما اراده نه وه مګر د خير، نو وويل ابو موسی: آيا تاسو ته پته نشته چې مانځه کې به څه وايي، بېشکه رسول الله ﷺ مونږ ته خطبه راکړه مونږ ته يې تعليم راکړو او مونږ ته يې زمونږ سنت راوښودل او مونږ ته يې زمونږ مونځ راوښودلو، هغه وايي: کله چې تاسو مونځ کوئ نو صفونه نيغ کړئ، تاسو ته دې د تاسو نه يو کس امامت وکړي، کله چې هغه تکبير وايي نو تاسو هم تکبير وايي، او کله چې هغه غير المغضوب عليهم و لا الضالين وايي نو تاسو امين وايئ، تاسو سره به الله محبت وکړي، او کله چې تکبير ووايي او رکوع وکړي، نو تاسو هم تکبير وايي او رکوع کوئ، بېشکه امام ستاسو نه مخکې رکوع کوي او سر اوچته وي مخکې ستاسونه،رسول الله ﷺ وويل: دا دهغې په بدل کې شه،اوکله چې هغه سمع الله لمن حمده ووايي نو تاسو وايئ: ای الله ربه زمونږ تالره حمد دی،الله اوري ستاسو، ځکه الله پاک ويلي دي په ژبه د نبي خپل سره: اوري الله حمد د هغه چا چې د هغه حمد وايي، او کله چې هغه تکبير ووايي او سجده وکړي نو تاسو هم تکبير وايي او سجده کوئ، بېشکه امام سجده کوي مخکې ستاسو نه او سر اوچتوي مخکې ستاسو نه، وويل رسول الله ﷺ دا د هغې په مقابل کې شو، کله چې وخت د قعدې راشي، نو تاسو نه د يو کس اولنی قول دې دا شي: چې ټول عبادتونه خاص الله لره دي، مالي او بدني عبادتونه خاص الله لره دي، سلام دې وي په تا باندې ای نبي رحمتونه د الله دې وي او برکتونه د الله دې وي، سلامتيا دې وي په مونږ او د الله په نيکانو بندګانو، زه ګواهي کوم چې نشته مستحق د عبادت مګر يو الله دی، او زه ګواهي کوم چې محمد ﷺ د الله بنده او رسول دی.احمد ويلي دي «و برکاته» اونه يې «واشهد» ويلي دي، هغه ويلي دي:«و آن محمداً».

## د حديث مضمون

حطان بن عبدالله وائي چه د يو ځل خبره ده چه زمونږ استاذ ابوموسی اشعری مونږ ته مونځ راکړو کله چه تشهد کښې کيناستلو نو د روستو نه يو مقتدی د مونځ په مدح او تعريف کښې دا جمله اووئيله کومه چه پورته مذکور ده، يعنی مونځ سره د تعلق او مينې د وجه نه بيخاله او او بې ارادې د هغهٔ د ژبې نه دا الفاظ اووتل د کومو مطلب چه دا دې چه مونځ نيکئ او د ګناهونو نه پاکئ سره براقرار ساتلی شوې دې، يعنی مونځ ډير ښهٔ عمل دې او د دې سره ګناه هم معاف کيږی کله چه ابو موسیٰ اشعری د مانځه نه فارغ شو نو خلقو طرف ته متوجه شو او پوښتنه ئې اوکړه چه دا الفاظ چا وئيلې وو؟ خلق چپ وو دويم ځلې ئې بيا

دا سوال اوکړو بیا هم هغوی چپ وو نو ابوموسی اشعری رضی الله عنه خپل مخصوص شاګرد حطان ته اووئیل چه ای حطان هم تا به دا وئیلي وی (ځکه چه چا سره د استاذ زیات خصوصیت او بې تکلفی وی هم هغه رتی) نو په دې باندې حطان اووئیل چه جی ما خو نهٔ وو وئیلې خو ما سره دا ویره وه چه تاسو به هم ما رتئ، بیا وړاندې په حدیث کښې دا دی چه کوم څه سړی دا الفاظ وئیلې وو ابوموسی هغه پوهه کړو چه په مانځه کښې دننه د خپل ځان نه څهٔ نهٔ دې وئیل پکار بلکه چه کوم مونږ ته حضور صلی الله علیه وسلم خودلي دی هم هغه لوستل پکار دی، او بیا د مونځ مفصل طریقه کومه چه حضور صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته تعلیم فرمائیلي وه هغه ئې بیان کړه.

[٩٧٣](١)حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ النَّضْرِ،حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي غَلَّابٍ يُحَدِّثُهُ، عَنْ حِطَّانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الرَّقَاشِيِّ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، زَادَ "فَإِذَا قَرَأَ فَأَنْصِتُوا، وَقَالَ فِي التَّشَهُّدِ بَعْدَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ زَادَ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَوْلُهُ فَأَنْصِتُوا لَيْسَ بِمَحْفُوظٍ لَمْ يَجِئْ بِهِ إِلَّا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ.

ابو قتادة ته ابو غلاب بیان کړی دی، هغه ته حطان بن عبد الله الرقاشي بیان کړی دی، د دې حدیث. هغه زیات کړي دي: کله چې هغه قراءت کوي نو چوپ شئ، او هغه وویل په تشهد کې وروسته د اشهد ان لا اله الا الله نه، هغه زیات کړو: (وحده لاشریک له) ویلي دي ابوداود: او قول د هغه (فأنصتُوا) دا محفوظ نه دی، په دې سره راتګ نه دی کړی مګر سلیمان التیمي کړی په دې حدیث کې.

۵، حدثنا عاصم بن النظر.. الخ، قوله، زاد فاذا قراءنا فانصتوا : په تیر شوې حدیث کښې دقتاده نه روایت کونکې هشام وو او دلته د معتمر پلار سلیمان تیمی دې د زاد ضمیر هغهٔ طرف ته راجع دې،

قوله، انصتوا لیس بمحفوظ و لم یجئ بن الا سلیمان التیمی.

(و اذا قرأ فانصتوا) په دې باندې تفصیلی کلام دفاتحه خلف الامام په بحث کښې تیرشوې دې

[٩٧٤](٢)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَطَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا التَّشَهُّدَ كَمَا يُعَلِّمُنَا الْقُرْآنَ، وَكَانَ يَقُولُ: "التَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلَّهِ، السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللَّهِ الصَّالِحِينَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ".

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی بېشکه هغه ویلي دي: وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې رازده کوونکی به یي مونږ ته تشهد لکه څرنګه چې به یي مونږ ته قرآن رازده کولو، او هغه به ویل: پېشکشیاني د برکت والا، عبادتونه بدني مالي خاص الله لره دې، سلام دې وي په تا باندې ای نبي او رحمت د الله دې وي او برکتونه دې وي، سلام دې وي په مونږ او په نیکانو بندګانو د الله، زه ګواهي کوم چې نشته لائق د عبادت مګر یو الله دی، او زه ګواهي کوم چې محمد د الله رسول دی.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٩٨٧) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الصلاة ١٦ (٤٠٣)، سنن الترمذي/الصلاة ١٠٤ (٢٩٠)، سنن النسائي/التطبيق ١٠٣ (١١٧٥)، والسهو ٤٢ (١٢٧٩)، سنن ابن ماجه/الإقامة ٢٤ (٩٠٠)، (تحفة الأشراف: ٥٧٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٢/١) (صحيح)

## تشهد ابن عباس رضي الله عنهما

قوله، عن ابن عباس انه قال كان رسول الله ﷺ يعلمنا القرآن.. الخ : دا هم هغه دتشهد دابن عباس دې کوم چه شافعيه اختيار کړې دې، مونږ وايو چه په دې سره ابن عباس متفرد دې، بله داچه د دې په الفاظو کښې ټول رواة متفق هم دی، حضرات مالکيه وائي چه زمونږ تشهد راجح دې ځکه چه حضرت عمر رضي الله عنه دې لره په منبر باندې تعليم فرمائيلې وو، حضرت شيخ رحمه الله په اوجز کښې ليکی چه د ابن مسعود د تشهد واله الفاظو لره حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په منبر باندې تعليم فرمائيلې وو، کما ورد فی رواية الطحاوی.

[٩٧٥](1)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ بْنِ سَمُرَةَ، عَنْ أَبِيهِ سُلَيْمَانَ بْنِ سَمُرَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَمَّا بَعْدُ "أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ فِي وَسَطِ الصَّلَاةِ أَوْ حِينَ انْقِضَائِهَا فَابْدَءُوا قَبْلَ التَّسْلِيمِ، فَقُولُوا: التَّحِيَّاتُ الطَّيِّبَاتُ وَالصَّلَوَاتُ وَالْمُلْكُ لِلَّهِ، ثُمَّ سَلِّمُوا عَلَى الْيَمِينِ، ثُمَّ سَلِّمُوا عَلَى قَارِئِكُمْ، وَعَلَى أَنْفُسِكُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى كُوفِيُّ الْأَصْلِ كَانَ بِدِمَشْقَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: دَلَّتْ هَذِهِ الصَّحِيفَةُ عَلَى أَنَّ الْحَسَنَ سَمِعَ مِنْ سَمُرَةَ.

د سمرة بن جندب نه روايت دی: اما بعد: مونږ ته امر کړی دی رسول الله ﷺ کله چې به د مانځه په مينځ کې وو او يا په وخت د ختميدو د مانځه کې، چې شروع کړئ مخکې د تسليم نه او وايئ: پېشکشياني مالي او بدني، او بادشاهي الله لره ده، بيا سلام واروئ ښي طرف ته، بيا سلام وکړئ په قاري باندې او په خپلو ځانونو باندې. ويلې دي ابوداود: سليمان بن موسى اصل کوفي دی او په دمشق کې وو. ويلې دي ابوداود: دې صحيفې دلالت وکړو په دې چې حسن د سمرة نه اوريدلې دي.

قوله، عن سمرة بن جندب اما بعد : دا مکتوب د سمره يا دا اووايه چه دصحيفه سمره دويم حديث دې او رومبې حديث په ابواب المساجد کښې باب اتخاذ المساجد فی الدور کښې تير شوې دې اوس څلور نور پاتې دی،

## د سماع الحسن عن سمرة بحث

قوله، قال ابوداؤد و دلت هذه الصحيفة ان الحسن سمع من سمرة : حضرت حسن بصری مشهور تابعی دی د تابعينو په طبقه وسطی کښې د هغوی شمير کيږی په دې کښې خو شك نشته دې چه د بعضې صحابه نه د دوئ سماع ثابته ده او د بعضو نه د دوئ سماع مختلف فيه ده، امام احمد او ابوحاتم رازی کوم چه د فن رجال لوئې امامان دی هغوی فرمائی چه د حسن سماع د ابن عمر، انس، عبدالله بن مغفل، عمرو بن تغلب د دې څلورو صحابؤ نه ثابته ده او د دينه علاوه نور داسې دی د کومو په سماع کښې چه ډير اختلاف دې بعضې تسليموی او بعضې نه، هم داسې په کتابونو د صحاح کښې ډير روايات داسې دی کوم چه حسن د سمره بن جندب نه روايت کوی اوس نزدې په باب السكتة عند الافتتاح کښې د حسن روايت د

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦١٧) (ضعيف)

سمره نه تير شوې دې خو په دې کښې د محدثينو اختلاف دې چه د سمره نه د حسن سماع ثابته ده يا نۀ، علامه زيلعي په نصب الرايه کښې په دې باندې تفصيلي کلام کړې دې په دې کښې هغوی د علماؤ درې اقوال ذکر کړې دی، ۱، د يو جماعت رائې ده په کومو کښې چه امام دار قطني او امام نسائي هم دې چه د حسن د سمره نه صرف حديث العقيقه اوريدلې دې چنانچه د بخاري شريف په کتاب العقيقه کښې دی، ابن سيرين يو سړی ته اووئيل چه د حسن بصري نه لاړ شه تپوس اوکړه چه هغوی حديث العقيقه د چا نه اوريدلې دې، هغوی جواب ورکړو، سمعته من سمرة،[1] ۲، يو جماعت وائي چه د حسن سماع د سمره نه مطلقا ثابت ده يعنی د حديث العقيقه قيد نشته دې بلکه بعضې نور حديثونه ئې هم اوريدلې دی کوم چه دوئ د هغۀ نه روايت کوی د دې قائل دی، علي بن مديني، امام بخاری، ترمذی او حاکم صاحب مستدرك، امام ترمذی د حسن عن سمره ډير زيات روايتونو باندې د صحت حکم لګولې دې، ۳، د ابن حبان او يحی بن معين رائې دا ده چه، لم يثبت مطلقا.
د دې تمهيد نه پس په دې پوهه شه چه مصنف چه کوم دا فرمائی چه صحيفه سمره په دې خبره دلالت کوی چه د حسن سماع د سمره نه ثابته ده.

## د مصنف په کلام باندې يو اشکال

حافظ ابن حجر په تهذيب کښې فرمائی چه دا خبره زمونږ په پوهه کښې نۀ راځی چه څنګه دلالت کوی؟ بظاهر د حافظ اشکال صحيح دې ځکه چه دا خبره وړاندې تيره شوې ده چه د صحيفه سمره ټول روايتونه په يو سند سره مروی دی او هغه هم هغه سند دې کوم چه پورته ذکر شوې دې او په دې کښې حسن نۀ دې ذکر، باقی، د حافظ اشکال به هغه وخت زيات قوی وو که مصنف دا فرمائيلې وې چه دا حديث په دې خبره باندې دلالت کوی حالانکه داسې ئې نۀ دی وئيلې، اوس کيدې شی چه د دې صحيفې نه ضمنا د دې ديو عبارت يا روايت نه دا ثابته وی مګر دا که حافظ د دې پوره صحيفې مطالعه کړې وی نو بيا بله خبره ده، او صاحب منهل دا توجيه کړې ده چه د دې صحيفې په سندونو کښې سليمان روايت کوی د سمره نه او سليمان او حسن بصري دواړه د يوې طبقې دی لهذا کله چه په دوئ کښې د يو سماع ثابته شوه نو ظاهره ده چه د بل سماع به هم ثابته وی د اتحاد د طبقې د وجه نه.
حضرت شيخ د بذل په حاشيه کښې ليکی چه مولی عبدالجبار اهل حديث د چا چه بنده سره خط او کتابت دې هغوی ما ته اوليکل چه شيخ حسين عرب يمني بهوپالی په خپل کتاب قرة العينين کښې ليکلې دی چه هغوی د سنن په بعضو قلمی نسخو کښې يو سند ليدلې دې په کوم کښې چه داسې دی، حدثنا الحسن قال سمعت سمرة.. الخ، پس که دا نسخه ثابته او صحيح وی نو بيا د مصنف دا خبره هم صحيح ده. والله تعالی اعلم بالصواب.

---

[1] ، وحکاه الترمذي ايضاً في جامعه ص ۲۵.

# بَابُ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم بَعْدَ التَّشَهُّدِ

## باب دی په بیان د درود کې په نبي صلی الله علیه وسلم وروسته د تشهد نه

## مباحث اربعه متعلقه بدرود شریف

دې ځائې کښې يو څو بحثونه دی. ١، په مانځه کښې د درود شريف لوستلو حکم او په دې کښې مذاهب ائمه، ٢، د صلوة معنی او د دې تفسير، ٣، د آل محمد مصداق، ۴، په صلوة ابراهیمی کښې په تشبیه باندې کلام.

### بحث اول: (په مونځ کښې د درود شريف وئيلو حکم)

د شافعيه او حنابله په نيز د تشهد اخير نه پس درود شريف لوستل فرض دې د شافعيه په نيز صرف اللهم صل علی محمد، او د حنابله او د بعضې شافعيه په نيز دلته دصلوة علی آل حکم هم دا دې لهذا د دوئ په نيز اللهم صل علی محمد و علی آل محمد لوستل فرض دی.[1] دا فرضيت د درود د دوئ په نيز باندې قعده اخيره کښې دې او قعده اولی کښې د ائمه ثلاثه په نيز درود نشته دې او د امام شافعی قول قديم هم دا دې البته د دوئ په قول جديد کښې قعده اولی کښې هم صلوة علی النبی مستحب دې لکه څنګه چه علامه سخاوی په القول البديع کښې ليکلې دی د شافعيه استدلال په فرضيت د درود کښې آيت کريمه، يا ايها الذين آمنوا صلوا عليه و سلموا تسليما، سره دې ځکه چه امر مطلق دوجوب دپاره وی، حنفيه وائی چه امر د تکرار تقاضا نۀ کوی لهذا درود صرف يو ځل لوستل فرض دی لکه چه حج په ټول عمر کښې صرف يو ځل فرض دې او آيت کريمه کښې د حالت صلوة تعين نشته ، قاله الکرخی، او د امام طحاوی رائې دا ده چه کله د حضور ﷺ نوم مبارک واوری نو درود شريف لوستل واجب دی.

[٩٧٦] ([2]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، قَالَ: قُلْنَا: أَوْ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَمَرْتَنَا أَنْ نُصَلِّيَ عَلَيْكَ، وَأَنْ نُسَلِّمَ عَلَيْكَ، فَأَمَّا السَّلَامُ فَقَدْ عَرَفْنَاهُ، فَكَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ؟ قَالَ: "قُولُوا: اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَآلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَآلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ".

د کعب بن عجره نه روايت دی هغه ويلي دي، مونږ ووېل ـ او يا هغوی ووېل ـ ای د الله رسوله! تا مونږ ته امر کړی دی چې درود ووايو په تا، او سلام ووايو په تا، سلام خو مونږ وپېژندلو، درود به په تا څنګه وايو؟ هغه وفرمايل: ووايې: ای الله ته رحمت وکړې په محمد او په آل د محمد، لکه څنګه چې تا رحمت کړی دی په ابراهيم، او برکت راولېږې په

---

[1] ) او اکمل درود دا دې، اللهم صلي علي سيدنا محمد و علي ال سيدنا محمد کما صليت علي سيدنا ابراهيم و علي ال سيدنا ابراهيم و بارك علي سيدنا محمد و علي ال سيدنا محمد کما بارکت علي سيدنا ابراهيم و علي ال سيدنا ابراهيم في العالمين انك حميد مجيد)

[2] ): صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ١٠ (٣٣٧٠)، وتفسير الأحزاب ١٠ (٤٧٩٧)، والدعوات ٣٢ (٦٣٥٧)، صحيح مسلم/الصلاة ١٧ (٤٠٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٣٤ (٤٨٣)، سنن النسائي/السهو ٥١ (١٢٨٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٥ (٩٠٤)، (تحفة الأشراف: ١١١١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٤١، ٢٤٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٨٥ (١٣٨١) (صحيح)

محمد او په آل د محمد لکه څرنګه چې تا برکت رالېږلی دی په ابراهیم، بېشکه ته ستایلی شوی یې او لوی یې.

**قوله، ام السلام فقد عرفناه فکیف نصلی علیك** : دوئ د سلام لوستلو طریقه خو دا ښودلې ده یعنی په التحیات کښې چه کومه راځی السلام علیك ایها النبی ورحمة الله و برکاته.

## بحث ثاني : (د آل محمد ﷺ مصداق)

**قوله، قولوا اللهم صلی علی محمد و آل محمد** :د آل په مصداق کښې څو اقوال دی[1]

۱، په چا باندې چه د زکواة مال حرام دې لکه بنو هاشم او د شافعیه په نیز په حرمت دزکواة کښې بنو هاشم سره بنو المطلب هم دی. ۲، هر مؤمن متقی. ۳، ټول امت اجابت. ۴، ازواج مطهرات و اولاد او د دوئ نه علاوه د حضور ﷺ هغه ټول خاندان واله په کوموباندې چه صدقه حرامه ده. ۵،اولاد د فاطمې اودهغوی نسل. ۶، دحضور ﷺ ازواج او ذریت او د آل ابراهیم نه مراد حضرت اسماعیل او اسحاق علیهما السلام او د هغوی اولاد دې.

## بحث ثالث : (دصلوة معنی اوتفسیر)

د صلوة معنی او تفسیر کښې څو اقوال دی. ۱، ثناء الله تعالی علیه عند ملائکته، د ملائکو د وړاندې د الله تعالی د حضور ﷺ تعریف او توصیف کول، ۲، د الله تعالی رحمت په رسول الله باندې، ۳، صلوة په معنی د تعظیم یعنی د الله تعالی شانه د طرف نه د حضور ﷺ اعزاز او اکرام په دنیا او آخرت کښې، په دنیا کښې د حضور ﷺ نوم روښانه کول او د دوئ دراوړلې شوې دین او شریعت بقاء او ترقئ سره په آخرت کښې تکثیر د ثواب او دتشفیع امت په ذریعه.

## بحث رابع : (په صلوة ابراهیمی کښې تشبیه باندې کلام)

تشبیه باندې اشکال یعنی په هغه درود کښې کوم ته چه درود ابراهیمی وائی صلوة محمدی لره صلوة ابراهیمی سره تشبیه ورکړې شوې ده چه اې الله څنګه صلوة چه ته په ابراهیم علیه السلام باندې لیږې هم داسې زمونږ په پیغمبر محمد ﷺ باندې هم رااولیږه، حال دا دې چه مشبه به اقوی وی د مشبه نه، نو آیا صلوة ابراهیمی زیات اقوی او اعلی دې د صلوة محمدی نه؟

د دې اشکال حافظ ابن حجر لس توجیهات ذکر کړې دی من جمله د دېنه یو دا ده، دلته تشبیه په نفس صلوة او اصل صلوة کښې ده د قدر او مرتبې په اعتبار سره نۀ ده لکه څنګه چه په دې آیت کریمه کښې دی، انا اوحینا الیك کما اوحینا الی نوح، کتب علیکم الصیام کما کتب علی الذین من قبلکم، لهذا کیدې شی چه صلوة محمدی افضل او اقوی وی د صلوة ابراهیمی نه،۲، دکما صلیت تعلق د آل محمد سره دې علی محمد سره نۀ دې، یعنی مشبه صرف دصلوة آل محمد سره دې، ۳، د مجموع تشبیه د مجموع سره ده لهذا مشبه به صلوة

---

[1] ، امام نووی په دې کښې مختصرا درې قوله لیکلې دی.۱، جمیع الامة دې لره هغوی د محققینو قول ګرځولې دی.۲، بنو هاشم و بنو المطلب، ۳، د حضور ﷺ اهل بیت او ذریت.۱۲ منه)

ابراهیم و آل ابراهیم دي او آل ابراهیم کښې په خپله حضور ﷺ هم داخل دي ځکه چه حضور ﷺ د ابراهیم علیه السلام دځوئي د اسماعیل علیه السلام د اولاد نه دي لهذا دمشبه به په جانب کښې په خپله حضور ﷺ هم شامل دي، ۴، د مشبه به د مشبه نه اقوی او افضل کیدل ضروری نۀ دی کله د دې برعکس هم وی، آو البته د مشبه به اشهر او اعرف کیدل ضروری دی، کما في قوله تعالی، الله نور السموات والارض مثل نوره کمشکوٰة فیها مصباح، اوګورئ په دې آیت کښې نور خدا مشبه او نور د مصباح مشبه به دې، اوس ظاهره ده چه د ډیوې رڼړا د الله د نور د وړاندې څۀ څیز دې یقینا کمزورې ده خو د حسی او مشاهد کیدو د وجه نه ډیر واضح او ښکاره څیز دې، دغه شان حضور ﷺ د ابراهیم علیه السلام نه اګر که اعلی او افضل دې خو په وصف د شهرت کښې ابراهیم علیه السلام د حضور ﷺ نه من وجه وړاندې دې چنانچه د ابراهیم علیه السلام تعظیم په ټولو ملتونو او طوائف کښې معروف او مسلم وو یهود او نصاری تر دې چه مشرکین ټول د دوئ د تعظیم قائل وو (۱) نو ځکه دلته صلوة محمدی لره په صلوة ابراهیمی سره تشبیه ورکړې شوه.

### (د ابراهیم په تخصیص باندې سوال)

په دې ځائې کښې یو سوال بل کیږی کوم چه علامه سخاوی هم په القول البدیع کښې ذکر کړې دې، هغه دا چه په دې درود کښې د ابراهیم علیه السلام تخصیص ولې کړې شوې دې انبیاء خو نور هم دی،

**(جواب اول)**: د دې جواب یو خو دا کیدې شی چه ابراهیم علیه السلام د زمونږ د حضور ﷺ نه پس د ټولو انبیاؤ نه افضل دې،

**(جواب دوم)**: او یو جواب دا دې چه په شب معراج کښې د حضور ﷺ د ګڼرو انبیاؤ سره ملاقات شوې وو په هغوی کښې صرف ابراهیم علیه السلام دا وو چا چه د ملاقات په وخت د حضور ﷺ په واسطې سره د دوئ امت ته سلام وئیلې وو چه خپل امت ته زما سلام وایه او دا ورته اوښایه چه جنت یو هوار میدا دې او د دې وني سبحان الله والحمد لله و لا اله الا الله و الله اکبر دی. (ترمذی ص، ۱۷۴، ج ۲)

[۹۷۷] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: "صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ".

مونږ ته بیان کړی دی شعبه د دې حدیث، هغه وویل: رحمت راولېږې په محمد او په آل د محمد لکه څنګه چې تا رحمت لېږلی دی په ابراهیم.

[۹۷۸] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ بِشْرٍ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنِ الْحَكَمِ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا، قَالَ: "اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، اللَّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى

---

(۱) اګر که د دی دا منل او د تعظیم قائل کیدل عند الله معتبر نۀ دی، قال تعالي ما کان ابراهیم یهودیا و لا نصرانیا ولکن کان حنیفا مسلما و ما کان من المشرکین، ۱۲ منه)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۱۳) (صحيح)

(۳): انظر حديث رقم: ۹۷۶، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۱۳) (صحيح)

آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الزُّبَيْرُ بْنُ عَدِيٍّ، عَنْ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، كَمَا رَوَاهُ مِسْعَرٌ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَسَاقَ مِثْلَهُ".

حکم نه روایت کوي په خپل اسناد سره د دې حدیث، هغه ویلي دي: ای الله ته رحمت وکړې په محمد او په آل د محمد، لکه څنګه چې تا رحمت رالېږلی دی په ابراهیم بېشکه ته ستایلی شوی یې او لوی یې، ای الله برکت راولېږې په محمد او په آل د محمد لکه څنګه چې تا برکت رالېږلی دی په ابراهیم باندې، بېشکه ته ستایلی شوی یې او لوی یې. ویلي دي ابوداود: د دې روایت زبیر بن عدي کړی دی د ابن ابي لیلی نه لکه څنګه چې روایت کړی دی مسعر مګر هغه داسې ویلي دي: (کما صلیت علی آل ابراهیم انک حمید مجید، و بارک علی محمد) او بیان یې کړو د هغې پشان.

[۹۷۹] (¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ، أَنَّهُمْ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ؟ قَالَ: "قُولُوا: اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، وَبَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَأَزْوَاجِهِ وَذُرِّيَّتِهِ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ".

ابو حمید الساعدي ویلي دي، بېشکه هغوی وویل: ای د الله رسوله، مونږ څنګه درود ووایو په تا؟ هغه وفرمایل: تاسو وایې: ای الله رحمت راولېږې په محمد او په بیبیانو د هغه او په اولاده د هغه، لکه څنګه چې تا رحمت لېږلی دی په ابراهیم علیه السلام، او برکت راولېږې په محمد او په بیبیانو او اولاده د هغه لکه څنګه چې تا برکت لېږلی دی په آل د ابراهیم بېشکه ته ستایلی شوی یې او لوی یې.

[۹۸۰] (²) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُجْمِرِ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ هُوَ الَّذِي أُرِيَ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ، أَخْبَرَهُ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: أَتَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَجْلِسِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، فَقَالَ لَهُ بَشِيرُ بْنُ سَعْدٍ: أَمَرَنَا اللَّهُ أَنْ نُصَلِّيَ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَكَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ؟ فَسَكَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى تَمَنَّيْنَا أَنَّهُ لَمْ يَسْأَلْهُ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قُولُوا" فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ زَادَ فِي آخِرِهِ "فِي الْعَالَمِينَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ".

د ابو مسعود الانصاري نه روایت دی، بېشکه هغه ویلي دي: راغی مونږ ته رسول الله ﷺ په مجلس د سعد بن عبادة کې، هغه ته بشر بن سعد وویل: مونږ ته الله امر کړی دی چې په تا باندې سلام ووایو ای د الله رسوله! نو درود څرنګه ووایو په تا؟ رسول الله ﷺ چوپ شو تردې چې مونږ تمنی وکړه چې هغه تربنه تپوس نه وی کړی. بیا وویل رسول الله ﷺ تاسو وایې: ذکریې کړه معنی د حدیث د کعب بن عجرة، زیات یې کړو په اخیر د هغې کې: (في

¹): صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ١٠ (٣٣٦٩)، والدعوات ٣٣ (٦٣٦٠)، صحيح مسلم/الصلاة ١٧ (٤٠٧)، سنن النسائي/السهو ٥٥ (١٢٩٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٥ (٩٠٥)، (تحفة الأشراف: ١١٨٩٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ٢٢ (٦٦)، مسند احمد (٤٢٤/٥) (صحيح)

²): صحيح مسلم/الصلاة ١٧ (٤٠٥)، سنن الترمذي/تفسير الأحزاب (٣٢٢٠)، سنن النسائي/السهو ٤٩ (١٢٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٠٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ٢٢ (٦٧)، مسند احمد (١١٨/٤، ١١٩، ٥/ ٢٧٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٨٥ (١٣٨٢) (صحيح)

العالمین انک حمید مجید.

[۹۸۱](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَمْرٍو، بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: "قُولُوا: اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ".

د عقبة بن عامر نه روایت دی، د دې خبر، هغه ویلي دي چې تاسو وایئ: ای الله ته رحمت وکړې په محمد نبي امي باندې، او په آل د محمد ﷺ باندې.

[۹۸۲](۲)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ يَسَارٍ الْكِلَابِيُّ، حَدَّثَنِي أَبُو مُطَرِّفٍ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ كَرِيزٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيٍّ الْهَاشِمِيُّ، عَنِ الْمُجْمِرِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَكْتَالَ بِالْمِكْيَالِ الْأَوْفَى، إِذَا صَلَّى عَلَيْنَا أَهْلَ الْبَيْتِ، فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَأَزْوَاجِهِ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ، وَذُرِّيَّتِهِ، وَأَهْلِ بَيْتِهِ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ".

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: چالره چې دا خبره خوشحالوي چې پیمانه کړي په پوره پیمانې سره، کله چې درود وایي په موږ اهل بیتو باندې، نو وایي دې: ای الله ته رحمت وکړې په محمد او په بیبیانو د هغه چې میندې د مؤمنانو دي، او په اولاده د هغه او په اهل بیتو د هغه، لکه څنګه چې تا رحمت کړی دی په ابراهیم علیه السلام، بېشکه ته ستایلی شوی یې او لوی یې.

قوله، من سرّه ان یکتال بالمکیال الاوفی.. الخ، یعنی کوم سړی چه دا غواړي چه هغه د خپل درود ثواب پوره یا په لوئې پیمانې سره ناپ کړی نو هغه لره پکار دی چه په دې الفاظو سره درود اولولی، اللهم صل علی محمد النبی و ازواجه امهات المؤمنین و ذریته و اهل بیته کما صلیت علی آل ابراهیم انك حمید مجید.

## بَابُ مَا يَقُولُ بَعْدَ التَّشَهُّدِ

### باب دی په بیان د هغې څه چې د تشهد نه وروسته یې وایي

د تشهد نه پس چه کوم څیز لوستلې شی هغه خو درود شریف دې د کوم ذکر چه وړاندې باب کښې تیر شو لهذا دا به اووئیلې شی چه مراد دا دې، بعد التشهد والصلوة علی النبی.

[۹۸۳](۳)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي حَسَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَائِشَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا فَرَغَ أَحَدُكُمْ مِنَ التَّشَهُّدِ الْآخِرِ فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنْ أَرْبَعٍ: مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَمِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، وَمِنْ شَرِّ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ".

ابو هریره رضی الله عنه به ویل چې رسول الله ﷺ ویلي دي: کله چې یو سړی فارغه شي د وروستنې

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۰۷) (حسن)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤٦٤٥) (ضعيف)

(۳): صحيح مسلم/المساجد ۲۵ (۵۸۸)، سنن النسائي/السهو ٦٤ (۱۳۱۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۲٦(۹۰۹)، (تحفة الأشراف: ۱٤۵۸۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجنائز ۸۷ (۱۳۷۷)، مسند احمد (۲/۲۳۷)، سنن الدارمي/الصلاة ۸٦ (۱۳۸۳) (صحيح)

تشهد نه نو پناهي د غواړي په الله باندې د څلورو نه: د عذاب د جهنم نه، او د عذاب د قبر نه، او د فتنې د ژوند او مرګ نه، او د شر د مسيح الدجال نه.

**قوله، اذا فرغ احدكم من التشهد الأخر فليتعوذ بالله من اربع، الخ**، په بعضې رواياتو کښې دا دعا داسې راغلې ده، **اللهم انى اعوذبك من عذاب القبر و اعوذبك من عذاب فتنة المسيح الدجال و اعوذبك من فتنة المحيا و الممات**، دې سره نزدې الفاظ په راتلونکې حديث کښې راروان دی.

بعضې علماء لکه طاؤس په اخرى تشهد کښې د دې دعاء د وجوب قائل دې او جمهور صرف د استحباب، دغه شان د جمهورو په نيز دا دعاء به په اخرى تشهد کښې لوستلې شی لکه څنګه چه په حديث کښې تصريح ده، او ابن حزم ظاهرى په اول تشهد کښې هم د دې دعاء د وجوب قائل دی.

[۹۸٤]([1])حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ الْيَمَامِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ بَعْدَ التَّشَهُّدِ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ".

د ابن عباس ﷺ نه روايت دی، هغه روايت کوي د رسول الله ﷺ نه بېشکه هغه وو چې ويل به يې وروسته د تشهد نه: اى الله زه پناه غواړم په تا باندې د عذاب د جهنم نه، او پناه غواړم په تا باندې د عذاب د قبر نه، او پناه غواړم په تا باندې د فتنې د دجال نه، او پناه غواړم په تا باندې د فتنې د ژوند او مرګ نه.

[۹۸۵]([2])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ عَلِيٍّ، أَنَّ مِحْجَنَ بْنَ الْأَدْرَعِ حَدَّثَهُ، قَالَ: دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ، فَإِذَا هُوَ بِرَجُلٍ قَدْ قَضَى صَلَاتَهُ وَهُوَ يَتَشَهَّدُ، وَهُوَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ يَا اللَّهُ الْأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ، أَنْ تَغْفِرَ لِي ذُنُوبِي إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ، قَالَ: فَقَالَ: "قَدْ غُفِرَ لَهُ، قَدْ غُفِرَ لَهُ" ثَلَاثًا.

محجن بن الادرع حديث بيان کړی دی هغه ويلي دي: داخل شو رسول الله ﷺ مسجد ته، هغه داسې سړی وليدو چې خپل مونځ يې پوره کړی وو، او هغه تشهد ويلو او هغه ويل: اى الله زه سوال کوم د تانه، اى الله احد او بېنيازه ذاته، هغه چې څوک ترې پيدا نه دې او نه هغه د چانه پيدا دی، او نشته د هغه مثال هېڅوک، دا چې وبخښې ماته ګناهونه زما بېشکه ته بښونکی او مهربان يې. هغه وايي: چې هغه وفرمايل: بېشکه بخښنه به وشي هغه ته، بېشکه بخښنه به وشي هغه ته. درې ځل.

**فائده** : امام نسائی د تشهد نه پس په دعاګانو کښې هغه مشهوره دعاء هم ذکر کړې ده کومه چه تول لولی، يعنی اللهم انى ظلمت نفسى،، الخ، دا دعاء د حضرت ابوبکر صديق ﷺ نه مروی ده هغوی يو ځل حضور ﷺ ته عرض کړې وو چه ما ته په مانځه کښې ديو دعاء

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٢٥ (٥٨٨)، سنن الترمذي/الدعوات ٧٧ (٣٤٩٤)، سنن النسائي/الجنائز ١١٥ (٢٠٦٥)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٣ (٣٨٤٠)، (تحفة الأشراف: ٥٧٢١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القرآن ٨(٣٣)، مسند احمد (٢٤٢/١، ٢٥٨، ٢٩٨، ٣١١)، ويأتي برقم (١٥٤٢) (حسن صحيح)

[2]: سنن النسائي/السهو ٥٨ (١٣٠٢)، (تحفة الأشراف: ١١٢١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣٨/٤) (صحيح)

دلوستلو تعلیم اوفرمائې په دې باندې حضور ﷺ هغوی ته اوفرمائیل چه دا دعاء لولئ، دا دعاء په اصل کښې ډیر اهمه ده علامه سندی د نسائی په حاشیه کښې د دې دعا تشریح کوی او لیکی چه د دینه معلومیږی چه هر انسان اګر که هغه مرتبې د صدیقینو ته ولې نهٔ نوې رسیدلې کثیر التقصیر ډیر کمې کونکې دې، وجه د دې دا ده چه په انسان باندې د الله تعالی نعمتونه بیشمیره او بې حده او بې حسابه دی په کومو کښې چه د ټولو نه کم د شکر ادا کولو هم طاقت نشته دې بلکه حقیقت خو دا دې چه د بنده د الله تعالی په نعمتونو کښې د کوم نعمت شکر ادا کول دا په خپله یو مستقل نعمت دې کوم چه موجب د شکر دې ګویا زمونږ شکر په خپل محتاج د شکر دې، لهذا که مونږ د دې شکر په توفیق باندې شکر اوکړو نو دا شکر الشکر به هم یو نعمت وی لهذا د دې شکر به هم واجب وی،[1] و هکذا الی غیر النهایة، لهذا ثابته شوه چه بنده د یو نعمت شکر هم نهٔ شی ادا کولې نو د ټولو نعمتونو شکربه څهٔ اداکړی اودا سراسر تقصیر اوظلم دې نو ځکه ئې اووئیل ظلمت نفسی ظلما کثیرا.

## بَابُ إِخْفَاءِ التَّشَهُّدِ

### باب دی په بیان د پټوالي د تشهد کې

هم دغه شان ترجمة الباب په ترمذی کښې هم دې، باب ما جاء انه یخفی التشهد، دا مسئله اجماعی ده د ټولو په دې باندې اتفاق دې چه تشهد به په پټه باندې لوستلې شی.

[۹۸۶][2] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ يَعْنِي ابْنَ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "مِنَ السُّنَّةِ أَنْ يُخْفَى التَّشَهُّدُ".

د عبد الله نه روایت دی هغه ویلې دی: د سنت نه دا خبره ده چې سری پټ ووایي تشهد.

قوله، من السنة ان یخفی التشهد، د صحابی قول من السنة کذا د حدیث مرفوع په حکم کښې دې، صرح به الاصولیون.

## بَابُ الْإِشَارَةِ فِي التَّشَهُّدِ

### باب دی په بیان د اشاره کې په تشهد کې

### په تشهد کښې د اشارې روایات

په تشهد کښې اشاره بالمسبحه دصحیح مسلم او د سننن د روایاتو نه ثابته ده، په بخاری شریف کښې ما داسې حدیث اونهٔ موندلو او نهٔ د چا په کلام کښې مې د دې حواله اوموندله، خو امام نووی په شرح د مسلم کښې په دې باندې څه مستقله ترجمة نهٔ ده قائمه کړې بلکه هغوی د اشاره فی التشهد حدیث لره په باب صفة الجلوس فی الصلوة په ذیل کښې ذکر کړې دې، هم دغه شان جمهور علماء سلفا و خلفا او مذاهب اربعه د دې په استحباب باندې متفق دی خو حنفیانو کښې بعضې متاخرینو دې لره مکروه ګڼرلې ده، په تنویر

[1]) یعنی شکر الشکر به هم یو نعمت شی لهذا شکر د شکر الشکر به هم واجب وی، هکذا الي غیر النهایة، لهذا ثابته شوه چه بنده صرف د یو نعمت شکر هم نهٔ شی ادا کولې نو بیا د باقی نعمتونو نوبت څنګه راتلې شی، والله الموفق و لا حول و لاقوة الا بالله.)

[2]): سنن الترمذي/الصلاة ۱۰٤ (۲۹۱)، (تحفة الأشراف: ۹۱۷۲) (صحيح)

الابصار (د درمختار متن) کښې دی، ولا يشير بسبابة عند الشهادة و عليه الفتوی) صاحب درمختار د ځنې نورو کتابونو حواله هم ورکړې ده په کومو کښې چه اشاره بالسبابه مکروه ليکلې ده، خو هغه په خپله فرمائی چه دا روايت معتمدنهٔ دې صحيح هم دا ده چه اشاره کول پکار دی لکه څنګه چه حضور د ﷺ د فعل نه ثابت ده.

## د ملا علی قاری تاليف

او ملاعلی قاری د دې اشارې په ثبوت کښې يوه مستقله رساله ليکلې ده، **تزيين العبارة فی تحقيق الاشارة**، په اصل کښې دا رساله د خلاصه کيدانی (د کتاب نوم) په رد کښې ليکلې شوې ده ځکه چه کيدانی په خپله رساله کښې اشاره بالسبابه حرام ګرځولې ده چه دهغې ملا علی قاری په خپل دې تصنيف کښې په سخته سره ترديد فرمائيلې دې، هغه ليکی چه بعضې د ماوراء النهر اوسيدونکې او اهل خراسان او عراق او روم او بلا دهند چا چه دا سنت ترک کړې دې هغه قابل اعتبار نهٔ دې ځکه چه دا د تحقيق نه هم خلاف ده او د خپل مسلك بلکه د ائمه اربعه د مسلك نه هم خلاف ده، حضرت شيخ د بذل په حاشيه کښې ليکلې دی چه حضرت مجدد الف ثانی هم په خپل مکتوباتو کښې د اشاره بالمسبحه انکار فرمائيلې دې او د حضرت مجدد صاحب د طرف نه مرزا مظهر جان جانان په خپلو مکاتيب،ص، ۴۰، کښې دا عذر وړاندې کړې دې چه د مجدد صاحب په زمانه کښې په هندوستان کښې د احاديثو کتابونه مشتهر شوې نهٔ وو.

د دېنه پس دا ازده کړئ چه داشاره بالمسبحه په کيفيت کښې د ائمه ثهٔ اختلاف دی هغه هم واورئ.

## د اشارې سره متعلق مباحث اربعه

### بحث اول : (د اشارې کيفيت)

د جمهور علماؤ په نيز دا اشاره به قبض اصابع سره وی او د مالکيه مذهب تصريح په الشرح الکبير کښې موجود ده، خو حضرت شيخ په اوجز کښې ليکلې دی چه ما په مدينه منوره کښې اهل مدينه لره په بسط اصابع سره اشاره کونکې ليدلې دی او خطابی هم دا عمل د اهل مدينه ليکلې دې.

بيا حنفيه او حنابله په صورت د اشارې کښې د تحليق قائل دی يعنی خنصر او بنصر به راماته کړی او ابهام او وسطی سره به حلقه جوړه کړې شی بيا به مسبحه سره اشاره اوکړې شی، او د شافعيه په نيز په دوو صورتونو کښې دې يو صورت اختيار کړی، عقد درې پنځوس، ۵۳، يا عقد دريويشت، ۲۳، د رومبی شکل دا دې چه د ابهام راس د مسبحه اصل سره اوساتی او دعقد د دريويشتو شکل دا دې چه راس ابهام لره د وسطی په بيخ کښې اوساتی،اودمالکيه په نيز(کما فی الشرح الکبير) ص، ۲۵۰ ،ج، ۱. د اشارې په وخت د اصابعو عقد هغه هيئت مستحب دې کوم چه تقريبا د يو کم دريشو عقد وی په دې شان چه په شروع کښې دريواړه ګوتې راماتې کړی (د ابهامې د غوښې سره ئې يوځائې کړی) او مسبحه دې خوره کړی او ابهامه دې په شا د وسطی باندې کيږدی.

## بحث ثاني : (ګوته به کله اوچتولې شي)

د اشارې په وخت کښې د حنفيه په نيز د نفی په وخت کښې به ګوتې پورته کړې يعنی لا اله باندې او عند الاثبات يعنی الا الله باندې دې دا کيږدی،[1] او د شافعيه په نيز باندې الا الله په وخت کښې دې اشاره اوکړی او بيا آخره پورې دې مسبحه ګوته اوچته اوساتی دا حضرات د ادامت رفع قائل دی.

حنابله وائی يشير کلما مر علی لفظ الجلاله، يعنی کله چه هم په تشهد کښې لفظ د الله راشی نو په هغی باندې دې اشاره اوکړی، او د مالکيه مسلك دا دې چه اشاره بالمسبحه د تشهد د شروع نه تر آخره تشهد پورې او د دېنه پس هم تر سلام پورې دې اوکړی.

## بحث ثالث : (د اشارې په وخت حرکت ورکول)

مالکيه داشارې په وخت دمبسحه ګوتې يمينا او شمالا دتحريك (خوزؤلو) قائل دی ائمه ثلاثه د دې تحريك قائل نۀ دی د دې ذکر په راتلونکې حديث الباب کښې هم راروان دې.

## بحث رابع : (ايا باقی ګوتې د اول نه بندول پکار دی؟)

د حنفيه په نيز قبض اصابع به د اشاره په وخت کښې وی په شروع کښې به ګوتې مبسوط وی او د ائمه ثلاثه په نيز باندې څۀ وخت چه د تشهد دپاره کينی د هغه وخت نه به ګوتې راماتې کړی.

(خبردارې) د اشارې په وخت مسبحه دی بيخی نيغه او د آسمان طرف ته نۀ کړی بلکه دا دې دقبلې طرف ته مائله کړی لکه څنګه چه وړاندې په حديث کښې راروان دی، قدحناها شيئًا.

[۹۸۷]([2])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُعَاوِيِّ، قَالَ: رَآنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ وَأَنَا أَعْبَثُ بِالْحَصَى فِي الصَّلَاةِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ نَهَانِي، وَقَالَ: اصْنَعْ كَمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ، فَقُلْتُ: وَكَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ؟ قَالَ: "كَانَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلَاةِ وَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى، وَقَبَضَ أَصَابِعَهُ كُلَّهَا، وَأَشَارَ بِأُصْبُعِهِ الَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ، وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى".

د علي بن عبد الرحمن المعاوي نه روايت دی هغه ويلي دي، زه وليدم عبد الله بن عمر او لوبې مې کولې په ګيټکو په مانځه کې، هرکله چې فارغ شو نو زه يې منع کړم، او ويې ويل: داسې کوه لکه څنګه چې به رسول الله ﷺ کولو، ما وويل رسول الله ﷺ به څنګه

---

[1] د احنافو په نيز خو مشهور هم دا ده خو په دې کښې دحضرت ګنګوهی رائې دا نۀ ده، هغه فرمائی دا اشاره تر سلام پورې باقی پاتې کيدل پکار دی د حديث نه هم دا ثابته ده (كذا في تذكرة الرشيد، ص، ۱۱۳. والکوکب، ۳۰۸. ج ۲. خو د کوکب د حاشې نه معلوميږی حضرت شيخ په دې باندې منشرح نۀ دې په امداد الفتاوی، ص. ۲۰۷. ج، ۱، کښې هم په دې باندې تفصيلی کلام دې د دې حاصل هم دا دې چه عند الاثبات اشاره دې ختم کړې شی، ما بعضې اساتذه ليدلې دی چه هغوی به مسبحه لره عند الاثبات بيخی خو نۀ کيخوده خو لږه غوندې به ئې رابښکته کوله د دېنه پس ما ته په فتاوی محموديه کښې هم دا خبره ملاؤ شوه. والله تعالی اعلم.)

[2] ): صحيح مسلم/المساجد ۲۱ (۵۸۰)، سنن النسائي/التطبيق ۹۸ (۱۱۶۱)، والسهو ۳۲ (۱۲۶۷) ۳۳ (۱۲۶۸)، (تحفة الأشراف: ۷۳۵۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ۱۱(۴۸)، سنن الدارمي/الصلاة ۸۳(۱۳۷۸) (صحيح)

کول؟ هغه ووېل: وو چې کله به کښناستلو په مانځه کې نو کېخودلو به يي خپل ښې ورغوى په په خپل ښې ورون، او راتولي به يي کړې خپلې تولې ګوتې، او اشاره به يي کوله په خپلې هغې ګوتې چې کومه به ابهامي ته نزدې وه، او کېخودلو به يي خپل چپ ورغوى په خپل چپ ورون باندې.

[٩٨٨]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ حَكِيمٍ، حَدَّثَنَا عَامِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَعَدَ فِي الصَّلَاةِ جَعَلَ قَدَمَهُ الْيُسْرَى تَحْتَ فَخِذِهِ الْيُمْنَى وَسَاقِهِ، وَفَرَشَ قَدَمَهُ الْيُمْنَى، وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرَى عَلَى رُكْبَتِهِ الْيُسْرَى، وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ". وَأَرَانَا عَبْدُ الْوَاحِدِ وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ.

عبد الله بن زبير د خپل پلار نه روايت کوي هغه ويلي دي: وو رسول الله ﷺ چې کله به يي قعده کوله په مانځه کې وبه يي ګرځوه خپل چپ قدم د ښې ورون او پونډۍ لاندې، او اوار به يي کړو خپل چپ قدم، او کېخودلو به يي خپل چپ لاس په چپ زنګون، او کېخودلو به يي خپل ښې لاس په ښې ورون، او اشاره به يي کوله په خپله ګوته. او عبد الواحد مونږ ته وښودلو چې اشاره يي کوله په سبابې سره.

[٩٨٩]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ زِيَادٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ ذَكَرَ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُشِيرُ بِإِصْبَعِهِ إِذَا دَعَا وَلَا يُحَرِّكُهَا". قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: وَزَادَ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَامِرٌ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَدْعُو كَذَلِكَ، وَيَتَحَامَلُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ الْيُسْرَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُسْرَى".

د عبد الله بن زبير نه روايت دی بېشکه هغه ذکر کړي دي: بېشکه نبي ﷺ وو چې اشاره يي کوله په خپله ګوته چې کله به يي دعا کوله، او هغه به يي نه خوزوله. ويلي دي ابن جريج: او زيات کړي دي عمرو بن دينار، هغه وايي: ماته خبر راکړی دی عامر د خپل پلار نه، بېشکه هغه وليده نبي ﷺ چې دعاء يي کوله هم دغسې، او پيغمبر ﷺ به باريدلو په خپل چپ لاس سره په خپل چپ ورون باندې.

**قوله، كان يشير باصبعه اذا دعا ولا يحركها**، د عبد الله بن زبير رضي الله عنهما د دې حديث نه معلومېږي چه د اشارې په وخت به ګوتې لږه ښی او ګس طرف ته حرکت نشي ورکولی لکه څنګه چه د جمهورو مسلك دې، مالكيه د تحريك قائل دی لکه څنګه چه د باب په شروع کښې تېر شوې دي. د هغوی استدلال د وائل بن حجر دحديث نه دې کوم چه په بيهقی کښې مذکور دې، فرأيته يحركها، جمع بين الحديثين داسې کړې شوې ده چه د تحريك نه مراد عين اشاره ده څکه چه اشاره هم په تحريك سره وی نو دې اشارې دپاره ګوته پورته کول او ايخودل هم دا تحريك دې.

**قوله، و يتحامل النبى ﷺ بيده اليسرى على فخذه اليسرى**، دتحامل معنى د بار اچولو ده او

[1]): صحيح مسلم/المساجد ٢١ (٥٧٩)، سنن النسائي/التطبيق ٩٩ (١١٦٣)، والسهو ٣٥ (١٢٧١)، ٣٩ (١٢٧٦)، (تحفة الأشراف: ٥٢٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤) (صحيح)

[2]): سنن النسائي/السهو ٣٥ (١٢٧١)، (تحفة الأشراف: ٥٢٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤) (شاذ)

دلته مراد لاس په پتون باندې ایخودل او دې لره خورول دی، او د ګس لاس قید بظاهر د دې دپاره دې چه ښي لاس خو مقبوض الاصابع وی سرې لره د دې په ذریعې سره اشاره کؤل وی خصوصاً د مالکیه په نیز خو د التحیات په شروع کښې اخیره پورې اشاره کیدل وی نو ګویا هغه لاس په یو بل کار کښې مشغول دې په خلاف د ګس لاس نه چه د دینه هیڅ کار نهٔ شی اغستلې هغه په ګس پتون باندې خور وی، او د دینه اشارة یوه بله خبره هم معلومیږی کومه چه زما په ذهن کښې راځی چه په التحیات کښې دې ملا نیغه ساتی روستو طرف ته دې نهٔ کږوی لکه څنګه چه ګدئ (بالخت) ته د شا لګولو په وخت کښې کوی نو هله به تحامل علی الفخذ معنی اوموندلې شی کومه چه دلته په حدیث کښې مذکور ده او زما د دې خبرې تائید د هغه روایت نه هم کیږی په کوم کښې چه دا دی چه په ګس لاس سره دې د ګس زنګون لقمه جوړه کړی (یعنی د ګس لاس د ګوتو سرونه دی زنګون طرف ته راکاږهٔ کړی) د مسلم په روایت کښې دی، ویده الیسرٰی علیٰ فخذه الیسرٰی و یلقم کفه الیسرٰی رکبته.

[۹۹۰]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا ابْنُ عَجْلَانَ، عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: "لَا يُجَاوِزُ بَصَرُهُ إِشَارَتَهُ". وَحَدِيثُ حَجَّاجٍ أَتَمُّ.

عامر بن عبد الله بن الزبیر د خپل پلار نه روایت کوي د دې حیدث، هغه وایي: د هغه سترګو به تجاوز نه کولو د هغه د اشاري نه، او حدیث د حجاج ډیر پوره دی.

[۹۹۱]([2])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا عِصَامُ بْنُ قُدَامَةَ مِنْ بَنِي بَجِيلَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ نُمَيْرٍ الْخُزَاعِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "وَاضِعًا ذِرَاعَهُ الْيُمْنَى عَلَى فَخِذِهِ الْيُمْنَى، رَافِعًا إِصْبَعَهُ السَّبَّابَةَ قَدْ حَنَاهَا شَيْئًا".

مالک بن نمیر الخزاعي روایت کوي د خپل پلار نه، هغه ویلي دي: ما ولیدلو نبي ﷺ چې هغه ایخودلي وه خپله ښي څنګل په خپل ښي ورون باندې، اوچتونکی وو د خپلې سبابې ګوتې، هغه لږه شان کږه کړې وه.

قوله، رافعا اصبعه السبابة قد حناها شیئا، په دې باندې کلام د باب په شروع کښې تیر شوې دې، امام نسائی په دې باندې مستقل ترجمه قائم کړې دې، باب احناء السبابة فی الاشارة، ص، ۱۸۷، هغوی په دې باب کښې چه کوم حدیث ذکر کړې دې د هغې الفاظ دا دې، رافعا اصبعه السبابة قد احناها شیئا، او د نسائی، ص، ۱۷۳، باندې په یو بل روایت کښې دی، واشار باصبعه التی تلی الابهام فی القبلة، دا روایت زیات واضح دې د دې نه معلومیږی چه اشاره قبلې طرف ته پکار ده لا الی الفوق و لا الی الیمین و الیسار، دغه شان د نسائی هم په دې روایت کښې دی، ورمٰی ببصره الیها، یعنی د اشارې په وخت نظر هم دې ګوتې طرف ته پکار دې د دې دپاره چه کوم کار هم وی هغه دې د توجه سره وی هم د دې نوم خشوع او حضور قلب دې، اللهم ا رزقنا منه شیئا.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٢٦٤) (حسن صحیح)
[2]: سنن النسائي/السهو ٣٦ (١٢٧٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٢٧ (٩١١)، (تحفة الأشراف: ١١٧١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٧١/٣) (ضعیف)

**په مانځه کښې د مصلي نظر کوم طرف ته پکار دې؟**

مسئله مختلف فيه ده د مالکيه مشهور مذهب دا دې کوم چه صاحب منهل هم د ابن رشد په حواله سره ليکلې دې چه د مصلي نظر په مانځه کښې قبلې طرف ته پکار دې (١) بغير د دينه چه څه څيز ته التفات اوکړي او نه دې سر ښکته کوي (دبعضې صوفيانو پشان ځکه چه په دې صورت کښې به مخ په قبله پاتې نه شي).

شافعيه او حنابله فرمائي چه د مصلي نظر موضع سجود طرف ته پکار دې او شافعيه د تشهد حالت لره د دېنه مستثنیٰ کړې دې دغه وخت به نظر اشارې طرف ته پکار وي، او علامه شامي ليکي چه زمونږ په نيز په ظاهر الرواية کښې صرف دومره منقول دي چه نظر د مصلي منتهيٰ موضع سجود کيدل پکار دي، او نور مشائخ لکه امام طحاوي او کرخي نه دا تفصيل منقول دې چه د مصلي نظر د قيام په حالت کښې موضع د سجود طرف ته او په رکوع کښې قدمينو طرف ته او په حالت د سجدې کښې د پوزې نرمۍ طرف ته او په قعده کښې خپل غيږ طرف ته او د سلام په وخت کښې اوږو طرف ته.

## بَابُ كَرَاهِيَةِ الِاعْتِمَادِ عَلَى الْيَدِ فِي الصَّلَاةِ

**باب دې په بيان د کراهيت د تکيا کولو کې په په لاس باندې په مانځه کې**

ددېنه وړاندې يو باب تيرشوې دې د اعتماد على العصا، باب الرجل يعتمد في الصلوة على عصا،

**(د اعتماد على اليد دوه قسمونه)**

د اعتماد على اليد نه مراد يا خو عند النهوض يعني د سجدې کله چه نه فارغ شي او اودريږي، دا مسئله مختلف فيه ده، حنفيه او حنابله خو دا وائي چه په رکبتينو باندې لاس کيږدي او اوديدريږي او د امام شافعي په نيز باندې په زمکه باندې کيږدي او د مالکيه د مسلك تفصيل سره د نورو ائمه نه د رفع يدين واله باب کښې د ابوحميد ساعدي د حديث د لاندې تير شوې دې، (٢) او يا د اعتماد نه مراد قعده کښې لاسونه د پتونو په ځائې په زمکه باندې لګول، مصنف په دې باب کښې دواړه قسمه روايتونه ذکر کړې دي بعضې په رومبۍ معنى کښې مراد دي او بعضې په دويمه معنى کښې.

[٩٩٢](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ شَبُّوَيْهِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ الْغَزَّالُ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: أَنْ يَجْلِسَ الرَّجُلُ فِي الصَّلَاةِ وَهُوَ مُعْتَمِدٌ عَلَى يَدِهِ". وَقَالَ ابْنُ شَبُّوَيْهِ: "نَهَى أَنْ يَعْتَمِدَ الرَّجُلُ عَلَى يَدِهِ فِي الصَّلَاةِ". وَقَالَ ابْنُ رَافِعٍ: "نَهَى أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ وَهُوَ مُعْتَمِدٌ عَلَى يَدِهِ". وَذَكَرَهُ فِي

---

(١) حافظ ابن کثير په خپل تفسير کښې، فولوا وجوهکم شطره، آيت د لاندې ليکلي دي چه د دينه مالکيه په دې باندې استدلال کړې دې چه د مصلي نظر مخامخ طرف ته پکار دې نه داسې لکه چه ائمه ثلاثه فرمائي چه د سجدې ځائې ته پکار دې ځکه چه د دې دپاره به سر لږ ښکته کول وي په تکليف سره کوم چه د قيام منافي دې، ١٢.

(٢) د مالکيه په نيز باندې خو چونکه د پاسيدو په وخت رکبتين د زمکې نه رومبې اوچتيږي نو ځکه لاسونه د رومبې نه په زمکه باندې وي.

(٣) تخريج: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٥٠٤)، وقد أخرجه: حم (١٤٧/٢) (صحيح)

بَابُ الرَّفْعِ مِنَ السُّجُودِ، وَقَالَ ابْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ: "نَهَى أَنْ يَعْتَمِدَ الرَّجُلُ عَلَى يَدَيْهِ إِذَا نَهَضَ فِي الصَّلَاةِ".

د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی هغه ويلي دي: منع کړي ده رسول الله ﷺ. ويلي دي احمد بن حنبل. د دېنه چې کيني سړی په مانځه کې، او هغه تکيا کړي وي په خپل لاس. او ويلي دي ابن شبويه: منع يې کړې ده چې تکيا وکړي سړی په خپل لاس په مانځه کې. او ويلي دي ابن رافع: منع يې کړې ده د دېنه چې مونځ وکړي سړی او هغه تکيا کونکی وي په خپل لاس. او هغه ذکر کړی دی په باب د رفع کې د سجدې نه. او ويلي دي ابن عبد الملک: منع يې کړې ده چې سړی تکيا وکړي په خپلو لاسونو کله چې پاڅېږي په مانځه کې.

[۹۹۳]([1]) حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، سَأَلْتُ نَافِعًا عَنِ الرَّجُلِ يُصَلِّي وَهُوَ مُشَبِّكٌ يَدَيْهِ، قَالَ: قَالَ ابْنُ عُمَرَ: تِلْكَ صَلَاةُ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ.

د اسماعيل بن امية نه روايت دی هغه وايي ما تپوس وکړو د نافع نه، په باره د هغه سړي کې چې مونځ کوي او مشبک وي (يو لاس يې په بل کې ورکړی وي) د دواړو لاسونو. هغه وايي چې ابن عمر وويل: دغه د مغضوب عليهم مونځ دی.

[۹۹۴]([2]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ وَهَذَا لَفْظُهُ جَمِيعًا، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ رَأَى رَجُلًا يَتَّكِئُ عَلَى يَدِهِ الْيُسْرَى وَهُوَ قَاعِدٌ فِي الصَّلَاةِ، قَالَ هَارُونُ بْنُ زَيْدٍ: سَاقِطًا عَلَى شِقِّهِ الْأَيْسَرِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، فَقَالَ لَهُ: "لَا تَجْلِسْ هَكَذَا، فَإِنَّ هَكَذَا يَجْلِسُ الَّذِينَ يُعَذَّبُونَ".

د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی: بېشکه هغه وليدلو يو سړی چې تکيايي کړي وه په خپل چپ لاس او هو ناست وو په مانځه کې. ويلي دي هارون بن زيد: چې پريوتی وي په چپ طرف، بيا دواړه متفق شوي دي. هغه ورته وويل: داسې مه کېنه، بېشکه داسې هغه کسان کېني چې عذاب ورکول کېږي.

## بَابٌ فِي تَخْفِيفِ الْقُعُودِ

### باب دی په بيان د تخفيف د قعدې کې

[۹۹۵]([3]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ كَأَنَّهُ عَلَى الرَّضْفِ، قَالَ: قُلْتُ: حَتَّى يَقُومَ؟ قَالَ: حَتَّى يَقُومَ".

ابو عبيدة د خپل پلار نه روايت کوي: بېشکه نبي ﷺ وو په دوه اولنو رکعاتونو کې ګويا چې هغه په ګرمو کاڼو باندې وو. هغه وايي: مونږ وويل: تر پاڅېدلو پورې؟ هغه وويل: تر پاڅېدلو پورې.

قوله، كان في الركعتين الاولیين كانّه على الرّضف، رضف د رضفة جمع ده په معنی د ګرم کاڼي.

[1]): تخريج: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۰٤) (صحيح)
[2]): تخريج: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۵۱۳)، وقد أخرجه: حم (۲/۱۱٦۷) (حسن)
[3]): سنن الترمذي/الصلاة ۱۵۸ (۳٦٦)، سنن النسائي/التطبيق ۱۰۵ (۱۱۷۷)، (تحفة الأشراف: ۹٦۰۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۸٦، ٤۱۰، ٤۲۸، ٤۳٦، ٤٦۰) (ضعيف)

**د حدیث په شرح کښې دوه قوله:**

د دې حدیث په شرح کښې دوه قوله دی، اول دا چه د رکعتین اولیین نه مراد قعده اولی ده او مطلب دا دې چه حضور ﷺ به قعده اولی مختصر کوله او داسې په جلتئ به پاسیدو چه ګویا توده کاڼړې دی په کوم باندې چه زیات وخت نۀ شی کیناستلې، یعنی صرف تشهد به ئې لوستلو او بیا به پاسیدو درود او دعاء به ئې نۀ لوستله، د جمهورو علماؤ او د ائمه ثلاثه هم دا مذهب دې او د امام شافعی قول قدیم هم دا دې او د دوئ قول جدید دا دې لکه څنګه چه ړومبی باب الصلوة علی النبی کښې تیر هم شوې دې چه په قعده اولی کښې هم درود لوستل مستحب دی خو صرف په محمد ﷺ باندې بغیر د آل د محمد نه اللهم صل علی محمد.

د مصنف پشان امام ترمذی او نسائی هم د حدیث هم دا معنی مراد اغستې ده د نسائی ترجمه باب التخفیف فی التشهد الاول او د ترمذی، ص،۴۸، ما جاء فی مقدار القعود فی الرکعتین الاولیین، او د حدیث دویم مطلب دا هم کیدې شی چه درکعتین اولیین نه مراد قعده اولی نۀ ده بلکه ړومبې او دریم رکعت دې چه کله ړومبې رکعت به ئې پوره کړو او دویم دپاره اودریدو، او هم دغه شان چه کله به ئې دریم رکعت اوکړو او څلورم دپاره به پاسیدله نو داسې په جلتئ به پاسیدل چه تۀ به وائی لکه چه حضور ﷺ په تود کاڼړی باندې دی، بظاهر په دې صورت کښې د استراحت د جلسې نفی کیږی، جلسه استراحت هم په دې دوو رکعاتونو کښې کیږی دهغه خلقو په نیز څوك چه د دې قائل دی.

قوله، قلنا حتی یقوم قال حتی یقول، په دې عبارت کښې اغلاق دې د دې تشریح د ترمذی د روایت نه کیږی چه دهغې الفاظ دا دی، قال شعبة ثم حرّك سعد شفتیه بشئ فاقول حتی یقوم فیقول حتی یقوم، مطلب دا دې چه شعبه وائی چه ما دخپل استاذ سعد بن ابراهیم نه د مذکوره حدیث الفاظ په ښۀ شان اوریدلې وو د دینه پس هغوی چه کوم لفظ وئیلې وو هغه ما ښۀ وانۀ وریدلو ما د خپل اطمینان دپاره د هغوی نه پوښتنه اوکړه چه وراندې دحدیث لفظ، حتی یقوم، دی نو هغوی اووئیل آو هم حتی یقوم دی.

## بَابٌ فِي السَّلَامِ

### باب دی په بیان د سلام کې

داسې اوګڼړئ چه دا د صفت صلوة آخری باب دې ځکه چه سلام د افعالو د صلوة نه آخری فعل دې، او باب رفع الیدین عندالتحریمه د صفت صلوة ړومبې باب وو د هغۀ ځائې نه تر دې ځائې پوره تقریبا تول اویا بابونه دی د کومو نه چه مونږ فارغ شو. فلله الحمد و المنة.

پوهیدل پکار دی چه په کتاب الطهارة کښې د تحریمها التکبیر و تحلیها التسلیم حدیث د لاندې دوه مسئلې تیرې شوې دی، یو د سلام حکم من حیث الفرض و الوجوب او دویمه مسئله د عدد سلام.

**د تسلیمه واحده او د تسلیمتینو بحث:**

دلته د مصنف غرض د سلام عدد بیانول دی، ائمه ثلاثه او جمهور علماء په مانځه کښې

دتسلیمتینو قائل دی اوامام مالك د تسلیمه واحده قائل دې تلقاء وجهه مائلا الی الیمین، د امام او منفرد په حق کښې دې، او د مقتدی په حق کښې درې سلامونه ړومبې سلام نبی طرف ته دویم تلقاء وجهه او دریم سلام ګس طرف ته په دې شرط چه دې طرف ته څوك مصلی وی ګینی نشته دې، امام شافعی په یو قول کښې او بعضې صحابه کرام لکه ابن عمر او عائشه رضي الله عنها او هم داسې حسن بصری او عمر بن عبدالعزیز هم د یو سلام قائل دی، سبل السلام شرح د بلوغ المرام کښې لیکلې دی چه د تسلیمتینو روایتونه د پنځلسو صحابه کرامو نه مروی دی په کومو کښې چه بعضې صحیح دی او بعضې حسن او بعضې ضعیف دی، د عبدالله بن مسعود په حدیث کښې کوم چه دلته مصنف راوړې دې امام ترمذی د دې په حقله "حدیث حسن صحیح" لیکلې دې، حافظ په التلخیص الخیر کښې لیکلې دی، اخرجه الاربعة والدار قطنی و ابن حبان، دغه شان حافظ صاحب فرمائی چه د دې حدیث اصل صحیح مسلم کښې شته هغه دا چه په مکه مکرمه کښې یو مالدار سړې وو هغه به چه کله مونځ کولو نو دوه سلامونه بنی او ګس طرف ته به ئې ګرځول په دې باندې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل، انّی علقها ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یفعله،[۱] د امام مالك استدلال د اهل مدینه عمل او حدیث عائشه سره دې چه د هغې الفاظ دا دی، ثم یسلم تسلیمة، رواه اصحاب السنن و الحاکم.

امام ترمذی فرمائی و اصح الروایات عن النبی صلی الله علیه وسلم تسلیمتان، او د یو سلام واله حدیث باندې هغوی کلام فرمائیلې دې، حافظ ابن حجر په فتح الباری کښې لیکی چه امام بخاری د سلام په سلسله کښې ګڼړ ابواب قائم فرمائیلې دی د مالکیه په رد کښې ئې هم یو باب منعقد فرمائیلې دې، خو د سلام د عدد یو صریح حدیث ئې ذکر کړې نۀ دې نۀ د تسلیمتیو او نۀ د تسلیمه واحده خو امام مسلم دوه حدیثونه د ابن مسعود او سعد بن ابی وقاص د تسلیمتینو په سلسله کښې ذکر فرمائیلې دی، دغه شان حافظ لیکی چه ابن عبدالبر د تسلیمه واحده روایتونه معلل ګرځولې دی.

## د تسلیمه واحده توجیه

زمونږ حضرت ګنګوهی د دې توجیه دا فرمائیلې ده چه دا روایت محمول دې په رفع صوت او په جهر باندې، یعنی ړومبې سلام به هغوی په زوره باندې وئیلو په خلاف د دویم سلام نه، او د دې تائید د بعضې روایت د الفاظو نه کیږی، مثلاً د ابوداؤد روایت کښې دی، یسلم تسلمیة یکاد یوقظ اهله، چه یو سلام به حضور ﷺ دومره په زوره وئیلو چه اودۀ خلق به ویخ شول، او بعضې مشائخو دا تاویل کړې دې چه ممکن دا ده چه حضور ﷺ به په صلوة اللیل کښې کله کله یو سلام باندې اکتفاء فرمائیله او د دوو سلامونو واله احادیث محمول دی په فرض مونځ باندې کوم به چه حضور ﷺ په جومات کښې تولو سره ادا کول.

احقر وائی غالبا څکه خو د یو سلام واله روایت مصنف دلته نۀ دې ذکر کړې بلکه هغه ئې په ابواب صلوة اللیل کښې راوړې دې.

---

[۱] دا خصلت هغوی د کوم ځائې نه زده کړې وو؟ بیشکه حضور ﷺ هم داسې کول۔ ۱۲ منه

[۹۹۶] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، وَزِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّنَافِسِيُّ. ح وحَدَّثَنَا تَمِيمُ بْنُ الْمُنْتَصِرِ، أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ يَعْنِي ابْنَ يُوسُفَ، عَنْ شَرِيكٍ. ح حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ كُلُّهُمْ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَقَالَ إِسْرَائِيلُ: عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، وَالْأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ، وَعَنْ شِمَالِهِ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ خَدِّهِ، السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِ سُفْيَانَ، وَحَدِيثُ إِسْرَائِيلَ لَمْ يُفَسِّرْهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ زُهَيْرٌ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، وَيَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، وَعَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: شُعْبَةُ كَانَ يُنْكِرُ هَذَا الْحَدِيثَ، حَدِيثَ أَبِي إِسْحَاقَ أَنْ يَكُونَ مَرْفُوعًا.

د عبد الله نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ وو چې سلام يې اړولو ښي طرف ته، او چپ طرف ته، تردې چې ليدلې به شو سپينوالی د اننګو د هغه (السلام عليکم و رحمة الله، السلام عليکم ورحمة الله. ويلي دي ابوداود: او دا لفظ د حديث د سفيان دی، او حديث د اسرائيل د هغه تفسير نه دی کړی. ويلي دي ابوداود: او روايت کړی دی زهير د هغي د ابي اسحاق نه، او يحيی بن آدم د اسرائيل نه او هغه د ابو اسحاق نه او هغه د عبد الرحمن بن الاسود نه او هغه د خپل پلار نه، او د علقمه نه او هغه د عبد الله نه. ويلي دي ابوداود: شعبه به دا حديث منکر ګڼلو ـ حديث د ابو اسحاق ـ چې دا دې مرفوع وي.

۱ـ حدثنا محمد بن كثير.. الخ، مصنف د تسليمتينو په باره کښې اولاً د عبد الله بن مسعود حديث ذکر فرمائيلې دې او ثانيًا ئې د وائل بن حجر او ثالثًا ئې د جابر بن سمره، ددې درېواړو روايتونو نه د تسليمتينو ثبوت کيږي، د عبدالله بن مسعود حديث سند خو ډيرلوئې دې ځکه چه په هغې کښې پنځه تحويله دی دکوم تفصيل به چه وړاندې راشي.

قوله، كلهم عن ابی اسحاق عن ابی الاحوص، د دې حديث د سند مدار په ابواسحاق باندې دې، د ابواسحاق نه روايت کونکی ډير دی، د کلهم د ضمير مرجع د هر سند آخری راوی دې نو د ړومبی سند آخری راوی سفيان دې او د دويم زائده د دريم ابوالاحوص د څلورم عمر بن عبيد د پنځم شريك او د شپږم آخری راوی اسرائيل، دا ټول رواة دې حديث لره روايت کوی د ابواسحاق نه، ابواسحاق ملتقی الاسانيد دې.

او ځان پوهه کړئ چه په دريم سند کښې چه کوم ابو الاحوص راغلې دې هغه بل يو دې دهغه نوم سلام بن سليم دې او په آخيره کښې چه کوم ابوالاحوص راغلې دې هغه عوف بن مالک دې.

قوله، قال ابوداؤد و هذا لفظ حديث سفيان و حديث اسرائيل لم يفسره، دلته په حديث کښې دوه جملې دی يوه په شروع کښې کان يسلم عن يمينه و عن شماله، او دويمه په آخره کښې السلام عليكم و رحمة الله، دا جمله د دويمې جملې تفسير دې مصنف فرمائی چه دا جمله

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ۱۰۹ (۲۹۵)، سنن النسائي/السهو ۷۱ (۱۳۲۳، ۱۳۲٤، ۱۳۲۵، ۱۳۲۶)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۲۸ (۹۱٤)، (تحفة الأشراف: ۹۱۸۲، ۹۵۰٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۹۰، ٤۰۶، ٤۰۹، ٤۱٤، ٤٤٤، ٤٤۸)، سنن الدارمي/الصلاة ۸۷ (۱۳۸۵) (صحيح)

تفسیر یه صرف سفیان ذکر کړې ده أسرائیل نۀ ده ذکر کړې.

قال ابوداؤد و رواه زهیر عن ابی اسحاق و یحیٰی بن آدم عن اسرائیل عن ابی اسحاق عن عبد الرحمٰن ابن الاسود عن ابیه،

## شرح السند:

رومبی پنځه سندونه داسې دی چه په دې کښې دابواسحاق او عبد الله بن مسعود په مینځ کښې صرف یوه واسطه ده د ابوالاحوص او په شپږم سند کښې کوم چه د اسرائیل دې په هغې کښې واسطه خو یوه ده خو د ابوالاحوص سره سره اسود هم شامل دې، او و رواه زهیر سره چه کوم سندونه مصنف بیانوی په هغې کښې ابواسحاق او د عبدالله بن مسعود په مینځ کښې دوه واسطې دی، د عبد الرحمان بن اسود او د اسود، نو ګویا دوه فرقه شو یو خو دا چه په تیر شوې سندونو کښې ابواسحاق او د صحابی په مینځ کښې صرف یوه واسطه وه او د زهیر او یحیٰی بن آدم په روایت کښې دوه واسطې دی، او دویم فرق د واسطې د تعین دې چه هلته واسطه د ابوالاحوص وه او دلته د هغۀ په ځائې باندې دعبد الرحمٰن بن الاسود او اسود ده.

قوله، و علقمة عن عبدالله، په دې کښې یو احتمال خو دا دې چه که د علقمه عطف په عبدالرحمان باندې وی نو په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه ابو اسحاق د روایت کوی د علقمه نه او علقمه د عبد الله بن مسعود نه، دویم احتمال دا دې چه د علقمه عطف په ابیه باندې وی نو په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه عبدالرحمان څنګه د خپل پلار اسود نه روایت کوی دغه شان د علقمه نه هم روایت کوی او بیا دا دواړه اسود او علقمه د عبد الله بن مسعود نه روایت کوی، په اول احتمال کښې به د ابو اسحاق روایت نیغ په نیغه د علقمه نه وی او په دویم احتمال کښې به د ابواسحاق روایت د اسود او علقمه دواړو نه په واسطې د عبدالرحمٰن وی او دا ټول سندونه به داسې شی.

١: ابواسحاق عن ابی الاحوص عن ابن مسعود، په دې کښې دشروع شپږسندونه راغلل،

٢: ابواسحاق عن الاسود عن ابن مسعود رضی الله عنه

٣: ابواسحاق عن عبدالرحمٰن بن الاسود عن الاسود عن عبد الله بن مسعود،

۴: ابواسحاق عن علقمه عن ابن مسعود رضی الله عنه،

قوله: قال ابوداؤد و شعبة کان ینکر هذا الحدیث حدیث ابی اسحاق، شعبه د دې حدیث انکار بظاهر کښې به د دې دپاره کوی چه د دې په سند کښې اختلاف او اضطراب دې څکه چه ابواسحاق دا حدیث هم د ابوالاحوص نه روایت کوی او کله د عبد الرحمٰن بن الاسود نه او کله د علقمه نه، او په ظاهره کښې د مصنف میلان هم دې طرف دې ګینی د شعبه رائې به ئې نۀ وه نقل کړې یا د نقل کولو نه پس به ئې د دې تردید کړې وو، خو امام ترمذی د دې حدیث په حقله وئیلې دی، هذا حدیث حسن صحیح، نو ګویا د امام ترمذی د شعبه د دې رائې سره اتفاق نشه دې څکه چه کیدې شی چه دا روایت په دې ټولو طریق سره محفوظ او ثابت وی، والله تعالی اعلم.

[۹۹۷]() حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ قَيْسٍ الْحَضْرَمِيُّ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَكَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، وَعَنْ شِمَالِهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ".

د علقمة بن وائل نه روايت دی هغه روايت کوي د خپل پلار نه، هغه وايي: ما مونځ وکړو د نبي ﷺ سره، هغه به سلام اړولو ښي طرف ته (السلام عليکم و رحمة الله و برکاته) او چپ طرف ته (السلام عليکم و رحمة الله).

۲: حدثنا عبدة بن عبدالله.. الخ، قوله السلام عليکم و رحمة الله و برکاته.

## د مونځ په سلام کښې د وبرکاته زيادت

د وائل بن حُجر په دې حديث کښې دوبرکاته زيارت صرف په رومبي سلام کښې موجود دې، حضرت په بذل المجهود کښې په دې باندې تفصيل سره کلام فرمائيلې دې چه دهغې چه دا دې چه د دې زيادت امام نووی او ابن الصلاح محدث انکار کړې دې خو حافظ ابن حجر دې لره ثابت ګنړلی نو ځکه هغوی په بلوغ المرام کښې د تسليمتينو په حقله هم دا يو حديث د وائل بن حجر په کوم کښې چه د و برکاته زيادت ذکر کړې او ليکلې ئې دې رواه ابوداؤد باسناد صحيح، او علامه شوکانی ليکی چه دا زيادت په صحيح د ابن حبان کښې د ابن مسعود په حديث کښې هم مذکور دې او دغه شان په ابن ماجه کښې هم خو زمونږ حضرت سهارنپوری رحمه الله د دې رائې سره متفق نهٔ دې بلکه دا فرمائی چه دا زيادت شاذ دې، او د عبدالله بن مسعود چه څومره روايتونه هم په دې حقله په صحاح سته او مسند احمد او بيهقی او طحاوی وغيره په کتب حديث کښې موجود دې په هغې کښې دا زيادت چرته هم ملاؤنشو، د ابن ماجه نسخه چه کومه مونږ سره ده په دې کښې هم زياتې نشته دې، والله تعالی اعلم.

**فائده:** د سلام مسنون الفاظ څۀ دی د دې تفصيل صاحب منهل ليکلې دې په هغې کښې دا ئې هم ليکلې دی چه د ائمه ثلاثه په نيز السلام عليکم و رحمة الله مسنون طريقه ده او د مالکيه په نيز دورحمة الله زياتې مسنون نهٔ دې او ليکلې ئې دی چه حنابله او سرخسي من الحنفيه او رويانی او امام الحرمين من الشافعيه په نيز په رومبی سلام کښې دو برکاته زياتې هم مستحب دې، احقر وائی چه دلته يو اختلاف بل دې هغه دا چه د نسائی شريف په بعضې روايتونو کښې سلام الی اليمين يعنی ښی طرف ته سلام ګرځولو کښې السلام عليکم ورحمة الله او سلام الی اليسار يعنی ګس طرف ته سلام ګرځولو کښې صرف السلام عليکم وارد دې بغير د ورحمة الله نه او امام نسائی هم جدا جدا دوه بابونه قائم کړی دی نو پس ممکنه ده چه حضور ﷺ کله داسې هم کړې وی خو چونکه اکثر روايتونو کښې دا فرق نشته دې نو ځکه جمهورو عدم فرق لره اختيار کړې دې په منهل کښې ليکلې دی حتی يری بياض خده نه معلوميږی چه مصلی لره پکاردی چه د سلام په وخت کښې په التفات يمينا او

۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۷٦) (صحيح)

شمالاکښې مبالغه اوکړی، هم دامذهب دې دائمه ثلاثه شافعیه،حنفیه اوحنابله اود مالك في رواية، او د امام مالك دويم روايت دا دی چه د سلام په وخت کښې التفات مخامخ پکار دې مائلا الى اليمين، حاصل دا چه د دوئ په نيز التفات صرف ښي طرف ته آسان دې.

[۹۹۸](۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا، وَوَكِيعٌ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ ابْنِ الْقِبْطِيَّةِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ أَحَدُنَا أَشَارَ بِيَدِهِ مِنْ عَنْ يَمِينِهِ، وَمِنْ عَنْ يَسَارِهِ، فَلَمَّا صَلَّى، قَالَ: "مَا بَالُ أَحَدِكُمْ يَرْمِي بِيَدِهِ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ، إِنَّمَا يَكْفِي أَحَدَكُمْ أَوْ أَلَا يَكْفِي أَحَدَكُمْ أَنْ يَقُولَ هَكَذَا"، وَأَشَارَ بِأُصْبُعِهِ يُسَلِّمُ عَلَى أَخِيهِ مِنْ عَنْ يَمِينِهِ وَمِنْ عَنْ شِمَالِهِ.

د جابر بن سمرة نه روايت دی هغه وايلي دي: وو مونږ کله چې به مونږ مونځ کولو وروسته د رسول الله ﷺ نه سلام به اړولو يو کس زمونږ نه اشاره به يې کوله هغه چاته چې د هغه ښي طرف ته وو ، او هغه چاته چې د هغه چپ طرف ته وي، هرکله چې هغه مونځ وکړو ويې ويل: څه دي يو کس ستاسو لره چې اشاره کوي په خپل لاس باندې ګويا هغه لکۍ د مستو اسونو دي؟ بېشکه بس کېږي د يو لپاره ستاسو نه. او ايا نه کافي کېږي د يو کس لپاره ستاسو نه. چې ووايي داسې: او اشاره يې وکړه په خپله ګوته سلام به يې اچولو په خپل ورور چې د هغه ښي طرف ته وو او هغه چې د هغه چپ طرف ته وو.

۳: حدثنا عثمان بن ابى شيبة.. الخ، د باب په شروع کښې مونږ دا ښودلې وو چه په دې باب کښې مصنف د دريو صحابهٔ کرامو روايات اغستې دی د ابن مسعود، وائل بن حجر، جابر بن سمره، د دې ځائې نه هم دا دريم حديث شروع کېږی نو څکه مصنف په ګڼو طريق سره چه دهغې سياق مختلف دی ذکر فرمائيلې دی، په دې کښې په بعضو کښې رفع يدين عند السلام مونډلې کيږی په کوم باندې چه حضور ﷺ انکار فرمائيلې دې، اکثر محدثين خو هم دا فرمائی چه د حضور ﷺ دا انکار، ما لي اراكم رافعي ايديكم كانها اذناب خيل شُمس، هم په دې رفع عند السلام باندې دې، او احناف علماء دا فرمائی چه د حضور ﷺ دا انکار په دواړو باندې دې رفع عند السلام باندې هم او رفع في اثناء الصلوة عند الركوع وغيره باندې هم، د دې نور وضاحت زمونږ په نيز د رفع يدين په بحث کښې تير شوې دې.

[۹۹۹](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، عَنْ مِسْعَرٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "أَمَا يَكْفِي أَحَدَكُمْ أَوْ أَحَدَهُمْ أَنْ يَضَعَ يَدَهُ عَلَى فَخِذِهِ، ثُمَّ يُسَلِّمَ عَلَى أَخِيهِ مِنْ عَنْ يَمِينِهِ، وَمِنْ عَنْ شِمَالِهِ".

مسعر روايت کړی دی په اسناد او معنی د هغه حديث سره، هغه ويلي دي: ايا نه کافي کېږي د يو لپاره ستاسو نه، او يا د دوی نه، چې کېدي خپل لاس په خپل ورون باندې، بيا سلام وکړي په خپل ورور د ښي طرف نه، او د چپ طرف نه.

[1]: صحيح مسلم/الصلاة ۲۷ (۴۳۱)، سنن النسائي/السهو ۵ (۱۱۸۶)، ۶۹ (۱۳۱۹)، ۷۲ (۱۳۲۷)، (تحفة الأشراف: ۲۲۰۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸۶/۵، ۸۸، ۹۳، ۱۰۱، ۱۰۲، ۱۰۷) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۲۲۰۷) (صحيح)

[۱۰۰۰]([1])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ تَمِيمٍ الطَّائِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ رَافِعُوا أَيْدِيهِمْ، قَالَ زُهَيْرٌ: أُرَاهُ قَالَ: فِي الصَّلَاةِ، فَقَالَ: "مَالِي أَرَاكُمْ رَافِعِي أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ، أُسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ".

د جابر سمرة نه روايت دی هغه ويلي دي: راغی مونږ ته رسول الله ﷺ او خلق اوچتونکي وو د لاسونو خپلو. ويلي دي زهير: زما خيال دی. په مانځه کي، هغه وفرمايل: څه دي ماله چي زه تاسو وينم اوچتونکي د لاسونو خپلو ګويا دا لکۍ د اسونو مستو دي؟ په ارام شئ په مانځه کي.

## بَابُ الرَّدِّ عَلَى الْإِمَامِ

### باب دی په بيان د جواب کي امام ته

[۱۰۰۱]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ أَبُو الْجَمَاهِرِ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ بَشِيرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: "أَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَرُدَّ عَلَى الْإِمَامِ، وَأَنْ نَتَحَابَّ، وَأَنْ يُسَلِّمَ بَعْضُنَا عَلَى بَعْضٍ".

د سمرة نه روايت دی هغه ويلي دي: مونږ ته امر کړی دی نبي ﷺ چي مونږ جواب ورکړو امام ته، او مونږ محبت وکړو، او د دي چي سلام وکړي بعضي زمونږ نه بعضو نورو ته.

قوله، ان نردّ على الامام و ان نتحابّ و ان يسلم بعضنا على بعضٍ، د رد على الامام مطلب دا دي چه کله مقتدی په مانځه کښي السلام عليکم اووائی نو د کم په خطاب کښي دي امام هم شامل کړی، او د باقی حديث مطلب ظاهر دي مونځګذارو لره پکار دی چه په خپلو کښي يو بل سره مينه وساتی او يو بل ته سلام کوی په مانځه کښي هم او د مانځه نه بهر هم، په مانځه کښي د سلام کولو مطلب دا دي چه هر مقتدی کله السلام عليکم اووائی نو چه څنګه په دي کښي د امام نيت کوی هم دغه شان دي په مانځه کښي د شريك کيدونکو مقتديانو نيت هم اوکړی بلکه علماؤ ليکلي دی چه هغه ملائك کومي چه په مانځه کښي شريك دی د هغوی نيت دي هم اوکړي شي.

## بَابُ التَّكْبِيرِ بَعْدَ الصَّلَاةِ

### باب دی په بيان د تکبير کي وروسته د مانځه نه

[۱۰۰۲]([3])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي مَعْبَدٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ يُعْلَمُ انْقِضَاءُ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالتَّكْبِيرِ".

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دی هغه ويلي دي: وو چي معلومولی به شو پوره والی د مانځه د رسول الله ﷺ په تکبير سره.

قوله، عن ابن عباس قال كان يعلم انقضاء صلوة رسول الله صلى الله عليه وسلم بالتكبير، حضرت

---

[1]): صحيح مسلم/ الصلاة ۲۷ (۴۳۰)، سنن النسائي/السهو ۵ (۱۱۸۵)، (تحفة الأشراف: ۲۱۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸۶/۵، ۸۸، ۹۳، ۱۰۱، ۱۰۲، ۱۰۷) (صحيح)

[2]): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۰ (۹۲۲)، (تحفة الأشراف: ۴۵۹۷) (ضعيف)

[3]): صحيح البخاري/الأذان ۱۵۵ (۸۴۲)، صحيح مسلم/المساجد ۲۳ (۵۸۳)، سنن النسائي/السهو ۷۹ (۱۳۳۶)، (تحفة الأشراف: ۶۵۱۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۲/۱) (صحيح)

ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه مونږ خلقو ته به د حضور ﷺ د مونځ (کوم به چه په جومات کښې ادا کیدو) د دې د پوره کیدو خبر د تکبیر په ذریعې سره کیدو یعنی د فرض مونځ نه پس به د حضور ﷺ په زمانه کښې صحابه کرامو د سلام گرځولو نه پس په جهر سره الله اکبر وئیلو په کوم سره به چه مونږ پوهه شو چه اوس په جومات کښې مونځ ختم شو.

د دې حدیث نه د بالجهر ذکر استحباب د فرض مونځ نه پس ثابتیږی، بعضې سلف او ابن حزم ظاهری د دې قائل وو خو جمهور او ائمه اربعه د دې قائل نهٔ دی هغوی د دې توجیه دا کوی چه کیدې شی چه څو ورځې د اسلام په شروع کښې داسې شوې وی د ذکر د تعلیم دپاره څکه چه په دغه ورځو کښې به هره ورځ خلق په اسلام کښې داخلیدل او هغوی چونکه د دې نه ناخبره وو نو دې نوې مسلمانانو ته د زده کړې دپاره به داسې کیدل بیا د دې دا سلسله رستو قائمه پاتې نهٔ شوه لهذا دا یو وختی حکم وو کوم چه هغه وخت منسوخ شوې وو، او بعضې علماؤ د دې دا توجیه کړې ده چه د دې حدیث د تکبیر نه تکبیر د تشریق مراد دې کوم چه په ایام تشریق کښې مشروع دی، او دا د هرې زمانې حکم نهٔ دې، والله تعالی اعلم.

دلته یو اشکال کیږی چه ابن عباس رضی الله عنهما په خپله په مانځه کښې ولې نهٔ شریك کیدو لرې ولې ناست وو او اوریدل ئې، د دې جواب امام نووی دا لیکلې دې چه دوئ د حضور ﷺ په زمانه کښې کم عمره وو نو دا واقعه د دوئ د وړوکوالی ده، او یو جواب دا هم کیدې شی چه د دې حدیث تعلق ټولو خلقو سره نهٔ دې بلکه د هغهٔ ماشومانو او ښځو سره دې کومو به چه په کور کښې مونځونه کول او هم دغه شان معذوره خلق هم.

[۱۰۰۳] (۱) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، أَنَّ أَبَا مَعْبَدٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ "رَفْعَ الصَّوْتِ لِلذِّكْرِ حِينَ يَنْصَرِفُ النَّاسُ مِنَ الْمَكْتُوبَةِ، كَانَ ذَلِكَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، وَأَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: كُنْتُ أَعْلَمُ إِذَا انْصَرَفُوا بِذَلِكَ وَأَسْمَعُهُ.

ابن عباس خبر ورکړی دی هغه ته: بېشکه اوچتول د اواز لپاره د ذکر کله چې خلق فارغه شي د فرض مونځ نه، دا وو په زمانه د رسول الله ﷺ کې. او بېشکه ابن عباس ویلي دي: زه پوهیدم په هغې چې کله به دوی فارغ شو او ما به اوریدلو هغې لره.

## بَابُ حَذْفِ التَّسْلِيمِ

### باب دی په بیان د اختصار د کولو د سلام کې

[۱۰۰۴] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ الْفِرْيَابِيُّ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ قُرَّةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَذْفُ السَّلَامِ سُنَّةٌ". قَالَ عِيسَى: نَهَانِي ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ رَفْعِ هَذَا الْحَدِيثِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَبَا عُمَيْرٍ عِيسَى بْنَ يُونُسَ

[1]: صحيح البخاري/الأذان ۱۵۵ (۸٤۱)، صحيح مسلم/المساجد ۲۳ (۵۸۳)، (تحفة الأشراف: ۶۵۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۷/۱) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۱۱۱ (۲۹۷)، (تحفة الأشراف: ۱۵۲۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۳۲/۲) (ضعيف)

الْفَاخُورِيَّ الرَّمْلِيَّ، قَالَ: لَمَّا رَجَعَ الْفِرْيَابِيُّ مِنْ مَكَّةَ تَرَكَ رَفْعَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَقَالَ: نَهَاهُ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ عَنْ رَفْعِهِ.

د ابو هریره ﷺ نه روایت دی هغه ویلي دي چې رسول الله ﷺ ویلي دي: اختصار د سلام سنت دی. ویلي دي عیسی: زه منع کړی یم ابن المبارک د مرفوع کولو د دې حدیث نه، او هغه ویلي دي: هغه لره منع کړی دی احمد بن حنبل د مرفوعیت د دېنه.

قوله، قال رسول الله صلی الله علیه وسلم حذف السلام سنة، د دې دوه تفسیرونه کړې شوې دی، حذف الحرکة عن لفظ الجلالة، یعنی د سلام په آخر کښې چه کوم لفظ د الله دې په ورحمة الله کښې د دې حرکت لره حذف کړه او ساکن ئې اولوله، او دویم تفسیر دا کړې شوې دې، الاسراع و ترك المد و الاطالة، یعنی د مانځه سلام په جلتئ سره ګرځول او فارغ کیدل ډیر په قلاره او تجوید سره نهٔ لوستل، په دې کښې مصلحت دا دې که امام صاحب دې لفظ لره ښهٔ په تجوید سره په راښکلو سره اولولی نو کیدې شی یو مقتدی د امام نه وړاندې سلام اووائی او فارغ شی نو په دې کښې به تقدم علی الامام فی السلام لازم شی کوم چه د جمهورو په نیز مفسد د صلوة دې او د حنفیه په نیز مکروه دې.

زمونږ حضرت شیخ نورالله مرقده به هم دا غوغتل چه د امام سلام دی مختصر وی په دې کښې دې اوږدوالي اونهٔ موندلې شی.

امام ترمذی د دې روستو فرمائی، قال ابن المبارك یعنی ان لا تمده مدًا و روی عن ابراهیم النخعی انه قال التکبیر جزمٌ و السلام جزم، په منهل کښې لیکلې دی دا مسئله اجماعی ده په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې او مصلحت په دې کښې هم هغه دې کوم چه پورته ذکر شو، خو صاحب دعون المعبود په دې کښې د بعضې اهل تشیع اختلاف نقل کړې دې چه هغوی وائی چه په دې کښې جلتی کول مکروه ده بلکه سکون او وقار سره کیدل پکار دی، خو علامه شوکانی فرمائی، و هو مردود بهذا الدلیل الخاص،

## بَاب إِذَا أَحْدَثَ فِي صَلَاتِهِ يَسْتَقْبِلُ

### باب دی، کله چې بې اودسه شي په مانځه کې

دا قسمه باب په کتاب الطهارة کښې هم تیر شوې دې دا باب دلته مکرر دې، لهذا په دې مسئله کښې اختلاف او دلائل ټول تیر شوې دی، دغه شان دې مسئلې طرف ته اشاره په باب فرض الوضوء کښې لایقبل الله صلوة احدکم اذا احدث حتی یتوضاء د لاندې هم تیرشوې ده.

[۱۰۰۵](۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ عِيسَى بْنِ حِطَّانَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ سَلَّامٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَنْصَرِفْ، فَلْيَتَوَضَّأْ وَلْيُعِدْ صَلَاتَهُ".

د علي بن طلق نه روایت دی هغه ویلي دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: کله چې فسکی واچوي یو کس ستاسو نه په مانځه کې نو لاړ دې شي اودس دې وکړي او اعاده د مانځه دې وکړي.

(۱): انظر حدیث رقم: ۲۰۵، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۴٤) (ضعیف)

قوله، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا فسا احدكم في الصلوة فلينصرف فليتوضاء و ليعد صلوته، که چرته په مانځه کښې بې اودسې پيښه شي نو د اودس نه پس په تير شوې مونځ باندې بناء کولې شي يا نه د ائمه ثلاثه په نيز جائز نه ده بلکه د مونځ اعاده او استيناف واجب دې، دحنفيه په نيز بناء جائز ده خو استيناف غوره دې او قصدا دځان بې اودسه کولو په صورت کښې د حنفيه په نيز باندې هم بناء جائز نه ده.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَتَطَوَّعُ فِي مَكَانِهِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ الْمَكْتُوبَةَ

### باب دې په بيان سړي کښې چې نفل کوي په هغه ځای کښې چې په کوم کښې يې فرض کړي دي

د دې باب نه وړاندې په ابواب الامامة کښې په دې سلسله کښې باب تير شوې دې، باب الامام يتطوع في مكانه.

[۱۰۰۶](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، وَعَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ لَيْثٍ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ؟" قَالَ: عَنْ عَبْدِ الْوَارِثِ، أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ أَوْ عَنْ يَمِينِهِ أَوْ عَنْ شِمَالِهِ، زَادَ فِي حَدِيثِ حَمَّادٍ فِي الصَّلَاةِ: يَعْنِي فِي السُّبْحَةِ.

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وېلي دي: ايا کمزوری دی يو کس ستاسو نه. هغه ويلي دي: د عبد الوارث نه. چې مخکې شي او يا وروسته شي، او يا ښي طرف ته او يا چپ طرف ته. هغه زيات کړي دي په حديث کې. (في الصلاة) يعني په نفلو کې

قوله، ايعجزكم احدكم ان يتقدم او يتاخر..الخ، تاسو نه دومره نه شي کيدې چه د فرض مونځ نه فارغ کيدو نه پس د خپل ځائې نه لږ شئ وړاندې يا روستو يا ښی يا گس طرف ته نفلونه يا سنتونه اوکړئ، په دې کښې ترغيب دې چه داسې کول پکار دی، په دې کښې علماؤ دوه فائدې ليکلي دی، يو ازاله د اشتباه او دويمه استکثار دشهود، ځکه که د فرض مونځ کولو نه پس ټول مونځ کونکی په خپل ځائې باندې دويم ځلی د سنتونو دپاره نيتونه اوتړی نو جومات ته روستو راتلونکی خلقو ته به په رومبی ځل باندې دا شبه کيدې شی چه د جماعت مونځ ولاړ دې او مونځ کيږی، او دويم مصلحت کوم چه بيان کړې شو هغه دا دې چه د قيامت په ورځ د زمکې هره هغه حصه په کومې باندې چه انسان عبادت کړې وی هغه به گواهی ورکوی، لهذا خپل ځان دپاره گواهان زياتول پکار دی، و في المنهل و ذالك لتكثير مواضع السجود كما قال البخاري و البغوى لان مواضع السجود تشهد له يوم القيامة كما في قوله تعالى، يومئذ تحدث اخبارها،

[۱۰۰۷](2) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ بْنُ شُعْبَةَ، عَنِ الْمِنْهَالِ بْنِ خَلِيفَةَ، عَنِ الْأَزْرَقِ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ: صَلَّى بِنَا إِمَامٌ لَنَا يُكْنَى أَبَا رِمْثَةَ، فَقَالَ: صَلَّيْتُ هَذِهِ الصَّلَاةَ أَوْ مِثْلَ هَذِهِ الصَّلَاةِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

(1): صحيح البخاري/الأذان ۱۵۷ (۸۴۸ تعليقاً)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۲۰۳ (۱۴۲۷)، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۷۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۴۲۵) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۴۱، ۱۲۰۳۷) (حسن لغيره)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ يَقُومَانِ فِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ عَنْ يَمِينِهِ، وَكَانَ رَجُلٌ قَدْ شَهِدَ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ، فَصَلَّى نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ سَلَّمَ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ حَتَّى رَأَيْنَا بَيَاضَ خَدَّيْهِ، ثُمَّ انْفَتَلَ كَانْفِتَالِ أَبِي رِمْثَةَ يَعْنِي نَفْسَهُ، فَقَامَ الرَّجُلُ الَّذِي أَدْرَكَ مَعَهُ التَّكْبِيرَةَ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ يَشْفَعُ، فَوَثَبَ إِلَيْهِ عُمَرُ، فَأَخَذَ بِمَنْكِبِهِ فَهَزَّهُ، ثُمَّ قَالَ: اجْلِسْ، فَإِنَّهُ لَمْ يَهْلِكْ أَهْلُ الْكِتَابِ، إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ بَيْنَ صَلَوَاتِهِمْ فَصْلٌ، فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَصَرَهُ، فَقَالَ: "أَصَابَ اللَّهُ بِكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَدْ قِيلَ: أَبُو أُمَيَّةَ مَكَانَ أَبِي رِمْثَةَ.

د ازرق بن قيس نه روايت دی هغه ويلي دي: مونږ ته مونځ وکړو زمونږ يو امام ابو رمثه ورته ويلی کيدو، هغه ويلي دي: مونږ دا مونځ وکړو ـ او په مثل د دې مونځ ـ د نبي ﷺ سره، هغه وايي: چې ابوبکر او عمر ولاړ وو په مخکني صف کې ښي طرف د هغه ته، او هغه يو سړی وو چې راګير کړی يي وو تکبير اولی د مانځه نه، نو مونځ وکړو د الله نبي ﷺ بيايي سلام وګرځولو ښي طرف ته، او چپ طرف ته تردې چې مونږ وليدلو سپينوالی د اننګو د هغه، بيا پاڅيدلو پشان د پاڅيدلو د ابو رمثه ـ يعني ـ پاڅيدلو هغه سړی چې تکبير اولی يي د هغه سره موندلی وو د مانځه نه نفل يي کول، نو عمر پرې ورټوپ کړ او هغه يي د ولي نه ونيولو ويي خوزولو، بيايي وويل: کېنه بېشکه نه دي هلاک شوي اهل کتاب مګر په دې خبره چې نه وو په مابين د مونځونو د هغوی کې فصل، نو پيغمبر ﷺ خپلې سترګې اوچتې کړې، ويي ويل: صواب ته ورسولو الله ستا په وجه ای د خطاب ځويه! ويلي دي ابوداود: او ويلی شوی دی ابو امية په ځای د ابو رمثة باندې.

قوله، صلی بنا امام لنا يكنّى أبارمثة، الخ، د ابورمثه په نوم کښې اختلاف دې په تقريب التهذيب کښې ئې ليکلې دی، قيل اسمه رفاعة بن يثربی و يقال عكسه و يقال عمارة بن يثربی و يقال حيان بن وُهيب و قيل جندب و قيل خشخاش، او د بعضې کتابونو د حديث نه معلومېږی چه دا لفظ ابوريمه دې، حافظ په تقريب کښې فرمائی چه دۀ لره ابن منده هم داسې ضبط کړې دې، خو د ابوداؤد په نسخو کښې ابورمثه دې، حضرت رحمه الله په بذل کښې د دې راوی په تحقيق کښې ډير څۀ تحرير کړې دی مونږ خو دلته څۀ چه حافظ په تقريب کښې ليکلې دی په هغې باندې اکتفاء کړې ده.

دا ډير اوږد حديث دې ددې مضمون دادې:

## مضمون حديث:

ازرق بن قيس وائی يو ځل مونږ ته يو امام مونځ راکړو چه دهغه کنيت ابورمثه وو هغوی د مونځ کولو نه روستو يوه واقعه واوروله چه يو ځل ما يو مونځ د حضور ﷺ سره اوکړو او د حضرات شيخين ابوبکر و عمر رضی الله عنهما معمول په مانځه کښې په ړومبی صف کښې ښی طرف ته د اودريدلو وو نو داسې اوشول چه يو سړی کوم چه د شروع نه په مانځه کښې شريك وو د حضور ﷺ د سلام ګرځولو نه پس او د حضور ﷺ د قبلې نه مخ اړولو او ناستې نه پس، كانفتال ابی رمثه، د دې مطلب دا دې چه ابو رمثه وائی چه لکه څنګه چه زۀ اوس ستاسو د وړاندې سلام ګرځولو نه پس اړخ مې بدل کړو او ناست يم دغه شان حضور ﷺ هم ناست وو، غرض دا چه هغه سړې کوم چه د شروع نه په مانځه کښې شريك وو

اودریدو او په کوم ځائې کښې ئې چه فرض مونځ کړې وو هم هلته ئې نفل مونځ شروع کړو نو حضرت عمر رضی الله عنه اودریدلو او دغه سړې ئې د دواړو اوږو نه اونیولو او په زوره ئې اوخوزولو او وئې فرمائیل د اهل کتابو هلاکت او بربادی هم د دې وجه نه شوې وه چه د هغوی په مونځونو کښې به فصل نهٔ وو فرض به ئې د نفلو سره یوځائې کول، د اهل کتابو په آسمانی کتابونو کښې تحریف کول او په احکامو کښې د خپل ځانه تغیر او کمې زیاتې کول خو مشهور دی، غالبا د حضرت عمر مراد دا دې چه کوم ځائې کښې فرض مونځ اوکړې شی نو سمدستی هغه ځائې کښې اودریدل او نفل مونځ کول دا هم یو قسم خلط او تغییر دې، بیا حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت عمر رضی الله عنه د دې کار تصویب او تحسین اوفرمائیلو.

## باب السهو في السجدتين

### باب دی په بیان د سهوه کښې په دوه رکعاتونو کښې

د سجدتینو نه مراد رکعتین دی یعنی که کوم سړې دوه رکعاتونه ادا کول هیر کړی او د څلورو پځائې په دوو رکعاتونو باندې سلام اوګرځوی نو د دې څهٔ حکم دې.

د دې ځائې نه ابواب السهو شروع کیږی یعنی سجده سهوه او د هغې احکام،

### د سهوې متعلق څو مسائل او بحثونه:

دلته ړومبې څو مسائل واورئ:

۱: سجده سهوه د حنفیه په نیز واجب ده او د امام شافعی په نیز سنت ده،

۲: د سجدې سهوې دپاره د تکبیر افتتاح ضرورت شته او که نهٔ د ائمه ثلاثه په نیز نشته دې د امام مالك په نیز شته دې په دې شرط چه سجده سهوه بعد السلام وی او که قبل السلام وی نو بیا د دې دپاره د تکبیر تحریمې حاجت نشته دې،

۳: د سجده سهوې نه روستو تشهد لوستل ضروری دی او که نهٔ، ائمه ثلاثه وائی که سجده سهوه بعد السلام اوکړې شی نو بیا خوبه دویم ځلی تشهدلوستلې شی ګینی نهٔ، او د حنفیه په نیز په هر صورت کښې به لوستلې شی، او د حسن بصری مذهب دا دې چه د سجده سهوې نه روستونهٔ تشهد شته دې او نهٔ سلام، د دې مسئلې دپاره مصنف وړاندې یومستقل باب تړلې دې چه دهغې الفاظ دادې،باب سجدتی السهو فیهما تشهد و تسلیم،

۴: سجده سهوه قبل السلام ده او که بعد السلام، د حنفیه په نیز مطلقا بعد السلام ده او عند الشافعی مطلقا قبل السلام ده، او د امام مالك په نیز دلته تفصیل دې که هغه سهوه چه دهغې وجه نه سجده کوی د نقصان د قبیلې نه ده نو بیا به خو سجده سهوه قبل السلام وی او که سهوه د زیاتی د قبیلې نه وه نو سجده سهوه به بعد السلام وی، د دوئ د مذهب یادولو طریقه دا ده چه، القاف للقاف و الدال للدال، امام احمد فرمائی چه هر حدیث لره به د هغې په موقع باندې استعمالولې شی، یعنی په کومه سهوه باندې چه حضور صلی الله علیه وسلم سجده قبل السلام کړې ده مونږ به هم په هغې سهوه کښې سجده قبل السلام کؤو او په کومه سهوه کښې چه حضور صلی الله علیه وسلم سجده بعد السلام کړې ده په هغې کښې به مونږ هم سجده سهوه بعد السلام کؤواو کوم صورت چه په کوم حدیث کښې نهٔ دې راغلې په هغې کښې به قبل

السلام وی، د اسحاق بن راهویه مذهب هم د امام احمد پشان دې خو هغه دا فرمائی چه د کومې سهوې په حقله د حضور ﷺ نه څۀ نۀ دی ثابت په هغې کښې به د امام مالك قول اغستلې کیږی، یعنی که هغه سهوه د نقصان د وجه نه ده نو قبل السلام او که د زیاتی د قبیلې نه ده نو بعد السلام، دغه شان امام مالك فرمائی چه کله نقصان او زیاتې دواړه جمع شی نو نقصان لره به غلبه ورکولې کیږی او سجده سهوه به قبل السلام وی.

[۱۰۰۸] ()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِحْدَى صَلَاتَيِ الْعَشِيِّ الظُّهْرَ أَوِ الْعَصْرَ، قَالَ: فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ قَامَ إِلَى خَشَبَةٍ فِي مُقَدَّمِ الْمَسْجِدِ، فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَيْهِمَا إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى يُعْرَفُ فِي وَجْهِهِ الْغَضَبُ، ثُمَّ خَرَجَ سَرَعَانُ النَّاسِ وَهُمْ يَقُولُونَ قُصِرَتِ الصَّلَاةُ قُصِرَتِ الصَّلَاةُ وَفِي النَّاسِ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ فَهَابَاهُ أَنْ يُكَلِّمَاهُ، فَقَامَ رَجُلٌ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَمِّيهِ: ذَا الْيَدَيْنِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَسِيتَ أَمْ قُصِرَتِ الصَّلَاةُ؟ قَالَ: "لَمْ أَنْسَ، وَلَمْ تُقْصَرِ الصَّلَاةُ" قَالَ: بَلْ نَسِيتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَأَقْبَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْقَوْمِ، فَقَالَ: "أَصَدَقَ ذُو الْيَدَيْنِ؟" فَأَوْمَئُوا، أَيْ نَعَمْ، "فَرَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى مَقَامِهِ فَصَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ الْبَاقِيَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ، ثُمَّ رَفَعَ وَكَبَّرَ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ، ثُمَّ رَفَعَ وَكَبَّرَ". قَالَ: فَقِيلَ لِمُحَمَّدٍ: سَلَّمَ فِي السَّهْوِ، فَقَالَ: لَمْ أَحْفَظْهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَلَكِنْ نُبِّئْتُ أَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ، قَالَ: ثُمَّ سَلَّمَ.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: مونږ ته رسول الله ﷺ مونځ وکړو، یو د مونځونو د بیګاه نه۔ چې ماسپخین او مازیګر دی۔ هغه ویلي دي: مونځ یې وکړو مونږ ته دوه رکعاته، بیایې سلام وګرځولو بیا پاڅیدلو یو لرګي ته چې د مسجد مخکنۍ حصه کې وو، خپل لاسونه یې یو د بل د پاسه په هغې کېښودل، پیژندلی شوه د هغه په مخ کې غوسه، بیا ووتل جلتي کونکي د خلقو نه او هغوی ویل: لنډ شوی دی مونځ، لنډ شوی دی مونځ، او په خلقو کې ابوبکر او عمر هم وو، هغوی دواړه د هغه نه وویریدل چې خبرې ورسره وکړي، نو پاڅیدلو یو سړی رسول الله ﷺ به هغه ته ذو الیدین ویلو، هغه وویل: ای د الله رسوله! ایا تانه هېر شو او که نه مونځ کې قصر راغلی دی؟ هغه وفرمایل: ما نه هېر کړی نه دی او قصر هم نه دی راغلی. هغه وویل: بلکه تا هېر کړو ای د الله رسوله! رسول الله ﷺ قوم ته رامخامخ شو، ویې ویل: ایا ذو الیدین رشتیا وایي؟ هغوی اشاره وکړه چې آو، رسول الله ﷺ خپل ځای ته لاړو، دوه باقي رکعاتونه یې وکړل، بیایې سلام وګرځولو بیا یې تکبیر وویله او سجده یې وکړه پشان د سجدې د هغې او اوږده د هغې نه، بیا اوچت شو او تکبیریې وویله، بیایې تکبیر او سجده یې وکړه پشان د سجدې د هغې، او یا اوږده د هغې نه، بیا اوچت شو او تکبیریې وویله. هغه وایي: وویل شول محمد ته: په سهوه کې یې سلام وګرځولو؟ هغه وویل: ماته دا حفظ نه دی د ابوهریره نه، لکن ماته خبر راکړی شوی

---

[1]): صحيح مسلم/المساجد ١٩ (٥٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٤٤١٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ٨٨ (٤٨٢)، والأذان ٦٩ (٧١٤)، والسهو ٣ (١٢٢٧)، ٤ (١٢٢٨)، ٨٥ (١٣٦٧)، والأدب ٤٥ (٦٠٥١)، وأخبار الآحاد ١ (٧٢٥٠)، سنن الترمذي/الصلاة ١٨٠ (٣٩٩)، سنن النسائي/السهو ٢٢ (١٢٢٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٣٤ (١٢١٤)، مسند احمد (٢/٢٣٧، ٢٨٤) (صحيح)

دی عمران بن حصین نه، هغه ویلي دي: چې بیاپي سلام وګرځولو.

۱: حدثنا محمد بن عبید،،الخ، قوله، عن ابی هریرة قال صلی بنا رسول الله صلی الله علیه وسلم احدی صلاتی العشی الظهر و العصر،

## مضمون حدیث:

ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چه یوه ورځ حضور ﷺ مونږ خلقو ته د ماسپخین یا د مازیګر مونځ راکړو او هم په دوو رکعاتونو باندې ئې سلام اوګرځولو او بیا په جومات کښې وړاندې طرف ته یو لرګي خخ کړې شوې وو او خپل دواړه لاسونه ئې په هغې باندې کیخودل او د غصې آثار د حضور ﷺ په مخ مبارك باندې ښکاره وو، دوه رکعاته کولو نه پس چه کوم جلتئ کونکی وو (د ځوانانو ټولګې) هغوی سمدستی د جومات نه تلونکی وو او دا وینا کونکی وو، قصرت الصلوة قصرت الصلوة، یعنې په مانځه کښې تخفیف اوکړې شو د څلورو رکعاتونو په ځائې دوه رکعاته پاتې شول په مونځ کونکو کښې حضرات شیخین ابوبکر و عمر رضي الله عنهما هم وو حضور ﷺ ته خو دڅۀ عرض کولو د دوئ همت اونۀ شو (ځکه چه مشهوره ده نزدیکان را بیش بود حیرانی، یعنې کوم خلق چه نزدې وی هغوی ته ویره هم زیاته وی او د عامو خلقو څۀ خاص پرواه نۀ وی) فقام رجل کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یسمیه ذالیدین..الخ، ذوالیدین حضور ﷺ ته عرض اوکړو یا رسول الله څۀ خبره ده په مانځه کښې تخفیف واقع شو یا تاسو هیر کړو، د دې سوال او جواب نه روستو دحضور ﷺ رومبی مونځ باندې بناء اوکړه او دوه رکعاته ئې نور اوکړل او سجده سهوه ئې هم اوفرمائیله،

په دې حدیث کښې یو څو خبرې دی، ۱: ابوهریره رضي الله عنه کوم چه د دې حدیث راوی دې هغوی کله خو په شك سره دا فرمائی چه دا واقعه د ظهر یا د عصر د مونځ ده او کله د عصر تعیین او کله د ظهر تعیین فرمائی.

شارحین د دې جواب دا ورکوی چه په اصل کښې خو دوئ ته په تعیین کښې شك وو نو ځکه خو کله په شك سره بیان کوی او څنی وختونو کښې په سوچ کولو سره د ماسپخین رائې غالب شی نو د ظهر تعیین به ئې فرمائیلو او کله چه به د عصر رائې لره غلبه اوشوه نو د عصر تعیین به ئې فرمائیلو، ۲: په دې حدیث کښې ابوهریره رضي الله عنه فرمائیلې دی چه مونږ خلقو ته حضور ﷺ مونځ راکړو، حنفیه وائی چه دا مراد نۀ دې چه خپله ابوهریره رضي الله عنه ته ئې ورکړې وو ابوهریره رضي الله عنه په دې واقعه کښې شریك نۀ وو، لهذا مراد دا دې چه زمونږ قوم او زمونږ د جماعت خلقو ته حضور ﷺ مونځ ورکړو، یا دا اوایئ چه زمونږ مسلمانانو روړو ته دحضور ﷺ مونځ ورکړو او د حنفیه په نیز د دې تاویل ضرورت دې دپاره دې چه په دې واقعه کښې د ذوالیدین نۀ موجود کیدل یقینی دی ځکه چه هغه په جنګ بدر کښې شهید شوې وو تر دې وخته پورې ابوهریره رضي الله عنه اسلام نۀ وو راوړې د دوئ اسلام راوړل په اووم کال د هجرت کښې دی لهذا دا حدیث د ابوهریره رضي الله عنه مرسل شو ابوهریره رضي الله عنه به دا د یو قدیم الاسلام صحابی نه اوریدلې وی او بیان کړې به ئې وی.

۳: د کلام فی الصلوة مسئله مختلف فیه ده کومه چه وړاندې تیره شوې ده حنفیه او حنابله

په نیز باندې کلام فی الصلوة مطلقا قلیل وی یا کثیر عمدا یا نسیانا ټول ناجائز او مفسد د صلوة دې او شافعیه فرمائی چه کلام قلیل که نسیانا وی نو د دې ګنجائش او جواز شته دې، او مالکیه فرمائی چه که کلام یسیر قصدا د مونځ د اصلاح په غرض سره وی نو جائز دی او که هم هسې نسیانا وی نو ناجائز دی، دا حضرات شافعیه او مالکیه دواړه ددې حدیث نه استدلال کوی لهذا دا حدیث دحنفیه او حنابله خلاف شو.

## د ذوالیدین دحدیث توجیه عند الحنابله

خلاف خو د حنابله سره هم پکار دې خو هغوی کلام فی الصلوة یو خاص شکل استثناء کړې دې کوم چه امام ترمذی په خپل سنن کښې د حضرت امام احمد دطرف نه نقل کړې دې لهذا هغوی د اشکال نه بچ شول او هغه شکل دا دې چه که کوم سړې خواه هغه امام وی یا مقتدی په مونځ کښې کلام اوکړی او دا خیال اوکړی چه زما مونځ پوره شوې دې خواه په واقع کښې پوره شوې نهٔ وی نو دا صورت جائز دې او دلته قصه کښې هم داسې شوې دی ځکه چه دا خو ظاهره ده چه حضور ﷺ هم دا سوچ کړې وو چه ما مونځ پوره ادا کړې دې ځکه چه حضور ﷺ فرمائی، لم انس و لم تقصر، خو ذوالیدین هم داګڼړله چه مونځ پوره شوې دې او هغوی هم په دې سوچ سره دا وینا کړې وه.

په اصل کښې هغوی دا ګڼړله چه ورځ ترورځه د وحی په نازلیدلو سره په احکامو کښې کمې زیاتې کیږی نو بظاهر په مانځه کښې قصر شوې دې او د څلورو په ځائې دوه پاتې شوې دی خو بیا هم هغوی احتیاطا د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو چه حضور ﷺ ته څهٔ هیره خو نهٔ ده پیښه شوې،

اوس پاتې شو احناف شکر الله مساعیهم، د دوئ په نیز باندې کلام فی الصلوة هیڅ ي، صورت هم مستثنی نهٔ دې.

## د احنافو توجیه او تقریر:

هغوی د دې جواب ورکړو چه دا واقعه د کلام فی الصلوة د نسخ نه د وړاندې ده د کلام فی الصلوة نسخ د دې واقعې نه روستو شوې ده لهذا په دې سره استدلال صحیح نهٔ دې، جمهور وائی چه دا واقعه د نسخ نه د روستو ده ځکه چه د کلام فی الصلوة نسخ په مکه کښې شوې ده او دا واقعه د مدینې ده قرینه د دې د عبد الله بن مسعود ﷺ هغه حدیث دې کوم چه په باب رد السلام فی الصلوة کښې تیر شوې دې، فلما رجعنا من عند النجاشی، ځکه چه دلته د رجوع نه مراد اوله رجوع یعنی واپس کیدل دی کوم چه د مکې په طرف باندې شوې وه او دا قصه د ذوالیدین د آخری هجرت ده ځکه چه د دې راوی حضرت ابوهریره ﷺ دې چا چه په اووم کال د هجرت کښې اسلام راوړې وو، زمونږ د طرف نه اولا خو د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه جناب والا! دا حدیث د چا موافق هم نهٔ دې نه د شافعیه او نهٔ د مالکیه، ځکه چه شافعیه د نسیانا کلام د جواز قائل دی او دا کلام نسیانا کوم ځائې دې دا خو عمدا وو کما هو ظاهر، او د مالکیه خلاف هم دې ځکه چه د ذوالیدین کلام اګر که د اصلاح د صلوة په ارادې سره وو خو د سرعان الناس یعنی جلتئ کونکو خلقو کلام خو په

دي غرض سره نهٔ وو دا جواب خو الزامي وو او تحقيقي جواب زمونږ دا دې چه دا واقعه د ذواليدين د نسخ الكلام فى الصلوة نه د وړاندې ده، ځکه چه زمونږ تحقيق دا دې چه نسخ الكلام په مدينه کښې د هجرت په اوله کښې شوې دې نهٔ په مکه کښې او په دې باندې قرينه د زيد بن ارقم هغه حديث دې كوم چه په باب النهى عن الكلام فى الصلوة کښې تير شوې دې په کوم کښې چه داسې دي، فنزل قوله تعالى قوموا لله قانتين فامرنا بالسكوت و نهينا عن الكلام، او زيد بن ارقم رضی اللہ عنہ انصاري صحابي دې په خپله هم مدني دې او دا آيت هم په اتفاق سره مدني دې لهذا دا به منل وي چه نسخ الكلام فى الصلوة په مدينه کښې شوې دې او هغه قرينه چه كومه تاسو وړاندې کړې ده د حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہ د حديث د هغې په حقله زمونږ دا وايو چه هلته د رجوع نه مراد رجوع ثاني مراد ده كومه چه د مديني طرف ته شوې وه په دې صورت کښې به د زيد بن ارقم او د ابن مسعود رضی اللہ عنہما دواړو حديثونه متفق شي ګيني په دواړو کښې به تعارض وي، او د ابن مسعود رضی اللہ عنہ رجوع ثاني الى المدينه د هجرت په اوله کښې وو د جنګ بدر نه وړاندې كما تقرر فى محله.

پس معلومه شوه چه نسخ الكلام هم د هجرت په اوله کښې شوې دې او دا قصه د ذواليدين هم د هجرت په اوله کښې او د بدر نه د وړاندې ده، وجه دا ده چه ذواليدين په جنګ بدر کښې شهيد شوې وو لهذا دا قصه هم د بدر نه د وړاندې ده ابوهريره رضی اللہ عنہ په خپله په دې کښې شريك نهٔ وو لهذا دا حديث د صحابي مرسل دې، نو چه كله صورت حال دا دې چه نسخ الكلام فى الصلوة او دغه شان قصه د ذواليدين د دواړو وقوع د بدر نه د وړاندې ده نو اوس يقين سره نهٔ شي وئيلې كيدې چه په دې کښې كومه يوه وقوع وړاندې شوې ده او كومه په اخره کښې، فلا يصح الاستدلال به لاجل احتمال النسخ

**د جمهورو د طرف نه ترديد:**

هغوی زمونږ د دې تقرير دا جواب ورکړې دې چه په جنګ بدر کښې شهيد كيدونكو کښې ذواليدين نهٔ دې بلکه ذوالشمالين دې او دا قصه د صاحب ذواليدين ده، د امام زهري نه په دې کښې غلطي شوې ده چه هغوی د دې واقعې په روايت کښې د ذواليدين په ځائې ذوالشمالين وئيلې دې حال دا دې چه داسې نهٔ ده بلکه صاحب قصه ذواليدين دې د چا چه په خلافت د معاويه کښې انتقال شوې دې، او ذوالشمالين يو بل صحابي دې كوم چه په جنګ بدر کښې شهيد شوې دې، لهذا دې حديث لره مرسل د صحابي ګڼړلو ضرورت نشته دې دا قصه د هجرت د آخر ده ابوهريره رضی اللہ عنہ په خپله په دې کښې شريك وو.

**ذواليدين او ذو الشمالين هم يو دى:**

زمونږ علماؤ جواب ورکړو چه ذواليدين او ذوالشمالين دواړه هم يو دى او د دې دليل د نسائي شريف روايت دې په نسائي،ص، ۱۸۲ ، حديث كوم چه ابن شهاب د ابو سلمه نه روايت كوى او ابو سلمه د ابوهريره رضی اللہ عنہ نه په كوم کښې چه دا دې چه حضور صلی اللہ علیہ وسلم ته يو ځل سهوه پيښه شوه، فقال له ذوالشمالين اقصرت الصلوة ام نسيت يا رسول الله فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم اصدق ذواليدين، او هم دغه شان دې لره عمران بن ابى انس هم د ابوسلمه نه

روایت کوی، او ګوری په دې روایت کښې هم په یو سړی باندې د ذوالیدین او ذوالشمالین اطلاق کیږی.

علامه سندهی د نسائی په حاشیه کښې لیکی چه ابن عبدالبر فرمائیلې دی چه په دې قصه کښې ذوالشمالین وئیلو کښې زهری متفرد دې چا هم د دهٔ متابعت نهٔ دې کړې حال دا دې چه عمران بن ابی انس د نسائی په روایت کښې د زهری متابعت کوی، لهذا د تفرد دعویٰ باطله ده، حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې د نسائی نه علاوه هم د څنی حدیثو کتابونو حواله ورکړې ده چه په هغې کښې هم داسې دی مثلاً مسند بزار او د طبرانی معجم کبیر نه معلومیږی چه دا دواړه یو دی هم دا رائې د ابن حبان او ابن سعد ده او هم دې لره ترجیح ورکړې ده ابن الاثیر الجزری په جامع الاصول کښې او مبرد په الکامل کښې او یو جماعت دا وائی چه دا دواړه جدا جدا دی هم د دوئ نه سهیلی دې، او بیهقی ابن الاثیر الجزری صاحب اسد الغابه (۱) او ابن منده دا ټول حضرات وائی چه د زهری نه په دې کښې غلطی واقع شوې ده. دغه شان هغوی وئیلې دی چه دا دواړه یو څنګه کیدې شی حال دا چه د دواړو نوم او قبیله مختلف دی ذوالشمالین عمیر بن عمروالخزاعی دې او ذوالیدین خرباق بن عمرالسلمی دې، زمونږ د طرف نه جواب ورکړې شوې دې چه کیدې شی خرباق ئې لقب وی او عمیر ئې نوم، او د دې تائید د دېنه کیږی چه ولدیت د دواړو یو دې یعنی عمرو، پاتې شوه دا خبره چه یو خزاعی دې او بل سلمی، نو د دې جواب دا دې چه سلمی نسبت دې د سُلیم طرف ته کوم چه ددې قبیلې جداعلی دې او سُلیم په اصل کښې دوه دی سُلیم بن ملکان او سلیم بن منصور، سلیم بن منصور بېشکه غیر خزاعی دې خو سلیم بن ملکان په خپله د قبیله خزاعه نه دې لهذا دواړه یو کیدې شی.

حافظ وائی چه د بعضې ائمه رائې دا ده چه دا احتمال هم کیدې شی چه دا قصه د دواړو سره پیښه شوې وی ذوالیدین او ذوالشمالین په کومو کښې چه یو د ابوهریره رضی الله عنه سره شریک وی او دویم لره هغوی مرسلاً روایت کړې وی، دغه شان دا هم وئیلې شوې دی چه ذوالیدین او ذوالشمالین د هر دواړو لفظونو اطلاق په دواړو سړو باندې کیږی د دې وجه نه اشتباه واقع شوه، تر دې پورې دباب په ړومبی حدیث باندې تفصیلی کلام اوشو.

[۱۰۰۹] (۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ بِإِسْنَادِهِ، وَحَدِيثُ حَمَّادٍ أَتَمُّ، قَالَ: "صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يَقُلْ: بِنَا، وَلَمْ يَقُلْ: فَأَوْمَئُوا، قَالَ: فَقَالَ النَّاسُ: نَعَمْ، قَالَ: ثُمَّ رَفَعَ وَلَمْ يَقُلْ: وَكَبَّرَ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثْلَ سُجُودِهِ أَوْ أَطْوَلَ، ثُمَّ رَفَعَ وَتَمَّ حَدِيثُهُ"، لَمْ يَذْكُرْ مَا بَعْدَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فَأَوْمَئُوا إِلَّا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكُلُّ مَنْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ لَمْ يَقُلْ: فَكَبَّرَ وَلَا ذَكَرَ رَجَعَ.

---

(۱) ابن الاثیر الجزری صاحب جامع الاصول یو دی او دا ابن الاثیر الجزری صاحب دأسد الغابه بل دې دا دواړه ورونړه دی دلته د یو دریم سړی دې ابن الجزری، صاحب دحصن حصین محمد بن محمد بن محمد الجزری.

(۲): صحیح البخاري/الأذان ٦٩ (٧١٤)، السهو ٤(١٢٢٨)، أخبار الآحاد ١(٧٢٥٠)، سنن الترمذي/الصلاة ١٧٦ (٣٩٩)، سنن النسائي/السهو ٢٢ (١٢٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٤٤٤٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ١٥ (٦٠)، مسند احمد (٢/٢٣٥، ٤٢٣) (صحيح)

د محمد نه روایت دی په اسناد د هغې سره، او حدیث د حماد اتم دی، هغه ویلي دي: مونځ وکړو رسول الله ﷺ هغه پکې (بنا) نه دی ویلي، او نه یې دي ویلی (فآومئوا) هغه وایي: وویل خلقو: آو، هغه وایي: بیا اوچت شو، او هغه نه دي ویلي: (و کبر، ثم کبر و سجد مثل سجوده، او اطول، ثم رفع) او پوره شو حدیث د هغه. هغه ذکر نه کړو هغه وروسته د دېنه، او هغه ذکر نه کړو (فآومئوا) مګر حماد بن زید. ویلي دي ابوداود: او هر چا چې دا حدیث روایت کړی دی نه یې دي ویلي (فکبر) او نه یې ذکر کړی دی (رجع).

[۱۰۱۰]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ عَلْقَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَى حَمَّادٍ كُلِّهِ إِلَى آخِرِ قَوْلِهِ: نُبِّئْتُ أَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ، قَالَ: ثُمَّ سَلَّمَ، قَالَ: قُلْتُ: فَالتَّشَهُّدُ، قَالَ: لَمْ أَسْمَعْ فِي التَّشَهُّدِ، وَأَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَتَشَهَّدَ"، وَلَمْ يَذْكُرْ: كَانَ يُسَمِّيهِ ذَا الْيَدَيْنِ، وَلَا ذَكَرَ: فَأَوْمَئُوا، وَلَا ذَكَرَ: الْغَضَبَ، وَحَدِيثُ حَمَّادٍ، عَنْ أَيُّوبَ، أَتَمُّ.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: مونږ ته رسول الله ﷺ مونځ وکړو، په ټولي معنی د حماد سره تر اخیري قول د هغه پورې، چې (نبیت ان عمران بن حصین قال ثم سلم، هغه وایي: ما وویل تشهد؟ هغه وویل ما نه دي اوریدلي په باره د تشهد کې، او ماته دا خوښه ده چې تشهد ووایي. اوهغه نه دی ذکر کړی (کان یسمیه ذا الیدین) او هغه نه دی ذکر کړی (فآومئوا) او نه یې دی ذکر (الغضب) او حدیث د حماد د ایوب نه اتم دی.

۲: حدثنا عبد الله بن مسلم. الخ. قوله. و حدیث حماد اتم: په ړومبی حدیث کښې د ایوب نه روایت کونکي حماد وو او دلته مالك دي. مصنف وائی چه د حماد حدیث د مالك د حدیث نه اتم یعنی پوره دې. قال صلی رسول الله صلی الله علیه وسلم لم یقل بنا، یعنی حماد په خپل روایت کښې د ابوهریره رضی الله عنه قول. صلی بنا رسول الله. نقل کړې دي او مالك صرف صلی رسول الله ﷺ وئیلي دی. بنا. ئې نهٔ دې وئیلې

**په حدیث باندې د مرسل ابوهریره کیدو کلام:**

دا خبره وړاندې تیره شوې ده زمونږ د طرف نه چه په دې واقعه کښې ابوهریره رضی الله عنه شریك نهٔ وو نو که هغوی صرف صلی رسول الله ﷺ وئیلې وی نو بیا خو هیڅ اشکال نشته دې او که صلی بنا ئې وئیلې وی نو په دې کښې تاویل تیر شوې دې چه دبنا نه مراد د مسلمانانو جماعت دې په خپله متکلم په دې کښې داخل نهٔ دې. امام طحاوی رحمه الله د دې ډیر مثالونه پیش کړې دی، نزال بن سبره وائی، قال لنا رسول الله صلی الله علیه وسلم، حال دا دې چه نزال تابعي دې هغوی حضور ﷺ نهٔ وو لیدلې. او طاؤس په یو موقع باندې وئیلې دی، قدم علینا معاذ بن جبل، حال دا دې چه طاؤس هلته موجود نهٔ وو هم داسې حسن بصری فرمائی، خطبنا عتبة بن عزوان، حال دا دې چه حسن د دې خطبې په وخت کښې موجود نهٔ وو خو په یو روایت کښې دی ابوهریره رضی الله عنه فرمائی، بینا انا اصلی، د دې جواب دا دې چه کیدې شی دا روایت بالمعنی وی.

[1]: صحيح البخاري/السهو ٤ (١٢٢٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٤٦٨٩) (صحيح)

[۱۰۱۱](¹)حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ نَصْرِ بْنِ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، وَهِشَامٍ، وَيَحْيَى بْنِ عَتِيقٍ، وَابْنِ عَوْنٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قِصَّةِ ذِي الْيَدَيْنِ، "أَنَّهُ كَبَّرَ وَسَجَدَ"، وَقَالَ هِشَامٌ يَعْنِي ابْنَ حَسَّانَ كَبَّرَ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ أَيْضًا حَبِيبُ بْنُ الشَّهِيدِ، وَحُمَيْدٌ، وَيُونُسُ، وَعَاصِمٌ الْأَحْوَلُ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، لَمْ يَذْكُرْ أَحَدٌ مِنْهُمْ مَا ذَكَرَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ هِشَامٍ، "أَنَّهُ كَبَّرَ، ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ". وَرَوَى حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ هِشَامٍ، لَمْ يَذْكُرَا عَنْهُ هَذَا الَّذِي ذَكَرَهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ "أَنَّهُ كَبَّرَ، ثُمَّ كَبَّرَ".

ابو هريره ﷺ د نبي ﷺ نه روايت کوي په قصې د ذو اليدين کې چې هغه تکبير ووېلو او سجده يې وکړه، او وېلي دي هشام يعني ابن حسان: تکبيريې ووېلو بيايې تکبير ووېلو او سجده يې وکړه. وېلي دي ابوداود: دا حديث هم حبيب بن الشهيد او حميد او يونس او عاصم الاحول د محمد نه او هغه د ابو هريره نه روايت کړې دی. يو کس هم هغه شی نه دی ذکر کړی کوم چې حماد بن زيد د هشام نه ذکر کړي دي، چې هغه تکبير ووېله بيايې تکبير ووېله او سجده يې وکړه. او روايت کړی دی حماد بن سلمة او ابوبکر بن عياش د دې حديث د هشام نه، دواړو نه دی ذکر کړی د هغه نه دا کوم چې حماد بن زيد ذکر کړی دی. چې هغه تکبير وکړو بيايې تکبير وکړو.

## د سجدې سهوې دپاره تکبير تحريمه

**قوله:** و قال هشام يعني ابن حسان كبّر ثم كبر وسجد، دلته دوه ځلې تکبير ذکر دې، د باب به شروع کښې د سجدې سهوې د طريقې په بيان کښې تير شوې دې چه د امام مالك په نيز که سجده سهوه بعد السلام وی نو په دې صورت کښې تکبير تحريمه به وئيلې شی، يو ځل به الله اکبر د تحريمې په نيت سره اووائی او دويم ځل به سجدې ته د تلو دپاره، د دې روايت نه د مالکيه تائيد کيږی، وړاندې مصنف فرمائی چه د حماد بن زيد نه علاوه چا هم دوه ځلې لفظ د کبّر نۀ دې نقل کړې لهذا دا زيادت شاذ دې.

[۱۰۱۲](²)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: "وَلَمْ يَسْجُدْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ حَتَّى يَقَّنَهُ اللَّهُ ذَلِكَ".

سعيد بن المسيب او عبيد الله بن عبد الله د ابو هريره ﷺ نه روايت کوي د دې قصې، هغه وايي: او هغه دوه سجدې د سهوې ونه کړې تردې چې الله ورته يقين واچولو د دې.

۴: حدثنا محمد بن يحيى بن فارس..الخ، قوله، و لم يسجُد سجدتي السهو حتى يقّنه الله ذالك، يعنی په دې واقعه کښې حضور ﷺ سجده سهوه هغه وخت اوکړه کله چه الله تعالی د دوئ په زړۀ کښې د دې خبرې يقين واچولو چه آو واقعی ما نه سهوه شوې ده اوو څلورو رکعاتو په ځائې مې په دوو رکعاتو سلام ګرځولې دې، په ظاهر کښې دا د هغه اشکال جواب دې چه کله حضور ﷺ ته د دې خبرې يقين اوشو چه مانه هيڅ سهوه نۀ ده شوې لکه څنګه چه حضور ﷺ فرمائيلې وو، لم انس و لم تقصر، نو بيا حضور ﷺ د خلقو په وينا باندې د خپل

---

¹: انظر حديث رقم: (۱۰۰۸)، (تحفة الأشراف: ۱۴۴۱۵،۱۴۴۶۹) (شاذ)

²: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۹۲، ۱۵۲۰۵، ۱۴۱۱۵) (ضعيف)

يقين خلاف عمل ځنګه اوکړو نو راوی د دې جواب ورکړو چه حضور ﷺ صرف د خلقو په وينا باندې داسې نۀ وو کړی بلکه د الله تعالى د يقين پيدا کولو نه پس ئې کړې وو، او مسئله هم دا ده لکه چه په درمختار کښې ليکلې دی چه که د امام او مقتديانو په مينځ کښې د سهوې په حقله اختلاف رائې اوشي نو که امام لره په خپلې خبرې باندې يقين وی نو د مونځ اعاده يا سجده سهوه دې نۀ کوی او که امام لره يقين نۀ وی نو بيا به د قوم خبرې لره اختيار وی، هسې خو دا مسئله ډير تفصيل غواړی علامه شامی د دې تفصيل ليکلې دې کوم چه په بذل المجهود کښې موجود دې

**تنبيه:** په بعضې رواياتو کښې د، حتى يقنه الله، په ځائې باندې، حتى لقاه الناس، راغلې دې، د دې مطلب به هم دا اغستل غواړی چه د خلقو تلقين او د الله تعالى يقين ورکولو نه روستو حضور ﷺ سجده سهوه اوکړه، او په بعضې رواياتو کښې د سجده سهوې مطلقا نفی ده لکه چه وړاندې راځی، و لم يسجد سجدتی السهو، هم دغه شان شراحو ليکلې دی چه د زهری روايت په دې سلسله کښې مضطرب دې،([1]).

[۱۰۱۳]([2])حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ أَبَا بَكْرِ بْنَ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ بَلَغَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: "وَلَمْ يَسْجُدِ السَّجْدَتَيْنِ اللَّتَيْنِ تُسْجَدَانِ إِذَا شَكَّ حَتَّى لَقَّاهُ النَّاسُ". قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: وَأَخْبَرَنِي بِهَذَا الْخَبَرِ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: وَأَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، وَعِمْرَانُ بْنُ أَبِي أَنَسٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَالْعَلَاءُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ جَمِيعًا، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، وَلَمْ يَذْكُرْ "أَنَّهُ سَجَدَ السَّجْدَتَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ الزُّبَيْدِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ فِيهِ: "وَلَمْ يَسْجُدْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ".

ابن شهاب نه روايت دی چې ابو بکر بن سليمان بن ابي حصمة خبر ورکړی دی هغه ته، چې هغه ته رسيدلی دی چې ببشکه رسول الله ﷺ، دا خبر. هغه وايي: هغه هغه دوه سجدي ونه کړي چې د هغه د شک لپاره کېږي تردې چې خلقو ورته د هغې علم ورکړو. ويلي دي ابن شهاب: او ماته خبر راکړی دی د دې خبر سعيد بن المسيب د ابوه ريره نه، هغه وايي: ماته خبر راکړی دی ابو سلمة بن عبد الرحمن او ابو بکر بن الحارث بن هشام، او عبيد الله بن عبد الله. ويلي دي ابوداود: د دې روايت کړی دی يحيى بن ابي کثير او عمران بن ابي انس د ابو سلمة بن عبد الرحمن نه او د علاء بن عبد الرحمن نه او هغه د پلار نه، او ټولو د ابو هريره نه د دې قصي، او هغه نه دی ذکر کړی چې هغه دوه سجدي وکړي. ويلي دي ابوداود: او د دې روايت کړی دی زبيدي د زهيري نه او هغه د ابي بکر بن سليمان بن ابي حثمة نه او هغه د نبي ﷺ نه، هغه ويلي دي په هغې کې: او ويي نه کړي دوه سجدي د سهوي.

[1]) غوره دا ده چه داسې اووئيلې شی چه مطلق نفی کوم ځائې ده هلته هم مقيد مراد دې يعنی، حتى يقنه الله تعالي،۱۲)_

[2]): سنن النسائي /السهو ۲۲ (۱۲۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۸۰، ۱۵۱۹۲) (صحيح)

[۱۰۱٤]([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، سَمِعَ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الظُّهْرَ فَسَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، فَقِيلَ لَهُ: نَقَصْتَ الصَّلَاةَ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى ببشکه نبي ﷺ د ماسپخين مونځ وکړو سلام يې په دوه رکعاتو وګرځولو، هغه ته وويل شول تا مونځ کم کړو؟ هغه دوه رکعاته وکړل، بيا يې دوه سجدې وکړې.

[۱۰۱۵]([2]) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَسَدٍ، أَخْبَرَنَا شَبَابَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصَرَفَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ مِنْ صَلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: أَقُصِرَتِ الصَّلَاةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَمْ نَسِيتَ؟ قَالَ: "كُلُّ ذَلِكَ لَمْ أَفْعَلْ"، فَقَالَ النَّاسُ: قَدْ فَعَلْتَ ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، "فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ أُخْرَيَيْنِ، ثُمَّ انْصَرَفَ وَلَمْ يَسْجُدْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ دَاوُدُ بْنُ الْحُصَيْنِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ مَوْلَى ابْنِ أَبِي أَحْمَدَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: "ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ بَعْدَ التَّسْلِيمِ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى، ببشکه نبي ﷺ فارغ شو د دوه رکعاتو د فرضو نه، هغه ته يو سړي وويل: مونځ کم شوى دى اى د الله رسوله! که د تا نه هېر شو؟ هغه وفرمايل دا ټول مې نه دي کړي. خلقو وويل ببشکه تا دا کړي دي اى د الله رسوله! نو هغه دوه رکعاته نور وکړل، بيا فارغ شو او د سهودي دوه سجدې يې ونه کړې ويلي دي ابوداود: روايت کړى دى داود بن الحصين د ابو سفيان نه چې مولى د ابن ابي احمد دى. هغه روايت کوي د ابو هريره نه او هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه د دې قصې، هغه وويل: بيا يې دوه سجدې وکړې د سلام نه وروسته او هغه ناست وو.

**تشريح: قوله:** ثم سجد سجدتين و هو جالس بعد التسليم:

د دې روايت نه او د دې نه روستو راتلونکو دوو روايتونو نه دا معلوميږي چه په دې موقعه باندې حضور ﷺ سجده سهوه بعد السلام کړې وه لکه څنګه چه د حنفيانو مسلك دې او دا حديث د مالکيه خلاف دې ځکه چه د هغوى په نيز د نقصان په صورت کښې سجده سهوه قبل السلام ده او دا هم د نقصان صورت وو خو د دې باوجود حضور ﷺ سجدې بعد السلام اوکړې

[۱۰۱٦]([3]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ ضَمْضَمِ بْنِ جَوْسٍ الْهِفَّانِيِّ، حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ، بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: "ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ".

ضمضم بن جوس الهفاني وايي ماته حديث بيان کړى دى ابو هريره د دې خبر، هغه ويلي دي: بيا يې دوه سجدې د سهوې وکړې پس د سلام نه.

[1]): صحيح البخاري/الأذان ٦٩ (٧١٥)، السهو ٣ (١٢٢٧)، سنن النسائي/ السهو (٢٢ (١٢٢٨) (تحفة الأشراف: ١٤٩٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٨٦، ٤٦٨) (صحيح)

[3]): سنن النسائي/السهو ٢٢ (١٢٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٥١٤)، وقد أخرجه مسند احمد (٢/٤٢٣) (حسن صحيح)

[۱۰۱۷]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ ابْنِ سِيرِينَ"، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ".

د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: مونږ ته رسول الله ﷺ مونځ وکړو سلام یي په دوه رکعاتو وګرځولو، ذکر یي کړو پشان د حدیث د ابن سیرین د ابو هریره نه، هغه وویل: بیایي سلام وګرځولو بیایي وکړي دوه سجدي د سهوي.

[۱۰۱۸]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مَسْلَمَةُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، حَدَّثَنَا أَبُو قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: سَلَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ مِنَ الْعَصْرِ، ثُمَّ دَخَلَ، قَالَ: عَنْ مَسْلَمَةَ الْحُجَرَ، فَقَامَ إِلَيْهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: الْخِرْبَاقُ، كَانَ طَوِيلَ الْيَدَيْنِ، فَقَالَ لَهُ: أَقُصِرَتِ الصَّلَاةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ فَخَرَجَ مُغْضَبًا يَجُرُّ رِدَاءَهُ، فَقَالَ: "أَصَدَقَ؟" قَالُوا: نَعَمْ، فَصَلَّى تِلْكَ الرَّكْعَةَ، ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْهَا، ثُمَّ سَلَّمَ.

د عمران بن حصین نه روایت دی هغه ویلي دي: سلام وګرځولو رسول الله ﷺ په دري رکعاتونو د مازیګر کي، بیا داخل شو - ویلي دي مسلمة - په کوټو ته، نو هغه ته یو سړی پاڅیدلو چي هغه ته خرباق ویلي کیږي، هغه د اوږدو لاسونو والا وو، هغه ورته وویل: ای کم شوی دی مونځ ای د الله رسوله! نو په غوسه ووتلو او خپل څادریي راخکلو، هغه وویل: ایا رشتیایي وویل؟ هغوی وویل: آو، نو دغه رکعات یي وکړو، بیایي سلام وګرځولو، بیایي دوه سجدي د هغي وکړي بیایي سلام وګرځولو.

۶: حدثنا مسدد، الخ، قوله، عن عمران بن حصین،

## د عمران رضي الله عنه حدیث په قصه د سهوه کښې:

تراوسه پورې د ابوهریره رضي الله عنه د روایاتو سلسله روانه وه اوس دا حدیث د عمران بن حصین راغلي دې دا د تیر شوی روایت خلاف دې په دې کښې دا دی چه حضور ﷺ یو ځل د مازیګر په مانځه کښې په دریو رکعاتونو باندې سلام اوګرځولو، اوس که دې لره مستقل واقعه اوګرځولې شی نو بیا خو هیڅ اشکال نشته، او که دا هم هغه د ذوالیدین واله واقعه ده د کوم راوی چه ابوهریره رضي الله عنه وو نو بیا به تعارض راشی، په دې کښې د محدثینو اختلاف دې امام ابن خزیمه او د هغوی د متبعینو رائې د واقعې د تعدد ده چه دا دوه جدا جدا واقعې دی، شوکانی هم دې لره ظاهر ګرځولې ده او د حافظ ابن حجر رائې د عدم تعدد ده چه دا دواړه حدیثونه د یوې واقعې سره متعلق دی.

زهٔ وایم چه هم داسې وړاندې یو دریم حدیث راروان دې د معاویه بن حدیج په هغې کښې هم دا دی چه د حضور ﷺ یو رکعت باقی وو نو حضور ﷺ سلام اوګرځولو.

(): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳٤ (۱۲۱۳)، (تحفة الأشراف: ۷۸۳۸) (صحیح)

(): صحیح مسلم/المساجد ۱۹ (۵۷٤)، سنن النسائي/السهو ۲۳ (۱۲۳۷، ۱۲۳۸)، ۷۵ (۱۳۳۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳٤ (۱۲۱۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۴۲۷، ۴۲۹، ۴۳۵، ۴۳۷، ۴۴۰، ۴۴۱) (صحیح)

### حديث د ابوهريره او حديث د عمران او حديث د معاويه:

د ابن رسلان د ابوداؤد د شارح رائې دا ده چه دا درېواړه حديثونه جدا جدا او مختلفې قصې دی د ابوهريره ﷺ دحديث قصه جدا ده په دې کښې د حضور ﷺ دوه رکعاته پاتې شوې وو، اوپه حديث د عمران او معاويه بن حديج په دې دواړو کښې د حضور ﷺ نه يو رکعت هير شوې وو خو د عمران بن حصين ﷺ حديث د مازيگر مونځ سره متعلق دې اود معاويه بن حديج حديث کښې د ماښام د مونځ قصه ده.(كذا فى حاشية البذل)

**قوله:** ثم دخل قال عن مسلمة الحجر: حجر د حجرة جمع ده مصنف فرمائی د الحجر لفظ دمسلمة بن محمد په روايت کښې دې او د مصنف د دويم أستاذ يعني مسدد په روايت کښې نشته دې، د حديث مضمون دا دې چه يو ځل حضور ﷺ د مازيگر په مانځه کښې په دريو رکعاتونو باندې سلام اوگرځولو او د سلام گرځولو نه پس د ازواج مطهراتو په حجرو کښې د چا په حجره کښې د خپل ځائې نه پاسيدو او تشريف ئې يوړلو څکه چه حضور ﷺ خو دا گنړل چه ما مونځ پوره ورکړې دې.

**فائده:** په تحفة الاحوذی د ترمذی په شرح کښې د علامه عينی نه نقل کړې دی چه حضور ﷺ نه په مانځه کښې پنځه قسمه سهوه واقع شوې ده، ترك القعدة الاولى، التسليم فى الركعتين فى الرباعية، التسليم على ثلاث ركعات (لو سلّم تعدد القصتين) زيادة ركعة فصلى خمس ركعات، السجود على الشك كما فى حديث ابى سعيد.

## بَاب إِذَا صَلَّى خَمْسًا

### باب دی، کله چې مونځ وکړي پنځه رکعاته

[۱۰۱۹]([1])حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَعْنَى، قَالَ حَفْصٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ خَمْسًا، فَقِيلَ لَهُ: أَزِيدَ فِي الصَّلَاةِ، قَالَ: "وَمَا ذَاكَ؟" قَالَ: صَلَّيْتَ خَمْسًا، فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ.

د عبد الله نه روايت دی هغه ويلي دي: مونځ وکړو رسول الله ﷺ د ماسپخين پنځه رکعاته، هغه ته وول شول: ايا زيادت شوی دی په مانځه کې؟ هغه وويل: دا څه شی دی؟ هغه وويل: تا مونځ وکړو پنځه رکعاته، نو هغه دوه سجدې وکړې وروسته د سلام نه.

**تشريح: قوله:** صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم الظهر خمسا، يو ځل حضور ﷺ د ماسپخين مونځ د څلورو په ځائې پنځه رکعاته اوکړل او سلام ئې اوگرځولو خلقو لقمه بظاهر د دې وجه ورنۀ کړه چه کيدې شی په حکم کښې بدلون شوې وی او د څلورو په ځائې پنځه شوې وی، غرض دا چه حضور ﷺ ته عرض اوکړې شو، نو حضور ﷺ د دې په تلافی يعنی نقصان کښې سجده سهوه اوکړه، باقی روايت کښې دا مذکور نۀ دی چه په څلورم رکعت باندې حضور ﷺ قعده کړې وه او که نۀ.

[1]: صحيح البخاري/الصلاة ۳۱ (۴۰۱)، ۳۲ (۴۰۴)، والسهو ۲ (۱۲۲۶)، والأيمان ۱۵ (۶۶۷۱)، وأخبار الآحاد ۱ (۷۲۴۹)، صحيح مسلم/المساجد ۱۹ (۵۷۴)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۷۷ (۳۹۲)، سنن النسائي/السهو ۲۶ (۱۲۵۵، ۱۲۵۶)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۲۹ (۱۲۰۳)، ۱۳۰ (۱۲۰۵)، ۱۳۳ (۱۲۱۱)، (تحفة الأشراف: ۹۴۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۷۶/۱، ۳۷۹، ۴۲۹، ۴۴۳، ۴۳۸، ۴۵۵، ۴۶۵) سنن الدارمي/الصلاة ۱۷۵ (۱۵۳۹) (صحيح)

### مذاهب ائمه:

جمهور علماء خو دا فرمائي چه په دواړو صورتونو کښې مونځ صحيح شي سجده سهوه کول پوره دي او احناف دا وائي چه په څلورم رکعت باندې د کيناستو په صورت کښې به مونځ صحيح شي سجده سهوه کول به کافي وي، او که بغير د قعدې نه سرې اودريږي نو که سجدې ته د تلو نه وړاندې وړاندې ورته راياد شي او قعدې طرف ته راواوګرځي نو مونځ به صحيح شي او که سجدې ته لاړو نو د حنفيه په نيز د هغه مونځ به باطل شي، شيخين خو دا فرمائي چه د دۀ فرض به باطل شي او د دۀ دا مونځ به نفل شي لهذا يو رکعت دې ورسره بل شامل کړي، او د امام محمد په نيز مطلقا به باطل شي.

### ايا دا حديث د جمهورو دليل دې؟

جمهور علماء د دې حديث نه استدلال کوي، حنفيه دا وائي چه، خلط بين الفرض والنفل مفسد صلوة دې که کوم سړې فرض مونځ د دې د پوره کولو نه وړاندې د نفلو سره خلط کړي نو مونځ به باطل شي، دآخرى قعده نۀ کولو د وجه نه په پنځم رکعت کښې داخليدو سره چه دهغې تحقق په سجدې سره کيږي خلط بين الفرض والنفل قبل تکميل الفرض لازميږي نو ځکه به مونځ باطل شي، په خلاف د آخرى قعده کولو سره چه هلته اګر که خلط لازميږي خو بعد تکميل الفرض، لهذا مونځ به صحيح شي، دا خبره خو د حنفيه اصولى ده خو جمهور دا وائي چه ستاسو دا تفصيل د حديث خلاف دې حديث خو مطلق دې، حنفيه وائي چه په حديث کښې څۀ مذکور دى دا واقعه جزئيه ده اوس ظاهره ده چه د مطلق تحقق به د دې په دوو فردو کښې د يو فرد په ضمن کښې وي لهذا دلته په دې واقعه کښې اوس دوه احتماله دى آخرى قعده کول او نۀ کول، خو يقيني وقوع به په دې کښې د يو وى نو ځکه مونږ صرف يو صورت اختيار کړو او دا صورت هغه دې د کوم قرينه چه مونږ سره موجود ده او هغه قرينه دا ده چه راوى وائي، صلى الظهر خمسًا، اوس ظهر خو به هله ظهر وى کله چه د دې ټول فرائض پوره شوې وى او يو په دې کښې آخرى قعده هم ده زمونږ خبره خو دا ده اوس وړاندې ستاسو اختيار دې.[1]

---

[1] خو احنافو چه کوم شکل اخيتار کړې دې په دې کښې يو عقلى اشکال دې کم چه غالبا علامه سندهى د نسائى په حاشيه کښې ليکلې دى هغه دا که دا فرض کړې شى چه حضور ﷺ په څلورم رکعت باندې قعده کړې وه نو په دې کښې تکرار د سهوې لازميږى او هغه داسې چه مونږ تپوس کوو چه کله حضور ﷺ په څلورم رکعت باندې ناست وو نو څۀ ئې ګنړلې وو او ناست وو که دوېم رکعت ئې ګنړلې وو نو بيا اودريدو نه پس يو رکعت ئې ولې اوکړو دوه کول پکار وو، لهذا دا دويمه سهوه شوه او که څلورم رکعت ئې ګنړلې وو او ناست وو نو بيا پنځم رکعت دپاره ولې پاسيدل، لهذا وړومبې صورت به اختيارول غوارى او په هغې کښې تکرار د سهوې دې، زۀ وايم چه دا کيدې شى چه اووئيلې شى چه حضور ﷺ په څلورم رکعت باندې ناست خو وو او دې لره ئې څلورم ګنړلې وو خو وروستو ذوئ ته د دې په باره کښې تردد شوې وو چه دا څلورم دې يا دريم په دې بناء باندې حضور ﷺ يو رکعت بل اوکړو په دې باندې به دا اشکال بل وى چه بيا حضور ﷺ سجده سهوه ولې اونۀ کړه، د دې جواب باندې دې غور اوکړې شى يا دې دا اوئيلې شى چه په دې موقعه باندې حضور ﷺ به دا د بيان دجواز دپاره ترک کړې وى ځکه چه د بعضې علماؤ په نيز سجده سهوه غير واجب ده)۔

[۱۰۲۰] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ إِبْرَاهِيمُ: فَلَا أَدْرِي زَادَ أَمْ نَقَصَ، فَلَمَّا سَلَّمَ، قِيلَ لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَحَدَثَ فِي الصَّلَاةِ شَيْءٌ؟ قَالَ: "وَمَا ذَاكَ؟" قَالُوا: صَلَّيْتَ كَذَا وَكَذَا، فَثَنَى رِجْلَهُ وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ فَسَجَدَ بِهِمْ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، فَلَمَّا انْفَتَلَ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِنَّهُ لَوْ حَدَثَ فِي الصَّلَاةِ شَيْءٌ أَنْبَأْتُكُمْ بِهِ، وَلَكِنْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ أَنْسَى كَمَا تَنْسَوْنَ، فَإِذَا نَسِيتُ فَذَكِّرُونِي" وَقَالَ: "إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ فَلْيُتِمَّ عَلَيْهِ، ثُمَّ لِيُسَلِّمْ، ثُمَّ لِيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ".

د علقمه نه روایت دی هغه وایي چې عبد الله ویلي دي: مونځ وکړو رسول الله ﷺ - ویلي دي ابراهیم: زه نه پوهیږم چې زیادت یي وکړو او که نقصان یي وکړو - هرکله چې یي سلام وګرځولو، هغه ته وویل شول ای د الله رسوله! ایا په مانځه کې څه شی پیښ شوی دی؟ هغه وفرمایل: او دا څه شی دی؟ هغوی وویل: تا مونځ وکړو دومره دومره، خپه یي راغونډه کړه او مخ یي کړو قبلې ته، نو دوه سجدې یي وکړې دوی ته، بیایي سلام وګرځولو، هرکله چې فارغ شو مخ کړو مونږ ته رسول الله وسلم، ویې ویل: که چېرې مانځه کې څه شی پیښ شوی وی نو ما به تاسو ته خبر درکړی وی په هغې سره، لیکن زه بشر یم هېروم که څنګه چې تاسو هېروئ، کله چې مانه هېر شي نو ماته یي رایاد کړئ. او ویې ویل: کله چې څوک د تاسو نه شک وکړي په مانځه کې نو یقین دې ولټوي، نو اتمام دې وکړي په هغې پسې، بیا دې سلام وګرځوي بیا دې دوه سجدې وکړي.

[۱۰۲۱] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، بِهَذَا، قَالَ: "فَإِذَا نَسِيَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ" ثُمَّ تَحَوَّلَ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حُصَيْنٌ نَحْوَ حَدِيثِ الْأَعْمَشِ.

د عبد الله نه روایت دی د دې حدیث هغه ویلي دي: کله چې هېر کړي یو کس ستاسو نه نو دوه سجدې دې وکړي. بیا راوګرځیدلو او دوه رکعاته یي وکړل. ویلي دي ابوداود: نقل کړې دی حصین پشان د حدیث د اعمش.

## د مصنف د کلام تشریح:

دلته مصنف دا حدیث په دوو طریق سره ذکر کړې دې اولا په طریقې د منصور عن ابراهیم ثانیًا بطریق الاعمش عن ابراهیم، اوس دلته مصنف طریق الاعمش لره ترجیح ورکوی په طریق دمنصور باندې ځکه چه حصین د اعمش موافقت کړې دې او د دۀ په مقابله کښې لکه چه څنګه حضرت په بذل کښې لیکلې دی امام بیهقی د منصور روایت لره ترجیح ورکړې ده د اعمش په روایت باندې، اوس دا چه په دې دواړو روایتونو کښې څۀ فرق دې په هغې پوهیدل پکار دی او هغه دا دې چه دا واقعه کومه چه په حدیث کښې مذکور ده چه

---

۱): صحیح البخاري/الصلاة ۳۱ (٤٠١)، الإیمان ۱۵ (٦٦٧١)، صحیح مسلم/المساجد ۱۹ (۵۷۲)، سنن النسائي/السهو ۲۵ (۱۲٤٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳۳ (۱۲۱۲)، (تحفة الأشراف: ۹٤۵۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۷۹/۱، ٤۱۹، ٤۳۸، ٤۵۵) (صحیح)

۲): صحیح مسلم/المساجد ۱۹ (۵۷۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۲۹۵ (۱۲۰۳)، (تحفة الأشراف: ۹٤۲٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤۲٤/۱) (صحیح)

حضور ﷺ یو خلې د ماسپخین مونځ پنځه رکعاته اوکړل نو د سلام نه پس ئې دصحابه په خبرولو باندې سجده سهوه اوفرمائیله اویو د قاعدې خبره حضور ﷺ تنبیهاً اوفرمائیله، لو حدث فی الصلوة شیء انبأتکم به و لکن انما انا بشر انسی کما تنسون، الخ،دا قوله جمله حضور ﷺ کله ارشاد اوفرمائیله د منصور د روایت نه خو معلومیږی چه دا جمله حضور ﷺ دسجده سهوې نه فارغیدو نه پس په آخره کښې اوفرمائیله او د اعمش د روایت نه معلومیږی چه دا خبره حضور ﷺ د سجده سهوې کولو نه وړاندې ارشاد فرمائیلې وه، من حیث الفقه والقواعد، د منصور روایت راجح ګڼړ دې ګینې د اعمش د روایت مطابق به په مانځه کښې خبرې کول لازم راشی، والله تعالی اعلم

[۱۰۲۲]([1])حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ. ح وحَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، وَهَذَا حَدِيثُ يُوسُفَ، عَنْ الْحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسًا، فَلَمَّا انْفَتَلَ تَوَشْوَشَ الْقَوْمُ بَيْنَهُمْ، فَقَالَ: "مَا شَأْنُكُمْ؟" قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلْ زِيدَ فِي الصَّلَاةِ؟ قَالَ: "لَا" قَالُوا: فَإِنَّكَ قَدْ صَلَّيْتَ خَمْسًا، فَانْفَتَلَ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ أَنْسَى كَمَا تَنْسَوْنَ".

د علقمه نه روایت دی هغه ویلی دي: ویلي دي عبد الله: مونځ وکړو مونږ ته رسول الله ﷺ پنځه رکعاته، هرکله چې فارغ شو نو خلقو پټې پټې خبرې شروع کړې په خپل مینځ کې، هغه وویل: ستاسو څه حال دی؟ هغوی وویل: ای د الله رسوله! ایا زیادت شوی دی په مانځه کې؟ هغه وویل: نه، هغوی وویل: بېشکه تا مونځ وکړو پنځه رکعاته، نو وګرځیدلو دوه سجدې یې وکړې بیایې سلام وګرځولو، بیایې وویل: بېشکه زه بشر یم ستاسو په شان زه هېروم لکه څنګه چې تاسو هېروئ.

[۱۰۲۳]([2])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، أَنَّ سُوَيْدَ بْنَ قَيْسٍ أَخْبَرَهُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ حُدَيْجٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى يَوْمًا فَسَلَّمَ، وَقَدْ بَقِيَتْ مِنَ الصَّلَاةِ رَكْعَةٌ" فَأَدْرَكَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: نَسِيتَ مِنَ الصَّلَاةِ رَكْعَةً، "فَرَجَعَ، فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ وَأَمَرَ بِلَالًا، فَأَقَامَ الصَّلَاةَ، فَصَلَّى لِلنَّاسِ رَكْعَةً" فَأَخْبَرْتُ بِذَلِكَ النَّاسَ، فَقَالُوا لِي: أَتَعْرِفُ الرَّجُلَ؟ قُلْتُ: لَا، إِلَّا أَنْ أَرَاهُ، فَمَرَّ بِي، فَقُلْتُ: هَذَا هُوَ، فَقَالُوا: هَذَا طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ.

د معاویة بن خدیج نه روایت دی بېشکه رسول الله ﷺ مونځ وکړو یوه ورځ نو سلام یې وګرځولو، او په تحقیق سره پاتې شوی وو د مانځه نه یو رکعات، نو یو سړي هغه پیدا کړو او ویې ویل: تا د مانځه نه یو رکعاته هېر کړو، نو واپس شو او جومات ته داخل شو، او امریې وکړو بلال ته مونځ یې ودرولو، خلقو ته یې یو رکعات مونځ وکړو، نو خلق په دې سره خبر کړل، هغوی ماته وویل ایا ته هغه سړی پېژنې؟ ما وویل نه، مګر دا چې یې وینم هغه، هغه تېر شو په ما. ما وویل: دا هغه دی، هغوی وویل: دا طلحه بن عبید الله دی.

۳: حدثنا قتیبة بن سعد. الخ، قوله، عن معاویة بن حدیج. الخ، په دې روایت باندې کلام په تیر شوې باب کښې تیر شوې دې

[1]: صحيح مسلم/المساجد ١٩ (٥٧٢)، سنن النسائي/السهو ٢٦ (١٢٥٧، ١٢٥٨)، (تحفة الأشراف: ٩٤٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٨/١، ٤٤٨) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الأذان ٢٤ (٦٦٥)، (تحفة الأشراف: ١١٣٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠١/٦) (صحيح)

## بَابٌ إِذَا شَكَّ فِي الثِّنْتَيْنِ وَالثَّلَاثِ مَنْ قَالَ يُلْقِي الشَّكَّ

**باب دی کله چې شک وکړي په دوو او درېو کې، هغه چا چې ویلي دي شک به پرېږدي**

کچرته یو سړی ته د مانځه په حالت کښې د رکعاتو نو په شمیر کښې شك او شبه وی نو دهٔ لره څهٔ کول پکار دی، په دې کښې د بعضې علماؤ رائې خو دا ده چه داسې سړی لره پکار دی چه دشك پیښیدلو نه پس دې سمدستی کینی او دوه سجدې کولو نه پس دې سلام اوګرځوی نهٔ د استیناف ضرورت شته دې او نهٔ د تحری او نهٔ د بناء علی الاقل دا قول منسوب دې حسن بصری رحمه الله طرف ته.

### د ائمه د مذاهبو تفصیل:

**(د احنافو مسلک)**

د حنفیه په نیز دا مسئله مثلثه ده د دې درې صورتونه دی په یو صورت کښې استیناف (د سرنه مونځ کول) او په یو صورت کښې بناء علی الاقل المتیقن، او په یو صورت کښې بناء علی الظن الغالب، او هم دې ته تحری وائی، کوم سړی ته چه په مانځه کښې داسې شك او شبه په کثرت سره نهٔ پیښیږی بلکه اتفاقا کله کله اوشی نو استیناف یعنی د سرهٔ دې مونځ اوکړی، او کوم سړی چه ته چه داسې شك او شبه ډیره پیښیږی د هغه دپاره تحری ده، د تحری نه پس کوم طرف ته چه رجحان زیات وی هغه دې اختیار کړی او که د سوچ نه پس یو طرف ته غلبه نهٔ وه نو بیا بناء علی الاقل ده، مثلا یو سړی ته شبه پیښه شوه چه د دهٔ درې رکعاته شوی دی یا څلور نو که د سوچ کولو نه پس ئې یو طرف ته رجحان اوشی نو هغه دې اختیار کړی ګینی چه کوم کم دې هغه
متعین دې یعنی درې رکعاتو لره دې اختیار کړی لهذا یو رکعت دې بل اوکړی،

**(د شوافعو مسلک)**

امام شافعی د بناء علی الاقل قائل دې او په روایاتو کښې چه کوم د تحری ذکر راغی د هغې په حقله فرمائی چه د تحری معنی د قصد کول یعنی چه کومه خبره صواب او صحیح دی هغې لره اختیارول، هغه فرمائی چه صواب او صحیح څیز هم اقل متیقن دې،

**(د موالکو مسلک)**

او د امام مالك مسلك دا دې چه که مصلی مستنکح یعنی چا ته چه شك او شبه ډیره پیښیږی د هغهٔ دپاره د تحری حکم دې په خپلې تحری دې عمل اوکړی او که غیر مستنکح دې نو دهٔ لره پکار دی چه بناء علی الاقل دې اوکړی،

**(د حنابلؤ مسلک)**

او د امام احمد مشهور مذهب دا دې چه په دې سلسله کښې د امام او منفرد په مینځ کښې فرق دې، امام دپاره تحری او په ظن غالب باندې عمل کول دی او منفرد لره په بناء علی الاقل باندې، د امام احمد په په دې مسئله کښې دوه روایتونه دی یو د مطلق تحری، بناء علی الاقل مطلقا (ذکره الحافظ ابن القیم) تیر شوی تفصیل نه دا هم معلومه شوه چه په ائمه

ثلاثه کښې څوك هم د استیناف قائل نۀ دې بلکه د تحری یا د بناء علی الاقل قائل دی، هغوی دا وائی چه د استیناف روایت ضعیف دې.

**د استیناف دلیل:**

زۀ وایم چه د استیناف روایت په کتب صحاح کښې خو ما په کوم کښې نۀ دې لیدلې صاحب هدایه دې لره د عبد الله بن مسعود ﷺ نه مرفوعا روایت کړې دې او بعضې نورو صحابه طرف ته ئې منسوب کړې دې، خو حافظ ابن حجر په الدرایه کښې لیکلې دی چه دا حدیث ماته چرته مرفوع نۀ دې ملاؤ شوې آو موقوفا علی ابن عمر مصنف ابن ابی شیبه کښې ملاؤ شوې دې.

[۱۰۲۴] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ، عَنْ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلْيُلْقِ الشَّكَّ وَلْيَبْنِ عَلَى الْيَقِينِ، فَإِذَا اسْتَيْقَنَ التَّمَامَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، فَإِنْ كَانَتْ صَلَاتُهُ تَامَّةً كَانَتِ الرَّكْعَةُ نَافِلَةً وَالسَّجْدَتَانِ، وَإِنْ كَانَتْ نَاقِصَةً كَانَتِ الرَّكْعَةُ تَمَامًا لِصَلَاتِهِ وَكَانَتِ السَّجْدَتَانِ مُرْغِمَتَيِ الشَّيْطَانِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ، عَنْ زَيْدٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَدِيثُ أَبِي خَالِدٍ أَشْبَعُ.

د ابو سعید الخدري ﷺ نه روایت دی هغه ویلي دي چي ویلي دي رسول الله ﷺ: کله چي شک وکړي یو ستاسو نه په خپل مونځ کي نو شک دې وغورځوي، او بناء دي وکړي په یقین باندې، کله چي یي یقین د تمام راغلو نو دوه سجدي دي وکړي، که چېرې د هغه مونځ پوره وو نو شي به یو رکعات نفل او دوه سجدې، او که چیرې ناقص وو شي به رکعاته پوره کونکی د مونځ د هغه، او شي به دوه سجدي ذلیله کونکي د شیطان. ویلي دي ابوداود: د دې روایت کړی هشام بن سعد او محمد بن مطرف د زید نه او هغه د عطاء بن یسار نه، او هغه د ابو سعید الخدري نه او هغه د نبي ﷺ نه، او حدیث د ابو خالد ډېر پوره دی.

۱: حدثنا محمد بن العلاء. الخ، قوله، عن ابی سعید الخدری قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذاشك احدکم فی صلوته فلیلق الشك و لیبن علی الیقین، د دې حدیث نه شافعیه استدلال کوی چه د شك په صورت کښې هم، بناء علی الاقل، کول پکار دی هم دغه متعین دې.

**د حدیث توجیه:**

حنفیه او نور حضرات فرمائی چه په روایاتو کښې د تحری ذکر هم راغې نو دې دپاره د حدیث مطلب به دا اخستلې شی چه د تحری باوجود هم یو طرف ته رجحان او میلان نۀ وی او شك باقی پاتې شی نو داسې سرې لره بناء علی الاقل کول پکار دی او د داسې سرې په حقله حنفیان هم دا وائی.

قوله، فان کانت صلوته تامة کانت الرکعة نافلة والسجدتان،

۱): صحیح مسلم/المساجد ۱۹ (۵۷۱)، سنن النسائي/السهو ۲۴ (۱۲۳۹)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳۲ (۱۲۱۰)، (تحفة الأشراف: ۴۱۶۳، ۱۹۰۹۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ۱۶ (۶۲مرسلا)، مسند احمد (۳/۳۷، ۵۱، ۵۳)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۷۴ (۱۵۳۶) (حسن صحیح)

## شرح حديث:

يعنى د داسې سړي مونځ كه د يو ركعت كولو نه وړاندې پوره شوې وي نو دا يو ركعت به نفل شي او دوه سجدې به د قائم مقام د نفلو د دويم ركعت شي، نو ګويا د داسې سړي به څلور ركعاته فرض شي او دوه نفل، او كه يو ركعت يوځائې كولو نه وړاندې مونځ ناقص وو نو اوس يو ركعت كولو سره فرض مونځ به پوره شي او دوه سجدې به زياتى شي، دې سجدتينو ته مرغمتين وئيلې شوې دى يعنى شيطان لره رسوا او ذليل كونكې، شيطان خو په شك كښې واچولو او دا ئې غوښتل چه د دهٔ فرض مونځ هم پوره نهٔ شي او دهٔ خپل فرض مونځ پوره كړو او زياتى دوه سجدې ئې هم اوكړې په كومو سره چه شيطان په خپل مقصد كښې ناكام او ذليل او خوار شو.

[۱۰۲۵] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ، أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "سَمَّى سَجْدَتَيِ السَّهْوِ الْمُرْغِمَتَيْنِ".

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى بېشكه نبي ﷺ مسمى يې كړې دوه سجدې د سهوي ذليله كونكې د شيطان.

مرغمتين د ارغام نه دې وئيلې كيږي ارغم الله انفه اى الصقه بالرغام، رغام په معنى د خاورې يعنى الله تعالى دې د دهٔ پوزه په خاورو ككړه كړي، او دا ترغيم سره هم كيږي لكه چه وړاندې راځي، فالسجدتان ترغيم للشيطان.

[۱۰۲۶] (²) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلَا يَدْرِي كَمْ صَلَّى ثَلَاثًا أَوْ أَرْبَعًا فَلْيُصَلِّ رَكْعَةً وَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ قَبْلَ التَّسْلِيمِ، فَإِنْ كَانَتِ الرَّكْعَةُ الَّتِي صَلَّى خَامِسَةً شَفَعَهَا بِهَاتَيْنِ، وَإِنْ كَانَتْ رَابِعَةً فَالسَّجْدَتَانِ تَرْغِيمٌ لِلشَّيْطَانِ".

د عطاء بن يسار نه روايت دى بېشكه رسول الله ﷺ وئيلې دي: كله چې شك وكړي يو كس ستاسو نه په خپل مونځ كې او هغه نه پوهيدې چې څومره مونځ يې وكړو، درې او كه څلور، نو يو ركعاته مونځ دې وكړي، او دوه سجدې دې وكړي په داسې حال چې هغه ناست وي مخكې د سلام نه، كه چېرې وو هغه ركعات چې ده وكړو پنځم نو هغه به جوفت كړي په دې دوه سجدو سره، او كه چېرې وو څلورم ركعات نو دوه سجدې ذلت شو لپاره د شيطان.

[۱۰۲۷] (³) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقَارِيُّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ بِإِسْنَادِ مَالِكٍ، قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَإِنِ اسْتَيْقَنَ أَنْ قَدْ صَلَّى ثَلَاثًا فَلْيَقُمْ فَلْيُتِمَّ رَكْعَةً بِسُجُودِهَا، ثُمَّ يَجْلِسُ فَيَتَشَهَّدُ، فَإِذَا فَرَغَ فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا أَنْ يُسَلِّمَ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ، ثُمَّ لِيُسَلِّمْ". ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَى مَالِكٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ مَالِكٍ، وَحَفْصِ بْنِ مَيْسَرَةَ، وَدَاوُدَ بْنِ قَيْسٍ، وَهِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، إِلَّا أَنَّ هِشَامًا بَلَّغَ بِهِ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ.

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٤٤) (صحيح)

²): انظر حديث رقم: (١٠٢٤)، (تحفة الأشراف: ٤١٦٣، ١٩٠٩١) (صحيح)

³): انظر حديث رقم: (١٠٢٤، ١٠٢٦)، (تحفة الأشراف: ٤١٦٣) (صحيح)

زید بن اسلم په اسناد د مالک سره روایت کړی دی هغه ویلي دي: بیشکه نبی ﷺ وویل: کله چې شک وکړي یو کس ستاسو نه په خپل مونځ کې که د هغه یقین وو چې هغه درې رکعاته مونځ کړی دی نو پاڅېږي به او یو رکعات به وکړي سره د سجدو نه، بیا به کیني او تشهد به وایي، کله چې فارغ شي، پاتي نه شي مګر دا چې سلام وګرځوي نو دوه سجدې دې وکړي د ناستې په حالت کې، بیا دې سلام وګرځوي بیایي ذکر کړه معنی د مالک. ویلي دي ابوداود: او همداسې روایت کړی دی ابن وهب د مالک نه او د حفص بن میسره نه او د داود بن قیس نه او د هشام بن سعد نه. مګر هشام دا رسولی دی ابو سیعد الخدري ته.

## بَابُ مَنْ قَالَ يُتِمُّ عَلَى أَكْبَرِ ظَنِّهِ

### باب د هغه چا دی چې هغه ویلي دي: پوره والی به کوي په غالب ګمان باندې

یعنې تحري دې اوکړي او کوم طرف ته ئې چه ګمان غالب وي هغه دې اختیار کړي.

[۱۰۲۸] ([1]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا كُنْتَ فِي صَلَاةٍ فَشَكَكْتَ فِي ثَلَاثٍ أَوْ أَرْبَعٍ وَأَكْبَرُ ظَنِّكَ عَلَى أَرْبَعٍ تَشَهَّدْتَ، ثُمَّ سَجَدْتَ سَجْدَتَيْنِ وَأَنْتَ جَالِسٌ قَبْلَ أَنْ تُسَلِّمَ، ثُمَّ تَشَهَّدْتَ أَيْضًا، ثُمَّ تُسَلِّمُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَبْدُ الْوَاحِدِ، عَنْ خُصَيْفٍ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَوَافَقَ عَبْدَ الْوَاحِدِ أَيْضًا سُفْيَانُ، وَشَرِيكٌ، وَإِسْرَائِيلُ وَاخْتَلَفُوا فِي الْكَلَامِ فِي مَتْنِ الْحَدِيثِ وَلَمْ يُسْنِدُوهُ.

د عبد الله نه روایت دی، هغه روایت کوي د رسول الله ﷺ نه. هغه ویلي دي: کله چې ته یې په مانځه کې او شک دې شو په درې او څلورو کې، او غالب ګمان دې په څلورو وو، نو په قعده به کیني بیا به دوه سجدې وکړې په ناسته. مخکې د سلام نه، بیا به په تشهد کیني، بیا به سلام وګرځوي ویلي دي ابوداود: د دې روایت کړی دی عبد الواحد د خصیف نه او نه یې دی مرفوع کړی. او همدارنګه موافقت کړی دی د عبد الواحد سره سفیان او شریک او اسرائیل. او اختلاف کړی دی دوی په په متن د حدیث کې او هغوی مسند کړی نه دی.

**قوله:** قال ابوداؤد رواه عبدالواحد عن خصيف و لم يرفعه و وافق عبدالواحد ايضا سفيان و شريك و اسرائيل. حاصل دا چه دې حدیث لره مرفوعا نقل کولو کښې د خصیف د شاګردانو نه محمد بن سلمه متفرد دې چنانچه عبدالواحد دې حدیث لره موقوفا روایت کړې دې او سفیان وغیره په دې کښې د عبدالواحد موافقت کړې دې اګر که د متن الفاظ په نقل کولو کښې سفیان اوشریک وغیره په خپلو کښې مختلف دی خوموقوفا په نقل کولو کښې ټول متفق دی.

[۱۰۲۹] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا عِيَاضٌ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ هِلَالِ بْنِ عِيَاضٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلَمْ يَدْرِ زَادَ أَمْ نَقَصَ

[1]: ن الكبري /السهو ١٢٦ (٦٠٥)، وانظر رقم: (١٠١٩)، (تحفة الأشراف: ٩٦٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٤٢٨، ٤٢٩ موقوفاً) (ضعيف)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ١٧٩ (٣٩٦)، سنن ابن ماجه /إقامة الصلاة ١٢٩ (١٢٠٤)، (تحفة الأشراف: ٤٣٩٦)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ١٩ (٥٧١)، سنن النسائي/السهو ٢٤ (١٢٤٠)، موطا امام مالك/الصلاة ١٦ (٦٢)، مسند احمد (٣/١٢، ٣٧، ٥٠، ٥١، ٥٣، ٥٤)، دي/الصلاة ١٧٤ (١٥٣٦) (ضعيف)

فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ قَاعِدٌ فَإِذَا أَتَاهُ الشَّيْطَانُ، فَقَالَ: إِنَّكَ قَدْ أَحْدَثْتَ، فَلْيَقُلْ: كَذَبْتَ إِلَّا مَا وَجَدَ رِيحًا بِأَنْفِهِ أَوْ صَوْتًا بِأُذُنِهِ". وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِ أَبَانَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ مَعْمَرٌ، وَعَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ، وعِيَاضُ بْنُ هِلَالٍ: وَقَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: عِيَاضُ بْنُ أَبِي زُهَيْرٍ.

د ابو سعيد الخدري رضي الله عنه نه روايت دی ببشکه رسو ل الله ﷺ ويلي دي: کله چې مونځ وکړي يو ستاسو نه او هغه ته پته نه وي چې زيات يي وکړو او که نقصان يي وکړو، نو دوه سجدي دي په ناسته وکړي، کله چې ورته شيطان راشي ورته ووايي: چې ته خو بې اودسه شوي نو ودي وايي: تا دروغ وويل، مگر دا که بيا موخي باد په پوزې سره او يا اواز په غوږ سره. او دا لفظ د حديث د ابان دی. ويلي دي ابوداود: او ويلي دي معمر او علي بن المبارک: عياض بن هلال. او ويلي دي اوزاعي: عياض بن ابي زهير دی.

۲: حدثنا محمد بن العلاء، الخ، قوله، اذا صلى احدكم فلم يدر زاد ام نقص فليسجد سجدتين و هو قاعدا..الخ، په دې حديث کښې تحری يا بناء علی الاقل د يوهم ذکر نشته ، غالبًا هم دا حديث ماخذ دی د هغه مسلك کوم چه حسن بصری وغيره اختيار کړې دی لکه څنګه چه په تير شوی باب کښې تير شول.

[۱۰۳۰] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا قَامَ يُصَلِّي جَاءَهُ الشَّيْطَانُ فَلَبَّسَ عَلَيْهِ حَتَّى لَا يَدْرِيَ كَمْ صَلَّى، فَإِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ ذَلِكَ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ، وَمَعْمَرٌ، وَاللَّيْثُ.

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی ببشکه هغه ويلي دي: ببشکه يو کس ستاسو نه کله چې پاڅيږي او مونځ کوي شيطان ورته راشي نو ګډوډی راولي په هغه ترديې چې هغه نه پوهيږي چې څومره مونځ يي وکړو، کله چې بيا موخي يو کس ستاسو نه دغه نو دوه سجدي دي وکړي په ناسته باندې. ويلي دي ابوداود: همدارنګه روايت نقل کړی دی ابن عيينة او معمر او ليث.

[۱۰۳۱] (۲) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي الزُّهْرِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ بِإِسْنَادِهِ، زَادَ "وَهُوَ جَالِسٌ قَبْلَ التَّسْلِيمِ".

دې طريق سره هم د محمد بن مسلم نه هم په دې سند سره همدا حديث نقل دی، په دې کښې دا اضافه ده چه هغه دي د سلام نه مخکښې کيني (دوه سجدي دي اوکړي).

[۱۰۳۲] (۳) حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، أَخْبَرَنَا أَبِي، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ الزُّهْرِيُّ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يُسَلِّمَ، ثُمَّ لِيُسَلِّمْ".

مونږ ته حديث بيان کړی دی محمد بن مسلم الزهري د هغې په اسناد او معنى سره، هغه ويلي دي: دوه سجدي دي وکړي مخکې د سلام نه بيا دي سلام وګرځوي.

[1]: صحيح البخاري/الأذان ٤ (٦٠٨)، والعمل في الصلاة ١٨ (١٢٢٢)، والسهو ٦ (١٢٣١)، ٧ (١٢٣٢)، وبدء الخلق ١١ (٣٢٨٥)، صحيح مسلم/الصلاة ٨ (٣٨٩)، والمساجد ١٩ (٥٧٠)، سنن النسائي/الأذان ٣٠ (٦٧١)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٤٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ١٧٩ (٣٩٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٣٥ (١٢١٦)، موطا امام مالك/السهو ١(١)، مسند احمد (٣١٣/٢، ٣٩٨، ٤١١، ٤٦٠، ٥٠٣، ٥٢٢، ٥٣١) وتقدم برقم (٥١٦) (صحيح)

[2]: انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٥٢٥٦) (حسن صحيح)

[3]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٣٥ (١٢١٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٥٢) (حسن صحيح)

## بَابُ مَنْ قَالَ بَعْدَ التَّسْلِيمِ

### باب دی په بیان د هغه چا کې چې وايي وروسته د سلام نه

[۱۰۳۳]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللهِ بْنُ مُسَافِعٍ، أَنَّ مُصْعَبَ بْنَ شَيْبَةَ أَخْبَرَهُ، عَنْ عُتْبَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ شَكَّ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ".

د عبد الله بن جعفر نه روایت دی بېشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: چا چې شک وکړو په مانځه کې نو دوه سجدې دې وکړي وروسته د سلام نه.

قوله، عن عبدالله بن جعفر..الخ،

دا عبدالله د حضرت علی رضی الله عنه ورور د جعفر بن ابی طالب ځوئي دې د صغار يعنی وړو صحابۀ نه دې د حضور ﷺ د انتقال په وخت د لسو کالو وو،

سجده سهوه قبل السلام ده يا بعد السلام د دې تفصيل په شروع کښې تير شوي دي

## بَابُ مَنْ قَامَ مِنْ ثِنْتَيْنِ وَلَمْ يَتَشَهَّدْ

### باب دی په بیان د هغه چا کې چې پاځيږي د دوه رکعاتو نه او تشهد و نه وايي

يعنی اوله قعده هيره شی، په حديث الباب کښې دا دی چه يو ځل حضور ﷺ نه داسې اوشو نو حضور ﷺ په دې صورت کښې سجده سهوه فرمائيلې وه کومه چه قبل السلام وه، د سهوې دا شکل د نقصان وو په کوم کښې چه حضور ﷺ سجده سهوه قبل السلام اوکړه. اوس د شوافعو يه نيز خو په هر ځائې کښې داسې کيږی او مالیکه دا د نقصان واله صورت پورې خاص کوی، او زمونږ دليل د تير شوې باب حديث دې په کوم کښې چه مطلقا د سجده سهوې بعد السلام حکم مذکور دې.

[۱۰۳۴]([2])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ بُحَيْنَةَ، أَنَّهُ قَالَ: "صَلَّى لَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قَامَ فَلَمْ يَجْلِسْ فَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ، فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَهُ وَانْتَظَرْنَا التَّسْلِيمَ كَبَّرَ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ قَبْلَ التَّسْلِيمِ، ثُمَّ سَلَّمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د عبدا لله بن بحينه نه روايت دی هغه ويلي دي: مونځ وکړو مونږ ته رسول الله ﷺ دوه رکعاته، بيا پاځيدلو او کينه ناستلو، نو پاځيدل خلق د هغه سره، هرکله چې يي مونځ پوره کړو نو مونږ انتظار وکړو د سلام هغه تکبير وويلو، نو دوه سجدې يې وکړې او هغه ناست وو مخکې د سلام نه، بيايې سلام وګرځولو نبی ﷺ

[۱۰۳۵]([3])حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا أَبِي، وَبَقِيَّةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِمَعْنَى إِسْنَادِهِ

---

[1]): سنن النسائي/السهو ۲۵(۱۲٤۹، ۱٤۵۰)(تحفة الأشراف: ۵۲۲٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۰٤/۱، ۲۰۵، ۲۰٦)(حسن لغيره)

[2]): صحيح البخاري/الأذان ۱٤٦ (۸۲۹)، ۱٤۷ (۸۳۰)، والسهو ۱ (۱۲۲٤)، ۵ (۱۲۳۰)، والأيمان ۱۵ (٦٦۷۰)، صحيح مسلم/المساجد ۱۹ (۵۷۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۷۲ (۳۹۱)، سنن النسائي/التطبيق ۱۰٦ (۱۱۷۸، ۱۱۷۹)، والسهو ۲۸ (۱۲٦۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳۱ (۱۲۰٦)، (تحفة الأشراف: ۹۱۵٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ۱۷(٦۵)، مسند احمد (۳٤۵/۵، ۳٤٦)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۷٦ (۱۵٤۰) (صحيح)

[3]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۹۱۵٤) (صحيح)

وَحَدِيثِهِ، زَادَ "وَكَانَ مِنَّا الْمُتَشَهِّدُ فِي قِيَامِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ سَجَدَهُمَا ابْنُ الزُّبَيْرِ، قَامَ مِنْ ثِنْتَيْنِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ، وَهُوَ قَوْلُ الزُّهْرِيِّ.

حديث بيان كړی دی شعيب د زهري نه په معنی د اسناد هغې او حديث د هغه سره، هغه زيادت كړی دی: او وو بعضي زمونږ نه تشهد ويونكي په قيام كې. ويلي دي ابوداود: او همدارنگه دواړه سجدي كړي دي ابن الزبير، پاڅيدلو د دوه ركعاتو نه مخكې د سلام نه، او هغه قول د زهري دی.

قوله، و هو قول الزهری، د امام زهری قول هم دا دې چه په مذكوره صورت كښې (وهو ترك القعده الاولى) سجده سهوه قبل السلام دې اوكړې شی.

## بَابُ مَنْ نَسِيَ أَنْ يَتَشَهَّدَ وَهُوَ جَالِسٌ

### باب دی په بيان دهغه چا كې چې هېر شي ترينه تشهد او هغه ناست وي

### الفرق بين الترجمتين:

په سابقه ترجمه او دې ترجمه كښې د اول تشهد د هيريدو بيان دې خو فرق بين الترجمتين دا دې چه رومې ترجمه كښې دا وو چه دهٔ ته تشهد د قيام نه پس راياد شی او په دې دويم باب كښې د دې قيد نشته ی بلكه عام دې نيغ اودريدو نه پس ورياد شی يا د دې نه وړاندې.

[۱۰۳٦] (۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْوَلِيدِ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ يَعْنِي الْجُعْفِيَّ، قَالَ: حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ شُبَيْلٍ الْأَحْمَسِيُّ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قَامَ الْإِمَامُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، فَإِنْ ذَكَرَ قَبْلَ أَنْ يَسْتَوِيَ قَائِمًا فَلْيَجْلِسْ، فَإِنِ اسْتَوَى قَائِمًا فَلَا يَجْلِسْ وَيَسْجُدْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَيْسَ فِي كِتَابِي عَنْ جَابِرٍ الْجُعْفِيِّ إِلَّا هَذَا الْحَدِيثُ.

د مغيره بن شعبه رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي چې فرمايلي دي رسول الله صلى الله عليه وسلم: كله چې پاڅيږي امام د دوه ركعاتو نه، كه ورته په ياد شو مخكې د ودريدو نه نو كيني دې، كه چېرې برابر ودريدلو نو نه دې كيني، او دوه سجدې دې وكړې د سهوې. ويلي دي ابوداود: او نشته زما په كتاب كې د جابر جعفي نه مگر هم دا حديث.

۱: حدثنا الحسن بن عمرو، الخ، قوله، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا قام الامام فی الركعتين فان ذكر قبل ان يستوی قائما فليجلس،

### په مسئلة الباب كښې مذاهب ائمه:

امام شافعی هم د دې قائل دې او د حنفيانو ظاهر الرواية هم دادې او دې لره ابن الهمام هم اختيار كړې دې يعنی كه رومبې تشهد هير كړی نو كه داودريدو نه وړاندې ورته راياد شی نو تشهد ته دې واپس راشی او كه نيغ اودريدو نه پس ورته راياد شی نو نهٔ دې كيني بلكه تشهد دې پريږدی، او په دې كښې دويم روايت چه كوم د حنفيانو مشهور روايت دې هغه دا كه په داسې وخت كښې ورته راياد شو كله چه دې اقرب الى القيام وی نو اودېدريږی او كه

(۱): سنن الترمذي/الصلاة ۱۵۷ (۳٦۵)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳۱ (۱۲۰۸)، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۵۳/٤، ۲۵٤)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۷٦ (۱۵٤۲) (صحيح)

اقرب الى القعود وي نو كيديني، او د ماليكه مسلك دا دي چه كوم سړي قعده اولى پريږدي او اودريږي نو ترڅو پورې چه ئې لاسونه په زمكه باندې لګيدلي وي نو راياديدو باندې دې واپس شي او كه لاسونه ئې د زمكې نه پورته شوې وي نو بيا دې نۀ واپس كيږي.(١).
او كه كوم سړې د دې قاعدې نه خلاف اوكړي يعنى په كوم صورت كښې چه اودريدل وو هغه د اودريدو په ځائې كيناستلو نو د دې څۀ حكم دې، د امام مالك په نيز خو هيڅ باك نشته دې مونځ نۀ باطليږي د حنفيانو نه هم يو روايت دا دې او په دې باندې فتوى ده، او دويم روايت دا دې چه مونځ باطليږي، او د شوافعو په نيز رجوع الى القعده جائز نۀ ده بلكه حرام ده او كه كوم سړې واپس شي عامدا عالما بتحريمه نو د دۀ مونځ به فاسد شي او كه ناسيا وي نو فلا تبطل صلوته و يلزمه القيام عند تذكره.

قال، ابوداؤد و ليس في كتابى عن جابرالجعفي الا هذا الحديث،

## د جابر جعفى جرح او تعديل:

د جابر جعفى توثيق او تضعيف مختلف فيه دې يو جماعت لكه شعبه او سفيان وغيره د دۀ توثيق كړې دې او يحيى بن معين او امام ابوحنيفه د دۀ تكذيب كړې دې و قال ما رايت اكذب من جابرالجعفى، په بذل كښې ليكلي دى چه دې رافضى وو بلكه سبائى دعبدالله بن سبا د ملګرو نه وو، او د ده عادت د روافضو پشان تقيه وه هم د دې وجه نه بعضې محدثينوته ددۀ په حقله دهوكه وشوه اوهغوى ددۀ توثيق اوكړو، والله تعالى اعلم.

[١٠٣٧](٢) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ الْجُشَمِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْمَسْعُودِيُّ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، قَالَ: صَلَّى بِنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ فَنَهَضَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ، قُلْنَا: سُبْحَانَ اللَّهِ، قَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ، وَمَضَى، فَلَمَّا أَتَمَّ صَلَاتَهُ وَسَلَّمَ "سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ" فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ كَمَا صَنَعْتُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنْ الشَّعْبِيِّ، عَنْ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، وَرَفَعَهُ، وَرَوَاهُ أَبُو عُمَيْسٍ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: صَلَّى بِنَا الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ، مِثْلَ حَدِيثِ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو عُمَيْسٍ أَخُو الْمَسْعُودِيِّ، وَفَعَلَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ مِثْلَ مَا فَعَلَ الْمُغِيرَةُ، وَعِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، وَالضَّحَّاكُ بْنُ قَيْسٍ، وَمُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ، وَابْنُ عَبَّاسٍ أَفْتَى بِذَلِكَ وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا فِيمَنْ قَامَ مِنْ ثِنْتَيْنِ، ثُمَّ سَجَدُوا بَعْدَ مَا سَلَّمُوا.

د زياد بن علاقه نه روايت دى، هغه ويلي دي: مونځ وكړو مونږ ته مغيره بن شعبه نو اوچت شو په دوه ركعاتو كې، مونږ وويل: سبحان الله، هغه وويل: سبحان الله او روان شو، هركله چې يې مونځ پوره كړو او سلام يي وګرځولو، دوه سجدې د سهوي يي وكړې، هركله چې فارغ شو ويي ويل: ما ليدلى وو رسول الله ﷺ داسې يي وكړل لكه څنګه چې ما وكړل.
ويلي دي ابوداود: او همدارنګه روايت كړى دى ابن ابي ليلى د شعبي نه او هغه د مغيره بن شعبه نه او هغه مرفوع كړو. او روايت كړى دى هغې لره عميس د ثابت بن عبيد نه، هغه ويلي دي: مونځ وكړو مونږ ته مغيره بن شعبه پشان د حديث د زياد بن علاقه. ويلي دي ابو

١) په اصل كښې د مالكيه مذهب دا دې چه سجدې نه پورته كيدو په وخت كښې ركبتين دې د زمكې نه وړومبې پورته كړى شي او يدين وروستو، كما تقدم في محله)١٢ منه_

٢): سنن الترمذي/الصلاة ١٥٢ (٣٦٥)، (تحفة الأشراف: ١١٥٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٤٧، ٢٥٣، ٢٥٤)، سنن الدارمي/الصلاة ١٧٦(١٥٤٢) (صحيح)

داود: چې ورور د مسعودي دی. او وکړل سعد بن ابي وقاص پشان د هغي چې کړي دي مغیره او عمران بن حصین او او ضحاک بن قیس او معاویة بن ابي سفیان او ابن عباس فتوی ورکړي ده په دې سره او عمر بن عبد العزیز. ویلي دي ابوداود: او دا د هغه چا په باره کې دی چې د دوه رکعاتو نه پاڅېږي، بیا سجده وکړي وروسته د سلام نه.

قوله، قال ابوداؤد و کذالك رواه ابن ابی لیلی عن الشعبی،

**د مصنف د کلام تشریح:**

د مصنف غرض په دې کلام سره څۀ دې، په دې کښې دوه احتماله دی اول دا چه مصنف دا فرمائی چه څنګه پورته روایت کښې د کوم راوی چه زیاد بن علاقه دې سجده سهوه بعدالسلام مذکورده دغه شان د ابن ابی لیلی او ابوعمیس دې دواړو هم سجده سهوه بعدالسلام ذکر کړې ده، او بیا دوراندې تلو نه پس مصنف د بعضې نورو صحابه لکه سعد بن ابی وقاص او عمران بن حصین وغیره مذهب هم دا نقل کوی چه دا ټول حضرات د سجده سهوه بعد السلام قائل دی خو په هر صورت کښې نۀ بلکه په هغه صورت کښې کوم چه دلته مذکور دې یعنی دقعده اولی د ترك کولو په صورت کښې.

او دویم احتمال د مصنف په غرض کښې دا دې چه د مغیره بن شعبه د دې حدیث په بیان کولو کښې رواة مختلف دی، جابر جعفی خو دې لره د حضور صلی الله علیه وسلم حدیث قولی ګرځولې دې لکه څنګه چه د باب په ړومبی حدیث کښې دی، قال رسول الله صلی الله علیه وسلم. الخ، او د جابر نه علاوه نورو رواة لکه زیاد بن علاقه او ابن ابی لیلی او ابوعمیس دې ټولو دې حدیث لره بل شان بیان کړې دې هغه دا چه مغیره بن شعبه یو ځل مونځ ورکړو چه په هغې کښې ئې چه قعده اولی هیره کړه او اودریدو او بیا ئې روستو سجده سهوه بعدالسلام اوکړه او بیا ئې داسې اوفرمائیل، رایت رسول الله ﷺ یصنع کما صنعت، په دې صورت کښې دا حدیث قولی نۀ بلکه فعلی به وی.

[١٠٣٨]([1])حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، وَالرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَشُجَاعُ بْنُ مَخْلَدٍ بِمَعْنَى الإِسْنَادِ، أَنَّ ابْنَ عَيَّاشٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدٍ الْكَلَاعِيِّ، عَنْ زُهَيْرٍ يَعْنِي ابْنَ سَالِمٍ الْعَنْسِيَّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، قَالَ عَمْرٌو: وَحْدَهُ عَنْ أَبِيهِ، عَنْ ثَوْبَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لِكُلِّ سَهْوٍ سَجْدَتَانِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ". وَلَمْ يَذْكُرْ عَنْ أَبِيهِ غَيْرُ عَمْرٍو.

د ثوبان رضی الله عنه نه روایت دی: هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه هغه ویلي دي: د هرې سهوي دوه سجدي دي وروسته د سلام نه. او نه دی ذکر کړی د هغه د پلار نه بغیر د عمر نه.

خلاصه دا چه اکثر رواتو دې حدیث لره فعلی او جابر جعفی دې لره قولی ګرځولې دې.

٣: حدثنا عمرو بن عثمان.الخ، قوله، عن ثوبان عن النبی صلی الله علیه وسلم قال لکل سهو سجدتان بعد ما یُسلم، لږ په غور سره واورئ.

[1]: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٣٦ (١٢١٩)، (تحفة الأشراف: ٢٠٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٠/٥) (حسن)

### د حنفیانو مستدل:

دا حدیث د سجده سهوې بعد السلام صریح دلیل دې او حدیث قولی هم دې نهٔ فعلی او په دې کښې قاعده کلیه بیان کړې شوې ده لکه څنګه چه حنفیان وائی فالحمدلله، خو د دې په سند کښې اسماعیل ابن عیاش دې کوم چه ضعیف دې.

### د امام بیهقی نقد:

پس امام بیهقی هم په دې بناء باندې حدیث لره په معرفة السنن والاثار کښې ضعیف ګرځولې دې، د دې جواب دا دې چه دا خبره بین المحدثین مشهوره ده د کومې چه بیهقی په خپله هم قائل دې چه د ابن عیاش روایت خو د اهل حجاز او عراق نه ضعیف دې خو د شامیانو نه صحیح دې او دلته دا روایت د عبیدالله بن عبید کلاعی دې کوم چه شامی دې لهذا هیڅ اشکال نشته.

### دویم نقد:

د دینه پس پوهه شئ چه امام بیهقی په خپل یو بل تصنیف یعنی سنن بیهقی کښې په دې حدیث باندې معنوی حیثیت سره هم کلام کړې دې هغه دا چه د دې حدیث نه معلومیږی چه د هرې سهوې دپاره مستقل دوه سجدې پکار دی لهذا که کوم سړې په مانځه کښې دوه ځل سهوه شی نو دهٔ لره څلور کول پکار دی حال دا دې چه ائمه اربعه کښې د چا هم دا مذهب نهٔ دې البته ابن ابی لیلی د دې قائل دې چه په تکرار د سهوې سره تکرار د سجدو راځی لهذا د حنفیانو دا مستدل مخدوش شو د دې اشکال جواب زمونږ د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه، لکل سهو، کښې لفظ د کل مجموعی دې افرادی نهٔ دې یعنی د ټولو سهوو دپاره دوه سجدې دی لهذا هیڅ اشکال نشته دې، او یو جواب بل هم کیدې شی چه په دې حدیث کښې لفظ د کل افرادِ دمصلین په اعتبار سره راوړلې شوې دې یعنی کوم مصلی ته چه هم سهوه راپیښه شی د هر مصلی دپاره هم دا حکم دې، یا د انواعو د سهوې په اعتبار سره لفظ د کل راوړلې شوې دې یعنی د کومې نوع سهوه چه هم وی خواه دنقصان د قبیلې نه وی یا د زیاتی د قبیلې نه وی د ټولو یو شان حکم دې، وهذان الجوابان الاخیران خاطری ابوعذرهما.

### د ابن ابی لیلی وغیره مسلک:

پورته د ابن ابی لیلی مذهب تیر شوې دې د دوئ په نیز تکرار د سهوې سره تکرار د سجدو واجبیږی، او امام اوزاعی د تکرار د سهوې په صورت کښې دا فرمائی چه که سهوه دوه ځلې د یو قسم نه وی د قبیلې د نقصان یا د قبیلې د زیادت نه نو په دې صورت کښې به تکرار د سجدو نهٔ وی او که د دوو جدا جدا قسمونو وی نو بیا به تکرار د سجدو وی، (من المنهل)

..............

## بَابُ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ فِيهِمَا تَشَهُّدٌ وَتَسْلِيمٌ

**باب دی په بیان د دوه سجدو د سهوې کې چې په دواړو کې تشهد او سلام دی**

[۱۰۳۹] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي أَشْعَثُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ خَالِدٍ يَعْنِي الْحَذَّاءَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى بِهِمْ فَسَهَا فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ تَشَهَّدَ، ثُمَّ سَلَّمَ".

د عمران بن حصين نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ مونځ وکړو دوی ته نو سوه شو، نو دوه سجدې يې وکړې، بيايې تشهد وويلو بيايې سلام وګرځولو.

دامسئله مختلف فيه دې داختلاف تفصيل د ابواب السهو په شروع کښې تير شوې دې.

## بَابُ انْصِرَافِ النِّسَاءِ قَبْلَ الرِّجَالِ مِنَ الصَّلَاةِ

**باب دی په بيان د واپسی د ښځوکې مخکې د سړو نه د مانځه نه**

[۱۰۴۰] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، وَمُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ هِنْدٍ بِنْتِ الْحَارِثِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ مَكَثَ قَلِيلًا" وَكَانُوا يَرَوْنَ أَنَّ ذَلِكَ كَيْمَا يَنْفُذُ النِّسَاءُ قَبْلَ الرِّجَالِ.

د ام سلمة رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي: وو رسول الله ﷺ کله چې به يې سلام وګرځولو نو وخت به يې تېرولو لږ، او هغوی به ليدل دا د دې لپاره چې اوځي ښځې مخکې د سړو نه.

ترجمه او حديث دواړه واضح دی د تشريح محتاج نهٔ دی د دې ترجمة الباب او حديث الباب حواله دلته ډيره وړاندې په باب طول القيام من الركوع و بين السجدتين د حديث دلاندې راغلې ده په کوم ځائې کښې چه، فجلسته بين التسليم والانصراف، مذكور دې.

## بَابُ كَيْفَ الِانْصِرَافُ مِنَ الصَّلَاةِ

**باب دی چې انصراف د مانځه نه به څنګه وي**

**دفع التكرار بين الترجمتين:**

د دې سلسلې يو باب په ابواب الامامة کښې تير شوې دې، باب الامام ينحرف بعد التسليم، د انحراف معنى هم انصراف ده لهذا بظاهر کښې دا تکرار دې په دې باندې تفصيلي کلام په ړومبی ځائې کښې تير شوې دې لاحاجة الى الاعادة.

[۱۰۴۱] ([3]) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ رَجُلٍ مِنْ طَيِّءٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "وَكَانَ يَنْصَرِفُ عَنْ شِقَّيْهِ".

---

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ۱۷۸ (۳۹۵)، سنن النسائي/السهو ۲۳ (۱۲۳۷)، والكبري/ صفة الصلاة ۵۸ (۱۱۵۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۸۵) (شاذ)

[2]: صحيح البخاري/الأذان ۱۵۲ (۸۳۷)، ۱۵۷ (۸۴۹)، ۱۶۳ (۸۶۶)، ۱۶۷ (۸۷۰)، سنن النسائي/السهو ۷۷ (۱۳۳۴)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۳ (۹۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۸۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۲۹۶، ۳۱۰، ۳۱۶) (صحيح)

[3]: سنن الترمذي/الصلاة ۱۱۳ (۳۰۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۳ (۹۲۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۲۲۶) (حسن صحيح)

**ترجمه:** د قبیصه بن هُلب نه روایت دی چې دا یو سړی دی د طي نه، هغه روایت کوي د خپل پلار نه، بېشکه هغه مونځ وکړو د نبي ﷺ سره او هغه به ګرځیدلو د مانځه نه په دواړو طرفونو باندې.

**قوله، فکان ینصرف عن شقیه،** حضرت ﷫ په بذل کښې د انصراف معنی کښې دوه احتماله لیکلې دی، **تحول الی القوم،** او **مشی الی موضع الحاجة،** یعنی پورته کیدو سره تلل، مونږ په وړاندې ځائې کښې لیکلې دی چه تیر شوی باب کښې **تحول الی القیام** لره بیانول مقصود وو او په دې باب کښې **مشی الی موضع الحاجة** مراد دې، یعنی امام د مانځه نه فارغ شي او پاسي او ښي یا ګس طرف ته اوځي د دې احتمال تائید د دینه هم کیږي چه وړاندې روایت کښې دی، قال عمارة اتیت المدینة فرایت منازل النبی صلی الله علیه وسلم عن یساره، یعنی حضور ﷺ اکثرد مانځه نه فارغیدو نه پس ګس طرف ته راتاویده، وړاندې راوی وائی ځکه چه د حضور ﷺ حجرې هم ګس طرف ته وې ګویا دې دپاره به حضور ﷺ دې طرف ته راتاویده.

## د حضرت شیخ رائې:

حضرت شیخ لامع الدراری په حاشیه کښې په دې موضوع باندې تفصیلی کلام کړې دې او یوه خبره ئې دا هم لیکلې ده چه انحراف او انصراف په معنیینو کښې یو د بل تابع کړې شی یعنی اګر که دا دوو جدا جدا معنې دی د دې باوجود یو د بل تابع کولې شی، هغه داسې چه تحول الی القوم لره د موضع حاجت تابع اوګرځولې شی، یعنی که امام ته مثلا ښی طرف ته تلل وی، هغه طرف ته حجره وغیره کیدو د وجه نه تحول الی القوم به هم ښی طرف ته وی نو هم هغه طرف ته دې مخ کړی او کیدینی او که موضع حاجت ګس طرف ته وی نو هغې طرف ته دې مخ کړی او کیدینی او که داسې اونهٔ کړې شی نو بیا د پورته کیدو او تلو په وخت کښې به دوران یعنی راتاویدل وی، دا ځهٔ چه مونږ دلته اولیکل او ځهٔ چه په تیر شوې باب کښې وو دا ټول چه یوځائې شی نو الحمد الله کافی او شافی بحث به شی د کوم ماخذ چه د لامع حاشیه ده.

> [۱۰۴۲] (۱) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سُلَيْمَانَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: لَا يَجْعَلْ أَحَدُكُمْ نَصِيبًا لِلشَّيْطَانِ مِنْ صَلَاتِهِ أَنْ لَا يَنْصَرِفَ إِلَّا عَنْ يَمِينِهِ، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَكْثَرُ مَا يَنْصَرِفُ عَنْ شِمَالِهِ". قَالَ عُمَارَةُ: أَتَيْتُ الْمَدِينَةَ بَعْدُ، فَرَأَيْتُ مَنَازِلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ يَسَارِهِ.

د عبد الله نه روایت دی هغه ویلي دي: نه دې ګرځوي یو کس ستاسو نه حصه د شیطان لپاره په خپل مونځ کې، چې نه راګرځي مګر ښي طرف ته، او بېشکه ما لیدلی وو رسول الله ﷺ ډیر ځل به راګرځیدلو چپ طرف ته. ویلي دي عمارة: زه وروسته مدیني ته راغلم ما ولیدل کورونه د رسول الله ﷺ چپ طرف د هغه ته.

(۱): صحیح البخاري/الأذان ۱۵۹ (۸۵۲)، صحیح مسلم/المسافرین ۷ (۷۰۷)، سنن النسائي/السهو ۱۰۰ (۱۳۶۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۳ (۹۳۰)، (تحفة الأشراف: ۹۱۷۷)، و قد أخرجه: مسند احمد (۳۸۳/۱، ۴۲۹، ۴۶٤)، سنن الدارمي/الصلاة ۸۹ (۱۳۹۰) (صحیح)

## بَابُ صَلَاةِ الرَّجُلِ التَّطَوُّعَ فِي بَيْتِهِ

### باب دی د نفلي مانځه د سړي په خپل کور کې

په دې باب کښې مصنف دوه مرفوع حدیثونه ذکر فرمائیلي دی، حدیث د ابن عمر، اجعلوا في بیوتکم من صلوتکم، او دویم حدیث د زید ابن ثابت، صلوة المرء في بیته افضل من صلوته في مسجدی هذا الا المکتوبة، او هم دا دوه حدیثونه امام ترمذی هم ذکر فرمائیلي دی دغه شان امام بخاری په ابواب التهجد ،ص،۱۱۸، باندې باب التطوع فی البیت ترجمه قائمه کړې ده په هغې کښې ئې هم دا حدیث د ابن عمر ذکر فرمائیلي دې.

**مذاهب علماء:**

امام نووی فرمائی چه جمهور علماء (دائمه ثلاثه وغیره) مذهب هم دا دې چه نوافل مطلقا راتبه وغیر راتبه په کور کښې کول مستحب دی، هغوی فرمائی چه د سلفو نه د یو جماعت رائې دا ده چه دا ټول په جومات کښې ادا کول غوره دی، او دریم مسلك د امام مالك او سفیان ثوری دې هغه دا چه د ورځې نوافل په جومات کښې ادا کول غوره دی او د شپې نوافل په کور کښې، حافظ فرمائی چه د امام مالك مستدل د بخاری یو روایت دې د کوم الفاظ چه دا دی، و بعد المغرب رکعتین في بیته، او په یو روایت کښې دی، فاما المغرب والعشاء ففي بیته، خو حافظ په دې استدلال باندې اشکال کړې دې او هغه دا چه ظاهر خو دا ده چه حضور ﷺ داسې قصدا نۀ کول بلکه د دې وجه نه چه د ورځې به دوئ د خلقو په کارونو کښې مشغول وو نو ځکه به دوئ په جومات کښې ادا کول، او د شپې به مشغولتیا د خلقو سره نۀ وه نو ځکه به هغوی دا په کور کښې ادا کول، او ابن رشد د امام مالك د مذهب حکمت دا لیکلې دې چه د ورځې دسړې د خپلو اهل بیتو سره د مشغولیدو ویره ده نو ځکه د ورځې نوافل په جومات کښې ادا کول غوره دی او د شپې په وخت کښې دا ویره څۀ زیاته نۀ وی نو ځکه په کور کښې ادا کول غوره دی، لهذا که کوم سړی ته د کور والو سره د مشغولتیا ویره نۀ وی نو د ورځې نوافل هم په کور کښې ادا کول غوره دی، زمونږ په نیز په بحرالرائق وغیره کښې هم دا لیکلې دی که کوم سړی ته په کور کښې د مشغولتیا ویره وی نو بیا په جومات کښې ادا کول غوره دی.

او په معارف السنن،ص، ۱۱۱، کښې د مولانا انور شاه کشمیری نه نقل کړې دی چه اصل مذهب خو هم دا دې خو روستو ارباب فتاوی دا لیکلې دی چه اداء السنن في المسجد افضل دی دې دپاره چه روافضو سره بظاهر تشبیه رانۀ شی چه هغوی سنت نۀ ادا کوی، دغه شان پوهیدل پکار دی چه د دې حکم نه هغه نوافل مستثنی دی کوم چه د اسلام د شعائرو نه دې هغه هم په جومات کښې ادا کول غوره دی لکه عیدین او تراویح او کسوف او استسقاء وغیره.

[۱۰۴۳]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، أَخْبَرَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اجْعَلُوا فِي بُيُوتِكُمْ مِنْ صَلَاتِكُمْ وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا".

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: وګرځوئ په خپلو کورونو کې د مونځونو ستاسو نه، او تاسو مه نیسئ هغې لره پشان د قبرونو.

قوله، اجعلوا فی بیوتکم من صلوتکم،الخ، یعنی د خپلو مونځونو نه بعضې په خپلو کورونو کښې ادا کوئ د دې بعضو نه مراد ظاهره ده چه نفلونه دی. څکه چه فرض مونځونه خو جماعت سره ادا کولې شی او محل د جماعت جوماتونه دی.

قوله، ولا تتخذوها قبورا، یعنی څرنګه چه مړی په خپلو قبرونو کښې مونځ نه کوی هم دغه شان د مونځ په پرېښودلو سره تاسو خپل کورونه په منزله د قبرونو مهٔ جوړوی، یا دا چه څنګه په مقبره کښې مونځ نشی کولې د خپلو کورونو سره دا معامله مهٔ کوئ.

**شرح حدیث:**

په دې صورت کښې دا د حدیث ټکړه به د ماقبل دپاره تاکید وی او بعضو دې لره جمله مستأنفه ګرځولې ده چه دا یو بل مستقل حکم دې په کورونو کښې قبرونه نهٔ دی جوړول پکار هلته دې مړی دفن نهٔ کړې شی او حضور لره چه د هغوی په کور کښې دفن کړې شوې دې نو دا د انبیاؤ خصوصیات دی، دا جمله د دویم مطلب په صورت کښې هم د ماقبل سره مربوط کیدې شی، هغه داسې که په کورونو کښې قبرونه جوړ کړې شی او هلته مړی دفن کړې شی نو هغه کور به مقبره شی او په مقبره کښې مونځ کول مکروه دی حال دا چه په کورونو کښې د مونځ کولو حکم دې، او بعضې ظرفاء د دې یو بل مطلب لیکلې دې هغه دا چه په کورونو کښې هم مونځ کول پکار دی او که میلمه راشی نو د هغهٔ میلمستیا او خوراک څښکاک ورکول هم پکاردی نهٔ داسې لکه چه په مقبره کښې وی چه هلته هیڅ میلمستیا کونکی نهٔ وی.

[۱۰۴۴]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صَلَاةُ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهِ فِي مَسْجِدِي هَذَا إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ".

د زید بن ثابت نه روایت دی بېشکه رسول الله ﷺ ویلي دي: مونځ د سړي په کور کې هغه ډېر افضل دی د مونځ د هغه نه زما په دې مسجد کې مګر فرض نه.

[1]: صحيح البخاري/الصلاة ٥٢ (٤٣٢)، والتهجد ٣٧ (١١٨٧)، صحيح مسلم/المسافرين ٢٩ (٧٧٧)، سنن الترمذي/الصلاة ٢١٤ (٤٥١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨٦ (١٣٧٧)، (تحفة الأشراف: ٨١٤٢)، وقد أخرجه: سنن النسائي/قيام الليل ١ (١٥٩٩)، مسند احمد (٢/٦، ١٦، ١٢٣) ويأتي برقم: (١٤٤٨) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأذان ٨١ (٧٣١)، والأدب ٧٥ (٦١١٣)، والاعتصام ٣ (٧٢٩٠)، صحيح مسلم/المسافرين ٢٩ (٧٨١)، سنن النسائي/قيام الليل ١ (١٦٠٠)، (تحفة الأشراف: ٣٦٩٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٢١٩ (٤٥٠)، موطا امام مالك/ صلاة الجماعة ١ (٤)، مسند احمد (٥/ ١٨٢، ١٨٤، ١٨٦، ١٨٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٩٦ (١٤٠٦) ويأتي هذا الحديث برقم (١٤٤٧) (صحيح)

## بَابٌ مَنْ صَلَّى لِغَيْرِ الْقِبْلَةِ ثُمَّ عَلِمَ

**باب دی په بیان د هغه چا کښې چې مونځ وکړي د قبلې نه بلې خوا ته بیا ورته پته ولګي**

داسې او ګڼړئ چه دا یو بغیر د استیشن پلیټ فارم دې کوم چه ناڅاپه راغلو، زما مطلب دا دې چه د مصنفینو طریقه دا ده چه کله هغوی د یوې نوع د مسائلو نه فارغ شی نو د بل قسم مسائل شروع کوی نو د هغې دپاره اول یو ښکاره سرخی(عنوان کلی) قائموی په لفظ د کتاب سره یا د دې پشان بل یو لفظ، او بیا د هغې د لاندې د هغې مناسب ابواب راوړی، دلته مصنف داسې نۀ دی کړی، آو امام نسائی کړې دی هغوی د کتاب المساجد او د هغې د ابوابو نه فارغ کیدو نه پس د کتاب القبله سرخی قائمه کړې ده او بیا د هغې د لاندې څو ابواب د هغې مناسب راوړې دی، په هغه ټولو کښې یوه ترجمه هغوی دا قائمه کړې ده چه باب استبانة الخطاء بعد الاجتهاد، او بیا د هغې د لاندې ئې هم هغه حدیث ذکر کړې دې کوم چه امام ابوداؤد په دې باب کښې راوړې دې،د نسائی او ابوداؤد د ترجمې الفاظ اګر که مختلف دی خو مسئله دواړو یوه بیانوی.

د دې نه پس تاسو پوهه شئ چه کومه مسئله مصنف دلته بیانوی هغه وقوع الخطاء فی التحری ده کومه چه د فقهي مشهوره مسئله ده هغه دا چه چا ته د قبلې طرف دصحیح علم نۀ وی او څوك ښودنکې هم نۀ وی نو د دې سړی دا حکم دې.

**په مسئلة الباب کښې د ائمه مذاهب:**

چه داسې سړې دې د قبلې تحری اوکړی یعنی د قبلې په باره کښې غور او خوض اوکړی او یو رائې دې قائمه کړی او کوم طرف ته چه زیات میلان وی هغه دې قبله اوګرځوی او دې طرف ته دې مونځ شروع کړی، او که فرض کړه په مانځه کښې دننه تحری بدله شی نو په مانځه کښې دې هغې طرف ته راتاو شی او که د دویم طرف په حقله ئې هم رائې بدله شوه نو په مانځه کښې دې هغې دریم طرف ته خپل مخ بدل کړی تر دې چه څلورو طرفونو ته د تاویدو نوبت راشی نو هم څۀ باك نشته دې مونځ به صحیح شی دا د حنفیانو مذهب دې او هم دا د حنابله قول هم دې، او د مالکیه په نیز باندې اعاده فی الوقت ده نۀ بعد الوقت، او د شوافعو په دې کښې دوه قوله دی، قسطلانی فرمائی اظهر القولین اعادۀ د وجوب ده، او قول ثانی عدم الاعاده ده خو امام نووی په شرح د مسلم کښې د حدیث الباب د لاندې دا لیکلې دی چه اصح قول د شوافعو عدم الوجوب دې،[1] او حافظ ابن حجر صرف یو قول یعنی وجوب الاعاده لیکلې دې، د دینه معلومیږی چه د قسطلانی خبره صحیح ده.

[۱۰۴۵](2) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، وَحُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ "كَانُوا يُصَلُّونَ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ، فَلَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا

---

[1] زمونږ شیخ به فرمائیل چه د امام نووی عادت دې چه په کومه مسئله کښې د امام شافعی دوه قوله وی نو د مسلم شریف حدیث چه کوم د دوئ دقول مطابق وی هم د هغې په حقله هغه (نووی) لیکی چه هم دا د شافعی مذهب دې.

[2] صحیح مسلم بالمساجد ۲ (۵۲۷)، (تحفة الأشراف: ۳۱٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸٤/۳) (صحیح)

كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ سورة البقرة آية ۱۴۴ فَمَرَّ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَلِمَةَ فَنَادَاهُمْ وَهُمْ رُكُوعٌ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ نَحْوَ بَيْتِ الْمَقْدِسِ: أَلَا إِنَّ الْقِبْلَةَ قَدْ حُوِّلَتْ إِلَى الْكَعْبَةِ مَرَّتَيْنِ، فَمَالُوا كَمَا هُمْ رُكُوعٌ إِلَى الْكَعْبَةِ".

د انس رضی الله عنه نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ او د هغه ملګري وو چې مونځ يې کولو طرف د بيت المقدس ته، هرکله چې نازل شو دا ايت (فول وجهک شطر المسجد الحرام و حيث ما کنتم فولوا وجوهکم شطره) نو تير شو يو سړی د بنو سلمة نه، نو اواز يې وکړو دوی ته او هغوی په رکوع کې وو د سحر په مانځه کې طرف د بيت المقدس ته: خبر شئ بېشکه قبله بدله شوه کعبې طرف ته، دوه ځل، نو دوی واوريدل څنګه چې وو د رکوع په حالت کې.

## تشريح:

۱: عن انس ان النبی صلی الله علیه وسلم و اصحابه کانوا يصلون نحو بيت المقدس فلما نزلت هذه الاية.الخ، د هجرت په ابتداء کښې به حضور ﷺ بيت المقدس طرف ته مونځ کولو د دې نه پس تحويل د قبلې اوشو، تحويل د قبلې کله شوې وو او څومره مودې پورې حضور ﷺ په مدينه منوره کښې د قيام په وخت کښې د بيت المقدس طرف ته مونځ کړې دې دغه شان قبل الهجرة په مکه مکرمه کښې به حضور ﷺ کوم طرف ته مونځ کولو دا ټول بحثونه زمونږ په کتاب الاذان کښې، احليت الصلوة الى ثلاثة احوال الحديث، د لاندې تير شوې دی.

قوله، فحر رجل من بنی سلمة فناداهم وهم رکوع فی صلوة الفجر نحو بيت المقدس الا انّ القبلة قد حولت الى الکعبة،الخ، پوهيدل پکار دی چه کومه قصه په دې حديث کښې مذکور ده يعنی دا چه صحابه کرامو په يو جومات کښې د صبا مونځ کولو کله چه رکوع ته اورسيدل نو د جومات نه بهر ئې يو اعلان کونکی اعلان واوريدلو، الا ان القبلة قد حولت، خبردار شئ قبله بدله شوې ده.

## د تحويل قبله په حقله دوه مختلف حديثونه:

دا حديث د ابن عمر دې او د صبا د مونځ قصه ده لکه څنګه چه په روايت کښې تصريح ده، دغه شان دا حديث په بخاری او مسلم کښې هم دې، دغه شان يوه بله قصه کومه چه په بخاری او مسلم او ترمذی کښې هم مذکور ده په هغې کښې د مازيګر د مونځ ذکر دې او د هغې راوی براء بن عازب دې، دې لره دې تعارض اونه ګنړلې شی بلکه دا دوه جدا جدا قصې دی د مازيګر د مونځ قصه کومه چه د براء بن عازب حديث کښې ده هغه د بنوحارثه د جومات ده کوم چه په مدينه کښې داخل دې او د صبا د مونځ قصه د کوم راوی چه ابن عمر دې کومه چه دلته په ابوداؤد کښې دې دا خارج د مدينې نه يعنی د قبا واقعه ده، داخل د مدينې ته دا خبر ړومبې اورسيدو يعنی د مازيګر په مانځه کښې او په قباء کښې اطلاع وريسې ورځ اوشوه کله چه خلقو د صبا مونځ کولو، دلته څو علمی بحثونه دی چه دهغې زده کول چه ضروری دی.

........

## حدیث الباب سره متعلق مباحث عشره

### بحث اول

د قبلې تحویل د حضور ﷺ په مانځه کښې دننه شوې وو یا نهٔ؟ که د حضور ﷺ په مانځه کښې شوې وی نو بیا کوم مونځ وو او په کوم جومات کښې وو، د حضرت ګنګوهی رحمه الله رائې دا ده چه تحویل خارج صلوة شوې وو د حضور اقدس ﷺ په مانځه کښې دننه نهٔ وو شوې، حضرت فرمائی چه څوك داسې وائی هغه غلط دې، علامه سیوطی د رائې نه هم دا معلومیږی، (کما فی الاوجز) خو مشهور عند الشراح دا ده چه فی وسط الصلوة شوې ده.

### بحث ثانی

اوس دا چه په کوم مونځ او په کوم جومات کښې شوې دې، حافظ رحمه الله وائی چه په دې کښې روایات مختلف دی، ظاهر د حدیث د براء نه معلومیږی چه هغه د ماسپخین مونځ دې هم دغه شان محمد بن سعد په طبقات کښې ذکر کړې دی چه حضور ﷺ په مسجد نبوی کښې د ماسپخین مونځ کولو دوه رکعاته ئې کړې ووو چه د قبلې د تحویل حکم نازل شو پس حضور ﷺ هم په مانځه کښې مخ واړولو، او وئیلې شوې دی چه حضور ﷺ د أم بشر د ملاقات دپاره بنوسلمه ته تشریف اوړې وو هغوی د حضور ﷺ دپاره ډوډئ تیاره کړې وه چه د ماسپخین د مانځه وخت راغلو حضور ﷺ په مانځه کښې مشغول وو چه په دې حال کښې تحویل اوشو، نو ګویا نیم مونځ ئې بیت المقدس طرف ته ادا کړې وو او نیم مونځ ئې بیت الله طرف ته هم د دې وجه نه دې جومات نوم مسجد القبلتین شو.

### بحث ثالث: د مخبر په خبر باندې د مونځګذارو تاویدل

، په دې کښې دوه قصې دی یو د اهل قبا او دویم د بنوحارثه لکه څنګه چه د دې تفصیل په شروع باب کښې تیر شو.

### بحث رابع: د دې مخبر او اعلان کونکی نوم څهٔ وو؟

مشهوره دا ده چه د دهٔ نوم عباد بن بشر دې و هوالراجح و قیل عبادة بن نهیك، خو د ابوداؤد په روایت کښې، رجل من بنی سلمة، واقع دې حال دا دې چه عباد بن بشر د بنوحارثه نه دې، نو کیدې شی چه په یو واقعه کښې عباد بن بشر وی او په بله کښې بل څوك وو.

### بحث خامس: نسخ القطعی بخبر الواحد

نسخ القطعی بخبر الواحد، یعنی څنګه چه صحابه د رومبې نه مونځ کولو د هغوی قبله خو قطعی او یقینی وه او د مخبر دا خبر خو خبر واحد دې نو حکم قطعی په خبر واحد سره څنګه منسوخ شو، د دې دوه جوابونه دی، اول دا چه دا خبر واحد محتف بالقرائن وو او کوم خبر واحد چه محتف بالقرائن وی هغه مفید د یقین وی لکه څنګه چه تاسو په شرح نخبه کښې لوستلې دی او د دې مثال هم هلته تیر شوې دې لهذا دا نسخ القطعی بالقطعی ده نهٔ بالظنی، او دویم جواب دا دې چه د صحابه کرامو په زمانه کښې نسخ القطعی بخبر الواحد جائز وه د دې وجه دا ده چه د احادیثو چه کومې درجې او مراتب دی یو حسن دې بل صحیح بل ضعیف، دا اختلاف د سند د احوالو په اعتبار سره دې چه د کومې درجې سند

وی د هغې درجې حدیث منلې شی ګینې حدیث من حیث الحدیث یعنی فی حد ذاته قطعی او یقینی دې د دې د ضعیف کېدو هیڅ سوال نۀ پیدا کیږی بلکه د سند او رواتو د ضعف د وجه نه حدیث ته ضعیف وئیلې کیږی او چونکه صحابه کرام او د حضور ﷺ په مینځ کښې څه واسطه او سند حائل نشته نو څکه د صحابی په حق کښې هیڅ یو حدیث هم ضعیف کیدې نۀ شی څکه چه هغه نیغ په نیغ د حضور ﷺ د ژبې مبارکې نه اوریدلو لهذا د صحابی په حق کښې خبر واحد هم قطعی او یقینی وو د دې انکار کفر وو.

## بحث سادس: کیفیة الاستداره

کیفیة الاستداره یعنی دا خلق څنګه په مانځه کښې تاو شو د دې بیان د طبرانی په روایت کښې داسې دې، فتحول النساء مکان الرجال و الرجال مکان النساء، د دې تشریح دا ده چه بیت المقدس د مکې نه بالکل په جانب مقابل کښې دې، بیت المقدس د مدینې نه په جانب د شمال کښې دې او مکه په جانب د جنوب کښې ده اوس چه قبله د شمال په ځائې جنوب طرف ته شوه نو دا ممکنه نۀ ده چه امام او مقتدی ټول په خپلو ځایونو باندې پاتې شی او صرف مخ واړوی څکه چه په دې صورت کښې امام به د ټولو نه روستو پاتې شی د دۀ نه وړاندې به د سړو صف شی او د هغوی نه وړاندې به د ښځو صف نو د ټولو نه وړاندې به د ښځو صف شی، او دا کیدې نۀ شی چه امام خو دې په خپل ځائې باندې وی او مخ دې واړوی او د سړو او ښځو صفونو دې د خپل ځائې نه بدل شی او امام پسې روستو راشی، څکه چه امام پسې روستو په جومات کښې دومره ځائې نشته چه هلته ټول راځائې شی نو څکه د دې شکل دا شو چه امام به د خپل ځائې نه یعنی مقدم د مسجد نه منتقل شو او مؤخر یعنی آخر د جومات ته راغلو او د ښځو صف د خپل ځائې نه د سړو ځائې ته او سړی د خپل ځائې نه منتقل شو او د ښځو ځائې ته راغلل، (افاده الحافظ ابن حجر)

## بحث سابع:

پورته تیر شوې صورت کښې ظاهره ده چه د مانځه په مینځ کښې مشی او عمل کثیر اوموندلې شو، او دا خبره موجب د اشکال ده، حافظ رحمه الله د دې دوه جوابونه لیکلې دی، اول دا چه کیدې شی دا واقعه د عمل کثیر د تحریم نه وړاندې وی څکه چه یوه زمانه هغه وه په کومه کښې چه کلام فی الصلوة او عمل کثیر فی الصلوة جائز وو روستو دا ټول منسوخ شو، دویم جواب دا دې چه کیدې شی دا واقعه د تحریم نه روستو وی خو چونکه عمل کثیر د مونځ د مصلحت دپاره وو نو څکه دې لره مغتفر اوګرځولې شو.

**بحث ثامن:** اختلاف الروایات فی مدة النسخ،

**بحث تاسع:** صلوته علیه الصلوة والسلام بمکة این کانت ای فی ایّ جانب، دا دواړه بحثونه وړاندې تیر شوې دی په کتاب الاذان کښې.

## بحث عاشر:

هغه کوم احکام دی په کومو کښې چه د نسخې وقوع دوه یا درې ځلې شوې، د یو قول په بناء باندې تحویل قبله هم د دې قبیلې نه ده د دې بیان په باب الوضوء مما مست النار کښې

تیر شوي دي، تلك عشرة كاملة فلله الحمد والمنة.

قوله، فمالوا كما هم ركوع الى الكعبة، په دې کښې کاف دمفاجاة او مبادرة دپاره دی او د رکوع لفظ د راکع جمع ده یعنی اعلان اوریدو سره هغه خلق سمدستی د رکوع په حالت کښې کعبې طرف ته اوګرځیدل، د دې حدیث نه ډیر فوائد مستفاد شو کوم چه د حدیث شارحینو لیکلې دی یو دهغې نه دا دې چه د نسخې حکم د مکلف په حق کښې تر هغه وخت پورې ثابت نۀ وی ترڅو پورې چه دۀ ته اطلاع نۀ وی، اوګورئ دلته نسخ د قبلې یوه ورځ وړاندې شوې وه خو اهل قبا ته د دې خبر ورپسې ورځ باندې د صبا په مانځه کښې اوشو نو بیا هغوی په دې باندې عمل شروع کړو او د دېنه وړاندې هغوی په خپل اجتهاد او د استصحاب حال په توګه باندې د بيت المقدس طرف ته مونځ کولو حال دادې چه د دوئ دا اجتهاد غلط وو نو څکه فقهاؤ دا مسئله مستبط کړې ده چه د قبلې په حقله که په تحری او اجتهاد کښې غلطی واقع شی نو هغه معاف ده د ائمه مذاهب په دې کښې تیر شوې دی.

## تفريع أبواب الجمعة

### د جمعې مبارکې احکام او مسائل

## بَاب فَضْلِ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَلَيْلَةِ الْجُمُعَةِ

### باب دی په بیان د فضیلت د ورځ د جمعې کې او په شپې د جمعه کې

### ماقبل سره مناسبت:

تراوسه پورې د صلوة خمسه او هغې سره متعلق احکامو او مسائلو بیان روان وو اوس د دې ځائې نه مصنف د صلوات مخصوصه لکه جمعه او استسقاء، کسوف او د عیدینو بیان شروع کوی د تفریع معنی تفصیل او تجزیه ده، کوم مضمون چه تفصیل غواړی او د هغې په باره کښې مصنف قصد د ګڼړو ابوابو قائمولو وی نو د هغې په شروع کښې مصنف اکثر د تفریع لفظ راوړی لهذا دا عنوان په منزله د کتاب دې لکه څنګه چه د هغې د لاندې ډیر بابونه دی دغه شان په دې کښې هم څو بحثونه دی.

### بحث اول: د ما قبل سره مناسبت

د ماقبل سره مناسبت، د دې بیان اوس پورته ذکر شو.

### بحث ثانی: د لفظ جمعه تحقیق

د جمعه د لفظ لغوی تحقیق او وجه تسمیه، دا مضمون په کتاب الطهارة باب غسل الجمعة کښې تیر شوې دې.

### بحث ثالث: خصائص الجمعة

حافظ ابن قیم په زاد المعاد کښې د جمعې د ورځې درې دیرش، ۳۳، خصوصیات ذکر کړې دی په هغې کښې حافظ ابن حجر د پنځویشتو اختصار کړې دې کوم چه حضرت په بذل المجهود کښې نقل فرمائیلې دی، او علامه سیوطی رحمه الله په دې باندې یوه مستقله رساله لیکلې ده، اللمعة من خصائص الجمعة، په دې کښې هغوی د جمعې سره متعلق سل، ۱۰۰، خصائص او احکام ذکر فرمائیلې دی.

## بحث رابع: د افضل الایام مصداق او د دې تعین

نو زده کول پکار دی چه په دې سلسله کښې روایات مختلف دی، مصنف په دې باب کښې د دینه چه رومبې کوم حدیث ذکر کړې دې د هغې معلومیږی چه افضل الایام د جمعې ورځ ده، حافظ منذری لیکی چه د دې حدیث تخریج د امام ابوداوٗد نه علاوه امام ترمذی او نسائی هم کړې دې، او امام ترمذی رحمه الله فرمائیلې دی چه هذا حدیث صحیح، او امام بخاری رحمه الله د دې حدیث یوه ټکړه کومه چه د جمعې د اجابت د وختونه سره متعلق ده هغه ذکر کړې ده، او امام مسلم رحمه الله د دې حدیث رومبۍ حصه، خیر یوم طلعت علیه الشمس یوم الجمعة، ذکر فرمائیلې ده، شوکانی فرمائی چه د دې حدیث نه معلومیږی چه یوم الجمعة افضل الایام ده او په دې سره جزم کړې دی ابن العربی خو په صحیح د ابن حبان کښې د عبدالله بن قرط حدیث سره مرفوعا مروی دی، افضل الایام عند الله تعالٰی یوم النحر، او په صحیح د ابن حبان کښې د جابر رضی الله عنه نه مرفوعا راغلې دی، ما من یوم افضل عند الله تعالٰی من یوم عرفة، حافظ عراقی په دې مختلفو روایتونو کښې جمع داسې کړې ده چه داسې اووئیلې شی چه ایام اسبوع (هفته) کښې یوم الجمعة افضل ده، او د ټول کال په ورځو کښې یوم عرفه افضل ده یا یوم النحر، دغه شان هغوی دا هم فرمائیلې دی چه د یوم الجمعة د افضلیت حدیث زیات صحیح دی.

[۱۰٤٦](١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَيْرُ يَوْمٍ طَلَعَتْ فِيهِ الشَّمْسُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ أُهْبِطَ وَفِيهِ تِيبَ عَلَيْهِ، وَفِيهِ مَاتَ، وَفِيهِ تَقُومُ السَّاعَةُ، وَمَا مِنْ دَابَّةٍ إِلَّا وَهِيَ مُسِيخَةٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِنْ حِينَ تُصْبِحُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ شَفَقًا مِنَ السَّاعَةِ إِلَّا الْجِنَّ وَالْإِنْسَ، وَفِيهِ سَاعَةٌ لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّي يَسْأَلُ اللَّهَ حَاجَةً إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهَا". قَالَ كَعْبٌ: ذَلِكَ فِي كُلِّ سَنَةٍ يَوْمٌ؟ فَقُلْتُ: بَلْ، فِي كُلِّ جُمُعَةٍ، قَالَ: فَقَرَأَ كَعْبٌ التَّوْرَاةَ، فَقَالَ: صَدَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: ثُمَّ لَقِيتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَلَامٍ فَحَدَّثْتُهُ بِمَجْلِسِي مَعَ كَعْبٍ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: قَدْ عَلِمْتُ أَيَّةَ سَاعَةٍ هِيَ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَقُلْتُ لَهُ: فَأَخْبِرْنِي بِهَا، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: هِيَ آخِرُ سَاعَةٍ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ، فَقُلْتُ: كَيْفَ هِيَ آخِرُ سَاعَةٍ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ، وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُصَادِفُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ يُصَلِّي" وَتِلْكَ السَّاعَةُ لَا يُصَلَّى فِيهَا؟ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَلَامٍ: أَلَمْ يَقُلْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا يَنْتَظِرُ الصَّلَاةَ فَهُوَ فِي صَلَاةٍ حَتَّى يُصَلِّيَ"؟ قَالَ: فَقُلْتُ: بَلَى، قَالَ: هُوَ ذَاكَ.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلې دي، چې رسول الله ﷺ ویلي دي: بهترینه ورځ چې نمر په هغې کې راختلی دی ورځ د جمعې ده، په هغې کې آدم پیدا شوی دی او په هغې کې راخکته شوی دی، او په هغې کې یې توبه قبوله شوې ده، او په هغې کې وفات شوی دی،

(١): سنن الترمذي/الجمعة ٢ (٤٩١)، سنن النسائي/الجمعة ٤٤ (١٤٣١)، (تحفة الأشراف: ٢٠٢٥، ١٥٠٠٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ٣٧ (٩٣٥)، والطلاق ٢٤ (٥٢٩٤)، والدعوات ٦١ (٦٤٠٠)، (في جميع المواضع مقتصراً علي قوله: فيه الساعة ...) صحيح مسلم/الجمعة ٤ (٨٥٢)، ٥ (٨٥٤ بيعضه)، سنن النسائي/الجمعة ٤ (١٣٧٤)، ٤٥ (١٤٣١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩٩ (١١٣٧)، موطا امام مالك/صلاة الجمعة ٧ (١٦)، مسند احمد (٢/٢٣٠، ٢٥٥، ٢٥٧، ٢٧٢، ٢٨٠، ٢٨٤، ٤٠١، ٤٠٣، ٤٥٧، ٤٦٩، ٤٨١، ٤٨٩)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٠٤ (١٦١٠) (صحيح)

او په دي کي به قيامت قائمېږي، نشته هېڅ يوه دابه مگر هغه چغې وهي په ورځ د جمعه کې، د صباح نه واخله تر نمر ختلو پورې د وجې د ويرې د قيامت نه، مگر پيران او انسانان نه، او په دې کې يو ساعت دى چې نه مخ کېږي د هغې سره بنده مسلمان او هغه مونځ کوي او سوال وکړي د الله نه د څه حاجت، مگر وربه کړي هغه هغه ته. ويلي دي کعب: دا په ټول کال کې هره ورځ، ما وويل: بلکه په هره جمعه کې. هغه وايي: چې کعب تورات ولوستلو، هغه وويل: چې نبي ﷺ رشتيا ويلي دي، ويلي دي ابوهريره: بيا زه مخامخ شوم د عبد الله بن سلام سره نو ورته بيان وکړو زما د مجلس د کعب سره، نو وويل عبد الله بن سلام: يقيناً ماته پته ده چې هغه کوم ساعت دى، وويل ابو هريره: ما وويل هغه ته: ماته د هغې خبر راکړه، نو وويل عبد الله بن سلام: دا اخيري ساعت دى د ورځې د جمعې نه، او بېشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: نه مخامخ کېږي ورسره د مانځه په حالت کې. او په دغه وخت کې مونځ نه کوي، وويل عبد الله بن سلام: ايا نه وو ويلي رسول الله ﷺ څوک چې کېناستلو چې انتظاريې کولو د مانځه تردې چې مونځ وکړي، هغه وايي: چې ما وويل: ولي نه، هغه وويل: هغه هم دا دى.

## په شرح د حديث کښې د شراحو دوه قوله دي:

قوله، فيه خلق آدم و فيه اهبط. الخ: د جمعې په ورځې راتلونکي د کومو کارونو ذکر چه په دې حديث کښې دې ددې په حقله د شراحو دوه قوله دی کوم چه امام نووی نقل کړې دی،

۱: دقاضی عياض رائې دا ده چه د دې امورو ذکر کولو مقصود د دې ورځې فضيلت ثابتول نهٔ دی بلکه کوم لوئې کارونه چه په دې ورځ پيښيدونکې يا راتلونکی دی صرف د هغې اطلاع ورکول مقصود دی دې دپاره چه انسان په دې ورځ باندې اعمال صالحه کولو دپاره تيار شی د نعمت د حصول دپاره او د نقمة يعنی د ضرر د لرې کولو دپاره، ځکه چه د آدم عليه السلام د جنت نه وتل او په دې ورځ باندې قيامت قائميدل دا څۀ د فضيلت خبره نۀ ده.

۲: د دې په مقابله کښې دابوبکر بن العربی رائې په عارضة الاحوذی شرح د ترمذی کښې دا ده چه دا ټول امور د فضيلت د ثابتولو دپاره ذکر کړې شوې دی ځکه چه د آدم عليه السلام د جنت نه وتل او دنيا ته راتلل د لوئې نسل او د آولاد په وجود کښې د راتلو سبب دې کوم چه په انبياء او اولياء باندې مشتمل دې، دغه شان د هغوې د جنت نه وتل طردا نۀ وو بلکه د څۀ وخت دپاره د حوائجو پوره کولو دپاره وو او بيا هم هلته واپس تلل وۀ، دغه شان د اهل حق جنت کښې داخليدل او د اهل باطل په جهنم کښې داخليدل دا د قيامت په ورځ باندې موقوف دی لهذا د دې نه د دې ورځې فضيلت ظاهر دې.

قوله، و ما من دابة الا وهی مسيخة يوم الجمعة من حين تصبح حتی تطلع الشمس شفقا من الساعة الا الجن والانس، يعنی د جمعې په ورځ د صبح صادق نه واخله تر نمر ختلو وخت پورې څومره حيوانات چه دی غير د جن او انس نه هغوی غوږونه لګولې وی (د شپيلۍ آواز اوريدلو دپاره) د قيامت د ويرې نه ځکه چه قيامت به په دې ورځ راځی لکه څنګه چه د دې نه وړاندې حديث کښې تير شوی دی، د دينه دا هم معلومه شوه چه د قيامت وقوع به د

جمعې په ورځ د صبح صادق په وخت کښې وی، دا ډير د عبرت ځائې دې چه د قيامت ويره او د دې فکر عامو ځناورو ته خو وی او انسان ته نۀ وی.

وړاندې په دې حديث کښې د اجابت د وختونو ذکر دې کومو لره په اوريدلو سره کعب احبار (چه دمخضرمينو نه دې د ابوبکر صديق ﷺ په زمانه کښې ئې اسلام راوړلو او د توراة لوئې عالم وو) هغه ابوهريره ﷺ مخاطب کولو سره اوئيل او وائی چه دا د اجابت وختونه په کال کښې صرف يو جمعه کښې وی ابوهريره ﷺ اوفرمائيل نۀ په هره جمعه کښې وی نو په دې باندې کعب توراة راپورته کړو او ونې کتلو او بيا ئې د ابوهريره ﷺ تصديق اوکړو او وئې وئيل، صدق رسول الله صلی الله عليه وسلم. د دينه معلومه شوه چه شريعت محمديه د مخکښنی آسمانی کتابونو دپاره مصدق دې، او داسې هم وئيلې شی چه مخکښنې آسمانی کتابونه د دې دپاره مصدق دی. قال ابوهريرة رضی الله عنه ثم لقيت عبدالله بن سلام، حضرت ابوهريره ﷺ روستو د عبدالله بن سلام ﷺ سره ملاؤ شو او کومې خبرې اترې چه د دوئ د کعب احبار سره شوې وې هغه ئې دوئ ته ذکر کړې په دې باندې عبدالله بن سلام ﷺ اوفرمائيل زۀ پيژنم چه هغه کوم وخت دې، د ابوهريره ﷺ په تپوس کولو سره هغوی اوښودل چه هغه د جمعې د ورځې آخری وختونه دی وړاندې د حديث مضمون واضح دې.[1]

[۱۰۴۷] ([2]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ قُبِضَ، وَفِيهِ النَّفْخَةُ، وَفِيهِ الصَّعْقَةُ، فَأَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيهِ فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوضَةٌ عَلَيَّ" قَالَ: قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَكَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ أَرِمْتَ؟ يَقُولُونَ: بَلِيتَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ".

د اوس بن اوس نه روايت دی هغه وئيلي دي چې رسول الله ﷺ وئيلي دي: بېشکه ستاسو په ورځو کې بهترينه ورځ ورځ د جمعي ده، په دي کې ادم پيدا شوی دی، او په هغې کې

[1]) دا روايت دلته مختصر دې پوره مفصل روايت په نسائی شريف، ص، ۲۱۰، کښې دې په هغې دا هم دي چه ابوهريره ﷺ فرمائی چه زۀ يو ځل کوه طور ته اورسيدلم ما هلته کعب احبار اوموندلو يوه ورځ هلته ايسار اوم ما هغوی ته د حضور ﷺ حديثونه واورول او هغه ماته توراة اورولو د دې په ضمن کښې ابوهريره ﷺ هغوی ته د جمعې د ورځې د فضيلت حديث هم واورولو په کوم باندې چه کعب احبار اووئيل دا وختونه د اجابت په کال کښې صرف يو ځل وی او په دې کښې دا هم دی چه په واپسئ کښې زما ليدل د عبدالله بن سلام ﷺ سره اوشو او ما هغوی ته عرض اوکړو چه زۀ د کوه طور ته واپس راروان يم هلته زما د کعب احبار سره ليدل اوشول، او څۀ خبرې اترې چه د هغۀ سره شوې وې هغه چه کله عبدالله بن سلام ﷺ ته نقل کولې نو کله ئې چه نقل کولې تر دې چه اورسيدو دې پورې چه کعب احبار دا وئيلې وو چه، ذالك يوم فی كل سنة، نو په دې باندې سمدستی عبد الله بن سلام ﷺ اووئيل، كذب كعب، بيا وړاندې ابوهريره ﷺ پوره خبره اوښودله چه آو ما هم د هغۀ ترديد کړې وو او روستو بيا هغوی دا اومنله.۱۲ منه.

[2]): سنن النسائي/الجمعة ٥ (١٣٧٥)، سنن ابن ماجه/الجنائز ٦٥ (١٦٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨/٤)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٠٦ (١٦١٣) (صحيح)

وفات شوی دی، او په هغې کې قیامت دی، او په هغې بېهوشه کیدل دي، زیات کړئ په ما باندې درود په دې کې، بېشکه ستاسو درود پیش کېږي په ما باندې. هغه وایي: چې وویل دوی: ای د الله رسوله، او څنګه به زمونږ درود پیش کېږي په تا باندې او بېشکه ته به زوړ شوی یې. هغوی وایي: ته به زوړ شوی یې؟ هغه وویل: بېشکه الله عز وجل حرام کړي دي اجساد د انبیاو.

قوله، و فیه النفخة و فیه الصعقة:

### شرح حدیث او د نفخاتو په شمیر کښې د علماء اختلاف:

د نفخه نه مراد نفخة البعث ده کومې ته چه نفخة الاحیاء هم وئیلې کیږي یعنی نفخه ثانیه په کوې سره به چه ټول خلق ژوندې شی او د قبرونو نه به راپاسی، او د صعقې نه مراد نفخة الصعق ده یعنی نفخه اولی په کومې سره به چه ټول ذی روح ځیزونه مړ شی، کما فی قوله تعالی و نفخ فی الصور فصعق من فی السمٰوٰت و من فی الارض الا من شاء الله ثم نفخ فیه اخری فاذا هم قیام ینظرون، د دې آیت نه بظاهر هم دا معلومیږي چه نفخة الصعق نفخه اولی ده په کومې سره به چه ټول مړهٔ شی د دینه پس به شپیلئ پوك وهلې شی په کومې سره به چه ټول ژوندې شی کومې ته چه نفخة البعث وئیلې کیږي، خو د آیت شریف ترتیب خو د قیاس مطابق دې چه اول ئې اولا ذکر کړو ثانی ئې ثانیاً، خو په حدیث کښې ترتیب د دې برعکس دې، پوهیدل پکار دی چه د نفخاتو په عدد کښې اختلاف دې دوه خو متفق علیه دی نفخة الاماتة او نفخة البعث، (نفخة الاحیاء) او د بعضې علماؤ رائې دا ده چه نفخات درې دی دوه خو هغه کومې چه پورته ذکر شوې او یوه به د دې دواړو نه رومبې وی په کومې سره به چه په زمکه باندې زلزله راشی او تسییر الجبال او تکویر شمس او انکدار نجوم او تسجیر البحار وغیره لوئې کارونو وقوع به کیږي خو په دې نفخې سره به خلق مری نهٔ خو سخت حیران او سرګردانه به شی بیا به د دې نه پس نفخه ثانیه او ثالثه اوموندلې شی د کومو ذکر چه په حدیث کښې دې او بعضو څلورم او پنځم قسم هم ذکر کړې دې د کومو تفصیل چه په لامع الدراری، ص، ۴۷، ج، ۳، کښې دې.

۲: حدثنا هارون بن عبدالله. الخ، قوله، فاکثروا علی من الصلوة فیه، د دینه د جمعې په ورځ په خاص توګه د صلوة علی النبی ﷺ ماموربه کیدل معلومیږي، او په نورو ډیرو روایتونو کښې هم د جمعې په ورځ خصوصیت سره د درود ترغیب راغلې دې.

## بَابُ الإِجَابَةِ أَيَّةُ سَاعَةٍ هِيَ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ

### باب دی په بیان د اجابت کې چې دا کوم ساعت دی د جمعې په ورځ

د جمعې د ورځې فضیلت د دې وجه نه هم دې چه په دې کښې یو وخت د اجابت دې په کوم کښې چه کومه دعاء هم د الله تعالی نه اوغواړی حضور ﷺ فرمائیلې دی هغه قبلیږي، د دې اجابت د وخت ذکر په صحیحینو بلکه په ټولو صحاح سته کښې موجود دې، البته د دې وخت په تعین کښې په روایاتو کښې ډیر اختلاف دې.

[۱۰۴۸](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، أَنَّ الْجُلَاحَ مَوْلَى عَبْدِ الْعَزِيزِ حَدَّثَهُ، أَنَّ أَبَا سَلَمَةَ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ حَدَّثَهُ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "يَوْمُ الْجُمُعَةِ ثِنْتَا عَشْرَةَ يُرِيدُ سَاعَةً لَا يُوجَدُ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ شَيْئًا إِلَّا أَتَاهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ، فَالْتَمِسُوهَا آخِرَ سَاعَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ".

د جابر بن عبد الله نه روايت دى، هغه روايت کوي د رسول الله ﷺ نه، بېشکه هغه ويلي دي: دجمعي ورځ دولس- دده اراده دساعت وه، نه مونډل کېږي هېڅ مسلمان چي سوال کوي دالله عز وجل نه دخه شي، نو ولتوئ هغي لره په اخرني ساعت کې وروسته د مازيګر نه.

[۱۰۴۹](۲)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَخْرَمَةُ يَعْنِي ابْنَ بُكَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ لِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ: أَسَمِعْتَ أَبَاكَ يُحَدِّثُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي شَأْنِ الْجُمُعَةِ؟ يَعْنِي السَّاعَةَ، قَالَ: قُلْتُ: نَعَمْ، سَمِعْتُهُ يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "هِيَ مَا بَيْنَ أَنْ يَجْلِسَ الْإِمَامُ إِلَى أَنْ تُقْضَى الصَّلَاةُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي عَلَى الْمِنْبَرِ.

د ابو بردة بن ابي موسى الاشعري نه روايت دى هغه ويلي دي، وويل ماته عبد الله بن عمر: ايا تا د خپل پلار نه اوريدلي دي چي د رسول الله ﷺ نه حديث بيانوي په باره د جمعي کې ـ يعني هغه ساعت ـ؟ هغه وايي: چي ما وويل: آو، ما د هغه نه اوريدلي دي چي ويل يي: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه چي ويل يي: هغه د وخت د کښناستلو د امام نه تر پوره کيدو د مانځه پوري دى. ويلي دي ابوداود. يعني په منبر باندې.

## ساعت اجابت کښې اقوال او دقول راجح تعين سره د وجه د ترجيح نه:

حافظ ابن حجر په دې کښې دوه څلويښت اقوال په تفصيل سره ليکلي دي او د هر قول په حقله ئې د حديثو د کتابونو نه روايتونه پيش کړي دى،(۳) او بيا په آخر کښې د يو بل قول اضافه کړې ده د کوم په حقله چه هغه فرمائى چه هغه ما د شمس الدين الجزرى په مشهور کتاب الحصن الحصين کښې ملاؤ شوې دې، صاحب حصن حصين په دې سلسله کښې اتۀ اقواله ذکر کولو نه پس دا ليکلي دى چه زما رائې دا ده چه، انها وقت قراءة الامام الفاتحة فی صلوة الجمعة الى ان يقول أمين، او بيا حافظ په آخره کښې ليکلي دى چه په دې ټولو اقوالو کښې ارجح الاقوال دوه قوله دي يو هغه چه کوم په حديث د ابوموسیٰ اشعرى رضي الله عنه کښې مذکور دې او دويم هغه کوم چه د عبدالله بن سلام رضي الله عنه په حديث کښې دي.

زۀ وايم چه د عبدالله بن سلام رضي الله عنه حديث خو دلته تير شوې دې په کوم کښې چه دى، هى آخر ساعة من يوم الجمعة، دا روايت د ابوداؤد نه علاوه په ترمذى او نسائى کښې هم شته دغه شان په ابوداؤد کښې د حضرت جابر رضي الله عنه نه هم مرفوعا هم دا منقول دى او د ابوموسیٰ اشعرى رضي الله عنه حديث وړاندې په ابوداؤد کښې راروان دې چه د کوم الفاظ دا دى، هى ما بين

(۱): سنن النسائي/الجمعة ١٤ (١٣٩٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٥٧) (صحيح)
(۲): صحيح مسلم/الجمعة ٤ (٨٥٣)، (تحفة الأشراف: ٩٠٧٨) (صحيح)
(۳) حضرت سهانپورى رحمه الله په بذل کښې دا ټول اقوال په اختصار او حذف د رواياتو سره ذکر فرمائيلي دى.)۱۲منه

ان يجلس الامام الى ان تقضى الصلوة، يعنى کوم وخت چه امام د خطبه ورکولو دپاره په منبر باندې کينى د هغه وخت نه واخلې تر مونځ پوره کولو پورې، حضرت امام شافعی، امام نووی، بيهقى، ابن العربى، قرطبى دې ټولو حضراتو دې لره اختيار کړې دې ځکه چه د عبدالله بن سلام رضي الله عنه حديث خو د سننو روايت دې او د ابوموسى اشعرى رضي الله عنه حديث په احد الصحيحين يعنى صحيح مسلم شريف کښې موجود دې، عرف الشذی کښې ليکلې دى چه امام ابوحنيفه او احمد د سنن روايت لره اختيار کړې دې[1]

امام ترمذى د امام احمدنه نقل کړې دى چه،اكثر الاحاديث على ذالك، ددې قول واله دا وائى چه دصحيحين يا احد الصحيحين روايت لره ترجيح هغه وخت وى کله چه محدثينو نقد نهٔ وى کړې او دلته داسې نهٔ ده بلکه دابوموسى په حديث باندې جرح کړې شوې ده چه صحيح داده چه هغه د ابوبرده رضي الله عنه قول دې دمخرمه نه علاوه بل چا دا مرفوعاً نهٔ دې روايت کړې، دغه شان منقطع هم دې ځکه چه د مخرمه سماع د خپل پلار نه ثابته نهٔ ده، او بعضو رواتو دې لره موقوفا على ابى موسى روايت کړې دې، غرض دا چه د مسلم روايت معلل دې.

د دې ټولو اقوالو نه يو قول دا دې چه دا ساعت اوس باقى نهٔ دې پاتې شوې په شروع کښې د حضور ﷺ په وخت کښې وو روستو پورته کړې شو، خو محدثين لکه قاضى عياض او ابن القيم ابن عبدالبر وغيره حضراتو د دې قول ترديد فرمائيلې دې چه دا غلط دې، ابن القيم فرمائى چه دا خو وئيلې شى چه د دې تعين پورته کړې شوې لکه څنګه چه په يو روايت کښې دى، ثم النسيتها، رواه الحاكم، او داصل ساعت په حقله دا وينا غلطه ده، چنانچه د يو جماعت رائې دا ده چه دا ساعت د جمعې په ورځ کښې پټ دې د دې صحيح علم چا ته نشته دې په شان د ليلة القدر او اسم اعظم لهذا دجمعې په ورځ کثرت سره دعاء کول پکار دى په دې اميد او طمع باندې چه ساعت د اجابة ميسر شى درافعى او صاحب مغنى ميلان هم دې طرف ته دې.

## بَابُ فَضْلِ الْجُمُعَةِ

### باب دى په بيان د فضيلت د جمعې کې

مقصود د جمعې د مونځ فضيلت لره بيانول دى، او مصنف په دې باب کښې چه کوم حديث ذکر کړې دې په دې کښې دصلوة جمعه او خطبه د دواړو فضيلت مذکور دې، امام بخارى هم دا ترجمه قائمه کړې ده او بيا په دې باب کښې هغوى تبكير الى الجمعة واله روايت ذکر فرمائيلې دې، فكانما قرب بدنة فكانما قرب بقرة،الخ،

[۱۰۵۰] ([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ، ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَ الْجُمُعَةِ إِلَى

---

[1] ) دغه شان اسحاق بن راهويه و من المالكية الطرطوشي و حكي العلائي ان شيخه ابن الزملكاني شيخ الشافعية في وقته كان يختاره و يحكيه عن نص الشافعي و قال ابن عبد البر انه اثبت شئ في هذا الباب)۱۲_

[2] ): صحيح مسلم/الجمعة ۸ (۸۵۷)، سنن الترمذي/الجمعة ۵ (۴۹۸)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۶۲ (۱۰۲۵)، ۸۱ (۱۰۹۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۴۲۴) (صحيح)

الْجُمُعَةِ، وَزِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ، وَمَنْ مَسَّ الْحَصَى فَقَدْ لَغَا".

د ابو هريره ﷺ نه روايت دی هغه ويلي دي، چې رسول الله ﷺ ويلي دي: چا چې اودس وکړو او ښائسته اودس يي وکړو، بيا جمعي مانځه ته راغی غوږيي کېښوده او چوپ شو نو وبه بخښل شي هغه ته مابين د دې جمعي کې تر بلي جمعي پورې، او درې ورځې نورې، او چا چې کاڼی مس کړو نو هغه لغوه کار وکړو.

[۱۰۵۱]() حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ، عَنْ مَوْلَى امْرَأَتِهِ أُمِّ عُثْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلَى مِنْبَرِ الْكُوفَةِ، يَقُولُ: "إِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ غَدَتِ الشَّيَاطِينُ بِرَايَاتِهَا إِلَى الْأَسْوَاقِ فَيَرْمُونَ النَّاسَ بِالتَّرَابِيثِ أَوِ الرَّبَائِثِ، وَيُثَبِّطُونَهُمْ عَنِ الْجُمُعَةِ، وَتَغْدُو الْمَلَائِكَةُ فَيَجْلِسُونَ عَلَى أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ، فَيَكْتُبُونَ الرَّجُلَ مِنْ سَاعَةٍ وَالرَّجُلَ مِنْ سَاعَتَيْنِ حَتَّى يَخْرُجَ الْإِمَامُ، فَإِذَا جَلَسَ الرَّجُلُ مَجْلِسًا يَسْتَمْكِنُ فِيهِ مِنَ الِاسْتِمَاعِ وَالنَّظَرِ فَأَنْصَتَ وَلَمْ يَلْغُ كَانَ لَهُ كِفْلَانِ مِنْ أَجْرٍ، فَإِنْ نَأَى وَجَلَسَ حَيْثُ لَا يَسْمَعُ فَأَنْصَتَ وَلَمْ يَلْغُ كَانَ لَهُ كِفْلٌ مِنْ أَجْرٍ، وَإِنْ جَلَسَ مَجْلِسًا يَسْتَمْكِنُ فِيهِ مِنَ الِاسْتِمَاعِ وَالنَّظَرِ فَلَغَا وَلَمْ يُنْصِتْ كَانَ لَهُ كِفْلٌ مِنْ وِزْرٍ، وَمَنْ قَالَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ لِصَاحِبِهِ صَهٍ فَقَدْ لَغَا، وَمَنْ لَغَا فَلَيْسَ لَهُ فِي جُمُعَتِهِ تِلْكَ شَيْءٌ". ثُمَّ يَقُولُ فِي آخِرِ ذَلِكَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ ذَلِكَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ ابْنِ جَابِرٍ، قَالَ: بِالرَّبَائِثِ، وَقَالَ مَوْلَى امْرَأَتِهِ أُمِّ عُثْمَانَ بْنِ عَطَاءٍ.

د عطاء الخراساني نه روايت دی، هغه روايت کوي د مولی د ښځې هغه نه چې هغه ام عثمان ده، هغه وايي: ما اوريدلي دي د علي ﷺ نه په منبر د کوفه کې هغه ويل: کله چې شي ورځ د جمعه، روان شي شيطانان د خپلو بيرغونو سره بازارونو ته، خلق ولي په موانعو سره، او دوی وروسته کوي د جمعي نه، او ځي ملائکې سحر او کيني په دروازو د مسجد کې، هغوی ليکي سړي لره د يو ساعت نه، او سړی د دوه ساعتونو نه، تردې چې امام راوځي، کله چې کيني سړی په داسې ځای کې چې قادر وي په هغې کې د اوريدو نه او د نظر کولو نه امام ته، او چوپ شي او لغوه ونه کړي وي به د هغه لپاره دوه حصې د اجر وي، که چيري لرې شو او کېناستلو په داسې ځای کې چې اواز نه اوري او چوپ شو او لغوه يي ونه کړه د هغه لپاره يو اجر دی، او که چېرې په داسې ځای کې کېناستلو چې په کتلو او اوريدلو قادر وو او لغوه يي وکړه او چوپ نه شو نو وې به د هغه لپاره يوه حصه د گناه نه، او چا چې وويله خپل ملګري په ورځ د جمعه کې: چې چوپ شه، بېشکه هغه لغوه وکړه، او چا چې لغوه وکړه نو نشته د هغه لپاره د جمعي د هغه نه هيڅ شی. بيا به يي ويل په اخير د هغې کې: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه دغه يي ويل. ويلي دي ابوداود: د دې روايت کړی دی وليد بن مسلم د ابن جابر نه هغه ويلي دي: بالربائث، او هغه ويلي دي مولی د ښځې د هغه چې مور د عثمان بن عطاء ده.

## مضمون حديث:

قوله، اذا كان يوم الجمعة غدت الشياطين براياتها الى الاسواق: يعنی چه کله د جمعې ورځ وی نو د شيطانانو ډلې په خپلو مخصوصو جهنډو او علامو سره سحر وختی بازارونو طرف ته اوځی

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٣٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٩٣) (ضعيف)

دې دپاره چه کوم خلق بازارونو ته د خپلو خپلو ضرورتونو دپاره راغلی دی یا هم په بازارونو کښې دکانو باندې کارونه کوی نو د هغوی دپاره دا شیطانان موانع او بندونه پیدا کړی د جمعې طرف ته د تلونه، او ددې په مقابله کښې فرښتې د جمعې په ورځ دسحر نه د جوماتونو په دروازو باندې لاړې شی او کینی دې دپاره چه د هر راتلونکی نوم د هغهٔ په خانه کښې اولیکی، په ړومبی وخت کښې راتلونکی نوم د هغهٔ په خانهٔ کښې او په دویم وخت کښې د راتلونکی نوم په دویمه خانه کښې و هکذا، او دا د نومونو لیکلو سلسله د خطیب منبر ته د رسیدلو پورې وی د دینه پس فرښتې خپلې صحیفې او رجسرونه رااونغاړی او کیږدی.

قوله، بالترابیث او الربائث، اول د تربیثه جمع ده او ثانی د ربیثه جمع ده، تربیثه په معنی د بندولو او ربیثه په معنی د مانع او عارض.

## بَابُ التَّشْدِيدِ فِي تَرْكِ الْجُمُعَةِ

### باب دی په بیان د تشدید کې په پرېښودلو د جمعه کې

[۱۰۵۲] ()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبِيدَةُ بْنُ سُفْيَانَ الْحَضْرَمِيُّ، عَنْ أَبِي الْجَعْدِ الضَّمْرِيِّ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا بِهَا طَبَعَ اللَّهُ عَلَى قَلْبِهِ".

د ابو الجعد الضمري نه روایت دی، او دهغه صحبت وو، بېشکه رسول الله ﷺ ویلي دي: چا چې درې جمعې پرېښودې د وجې د سپکوالي دهغې نه، نو الله به مهر ولګوي د هغه په زړه.

قوله. من ترك ثلاث جمعٍ تهاونا بها طبع الله على قلبه،

### شرح حدیث:

د تهاون نه مراد تساهل او عدم اهتمام دې یعنی کوم سړې چه صرف د غفلت او سستئ د وجه نه بغیر د شرعی عذر نه د درېو جمعو مونځ ترک کړی نو الله تعالی د دهٔ په زړهٔ باندې مهر اولګوی، یعنی داسې سړې په قساوت قلب یعنی د زړهٔ په سختوالی کښې اخته شی د کوم د وجه نه چه بیا د خیر خبره دننه نهٔ ننوځی، او د طبع نه مراد د کفر مهر نهٔ دې لکه څنګه چه په آیت کریمه کښې دی، ختم الله على قلوبهم و على سمعهم الاية، ځکه چه د جمعې په ترک کولو سره سړې کافر کیږی نهٔ، او هم داسې د تهاون نه مراد استخفاف او اهانت نهٔ دې ځکه چه استخفاف خو د یوې جمعې هم کفر دې بیا د درېو قید څنګه دې؟ او هم داسې د طبع نه هم دکفر مهرمراد نهٔ شی اغستلې خو البته دلته د ثلاثا قید که نهٔ وې نو دا ممکنه وه چه د تهاون نه مراد استخفاف او دطبع نه مراد طبع د کفر واغستلې شی، والله تعالی اعلم.

په دې حدیث کښې د ثلاث سره د متوالیا قید مذکور نهٔ دې ځکه چه علماؤ لیکلې دی چه که یو سړې په ټول کال کښې د یوې جمعې مونځ هم ترک کړی او بیا دویم کال کښې د دویمې جمعې او په دریم کال کښې د دریمې جمعې نو بیا به هم هغه د دې وعید مستحق

---

[1]): سنن الترمذي/ الصلاة ٢٤٢ (الجمعة ٧) (٥٠٠)، سنن النسائي/الجمعة ٢ (١٣٧٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩٣ (١١٢٥)، (تحفة الأشراف: ١١٨٨٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجمعة ٩ (٢٠)، مسند احمد (٤٢٤/٣)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٠٥ (١٦١٢) (حسن صحيح)

وی، اللهم احفظنا منه، البته په مسند الفردوس کښې يو مرفوع حديث کښې کوم چه د حضرت انس ﷺ نه مروی دې متواليا قيد په کښې شته دې، من ترك ثلاث جمع متواليات (من المنهل)

# بَاب كَفَّارَةِ مَنْ تَرَكَهَا

## باب دی په بیان د کفارې د هغه چا کښې چې جمعه پرېږدي

د جمعې ترك كول بغير د عذر نه ظاهره ده چه ګناه کبيره ده رومبې خو د مسلمان نه د دې کيدل نه دی پکار او كه اوشي نو د دې دتلافی دپاره توبه او استغفار لازم دې بلکه د کفارې په توګه دينار يا نيم دينار لکه څنګه چه په حديث کښې مذکور دی چه د وس مطابق صدقه ورکول غوره دی، او دا امر د ندب او استحباب دپاره دې خو د جمعې د مونځ په بدله کښې قضاء د ماسپخين واجب ده او هم هغه د دې اصل بدل دې.

[۱۰۵۳] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ قُدَامَةَ بْنِ وَبَرَةَ الْعُجَيْفِيِّ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِينَارٍ، فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَبِنِصْفِ دِينَارٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَكَذَا رَوَاهُ خَالِدُ بْنُ قَيْسٍ، وَخَالَفَهُ فِي الْإِسْنَادِ وَوَافَقَهُ فِي الْمَتْنِ.

د سمرة بن جندب نه روايت دی، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه هغه ويلي دي: چا چې جمعه پرېښوده بغير د عذر نه نو صدقه دې کړي يو دينار، که چيرې يې نه موندلو نو نيم دينار دې صدقه کړي. ويلي دي ابوداود: او همداسې روايت کړی دی خالد بن قيس، او مخالفت يې ورسره کړی دی په اسناد کښې او موافقت يې ورسره کړی دی په متن.

قوله، قال ابوداؤد و هكذا رواه خالد بن قيس خالفه فی الاسناد و وافقه فی المتن،

### د قول ابوداؤد تشريح:

د دې حديث په سند او متن دواړو کښې د رواتو اختلاف دې، د متن اختلاف د همام په روايت کښې داسې دې، فليتصدق بدينار و ان لم يجد فبنصف دينار، او په دويم روايت کښې د دينار په ځائې د درهم لفظ دې، او په هغې کښې دصاع حنطة او نصف صاع اضافه ده او وراندې يو دريم روايت کښې د کوم راوی چه سعيد بن بشر دی په هغې کښې د مُد او نصف مد ذکر دې، او په سند کښې د اختلاف تفصيل دا دې چه د دې حديث مدار په قتاده باندې دې د قتاده نه روايت کونکی ګڼړ دی يو همام دې د چا روايت چه د باب په شروع کښې دې هغوی دا د قتاده نه داسې روايت کوی، عن قدامة بن وبرة عن سمرة بن جندب، د قتاده دويم شاګرد خالد بن قيس دې مصنف وائی چه خالد د همام په اسناد کښې مخالفت کړې دې خو مصنف دې لره نه دې بيان کړې، بيهقی کښې د خالد روايت موجود دې د کوم سند چه داسې دې، عن قتادة عن الحسن عن سمرة، يعنی دقتاده او سمره په مينځ کښې د قدامه په ځائې د حسن واسطه ده او دريم شاګرد د قتاده ايوب دې د چا کنيت چه ابوالعلاء دې هغوی دا

---

(١): سنن النسائي/الجمعة ٣ (١٣٧٣)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ٩٣ (١١٢٨)، (تحفة الأشراف: ٤٦٣١، ١٩٢٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٨، ١٤) (ضعيف)

حدیث مرسلاً ذکر کړي دې د صحابی نوم ئې ترك کړي دې، څلورم شاګرد د قتاده سعید بن بشیر دې هغوی متن داسې بیان کړي دې څنګه چه ایوب بیان کړي دې یعنی بدرهم او نصف درهم،(۱) خو یو بل فرق ئې کړي دې او هغه دا چه د صاع حنطة په ځائې ئې مد ذکر کړي دې او په سند کښې د دوئ دا مخالف ئې کړي دې چه سمره ئې هم ذکر کړي دې په خلاف د ایوب نه چه هغوی سمره نه دې ذکر کړې بلکه حدیث ئې مرسلاً ذکر کړي وو.

[۱۰۵٤](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ، وَإِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ أَيُّوبَ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ قُدَامَةَ بْنِ وَبَرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ فَاتَتْهُ الْجُمُعَةُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِرْهَمٍ، أَوْ نِصْفِ دِرْهَمٍ، أَوْ صَاعِ حِنْطَةٍ، أَوْ نِصْفِ صَاعٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ سَعِيدُ بْنُ بَشِيرٍ، عَنْ قَتَادَةَ هَكَذَا، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "مُدًّا أَوْ نِصْفَ مُدٍّ"، وَقَالَ: عَنْ سَمُرَةَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْت أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ يُسْأَلُ عَنْ اخْتِلَافِ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: هَمَّامٌ عِنْدِي أَحْفَظُ مِنْ أَيُّوبَ يَعْنِي أَبَا الْعَلَاءِ.

د قدامة بن وبرة نه روایت دی هغه وایي: رسول الله ﷺ ویلي دي: د چانه چې جمعه فوت شوه بغیر د عذر نه نو صدقه دې وکړي په یو درهم سره او یا په نیم درهم سره، او یا په یوه پیمانه د غنمو سره، او په نیمه پیمانه سره. ویلي دي ابوداود: ما اوریدلي دي د احمد بن حنبل نه چې تپوس یې کولو د اختلاف د دې حدیث، نو وویل همام: زما په نزد هغه ډیر احفظ دی د ایوب نه، قصد یي ابو العلاء وو.

## بَابُ مَنْ تَجِبُ عَلَيْهِ الْجُمُعَةُ

### باب دی په بیان د هغه چا کې چې جمعه پرې واجب ده

یعنی په کومو کومو خلقو باندې د جمعې مونځ فرض دې صرف په اهل مصر باندې یا په اهل قریه یعنی د کلی په اوسیدونکو باندې هم، او هم داسې د مصر نه بهر چه کوم خلق په اطرافو کښې اوسیږی په هغوی باندې هم واجب دې او که نه، د بخاری او ترمذی ترجمه دغه شان ده چه، باب ما جاء من کم یؤتی الی الجمعة، یعنی د آبادئ نه څومره فاصلې باندې اوسیدونکو دپاره د جمعې مونځ له راتلل ضروری دی.

د دینه پس دا زده کول پکار دی چه دلته دوه مسئلې دی یوه خو مسئلة الباب یعنی من تجب علیه الجمعة، کومه چه مصنف دلته بیانوی او دویمه مسئله د محل اقامة جمعه یعنی د جمعې مونځ کوم ځائې کښې کیدې شی او کوم ځائې نه، د دې باب وړاندې راروان دې، باب الجمعة فی القریٰ.

[۱۰۵۵](۳)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: كَانَ النَّاسُ يَنْتَابُونَ الْجُمُعَةَ مِنْ مَنَازِلِهِمْ، وَمِنَ الْعَوَالِي.

---

(۱) په خلاف د همام نه چه هغوی د درهم په ځائې باندې دینار ذکر کړې دې.

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٦٣١، ١٩٢٣١) (ضعیف)

(۳): صحیح البخاري/الجمعة ١٥ (٩٠٢)، والبیوع ١٥ (٢٠١٧)، صحیح مسلم/الجمعة ١ (٨٤٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الجمعة ٩ (١٣٨٠) (صحیح)

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی چې بي بي د پيغمبر ﷺ ده، هغې ويلي دي: خلق به تلل جمعي ته د خپلو کورونو نه او د باندو نه.

۱:حدثنا احمد بن صالح، الخ، قوله کان الناس ينتابون الجمعة من منازلهم و من العوالى، دا حديث د حضرت عائشه رضي الله عنها دې امام بخاری دې لره هم په دې باب کښې ذکر کړې دې، د دې حديث نه امام بخاری او دغه شان امام ابوداؤد وغيره حضرات دا ثابتول غواړی چه په اهل قريه باندې هم جمعه واجبه ده.

### د حديث نه د حنفيه خلاف استدلال او د هغې ترديد:

او قرطبی وغيره علماؤ دا هم ليکلې دی چه دا حديث د حنفيانو خلاف دې ځکه چه هغوی په اهل قريه باندې جمعه واجب نۀ ګرځوی، خو په خپله حافظ ابن حجر او نور شراحو د شوافعو د دې ترديد کړې دې او دا ئې وئيلې دی چه دا د حنفيانو خلاف نۀ دې بلکه د دې نه خو دا ثابتيږی چه په اهل قريه باندې د جمعې مونځ واجب نۀ دې ځکه که واجب وې نو هغه خلق به وار په وار ولې راتلل ټولو لره راتلل پکار وو، د دې اشکال نه د بچ کيدو دپاره امام خطابی يوه عجيبه خبره کړې ده او هغه دا چه د شوافعو په نيرد دا مسئله مختلف فيه ده چه د جمعې مونځ فرض لعينه دې يا فرض على الكفايه، او دائې وئيلې دی چه داکثرو فقهاؤ رائې هم دا ده چه هغه فرض على الكفايه دې، خو نورو شوافعو شارحينو د خطابی د دې قول ډيرسخت ترديد کړې دې چه مذاهب اربعه په دې خبره باندې متفق دی چه جمعه فرض عين ده.(من البذل)

[۱۰۵۶](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سَعِيدٍ يَعْنِي الطَّائِفِيَّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ نُبَيْهٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ هَارُونَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْجُمُعَةُ عَلَى كُلِّ مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ جَمَاعَةٌ، عَنْ سُفْيَانَ مَقْصُورًا عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَلَمْ يَرْفَعُوهُ وَإِنَّمَا أَسْنَدَهُ قَبِيصَةُ.

د عبد الله بن عمرو نه روايت دی، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه هغه ويلي دي: جمعه لازم ده په هر هغه چا چې اذان اوري. ويلي دي ابوداود: د دې حديث روايت يو جماعت کړی دی د سفيان نه په داسې حال کې چې دا موقوف دی په عبد الله بن عمرو، او دوی نه دی مرفوع کړې، او قبيصه مسند ذکر کړی دی.

۲: حدثنا محمد بن يحيٰ بن فارس، الخ، قوله، عن عبد الله بن عمرو عن النبى صلى الله عليه وسلم قال الجمعة على كل من سمع الندء، په دې باب کښې مصنف دوه حديثه ذکر کړې دی، رومبې حديث کان الناس ينتابون الجمعة، او دويم دا چه امام ترمذی په دې حديث باندې ليکی چه، و به قال الشافعى و احمد، او ابن العربى مالکی شارح د ترمذی د امام مالك طرف ته هم دا منسوب کړې دې، ګويا د ائمه ثلاثه هم دا مذهب دې.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۸٤٥) (حسن لغيره) (ملاحظه هو: صحيح ابي داود: ۱۰۵٦، وارواء الغليل: ۵۹۳)

### شرح حدیث:

د حدیث ترجمه دا ده چه جمعه په هر هغه سړي باندې واجب ده کوم چه د جمعې آذان واوري بظاهر د دینه معلومیږي چه کوم سړې د جمعې آذان وانهٔ وري په هغهٔ باندې واجب نهٔ ده، خو ډېر داوسیدونکو په حقله د ټولو علماؤ دا اتفاق دې چه په هغوي باندې د جمعې مونځ واجب دې که آذان واوري او که نهٔ، حافظ ابن حجر وغیره شارحینو د دې توجیه دا کړې ده چه د اوریدلو نه مراد عام دې که حقیقة وي یا حکما یعنی بالفعل سماع اوموندلې شي یا بالقوه، ځکه چه د ښار واله که وانئوري خو که متوجه وي نو اودریدلې شي.

### محمل حدیث الحنفیه:

او احقر ته په دې کښې د شیخ ابن الهمام خبره خوښه شوې ده هغه فرمائی چه د دې حدیث تعلق د اهل مصر سره نهٔ دې بلکه هغه خلقو سره دې کوم چه په فناء د مصر یعنی د ښار په اطرافو کښې اوسیږي یعنی که هغوي ته د آذان آواز رسی نو هغوي دې ښار ته راشی او د جمعې مونځ دې ادا کړي او که نهٔ رسی نو بیا په هغوي باندې د جمعې مونځ واجب نهٔ دې.

د دې نه پس دا زده کول پکار دی چه د ښار د فناء په مصداق کښې د فقهاؤ مختلف اقوال دی په حاشیه دترمذی کښې په حواله د ابن الهمام لیکلې دی چه، واختلفوا فیه، او بیا هغوي یو څو اقوال ذکر کړې دی، ۱: تر کوم ځائې پورې چه د ښار آواز رسی،

۲: په دریو فرسخو کښې دننه دننه، ۳: د یو میل په اندازه، ۴: د دوو میلو په اندازه، ۵: د شپږو میلو په اندازه، ۶: کوم خلق چه د ښار نه دومره لرې اوسیږي چه هغوي په ښار کښې د جمعې مونځ ادا کړي نو د ماښام کیدو نه وړاندې بغیر د تکلیف نه خپل ځائې ته رسیدې شی نو بیا په هغوي باندې جمعه واجب ده ګینی نهٔ ده، صاحب بدائع دې قول لره خوښ کړې دې، وهذا احسن، اهـ

زهٔ وایم چه آخری قول لره په مسافة غدویة سره تعبیر کوی او په اصل کښې دا خبره د حدیث نه ماخوذ ده کوم چه په ترمذی کښې په روایت د ابوهریره رضی الله عنه مذکور دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل، الجمعة علی من آواه اللیل الی اهله، خو دا حدیث په اتفاق سره ضعیف دې امام ترمذی هم په دې باندې کلام کړې دې، په ترمذی کښې دی دی چه یو سړی د امام احمد په وړاندې دا حدیث پیش کړو نو هغه په دې باندې سخت خفه شو او وئې فرمائیل، استغفر ربك استغفر ربك،

### حدیث الباب د امام محمد د قول دلیل دې:

د دېنه پس واورئ چه حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې د شرح منیه نه د ښار د اطرافو واله په حقله نقل کړې دی چه کوم خلق د ښار نه بهر اوسیږي او د هغوي او د ښار په مینځ کښې فُرجه یعنی خلاء نهٔ وي بلکه عمارتونه د هغه ځائې پورې رسیدلې وي نو په هغوي باندې جمعه واجب ده که آذان اوري اوکه نهٔ ده، اوکوم خلق چه داسې دی چه دهغوي او د ښار په مینځ کښې مزرعه (پټې) یا مرعی (چراګاه یعنی ورشو) جدائی وي نوپه داسې خلقو باندې د جمعې مونځ واجب نه دې اګرچه د اذان آواز آوری خود امام محمد رحمه الله نه

روایت دې چه که داسې خلق د جمعې اذان آوری نو په هغوی باندې د جمعې مونځ واجب دې او که نه آوری نو واجب نه دې. زه وائم چه د باب دا دویم حدیث د امام محمد ﷫ د روایت ډیر نزدې دې.

قال ابوداؤد روی هذا الحدیث جماعة عن سفیان مقصورا علی عبدالله بن عمرو، یعنی په دې حدیث کښې د رواتو اختلاف او اضطراب دې دې لره د سفیان نه روایت کونکی ډیر دی اکثرو دې حدیث لره موقوفا ذکر کړې دې او قبیصه کوم چه په پورته سند کښې مذکور دې دې لره د سفیان نه مسندا یعنی مرفوعا ذکر کړې دې.

## بَابُ الْجُمُعَةِ فِي الْيَوْمِ الْمَطِيرِ

### باب دی په بیان د جمعه کې د باران په ورځ

یوم مطیر او یوم ماطر او یو مُمطر او یو مَطِر هر شان لوستلې شی، یعنی د باران ورځ. په اصل کښې د جمعې د وجوب او صحت د جمعې دپاره ډیر شرطونه دی څنګه چه د جماعت د وجوب دپاره هم بعضې شرطونه دی که په هغه شرطونو کښې کوم شرط اونهٔ موندلې شی نو د جماعت مونځ ساقطیږی، مطر کثیر یعنی ډیر باران هم د دې عذرونو نه دې کوم چه جماعت ساقطوی نو چه هر کله په دې سره جماعت ساقطیږی نو جمعه به هم ساقطیږی څکه چه د جمعې مونځ بغیر د جماعت نه صحیح نهٔ دې.

[۱۰۵۷](۱)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ يَوْمَ حُنَيْنٍ كَانَ يَوْمَ مَطَرٍ "فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنَادِيَهُ أَنَّ الصَّلَاةَ فِي الرِّحَالِ".

ابو الملیح روایت کوي د خپل پلار نه، بېشکه ورځ د حنین وه ورځ د باران، نو امر وکړو نبي ﷺ خپل اواز کونکي ته: بېشکه مونځ په خپلو ځایونو کې وکړئ.

۱: حدثنا محمد بن کثیر الخ، عن ابی الملیح عن ابیه، د ابوالملیح په نوم کښې اختلاف دې قیل اسمه عامر و قیل زید، او د دوئ د پلار نوم اسامة بن عُمیر دې، (قاله الترمذی،ص،۲)

ان یوم حنین کان یوم مطر فامر النبی صلی الله علیه سلم منادیه ان الصلوة فی الرحال، یعنی د جنګ حنین په ورځ باران وریدو نو حضور ﷺ په مؤذن باندې اعلان اوکړو، الصلوة فی الرحال، یعنی قافلې واله دې په خپلو خپلو خیمو کښې ځانله ځانله بغیر د جماعت نه مونځ اوکړی، یعنی د ماسپخین څکه چه د جمعې مونځ خو بغیر د جماعت نه نهٔ کیږی.

### مناسبة الحدیث بالترجمة:

د دې حدیث نه معلومه شوه چه د باران د وجه نه جماعت ساقطیږی لهذا د دې په وجه سره به جمعه هم ساقطیږی، کما تقدم آنفا.

[۱۰۵۸](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ صَاحِبٍ لَهُ، عَنْ أَبِي مَلِيحٍ، أَنَّ ذَلِكَ كَانَ يَوْمَ جُمُعَةٍ.

۱): سنن النسائي/الإمامة ۵۱ (۸۵۵)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۵ (۹۳۶)، (تحفة الأشراف: ۱۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۲٤، ۷٤، ۷۵) (صحیح)

۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۳۳) (صحیح)

د ابو ملیح نه روایت دی، بېشکه دغه د جمعې ورځ وه.

[۱۰۵۹]()حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَ سُفْيَانُ بْنُ حَبِيبٍ: أَخْبَرَنَا، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ شَهِدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي يَوْمِ جُمُعَةٍ، وَأَصَابَهُمْ مَطَرٌ لَمْ تَبْتَلَّ أَسْفَلُ نِعَالِهِمْ "فَأَمَرَهُمْ أَنْ يُصَلُّوا فِي رِحَالِهِمْ".

ابو المليح د خپل پلار نه روايت كوي، بېشكه هغه حاضر شوی وو نبي ﷺ ته په زمانه د حديبيه كې په ورځ د جمعه كې، او دوی ته باران ورسيدو چې د دوی د پيزار لاندې حصه يې لمده نه كړه، نو امر يې وكړو دوی ته چې مونځ وكړي په خپلو ځايونو كې.

په دې حديث كښې اګر كه د جمعې ذكر نشته، خو طريقه د استدلال هغه ده كومه چه پورته ذكر شوه، او حضرت رحمه الله په بذل كښې دا ليكلې دی چه مطابقت په دغه شان دې چه د راتلونكی حديث نه معلوميږی چه دا واقعه د جمعې د ورځې وه.

۲: حدثنا نصر بن علی الخ، قوله، عن ابی المليح عن ابيه انه شهد النبی صلی الله عليه وسلم زمن الحديبية فی يوم جمعة و اصابهم مطرٌ.. الخ، اوګورئ په دې كښې د جمعې د ورځې تصريح ده، خو زۀ وايم چه د جمعې د ورځې كيدو نه دا نۀ لازميږی چه د دې تعلق به هم د جمعې د مونځ سره وی، بلكه دا كيدې شي چه د دې تعلق د ماسپښين مونځ يا د ماز يګر د مونځ سره وی، ځكه چه د حضور ﷺ په خپلو سفرونو كښې په براری (صحراء) كښې جمعه كول ثابته نۀ ده، لهذا كه په دې واقعه كښې باران نۀ وو نو بيا به هم دوئ جمعه نۀ ادا كوله، لهذا د استدلال طريقه هم هغه غوره ده كومه چه مونږ پورته ذكر كړه.

**د صاحب بذل توجيه:**

په بذل المجهود كښې يو بله توجيه ليكلې ده هغه دا كه اومنلې شي چه حضور ﷺ د سفر په دوران كښې د حديبيه په مقام كښې د جمعې مونځ ادا كولو، خو په دې موقعه كښې د باران د وجه نه ئې ادا نه كړو، نو د دې وجه دا كيدې شي چه حديبيه اګر كه د براری نه ده خو د مكې د توابع نه ده لكه څنګه چه منلی، د شيخينو په نيز د مكې د توابع نه ده ځكه چه هغوی هلته د جمعې د مونځ قائل دی په خلاف د امام محمد چه د هغوی په نيز هلته د جمعې مونځ جائز نۀ دې، والله تعالی اعلم.

## بَابُ التَّخَلُّفِ عَنِ الْجَمَاعَةِ، فِي اللَّيْلَةِ الْبَارِدَةِ

**باب دی په بيان د وروستوالي د جمعې نه په يخه شپه كې او په شپه د باران كې**

د ترجمة الباب حاصل دا دې چه په سخت ژمی خصوصا چه كله د شپې وخت وی د هغه عذرونو نه دې كوم چه د جماعت ساقطونكی دی نو چه هر كله سختې يخنئ سره جماعت ساقطيږی نو د دې نه معلومه شوه چه د جمعې ساقطونكې هم دې ځكه چه جمعه بغير د جماعت نه صحيح نۀ ده.

۱: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۳۳) (صحيح)

## مناسبة الحديث بالترجمة:

هم د دې مناسبت دوجې نه مصنف دې ترجمة الباب لره په كتاب الجمعة كښې راوړې دې، ګينې د شپې د جمعې مونځ كوم ځائې وى؟

حضرت رحمه الله په بذل كښې ليكلې دى چه ابن بطال په دې خبره باندې اجماع نقل كړې ده چه بَرْد او مطر يعنې يخنى او باران دواړه د تاخر عن الجماعة عذرونه دى، او علامه شامى رحمه الله هغه عذرونه كوم چه د جماعت ساقطونكى دى شل شمار كړې دى او هغهٔ ئې په نظم كښې ذكر كړې دى په حاشيه دلامع، ص، ۲۵۰، ج، ۱، كښې هم مذكور دى يو د هغې سخت ژمې هم دې.

[۱۰۶۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ نَزَلَ بِضَجْنَانَ فِي لَيْلَةٍ بَارِدَةٍ، فَأَمَرَ الْمُنَادِيَ فَنَادَى أَنِ الصَّلَاةُ فِي الرِّحَالِ. قَالَ أَيُّوبُ، وَحَدَّثَنَا نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ بَارِدَةٌ أَوْ مَطِيرَةٌ أَمَرَ الْمُنَادِيَ فَنَادَى الصَّلَاةُ فِي الرِّحَالِ".

د نافع نه روايت دى چې ببشكه ابن عمر راغى ضجنان ته په يخه شپه كې، امريې وكړو اذان كونكي ته نو اذان يې وكړو: ببشكه مونځ په كورونو كې دى. ويلي دي ايوب: او مونږ ته حديث بيان كړى دى نافع د ابن عمر نه، ببشكه رسول الله ﷺ وو كله چې به شپه يخه وه او يا به باراني وه، امربه يې وكړو اواز كونكى ته هغه به اواز وكړو: مونځ په خپلو ځايونو كې دى.

[۱۰۶۱] (۲) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: نَادَى ابْنُ عُمَرَ بِالصَّلَاةِ بِضَجْنَانَ، ثُمَّ نَادَى أَنْ صَلُّوا فِي رِحَالِكُمْ، قَالَ فِيهِ: ثُمَّ حَدَّثَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ: "كَانَ يَأْمُرُ الْمُنَادِيَ فَيُنَادِي بِالصَّلَاةِ، ثُمَّ يُنَادِي أَنْ صَلُّوا فِي رِحَالِكُمْ فِي اللَّيْلَةِ الْبَارِدَةِ وَفِي اللَّيْلَةِ الْمَطِيرَةِ فِي السَّفَرِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، وَعُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ فِيهِ: "فِي السَّفَرِ فِي اللَّيْلَةِ الْقَرَّةِ أَوِ الْمَطِيرَةِ".

د نافع نه روايت دى هغه ويلي دي اواز وكړو ابن په مونځ كولو په ضجنان كې، بيايې اواز وكړو: مونځ په خپلو ځايونو كې وكړئ، هغه وويل په هغې كې: بيايې حديث بيان كړو د رسول الله ﷺ نه: هغه به امر كولو اذان كونكي ته نو اذان به يې وكړو، بيا به يې اواز وكړو چې مونځ وكړئ په خپلو ځايونو كې په يخه شپه كې، او په شپه د باران كې په سفر كې. ويلي دي ابوداود: او د دې روايت كړى دى حماد بن زيد د ايوب نه او د عبيد الله نه، هغه ويلي دي په هغې كې: په سفر كې په يخه شپه كې، او يا د باران په شپه كې.

[۱۰۶۲] (۳) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ نَادَى بِالصَّلَاةِ بِضَجْنَانَ فِي لَيْلَةٍ ذَاتِ بَرْدٍ وَرِيحٍ، فَقَالَ فِي آخِرِ نِدَائِهِ: أَلَا صَلُّوا فِي رِحَالِكُمْ، أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ الْمُؤَذِّنَ إِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ بَارِدَةٌ أَوْ ذَاتُ مَطَرٍ فِي سَفَرٍ يَقُولُ: "أَلَا صَلُّوا فِي رِحَالِكُمْ".

---

(۱): سنن ابن ماجه /إقامة الصلاة ۳۵ (۹۳۷)، (تحفة الأشراف: ۷۵۵۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري /الأذان ۱۷ (۶۳۲)، ۴۰ (۶۶۶)، صحيح مسلم /المسافرين ۳ (۶۹۷)، سنن النسائي /الأذان ۱۹ (۶۵۵)، موطا امام مالك /الصلاة ۲ (۱۰)، مسند احمد (۲/۴، ۱۰، ۵۳، ۶۳)، سنن الدارمي /الصلاة ۵۵ (۱۳۱۱) (صحيح)

(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۷۵۵۰) (صحيح)

(۳): صحيح مسلم /المسافرين ۳ (۶۹۷)، (تحفة الأشراف: ۷۸۳۴) (صحيح)

نافع د ابن عمر ﷺ نه روایت کوي، بېشکه هغه اذان وکړو د مانځه لپاره په ضجنان کې په شپه کې چې یخه وه او د باد والا وه، هغه وفرمایل په اخیر د اذان کې: خبردار! مونځ وکړئ په خپلو کورونو کې، بیایي وفرمایل: بېشکه رسول الله ﷺ وو چې امر یي کولو مؤذن ته کله چې به شپه یخه وه، او یا د باران والا وه په سفر کې، چې ووایي: خبردار! مونځ وکړئ په خپلو کورونو کې.

[1] : حدثنا عثمان بن ابی شیبه، الخ، قوله، فقال فی أخر ندائه الا صلوا فی رحالکم، د فی آخر ندائه مطلب دا نهٔ دي چه په آذان کښې دا کلمات اووائی بلکه د آذان نه فارغیدو نه پس مراد دې ځکه چه د دینه وړاندې روایت کښې تیر شوې دی، نادی ابن عمر بالصلوة بضجنان ثم نادی ان صلوا فی رحالکم، د لفظ ثم نه دا معلومیږی چه بعد الفراغ وو.

[۱۰٦۳] (1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ يَعْنِي، أَذَّنَ بِالصَّلَاةِ فِي لَيْلَةٍ ذَاتِ بَرْدٍ وَرِيحٍ، فَقَالَ: أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ الْمُؤَذِّنَ إِذَا كَانَتْ لَيْلَةٌ بَارِدَةٌ أَوْ ذَاتُ مَطَرٍ، يَقُولُ: "أَلَا صَلُّوا فِي الرِّحَالِ".

د نافع نه روایت دی چې بېشکه ابن عمر ـ یعني ـ اذان یي وکړو یخه شپه کې چې د یخنۍ او باد والا وه، هغه ووېل: خبر شئ مونځ وکړئ په خپلو کورونو کې، بیایي ووېل: بېشکه رسول الله ﷺ وو چې امر به یي کولو مؤذن ته کله چې شپه یخه وي او یا د باران والا وي، هغه دي وایي: خبر دار مونځ وکړئ په خپلو کورونو کې.

[۱۰٦٤] (2) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: نَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ فِي الْمَدِينَةِ فِي اللَّيْلَةِ الْمَطِيرَةِ وَالْغَدَاةِ الْقَرَّةِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَى هَذَا الْخَبَرَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ فِيهِ: فِي السَّفَرِ.

نافع د ابن عمر نه روایت کوي هغه ویلي دي: اذان وکړو اذان کونکي د رسول الله ﷺ په دغې سره په مدینه کې په باراني شپه کې، او په سحر یخ کې. ویلي دي ابوداود: او روایت کړی دی د دې خبر یحیی بن سعید الانصاري د قاسم نه او هغه د ابن عمر نه او هغه د نبي ﷺ نه، هغه پکې ویلي دي: (في السفر).

[2] : حدثنا عبدالله بن محمد النفیلی، الخ، قوله، نادی منادی رسول الله صلی الله علیه وسلم بذالك فی المدینة، د ابن عمر دتیر شوی او راتلونکی ټولو روایتونو نه دا معلومیږی چه دا واقعه د سفر ده خو د ابن اسحاق په روایت کښې د دې ټولو نه خلاف دې، د دې حدیث مدار په نافع باندې دې د نافع په شاګردانو کښې صرف محمد ابن اسحاق په فی المدینة لفظ وئیلې دې او نور شاګردان ایوب او عبیدالله فی السفر وئیلې دې، ظاهره دا ده چه ابن اسحاق ته په دې کښې وهم شوې دې.

[1] : صحیح البخاري/الأذان ٤٠ (٦٦٦)، صحیح مسلم/المسافرین ٣ (٦٩٧)، سنن النسائي/الأذان ١٧ (٦٥٥)، موطا امام مالك/الصلاة ٢ (١٠)، مسند احمد (٦٣/٢)، (تحفة الأشراف: ٨٣٤٢) (صحیح)

[2] : تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٤١٣) (منكر)

[۱۰۶۵](۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَمُطِرْنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِيُصَلِّ مَنْ شَاءَ مِنْكُمْ فِي رَحْلِهِ".

د جابر ﷛ نه روایت دی هغه ویلي دي: وو مونږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کې نو په مونږ باران وشو، رسول الله ﷺ وفرمایل: مونځ دي وکړي د چا چې خوښه وي ستاسو نه په خپل خای کې.

[۱۰۶۶](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْحَمِيدِ صَاحِبُ الزِّيَادِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْحَارِثِ ابْنِ عَمِّ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ لِمُؤَذِّنِهِ فِي يَوْمٍ مَطِيرٍ: "إِذَا قُلْتَ: أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، فَلَا تَقُلْ: حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ، قُلْ: صَلُّوا فِي بُيُوتِكُمْ". فَكَأَنَّ النَّاسَ اسْتَنْكَرُوا ذَلِكَ، فَقَالَ: قَدْ فَعَلَ ذَا مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنِّي، إِنَّ الْجُمُعَةَ عَزْمَةٌ، وَإِنِّي كَرِهْتُ أَنْ أُخْرِجَكُمْ فَتَمْشُونَ فِي الطِّينِ وَالْمَطَرِ.

بېشکه ابن عباس ویل خپل مؤذن ته د باران په ورځ: کله چې تا وویل ان محمدا رسول الله بیا حی علی الصلاة، بلکه ووایه: مونځ وکړئ په خپلو کورونو کې. ګویا چې خلقو دغه بد وګڼه، نو هغه وویل: بېشکه دا کار کړی دی هغه چا چې د مانه ډېر غوره دی، بېشکه جمعه لازم ده، او بېشکه ما بد وګڼل چې تاسو اوباسم او په ختو باران کې روايان یې.

۳: حدثنا مسدد، الخ، قوله، عن ابن عباس قال لمؤذنه فی یوم مطیر اذا قلت، الخ، په دې روایت کښې دی چه حضرت ابن عباس ﷛ د باران په ورځ خپل مؤذن ته کله آذان ورکوی نو په ځائې د حی علی الصلوة صلوا فی بیوتکم اوایه.

د ابن عمر ﷛ دتیر شوې روایت نه دا معلومیږی چه حضور ﷺ به دا اعلان د آذان نهد روستو کولو نه د آذان په مینځ کښې، بظاهر ابن عباس ﷛ داسې اجتهاد د خپل ځانه کړې دې، او وړاندې روایت کښې چه راروان دې چه خلقو دې لره بنهٔ اونهٔ ګڼړل نو په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه حضور ﷺ داسې کړې وو، کیدې شی چه د دې تعلق د مطلق اعلان سره وی نهٔ د هغه اعلان سره چه په مینځ د آذان کښې وی.

### الکلام فی اثناء الاذان:

خو امام احمد ﷫ د ابن عباس ﷛ د حدیث نه په دې خبره باندې استدلال کړې دې چه د آذان په مینځ کښې خبرې کول بلا کراهیت جائز دی، او داؤدی کوم چه مشهور محدث دې هغه دا فرمائی چه د آذان په مینځ کښې کلام خو جائز نهٔ دې او نهٔ په دې باندې په حدیث سره استدلال صحیح دې بلکه داسې ده چه په داسې وخت کښې کوم آذان کولې کیږی نو داسې کلمات په خپله د دې آذان جزء جوړ شی نو دې لره نه هم په آذان کښې شاملولې شی، او د حنفیانو په نیز کلام فی الاذان مکروه دې او د امام مالك او شافعی په نیز خلاف اولی دې.

---

(۱): صحیح مسلم/المسافرین ۳ (۶۹۸)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۸۹ (۴۰۹)، (تحفة الأشراف: ۲۷۱۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۱۲، ۳۲۷، ۳۹۷) (صحیح)

(۲): صحیح البخاري/الأذان ۱۰ (۶۱۶)، ۴۱ (۶۶۸)، والجمعة ۱۴ (۹۰۱)، صحیح مسلم/المسافرین ۳ (۶۹۹)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳۵ (۹۳۹)، (تحفة الأشراف: ۵۷۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۷۷) (صحیح)

## بَابُ الْجُمُعَةِ لِلْمَمْلُوكِ وَالْمَرْأَةِ

### باب دی په بیان د جمعه کې د غلام او ښځې دپاره

[۱۰٦۷] (١) حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا هُرَيْمٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فِي جَمَاعَةٍ إِلَّا أَرْبَعَةً: عَبْدٌ مَمْلُوكٌ، أَوِ امْرَأَةٌ، أَوْ صَبِيٌّ، أَوْ مَرِيضٌ". قَالَ أَبُو دَاوُد: طَارِقُ بْنُ شِهَابٍ قَدْ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَسْمَعْ مِنْهُ شَيْئًا.

د طارق بن شهاب نه روایت دی، هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه، هغه فرمایلي دي: جمعه ثابته ده واجب ده په هر مسلمان د جمعي سره، مګر په څلورو نه، یو په عبد مملوک، او په ښځه، او په ماشوم، او په مریض. ویلي دي ابوداود: طارق بن شهاب پیغمبر ﷺ لیدلی دی او هېڅ يي ترېنه نه دي اوریدلي.

۱: حدثنا عباس بن عبدالعظیم، الخ، قوله، الجمعة حقٌ واجبٌ على كلِ مسلم الا اربعة عبد مملوك او امرأة او صبی او مریض، دا حدیث د صحابی مرسل دي طارق بن شهاب اګر که صحابی دي خو صغیر السن دي د هغوی سماع د حضور ﷺ نه ثابت نۀ ده.

د دې حدیث مضمون دا دې چه په څلورو کسانو باندې جمعه واجب نۀ ده، غلام، ښځه، صبی، مریض،

پوهیدل پکار دی چه د جمعې مونځ په هر چا باندې واجب نۀ دې بلکه په هغه مسلمان باندې واجب دې کوم چه سړې وی مقیم وی او آزاد وی، د ابوداؤد په دې حدیث کښې د مسافر استثناء نشته دې، د مسافر حکم د طبرانی په روایت کښې دې د کوم راوی چه ابن عمر رضی الله عنهما دې، لیس علی المسافر جمعة، (سبل السلام) د ائمه اربعه مذهب دا دې چه په دې ټولو باندې جمعه فرض نۀ ده خو داؤد ظاهری په عبد یعنی غلام کښې اختلاف کړې دې د دوئ په نیز باندې په مملوك باندې هم جمعه واجب ده، لقوله تعالی فاسعوا الی ذکر الله، هم دغه شان په لیونی باندې هم واجب نۀ ده، په بذل المجهود کښې لیکلي دی چه د حنفیانو په نیز باندې دوجوب د جمعې دپاره شپږ شرطونه دی، العقل، والبلوغ والحریة، والذکورة والاقامة، و صحة البدن.

## بَابُ الْجُمُعَةِ فِي الْقُرَى

### باب دی په بیان د جمعه کې په کلو کې

دا دویمه مسئله ده د کومې ذکر چه زمونږ په نیز د دې نه وړاندې په باب من تجب علیه الجمعة په شروع کښې راغلي وو یعنی محل اقامة جمعه.

**محل اقامة جمعه او په دې کښې د ائمه اربعه مذاهب:**

پوهیدل پکار دی چه د جمعې مونځ په هر ځائې کښې نۀ کیږی چنانچه په دې کښې د علماء اتفاق دې چه براری او منابل الاعراب یعنی ځنګل او بیابان او د اوبو چینې کوم ځائې کښې

١: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٩٨١) (صحيح)

چه اهل خيام (خانه بدوش) څو ورځو دپاره مقيم کيږي په داسې مقاماتو باندې اقامت د جمعې په اتفاق سره صحيح نۀ دې، هم دا وجه ده چه په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه په ميدان عرفات کښې د حجاجو دپاره جمعې مونځ کول صحيح نۀ دی.
بلکه محل اقامة جمعه مستقل کلې او آبادی کيدل پکار دی خواه که مختصر کلې وی چنانچه دشافعی او حنابله په نيز لکه څنګه چه د هغوی د کتابونو نه معلوميږی دادې چه د جمعې مونځ په هر داسې کلی کښې قائمولې شی کوم چه مستقل آباد وی، يعنی څو ورځو دپاره عارضی هلته مقيم نۀ وی هلته باقاعده کورونه جوړ شوی وی خواه که کچه او پاخۀ نزدې نزدې وی څنګه چه په آبادئ کښې وی داسې نۀ وی چه يو کور دلته وی او دويم مثلا په يو فرلانګ باندې وی، د دوئ په کتابونو کښې ليکلې دی چه د دوو کورونو په مينځ کښې که د درې سو وذراعو يعنی ګزونو فاصله که وی نو په داسې کلی کښې اقامت د جمعې جائز نۀ دې (۱) دغه شان دا چه په مانځه کښې کم نه کم څلويښت کسان شريك وی، او د مالکيه په کتابونو کښې ليکلې دی چه هلته بازار او جومات هم وی څکه چه د دوئ په نيز باندې غير د جومات نه د جمعې مونځ صحيح نۀ دې اګر که هغه ښار وی. الحاصل د جمهورو علماؤ په نيز مطلقا که کلې وړوکې وی يا لوئې په دواړو کښې جمعه جائز ده.
او په حنفی مذهب کښې د دې تصريح ده چه مصر د شرائطو د جمعې نه دې او اهل فتاویٰ د قصبې او لوئې کلی لره هم په دې حکم کښې ليکلې دې د کوم کلی مردم شماری چه درې څلور زره وی مطلقا مسلمانان وی اوکه غير مسلم، او هلته د حاجت ضروری څيزونه هم ملاويږی، دوکانونه وی دا قريه کبيره يعنی لوئې کلې او قصبه ګڼړلې شی په دې کښې هم اقامت د جمعې جائز دې، او د مصر تعريف کښې دا ليکلې دی چه،بلدة کبيرة فيها سکك و اسواق و کذا فيها امير او قاض، يعنی هغه لوئې کلې په کوم کښې چه باقاعده سړکونه او کوڅې او بازار وی امير يا قاضی وی.

## په جمعه کښې د څومره کسانو شرکت ضروری دی:

او دا چه مونږ کوم اووئيل چه د شافعيه او حنابله په نيز باندې د څلويښتو کسانو شرکت ضروری دې په دې کښې د نورو ائمه مذاهب دا دی، د امام مالك په نيز باندې د دولسو کسانو حاضريدل ضروری دی، او د امام ابوحنيفه په نيز د امام نه علاوه ددرې کسانو کيدل ضروری دی، او د صاحبينو په نيز باندې د امام نه علاوه د دوو کيدل پوره دی، اوس د دلائلو بحث باقی پاتې شو.

[۱۰٦۸] (۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْمُخَرِّمِيُّ لَفْظُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ طَهْمَانَ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: إِنَّ أَوَّلَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ فِي الْإِسْلَامِ بَعْدَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ لَجُمُعَةٌ جُمِّعَتْ بِجُوَاثَاءَ قَرْيَةٍ مِنْ قُرَى الْبَحْرَيْنِ. قَالَ عُثْمَانُ: قَرْيَةٌ مِنْ قُرَى عَبْدِ الْقَيْسِ.

۱) كذا في الاوجز، وفي المنهل ذهبت الشافعية والحنابلة الي انها تقام في كل قرية فيها اربعون رجلا احرارا بالغين عقلاء مقيمين بها لا يتنقلون عنها الا لحاجة) ۱۲منه_
۲): صحيح البخاري/الجمعة ۱۱ (۸۹۲)، والمغازي ٦۹ (٤۳۷۱)، (تحفة الأشراف: ٦٥۲۹) (صحيح)

د ابن عباس ﷺ نه روايت دی هغه ويلي دي: بېشکه اولنی جمعه چې خلق پکې راجمع شوي دي په اسلام کې ورسته د هغه جمعي نه چې جمع کړی شوي وو په مسجد د رسول الله ﷺ کې په مدينه کې، خامخا هغه جمعه ده چې جمع شوې ده په جوثاء کې، دا يو کلی دی د کلو د بحرين نه. ويلي دي عثمان: د کلو د عبد القيس نه.

۱. حدثنا عثمان بن ابی شيبه الخ، قوله، عن ابن عباس قال ان اول جمعة جُمعت فی الاسلام بعد جمعة جمعت فی مسجد رسول الله صلی الله عليه وسلم بالمدينة لجمعة جمعت بجواثی قرية من قرى البحرين، مصنف ﷫ په دې باب کښې د جُمعه فی القری د اثبات دپاره دوه حديثه ذکر کړې دی، يو د ابن عباس ﷺ دا حديث يعنی حديث جواثی او دويم د کعب بن مالك ﷺ حديث کوم چه د دينه روستو راځی.

د ړومبی حديث نه استدلال په دې شان دې، د دينه معلوميږی چه د حضور ﷺ په زمانه کښې جواثی کښې کومه چه يوه قريه وه د جمعې مونځ قائم کړې شوې وو د دينه صفا ښکاره کيږی چه اقامت د جمعې فی القريه جائز دې.

**حديث الباب د جمعه فی القریٰ خلاف دې:**

د دېنه پس زده کول پکار دی چه ړومبې حديث د بادی الرائ کښې خو د امام شافعی او جمهورو دليل دې خو په حقيقت کښې دا حديث د حنفيانو دليل دې لکه څنګه چه په بذل المجهود کښې علامه شوق نيموی نه نقل کړې دی، هغه داسې چه په دې حديث کښې تصريح ده د دې خبرې چه دقريه جواثی نه وړاندې د مدينې منورې په چارچاپيره کښې هيڅ کلی کښې جمعه نۀ وه قائم شوې، اوس کتل پکار دی چه دا اقامة الجمعة فی الجواثی د کوم کال واقعه ده چنانچه واقدی او دغه شان حافظ ابن حجر د دې تصريح کړې ده چه دا واقعه د هغه وخت ده کله چه وفد عبدالقيس د حضور ﷺ په خدمت کښې راغلي وو نو په واپسئ کښې هغوی هلته په رسيدو سره جمعه قائمه کړه دا واقعه د اتم کال د هجرت ده يعنی د حضور ﷺ د وصال نه تقريبا دوه کاله وړاندې واقعه ده، اوس سوال دا دې چه آيا په دې دومره اوږده موده کښې د مدينې په چارچاپيره کښې خلوينښت کسانو هم اسلام نۀ وو قبول کړې، ظاهره چه تر اتم کال د هجرت پورې ډيرو کلو ته اسلام رسيدلې وو د اسلام خوريدل او اشتهار شوې وو د دېنه باوجود هلته د جمعې مونځ نۀ کيدو نو د دې وجه سوا د دينه څۀ کيدې شی چه اقامت جمعه فی القریٰ جائز نۀ ده. فريق ثانی د دې حديث نه چه کوم رخ د استدلال اختيار کړې دې يعنی لفظ د قريه د دې په حقله زمونږ علماء فرمائيلی دی چه دلته دوه امره قابل تحقيق دی، اول دا چه د قريه اطلاق صرف په کلی باندې کيږی يا مصر او ښار باندې هم، دويمه دا چه دا واقعه او نفس الامر څۀ وو، آيا جواثی يو وړکې شان کلې وو يا لويه قصبه او ښار وو.

**(ايا د قريه اطلاق صرف په کلو باندې کيږی؟)**

اول امر سره متعلق عرض دې چه قرآن او حديث کښې په ګڼرو مقاماتو باندې لوئې لوئې ښارونو او کلو باندې د قريه اطلاق شوې دې، مثلا، قالوا لو لا نزل هذا القرآن علی رجل من

القریتین عظیم الایه، دلته د قریتینو نه مراد مکه او طائف دي د کومو چه ښار کیدل منلې شوې دی او مثلاً، واسئل القریة التی کنا فیها الایه،
په دې آیت کښې د قریه نه مراد ملك مصر دي، لهذا صرف دلفظ قریه د اطلاق د وجه نه په دې حدیث سره استدلال کول صحیح نهٔ دی ځکه چه معلومه شوه چه د قریه اطلاق په لوئې ښار باندې هم کیږي.

## (ایا جواثی کلې وو؟)

د امر ثانی متعلق عرض دې چه ډیرو ائمه جواثی لره ښار ښودلې دې چنانچه ابن التین او ابن الاعرابی وغیره په دې باندې د مدینې اطلاق کړې دی، دامرء القیس شاعر د کلام نه هم دا معلومیږی چه جواثی یوورو کې غوندې کلې نهٔ وو ځکه چه دهٔ خپلې قافلې لره د جواثی تاجرانو سره تشبیه ورکړې او وائی،

و رحنا کانّا من جواثی عشیة تعالی النعاج بین عدل و محقب

یعنی زمونږ قافله سامان او ښکار سره را واپس شوه نو داسې معلومیدله چه هغه د جواثی د تاجرانو قافله ده کوم چه سامان پورته کوی او ځی، د جواثی تاجرانو سره تشبیه هغه وخت مناسب ده کله چه هغه وړوکې کلې نهٔ وی، د دې دواړو نه علاوه یو دریم څیز هم د کتلو دي هغه دا چه د اهل جواثی د عمل له استدلال کولو دپاره دا هم ضروری دی چه حضور ﷺ ته دغه وخت د تجمیع علم هم شوې وی، پس خلاصه د کلام دا شوه چه په دې حدیث سره د استدلال کولو صحت په دریو امورو باندې موقوف دې، په کومو کښې چه یو هم ثابت نهٔ دې، ۱، عدم اطلاق القریه علی المدینه، ۲، کون جواثی قریة لا مدینة، ۳، اطلاعه ﷺ علی هذا التجمیع و تقریره، والله تعالی اعلم بالصواب.

[۱۰۶۹](1)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَكَانَ قَائِدَ أَبِيهِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ بَصَرُهُ، عَنْ أَبِيهِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ تَرَحَّمَ لِأَسْعَدَ بْنِ زُرَارَةَ، فَقُلْتُ لَهُ: إِذَا سَمِعْتَ النِّدَاءَ تَرَحَّمْتَ لِأَسْعَدَ بْنِ زُرَارَةَ، قَالَ: لِأَنَّهُ أَوَّلُ مَنْ جَمَّعَ بِنَا فِي هَزْمِ النَّبِيتِ مِنْ حَرَّةِ بَنِي بَيَاضَةَ فِي نَقِيعٍ، يُقَالُ لَهُ: نَقِيعُ الْخَضِمَاتِ، قُلْتُ: كَمْ أَنْتُمْ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: أَرْبَعُونَ.

د عبد الرحمن بن کعب بن مالک نه روایت دی او هغه راهنما د خپل پلار وو وروسته د هغې نه چې نظریې لرې شو، هغه روایت کوي د خپل پلار کعب بن مالک نه، هغه به چې کله د جمعې اذان واوریدلو نو د رحم دعاء به یې کوله د اسعد بن زراره دپاره، نو ما وویل هغه ته: کله چې ته اذان واورې د رحم دعاء کوې اسعد بن زراره ته، هغه ویل: ځکه هغه اولنی هغه څوک دی چې مونږ ته یې د جمعې مونځ وکړو مونږ ته په هزم النبیت کې د خوړ د بني بیاضه نه په هغه ډنډ کې، چې هغې ته به نقیع الخضمات ویلی شو، ما ورته وویل: تاسو هغه وخت څومره کسان وییې؟ هغه وویل: څلوېښت.

(1): سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۷۸ (۱۰۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۴۹) (حسن)

**قوله:** عن عبدالرحمٰن بن کعب بن مالك و کان قائد ابیه بعد ما ذهب بصره.

**مضمون حدیث:**

کعب بن مالك صحابي چه کله نابینا یعنی ړوند شو نو د هغوی ځوئي عبد الرحمٰن د هغوی قائد وو یعنی د لاس نه نیکونکي او بوتلونکي، هغوئ د خپل پلا کعب بن مالك نه روایت کوی چه ما خپل پلار کعب اولیدلو چه کله به هم هغوی د جمعې په ورځ د جمعې آذان واوریدلو نو د اسعد بن زراره دپاره به ئې د رحمت او مغفرت دعاء کوله، عبدالرحمٰن وائی چه یوه ورځ ما د خپل پلار نه د دې وجه تپوس اوکړه نو هغوی اوفرمائیل، لانه اول من جمع بنا فی هزم النبیت، چه اسعد بن زراره دپاره دعاء ځکه کوم چه هغوی دلته په مدینه منوره کښې یو ځائې د کوم نوم چه هزم النبیت دې مونږ ټولو خلقو ته ئې د ټولو نه ړومبې د جمعې مونځ راکړې وو، من حرة بنی بیاضة، په مدینه کښې د یو ځائې نوم دې، نقیع الخضمات، دا هم د یوځائې نوم دې، په اصل کښې نقیع هغه ښکته زمکې ته وائی په کوم ځائې کښې چه اوبهٔ جمع شی او وابښهٔ رازرغون شی، د دې حدیث د ذکر کولو نه هم د مصنف مقصود اقامة جمعه فی القریه لره ثابتول دی، اوګورئ! اهل مدینه لره به اسعد بن زراره په مقام هزم النبیت کښې جمعه ورکوله، هزم النبیت خو هم یو قریه ده ښار خو نهٔ دې.

**جواب الحنفیة عن الحدیث الثانی:**

۱. په دې حدیث سره محمد بن اسحاق متفرد دې کوم چه متکلم فیه او مدلس دې او هغه دې لره په عن سره روایت کوی لهذا حدیث ضعیف دې.

۲. دې حضراتو دا کار یعنی اقامت جمعه په خپلې رائې او اجتهاد سره هغهٔ وخت کړې وه چه هغه وخت د جمعې مونځ مشروع شوې هم نهٔ وو، چنانچه مصنف عبدالرزاق کښې یو روایت دې چه د ابن سیرین مرسل دې د کوم الفاظ چه دا دی، جمع اهل المدینة قبل ان یقدمها رسول الله ﷺ و قبل ان تنزل الجمعة... واجتمعوا الی اسعد بن زرارة فصلی بهم یومئذٍ، خلاصه د دې روایت دا ده چه د حضور ﷺ د مدینه تشریف راوړلو نه وړاندې اهل مدینه مشوره اوکړه چه یهود او نصاری هر یو د خپل عبادت دپاره یوه ورځ مقرر کړې ده په کومه کښې چه هغوی جمع کیږی او عبادت کوی لهذا مونږ لره هم یوه ورځ متعین کول پکاردی چنانچه په خپلو کښې په مشورې سره د جمعې د ورځې تعین اوشو،

۳، هزم النبیت د مدینې نه خارج څه مستقل کلې یا بانډه نهٔ وه بلکه دا ځائې د مدینې د اطرافو نه دې لکه څنګه چه د هغه روایتونو د الفاظو نه معلومیږی کوم چه صاحب معجم البلدان ذکر کړې دی او دهلته نه حضرت په بذل المجهود کښې دا روایتونه نقل کړې دی د دې مذکوره امورو مخې ته کولو سره د دې حدیث نه استدلال څنګه صحیح کیدې شی.

**دلائل الحنفیه:**

۱، اثر علی، یعنی د حضرت علی رضی الله عنه هغه موقوف حدیث د کوم تخریج چه عبدالرزاق او ابن ابی شیبه په ګنړو سندونو سره کړې دې د کوم الفاظ چه دا دی، لا جمعة و لا تشریق الا فی مصر جامع، خو امام نووی رحمه الله د دې په حقله لیکلې دی چه، اتفقوا علی ضعفه، جواب دا

دي چه د دې په ضعف باندې اتفاق د نووی نه علاوه بل چا نۀ دې نقل کړې، صرف دومره وئيلې شی چه د دې بعضې طرق ضعيف دی په کومو کښې چه حجاج بن ارطاة دې، او بعضې طرق د دې صحيح دی د کومو اعتراف چه حافظ ابن حجر هم په الدراية فی تخريج احاديث الهداية کښې کړې دې.

۲. دويم دليل زمونږ د طرف نه دا وړاندې کړې شوې دې چه، عدم التجميع فی قبا مع شرعية الجمعة قبل ذالك بمكة، د دې وضاحت دا دې چه د جمعې مشروعيت د سورة جمعه د نزول نه وړاندې په مکه مکرمه کښې شوې وو لکه څنګه چه دې لره منلې ده علامه سيوطی شافعی رحمه الله په اتقان کښې او شيخ ابن حجر مکی شافعی په شرح المنهاج کښې او هم دغه شان علامه شوکانی په نيل الاوطار کښې (اګرچه حافظ ابن حجر عسقلانی دې لره نۀ دې تسليم کړې) خو په مکه مکرمه کښې حضور ﷺ ته د جمعې په اقامت باندې قدرت نۀ وو شوې او په قبا کښې يقينا قدرت وو ځکه چه د حضور ﷺ قيام هلته څلوارلس يا څليريشت ورځې شوې وو لکه څنګه چه د بخاری شريف په دوو مختلفو روايتونو کښې دی او د دې باوجود په اتفاق سره هلته حضور ﷺ جمعه نۀ وه قائم کړې د کومې وجه چه هم دا وه چه هغه قريه وه، بلکه هلته دمنتقل کيدو نه پس چه مدينې ته اورسيدل نو په مسجد بنو سالم کښې حضور ﷺ د جمعې مونځ ادا کړو.

حافظ ابن قيم د دې اشکال جواب دا ورکړې دې چه د حضور ﷺ قيام په قبا کښې صرف څلور ورځې وو د کل په ورځ حضور ﷺ هلته اورسيدلو او د جمعې په ورځ د صبا په وخت کښې د هغه ځائې نه مدينې طرف ته روان شول حال دا دې چه د بخاری په يو روايت کښې د حضور ﷺ هلته قيام څلوارلس ورځې [۱] او په يو بل روايت کښې څليريشت ورځې مذکور دی، هسې خو د اهل تاريخ هم په دې مسئله کښې اختلاف دې، سيرة ابن هشام کښې د محمد بن اسحاق صاحب المغازی قول څلور ورځې قيام منقول دې، دغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری،ص،۱۹۵ج،۷، کښې د ابن حبان او موسی بن عقبه د دې دواړو قول هم د محمد بن اسحاق موافق ذکر کړې دې، خو حافظ ابن کثير په البدايه والنهايه،ص،۱۹۸ج،۳، کښې د موسی بن عقبه نه دوه ويشت ورځې قيام نقل کړې دې او د واقدی نه ئې څلوارلس ورځې نقل کړې دې البته دمحمد بن اسحاق نه ئې د څلورو ورځو قيام نقل کړې دې.

۳. دريم دليل د حضرت عائشه رضی الله عنها حديث، كان الناس ينتابون الجمعة من منازلهم و من العوالى، کوم چه يو څو بابه وړاندې تير شوې دې او په هغې باندې کلام هم تير شوې دې.

---

[۱] بخاری شريف کښې په ابواب الهجرة کښې، بضعة عشر يوما، مذکور دې او په ابواب المساجد کښې، اربعة وعشرين يوما، راغلې دی، په دې باندې حافظ ليکلې دی چه په بعضې نسخو کښې هم داسې دی او په اکثرو کښې اربعة عشر يوما دې او هم دا صحيح دې، غرض دا چه په دې مسئله کښې حافظ صاحب هم پريشانه دې ځکه چه حافظ صاحب خو د بخاری شريف لوئې وفادار شارح دې او حتی الامکان د اختلاف درواياتو په صورت کښې د بخاری شريف روايت لره ترجيح ورکوی او په دې معامله کښې د بخاری شريف روايت د دۀ د مسلك خلاف ګرځيدلې دې.۔۱۲منه

۴. څلورم دلیل زمونږ هغه حدیث کیدي شي کوم چه په راتلونکي باب کښي راځي د کوم مضمون چه دا دي چه یو ځل اختر او جمعه دواړه جمع شول نو حضور ﷺ د اختر مونځ کولو نه پس اعلان اوفرمائیلو چه د چا زړهٔ غواړي هغه دې د جمعې دپاره پاتې شي او څوك چه نهٔ غواړي هغه دې لاړ شي، و انا مجمعون، او مونږ خو به د جمعې مونځ کوو یعني اهل مدینه او کوم اهل قرئ چه د اختر دمونځ دپاره راغلي وو هغوی بغیر د جمعې د ادا کولو نه تلي شی ځکه چه په اهل قرئ باندې د جمعې مونځ واجب نهٔ دې، حضرت امام شافعي د دې دا تاویل فرمائیلي دي چه اګر که په اهل قری باندې د جمعې مونځ واجب نهٔ وو خو په دې خاص صورت کښې یعنی چه کله د جمعې په ورځ باندې اختر هم وی نو د اهل قریه نه د جمعې مونځ ساقطیږي، د جمعه فی القری بحث بحمدالله پوره شو د حنفیانو سره نور هم قرائن شته دې خو دلته د دلائلو استقصاء مقصود نهٔ ده زمونږه اکابرو په دې مسئله باندې مستقل رسالې هم تصنیف فرمائیلي دی، حضرت ګنګوهي اوثق العرٰی فی تحقیق الجمعة فی القرٰی او حضرت شیخ الهند ایضاح الادله، او حضرت تهانوی التحقیق فی اشتراط المصر للتجمیع، د دې مطالعه کول پکار دی.

## بَاب إِذَا وَافَقَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ يَوْمَ عِيدٍ

### باب دی کله چې برابره شي ورځ د جمعې د ورځ د اختر سره

یعنی که اختر د جمعې په ورځ وی نو د دې څهٔ حکم دې؟ د جمعې او اختر دواړه مونځونه به ادا کولې شي یا صرف یو.

[۱۰۷۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ أَبِي رَمْلَةَ الشَّامِيِّ، قَالَ: شَهِدْتُ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ وَهُوَ يَسْأَلُ زَيْدَ بْنَ أَرْقَمَ، قَالَ: أَشَهِدْتَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِيدَيْنِ اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَكَيْفَ صَنَعَ؟ قَالَ: صَلَّى الْعِيدَ، ثُمَّ رَخَّصَ فِي الْجُمُعَةِ، فَقَالَ: "مَنْ شَاءَ أَنْ يُصَلِّيَ فَلْيُصَلِّ".

د ایاس بن ابي رملة الشامي نه روایت دی، هغه ویلي دي: زه حاضر شوم د معاویة بن ابي سفیان سره، او هغه تپوس کولو د زید بن ارقم نه، هغه وویل: ایا ته حاضر شوی یې د رسول الله ﷺ سره دوه اخترونو ته چې دواړه په یوه ورځ کې جمع شوي وي؟ هغه وویل: او، هغه وویل: هغه څنګه چل وکړو؟ ویې فرمایل: مونځ یې وکړو د اختر او رخصت یې ورکړو په جمعه کې، هغه وفرمایل: د چا چې خوښه وي چې مونځ وکړي نو ودې کړي.

۱. حدثنا محمد بن کثیر، قوله، شهدت معاویة بن ابی سفیان و هو یسال زید بن ارقم قال اشهدت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم عیدین اجتمعا فی یوم قال نعم، ایاس بن رملہ وائي چه زهٔ د حضرت معاویه رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر ووم هغه وخت کله چه هغوی سوال کولو د حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه نه چه آیا تهٔ د حضور ﷺ په خدمت کښې په کومه داسې ورځ

(۱): سنن النسائي/العيدين ۳۱ (۱۵۹۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۶۶ (۱۳۱۰)، (تحفة الأشراف: ۳۶۵۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۷۲/۴)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۲۵ (۱۶۵۳) (صحيح)

کښې موجود وې په کومه ورځ چه دوه اخترونه جمع شوې وی نو هغوی اوفرمائیل، آو، د عیدین اطلاق تغلیبا په جمعه او اختر باندې کړې شوې دې.

فقال کیف صنع، الخ، تپوس ئې اوکړو چه حضور ﷺ هغه ورځ څهٔ کړې وو زید بن ارقم رضی الله عنه جواب ورکړو چه حضور ﷺ د اختر مونځ اوکړو او بیا ئې خلقو ته د جمعې د مونځ په باره کښې عام اجازت ورکړو چه د چا زړهٔ غواړی نو ادا دې کړی او که نهٔ غواړی نو نهٔ دې کوی.

**مسئلة الباب کښې مذاهب علماء:**

په دې مسئله کښې د علماؤ اختلاف دې، د امام احمد مذهب دا دې چه کوم سړې د امام سره د اختر مونځ ادا کړی نو اوس د دهٔ نه د جمعې مونځ ساقطیږی یعنی جمعه کول په دهٔ باندې ضروری نهٔ ده خو د جمعه نهٔ کولو په صورت کښې د ماسپخین مونځ ادا کول به ضروری وی هغه نهٔ ساقطیږی، خو دا حکم د دوئ په نیز باندې د امام نه د غیر دې د امام نه جمعه نهٔ ساقطیږی، د امام مالك رحمه الله نه هم دا یو روایت دې او دویم روایت دا دې چه، لابد من الجمعة، او هم دا د حنفیانو مذهب دې، او امام شافعی رحمه الله دا فرمائی چه د ښار اوسیدونکو دپاره خو د جمعې مونځ ضروری دې خو هغه کلی واله کوم چه ښار ته د اختر مونځ ادا کولو دپاره راشی هغوی ته د اختر مونځ ادا کولو نه پس اختیار دې د جمعې مونځ ادا کولو او نهٔ ادا کولو.

غرض دا چه د اجتماع د عیدینو په شکل کښې د ښار په اوسیدونکو باندې دواړه مونځونه واجب دی البته د اهل قریه نه د دې جمعې ورځې مونځ ساقطیږی، خو د دې په ځائې د ماسپخین مونځ کول ضروری دی[1] او د حنفیانو په نیز باندې خو په اهل قریه باندې د جمعې مونځ مطلقا واجب نهٔ دې که د اختر ورځ وی یا نهٔ وی.

[۱۰۷۱] [2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَرِيفٍ الْبَجَلِيُّ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، قَالَ: صَلَّى بِنَا ابْنُ الزُّبَيْرِ فِي يَوْمِ عِيدٍ فِي يَوْمِ جُمُعَةٍ أَوَّلَ النَّهَارِ، ثُمَّ رُحْنَا إِلَى الْجُمُعَةِ "فَلَمْ يَخْرُجْ إِلَيْنَا فَصَلَّيْنَا وُحْدَانًا" وَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ بِالطَّائِفِ، فَلَمَّا قَدِمَ ذَكَرْنَا ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: أَصَابَ السُّنَّةَ.

د عطاء بن ابي رباح نه روایت دی هغه وېلي دي: مونځ وکړو مونږ ته ابن الزبیر د اختر په ورځ په ورځ د جمعې کې په اول سر د ورځ کې، بیا مونږ جمعې ته لاړلو، هغه مونږ ته راونه وتلو نو مونږ ځانله مونځ وکړو، او وو ابن عباس په طائف کې، هرکله چې راغلو مونږ دا ذکر کړه هغه ته، هغه وویل: سنت ته رسیدلی دی.

**مضمون حدیث:**

قوله: حدثنا محمد بن طريف. الخ، قوله، عن عطاء بن ابي رباح قال صلى بنا ابن الزبير: عبدالله بن الزبير رضی الله عنه کله چه د مکې امیر وو نو د یو خلې واقعه ده چه د جمعې په ورځ اختر شو نو هغوی د صبا په وخت کښې خلقو ته د اختر مونځ ورکړو بیا دبنه پس کله چه د جمعې وخت

[1] ) يعني عندالجمهور خلافا لعطاء بن ابي رباح فانه اسقط الظهر ايضا، كما في المتن لم يزد عليهما حتي صلي العصر) ۱۲ منه_

[2] ): صحيح مسلم/صلاة العيدين (۸۸٦)، (تحفة الأشراف: ۵۸۹٦) (صحيح)

راغلو نو خلق د جمعې مونځ کولو دپاره راغلل خو هغوی د جمعې ادا کولو دپاره د دننه نه بهر رانغلل پس خلقو مجبورا د ماسپخين مونځ ځانله ځانله ادا کړو، ابن عباس رضي الله عنه دغه وخت په مکه کښې موجود نهٔ وو بلکه په سفر کښې وو کله ئې چه د هغې ځائې نه تشریف راوړلو نو اهل مکه هغوی ته د دې واقعې ذکر اوکړلو نو هغوی اوفرمائیل، اصاب السنة، یعنی هغوی دشرعی قاعدې مطابق کړې دی،د ابن الزبیر رضي الله عنه فعل ته خو دا وئیلې شی چه هغه د صحابی فعل دې مرفوع حدیث نهٔ دې خو حضرت ابن عباس رضي الله عنه خو دې لره د حدیث موافق فرمائی، د دې جواب به مونږ وړاندې ورکړو.

[۱۰۷۲](١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: قَالَ عَطَاءٌ: اجْتَمَعَ يَوْمُ جُمُعَةٍ وَيَوْمُ فِطْرٍ عَلَى عَهْدِ ابْنِ الزُّبَيْرِ، فَقَالَ: عِيدَانِ اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ، فَجَمَعَهُمَا جَمِيعًا فَصَلَّاهُمَا رَكْعَتَيْنِ بُكْرَةً لَمْ يَزِدْ عَلَيْهِمَا حَتَّى صَلَّى الْعَصْرَ.

ویلي دي عطاء: جمع شوه ورځ د جمعې او د ورکوټې اختر په زمانه د ابن الزبیر کې، هغه وویل: دوه اخترونه دي په یوه ورځ کې. نو دواړه یې جمع کړل او ویې کړل دوه رکعاته په وخت، زیادت یې ونه کړو په دواړو تردې چې مونځ یې وکړو د مازیګر.

[۱۰۷۳](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، وَعُمَرُ بْنُ حَفْصٍ الْوَصَّابِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْمُغِيرَةِ الضَّبِّيِّ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "قَدِ اجْتَمَعَ فِي يَوْمِكُمْ هَذَا عِيدَانِ، فَمَنْ شَاءَ أَجْزَأَهُ مِنَ الْجُمُعَةِ، وَإِنَّا مُجَمِّعُونَ". قَالَ عُمَرُ: عَنْ شُعْبَةَ.

د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی، هغه روایت کوي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ببشکه هغه ویلي دي: ستاسو په دې ورځ کې دوه اخترونه جمع شوي دي، د چا چې خوښه وي نو کافي دی هغې لره د جمعې نه، او ببشکه مونږ جمع کونکي یو. ویلي دي عمر: د شعبه نه.

**قوله:** فمن شاء اجزاه من الجمعة و انا مجمّعون، یعنی حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه نن ورځ دوه اخترونه جمع شوې دی نو چه کوم سړې دا غواړي چه د اختر مونځ به دهٔ دپاره پوره شی د جمعې نه نو دا کیدې شی خو مونږ به په هر حال کښې جمعه ادا کوو.

**(د حدیث الباب نه جوابات)**

حنفیه او شافعیه داسې وائی چه د مونږ نه مراد اهل مدینه دی او کومو خلقو ته چه حضور صلی الله علیه وسلم د جمعې نهٔ کولو اجازت ورکړې دې دا هغه اهل قریٰ دی کوم چه حضور صلی الله علیه وسلم سره د اختر مونځ ادا کولو دپاره راغلې وو نو حضور صلی الله علیه وسلم د جمعه نهٔ ادا کولو اجازت صرف هغه کلی والو خلقو ته ورکړې وو، او د حنفیانو په نیز په اهل قریه باندې د جمعې مونځ واجب نهٔ دې او د شافعیه په نیز اگر که واجب دې خو په دې خاص صورت کښې واجب نهٔ دې، لهذا دا حدیث د حنفیانو خلاف نهٔ دې(٣) هم دا جواب د تیر شوې احادیثو هم دې او هغه چه ابن عباس رضي الله عنه مطلقا د نهٔ کولو اجازت ورکړې دې نو دا د خپل علم او گمان مطابق به ئې وئیلې

---

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٢٨٣) (صحيح)

٢): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٦٦ (١٣١١)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٢٧) (صحيح)

٣) بلکه دجمعه فی القریٰ په مسئله کښې دا حدیث د حنفیانو دلیل جوړیدې شی، کما تقدم)١٢منه

وی، ابن عباس ﷺ د حضور ﷺ په زمانه کښې صغیر السن یعنی وړوکې وو کیدې شی د حضور ﷺ په مراد باندې پوهه شوې نه وی او حدیث لره هغوی عام ګنړلې وی حال دا دې چه د حضور ﷺ اجازت اهل قریه دپاره وو نه د اهل مدینه دپاره او که بالفرض دا احادیث د ترک جمعه دپاره عام اجازت اوګنړلې شی کما قال احمد نو بیا به د جمهورو د طرف نه جواب دا وی چه زمونږ استدلال دعموماتو نه دې یعنی په هغه احادیثو او دلائلو سره کومو سره چه د جمعې مطلقاً فرضیت ثابت دې داختر او غیر اختر هیڅ فرق نشته دې او د دې باب احادیث دومره قوی نه دی کوم چه د دې دلائلو مقابله اوکړې شی، والله تعالی أعلم بالصواب.

## بَابُ مَا يُقْرَأُ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### باب دی په بیان دسحر مونځ کې د جمعې په ورځ

[۱۰۷۴] (۱)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مُخَوَّلِ بْنِ رَاشِدٍ، عَنْ مُسْلِمٍ الْبَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ تَنْزِيلُ السَّجْدَةَ، وَهَلْ أَتَى عَلَى الْإِنْسَانِ حِينٌ مِنَ الدَّهْرِ".

د ابن عباس ﷺ نه روایت دی، ببشکه رسول الله ﷺ وو چې لوستل یې په مانځه د سحر کې په ورځ د جمعه کې، تنزیل السجده، او هل اتی علی الانسان حین من الدهر.

قوله، عن ابن عباس ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یقرأ فی صلوة الفجر تنزیل السجدة و هل اتی علی الانسان حین من الدهر، او د طبرانی په یو روایت کښې د عبدالله بن مسعود ﷺ حدیث سره، یدیم ذلك، راغلې دی، یعنی حضور ﷺ به همیشه د جمعې په ورځ د صبا په مانځه کښې سوره سجده او سوره دهر تلاوت فرمائیلو، او د دې حدیث نورې طریق چه کوم وړاندې په کتاب کښې مذکور دی دا زیاتې دې چه، وفی صلوة الجمعة بسورة الجمعة و اذا جاءك المنافقون، د جمعې د مانځه د قرأت دپاره یو مستقل باب ما یقرأ فی صلوة الجمعة، وړاندې په کتاب کښې راروان دې په هغې باندې به خبره هلته کوو.

### مذاهب ائمه:

د جمعې په ورځ د صبا په مانځه کښې د دې دواړو سورتونو لوستل د شافعیه او حنابله په نیز سنت دی خو حنابله دا وائی چه دا دواړو سورتونو دې بغیر د مواظبة نه اولوستلې شی(منهل) او د حنفیانو په نیز د دې سورتونو لوستل کله کله مستحب دی د ماثور د اتباع په نیت سره او هم دې سورتونو لره متعین کول او په دې باندې همیشوالې کول د حنفیانو په نیز مکروه دی، اوس پاتې شو د مالکیه مذهب نو د هغوی په نیز مشهور قول کښې په فرض مونځ کښې د داسې سورت لوستل په کوم کښې چه سجده وی مکروه دی حتی چه د جمعې په ورځ د صبا په مانځه کښې هم د سورة سجده لوستل او دویم روایت د دوئ دا دې

(۱): صحیح مسلم/الجمعة ۱۷ (۸۷۹)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۵۸ (۵۲۰)، سنن النسائي/الافتتاح ۴۷ (۹۵۶، ۹۵۷)، والجمعة ۳۸ (۱۴۲۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۶ (۸۲۱)، مسند احمد (۱/۲۲۶، ۳۰۷، ۳۱۶، ۳۲۸، ۳۳۴، ۳۵۴)، (تحفة الأشراف: ۵۶۱۳) (صحیح)

چه د ازدحام یعنی د ګڼړې په وخت کښې یعنی کله چه جماعت ډیر وی نو بیا کراهت شته ګینی شته ، دریم روایت د دوئ دا دې چه، یکره فی السریة دون الجهریة، او د شافعیه مذهب دا دې چه د سجدې واله سورت لوستل په فرضو کښې جائز دې خو سجده د تلاوت دې نهٔ کوی، فلو سجد عالما بتحریمة بطلت الصلوة، او د امام احمد رحمه الله مذهب دا دې چه، یکره فی السریة دون الجهریة فان قرأ لا یسجد و عند الحنفیة یکره فی السریة و نحو جمعة و عید، دا ټول تفصیل په الفیض السمائی کښې مذکور دې، امام نسائی باب قائم کړې دې، باب السجود فی الفریضة، د پورتنې تفصیل نه دا معلومه شوه چه دلته دوه مسئلې دی او د سجدې واله سورت په فرض مومځ کښې لوستل، دویمه دا چه په فرض مونځ کښې که د سجدې واله سورت اولوستلې شی نو په دې کښې سجده د تلاوت دې اوکړې شی یا نهٔ،

**لطیفه**:ـ دا وړاندې راغلې دی چه د شوافعو په نیز په دې سورتونو باندې مواظبت غوره دې، او حنفیانو په نیز احیانًا ، په دې باندې شیخ ابن الهمام رحمه الله لیکی چه مسئله خو دا وه چه په فعل باندې دې مواظبت او نهٔ کړې شی بلکه احیانا دې اولوستلې شی، او بعضې حنفیة العصر دا کړې دی چه هغوی د دې سورتونو په ترک باندې مواظبت کړې دې، زهٔ وایم په خلاف د شافعیه وغیره چه هغوی په دې فعل باندې مواظبت کونکې دی، نو د یو امی هندی سړی قصه واورولې شوه چه هغهٔ د حج کولو نه پس واپس خپل وطن هندوستان ته راغلو نو دلته ئې د هغهٔ ځائې خبرې اورول شروع کړې نو هغه دا هم اوښودل چه ما یوه عجیبه خبره اولیدله چه د جمعې په ورځ به صبا په مانځه کښې همیشه درې رکعاته کیدل، او حضرت ګنګوهی رحمه الله په تقریر کښې دا دی چه زمونږ په نیز د دې سورتونو لوستل کله کله مستحب دی یا اکثر، او په کثرت کښې دوه احتماله دی فی نفسه کثرت یا کثرة الوجود علی العدم، یعنی نهٔ د لوستلو په مقابله کښې د دې سورتونو لوستل ډیروی.

[۱۰۷۵](۱)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ مُخَوَّلٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، "وَزَادَ فِي صَلَاةِ الْجُمُعَةِ بِسُورَةِ الْجُمُعَةِ وَإِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ.

د مخول نه روایت دی په اسناد او معنی د هغې سره، او هغه زیادت کړی دی د جمعی په مانځه کې سورة الجمعة او اذا جاءک المنافقون.

## بَابُ اللُّبْسِ لِلْجُمُعَةِ

### باب دی په بیان د اغوستلو کې د جمعې دپاره

[۱۰۷۶](۲)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَأَى حُلَّةً سِيَرَاءَ، يَعْنِي: تُبَاعُ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوِ اشْتَرَيْتَ هَذِهِ فَلَبِسْتَهَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلِلْوَفْدِ إِذَا قَدِمُوا عَلَيْكَ،

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۶۱۳) (صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الجمعة ۷ (۸۸۶)، والعيدين ۱ (۹۴۸)، والهبة ۲۷ (۲۶۱۲)، ۲۹ (۲۶۱۹)، والجهاد ۱۷۷ (۳۰۵۴)، واللباس ۳۰ (۵۸۴۱)، والأدب ۹ (۵۹۸۱)، ۶۶ (۶۰۸۱)، صحيح مسلم/اللباس ۱ (۲۰۶۸)، سنن النسائي/الجمعة ۱۱ (۱۳۸۳)، والعيدين ۴ (۱۵۶۱)، والزينة ۸۳ (۵۲۹۷)، ۸۵ (۵۳۰۱)، (تحفة الأشراف: ۸۰۲۳، ۸۳۳۲۵)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/اللباس ۱۶ (۳۵۸۹)، مسند احمد (۲/۲۰، ۳۹، ۴۹) ويأتي هذا الحديث في اللباس (۴۰۴) (صحيح)

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا يَلْبَسُ هَذِهِ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ"، ثُمَّ جَاءَتْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهَا حُلَلٌ، فَأَعْطَى عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ مِنْهَا حُلَّةً، فَقَالَ عُمَرُ: كَسَوْتَنِيهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ، وَقَدْ قُلْتَ فِي حُلَّةِ عُطَارِدٍ مَا قُلْتَ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي لَمْ أَكْسُكَهَا لِتَلْبَسَهَا" فَكَسَاهَا عُمَرُ أَخًا لَهُ مُشْرِكًا بِمَكَّةَ.

د عبد الله بن عمر نه روایت دی، بېشکه عمر بن الخطاب ولیدله یوه جوړه سیراء ـ یعني ـ چې خرڅیدله د دروازې سره، هغه وویل: ای د الله رسوله! که دا دې اخستې وه او اغوستې دې وه د جمعې په ورځ او د وفد لپاره کله چې راځي تاته، وویل رسول الله ﷺ: بېشکه اغوندي دا هغه څوک چې د هغه حصه نه وه په اخرت کې. بیا رسول الله ﷺ ته د هغې نه جوړې راغلې، نو ورېې کړه عمر ته یوه جوړه، عمر وویل: تا ماته راواغوسته ای د الله رسوله! او تا ویلي وو په جوړو د عطارد کې هغه څه چې تا ویلي وو، نو رسول الله ﷺ وویل: ما تاته دې لپاره درنه کړه چې ته یې واغوندې. نو عمر خپل یو ورور ته ورکړه چې مکه کې وو او مشرک وو.

۱. حدثنا القعنبی ـ قوله ـ ان عمر بن الخطاب رای حُلَّةً سیراءَ یعنی تباع عند باب المسجد، دا حلة سیراء صفت سره او حلة سیراء اضافت سره دواړه شان لوستلې شوې ده، سیراء یو خاص قسم کپړه وی په کومې کښې چه ریښم هم وی او په بعضو نسخو کښې د دې تفسیر په خالص ریښمی کپړې سره هم کړې دې.

قوله، فی حلة عطارد، عطارد د حضور ﷺ په زمانه کښې یو سړې وو چا چه هم د حضور ﷺ په زمانه کښې روستو اسلام راوړې وو دۀ لره یو باچا د ریښمو حله (یعنی چینه) ورکړې وه کومې لره چه هغه خرڅول غوښتل لکه څنګه چه د طبرانی په یو روایت کښې دی، نو حضرت عمر رضي الله عنه دا جوړه واغستله او د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چه که تاسو اوفرمائی نو زۀ دا به ستاسو دپاره واخلم، لفظ د عطارد منصرف او غیر منصرف دواړه شان لوستلې شی، فکساها عمر اخا له مشرکا بمکة، بیا حضرت عمر رضي الله عنه هغه جوه خپل یو مشرك رور ته واغستوله کوم چه په مکه کښې اوسیدو، بعضې وائی چه هغۀ د دۀ اخیافی رور وو او بعضې وائی چه رضاعی وو د هغۀ نوم عثمان بن حکیم لیکلې دې، په دې کښې اختلاف دې چه روستو هغۀ اسلام راوړې وو یا نۀ د سړو دپاره لُبس حریر یعنی د ریښمو اغوستل ناجائز دی د دې تفصیل به په کتاب اللباس کښې راشی.

### الفوائد الحاصلة من الحدیث:

په بذل کښې لیکلې دی چه د دې حدیث نه مستفادېږی چه کفار دفروع اسلام یعنی د اسلامی احکامو مکلف نۀ دې ځکه چه حضرت عمر رضي الله عنه دې خبره باندې پوهیدو چه هغه مشرك به دا د ریښمو لباس خامخا اغوندی او ظاهره دا ده چه حضور ﷺ ته د دې لیږلو علم وو دغه شان دا هم معلومه شوه چه مسلمان خپل مشرك رشته دار سره احسان او صله رحمی کولې شی خو هغۀ سره مودت او د زړۀ تعلق ممنوع دې.

حضرت لیکی چه د دې نه یوه بله مسئله هم مستفاد کیږی د کومې چه امام صاحب قائل دې هغه دا چه د امام صاحب په نیز د یو مسلمان خپل کور یا دوکان داسې سړی لره په

کرايه باندې ورکول جائز دی د چا په باره کښې چه دا معلومه وی چه هغهٔ به دې لره په يو حرام کار کښې استعمالوی مثلا بيع خمر وغيره يا يو مجوسی يا وثنی لره په کرايه باندې ورکول د چا په حقله چه دا معلومه وی چه هغهٔ به په دې کښې خپل يو مذهبی کار کوی آتش پرستی يعنی د نمر عبادت کول يا بت پرستی وغيره.

[۱۰۷۷](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، وَعَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: وَجَدَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ حُلَّةَ إِسْتَبْرَقٍ تُبَاعُ بِالسُّوقِ فَأَخَذَهَا، فَأَتَى بِهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: ابْتَعْ هَذِهِ تَجَمَّلْ بِهَا لِلْعِيدِ وَلِلْوُفُودِ، ثُمَّ سَاقَ الْحَدِيثَ، وَالْأَوَّلُ أَتَمُّ.

سالم د خپل پلار نه روايت کوي، هغه ووېل: بيامونده عمر بن الخطاب يوه جوړه د ريښمو نه چې خرخيدله په بازار کې، نو هغه يې واخسته راېې وړه رسول الله ﷺ ته هغه ووېل: دا واخله او ځان پرې ښائسته کړه د اختر لپاره او د وفدونو دپاره، بيايې حديث بيان کړو، او اولنی اتم دی.

**قوله:** وجد عمربن الخطاب حلة استبرق تباع بالسوق. الخ، کوم ريښم چه نرئ قسم واله وی هغې ته ديباج وائی، مارقّ من الحرير، او استبرق هغه ريښم کوم چه دپېړ وی، ما غلظ من الحرير.

[۱۰۷۸](۲)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، وَعَمْرٌو، أَنَّ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ حَدَّثَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا عَلَى أَحَدِكُمْ إِنْ وَجَدَ، أَوْ مَا عَلَى أَحَدِكُمْ إِنْ وَجَدْتُمْ، أَنْ يَتَّخِذَ ثَوْبَيْنِ لِيَوْمِ الْجُمُعَةِ سِوَى ثَوْبَيْ مِهْنَتِهِ". قَالَ عَمْرٌو: وَأَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ حَبَّانَ، عَنِ ابْنِ سَلَامٍ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ ذَلِكَ عَلَى الْمِنْبَرِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ سَعْدٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

حديث بيان کړی دی يحيى بن حبان، بېشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: هيڅ شی نشته دی يو کس ستاسو باندې که چېرې بيامومي. او يا نشته په يو کس ستاسو که چېرې پيدا کړئ. چې ونيسي دوه جامې د جمعې د ورځې دپاره، سوی د جامو د کار د هغه نه. ويلي دي عمرو: خبر راکړی دی ماته ابن ابي حبيب د موسى بن سعد نه او هغه د ابن حبان نه او هغه د ابن سلام نه، بېشکه هغه اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه چې هغه ويل دغه په منبر. ويلي دي ابوداود: او د دې روايت کړی دی وهب بن جرير د خپل پلار نه او هغه د يحيى بن ايوب نه، او هغه د يزيد بن ابي حبيب نه او هغه د موسى بن سعد نه او هغه د يوسف بن عبد الله بن سلام نه او هغه د نبي ﷺ نه.

۳. حدثنا احمد بن صالح، الخ، قوله، ان محمد بن يحيٰ ابن حبان حدثه، دا حديث مرسل دې ځکه چه محمد بن يحيي تابعی دې، قوله، ما علی احدکم ان وجد او ما علی احدکم، دا شك د راوی دې داسې ئې فرمائيلې وو يا داسې.

---

(۱): صحيح مسلم/اللباس ۱ (۲۰۶۸)، سنن النسائي/العيدين ٤ (۱۵٦۱)، (تحفة الأشراف: ٦٨٩٥) (صحيح)

(۲): سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ۸۳ (۱۰۹۵)، (تحفة الأشراف: ۵۳۳٤، ۱۱۸۵۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجمعة ۸ (۱۷) (صحيح)

د حدیث مطلب دا دې چه حضور ﷺ ارشاد فرمائی چه په تاسو کښې د چا دپاره په دې کښې څۀ حرج دې چه د جمعې په ورځ هغه دوه کپړې تیارې کړی کله چه د جمعې ورځ راشی نو هغه دې واغوندې، سِوٰی ثوبی مهنته، د روزګار د جامو نه علاوه، یعنی کومې جامې چه سړې واغوندی او پوره جمعه کار کوی او خدمت کوی د هغې نه علاوه خاص د جمعې دورځې دپاره د جامو یوه جوړه پکار ده، قال عمرو واخبرنی ابن ابی حبیب،

**شرح السند:**

پورته په سند کښې د ابن وهب دوه استاذان مذکور دی یو یونس او دویم عمرو، د عمرو رومبې روایت د یحیي بن سعید نه وو، اوس ابن وهب دا وائی چه زما استاذ عمرو دې حدیث لره ځنګه چه عمرو د یحیی بن سعید نه روایت کوی دغه شان ابن ابی حبیب نه هم روایت کوی خو فرق په دواړو کښې دا دې چه رومبې روایت د حضور ﷺ نه نقل کونکې محمد بن یحیي دې کوم چه تابعی دې لهذا هغه روایت خو مرسل شو، او دې دویم روایت کښې محمد بن یحیي بن حبان او د حضور ﷺ په مینځ کښې ابن سلام واسطه ده لهذا دا روایت د مرسل په ځائې باندې مسند شو. خو د ابن سلام په مصداق کښې دوه احتماله دی که د دۀ نه مراد عبد الله بن سلام صحابی دې نو بیا خو دا روایت منقطع شو ځکه چه د ابن حبان سماع د عبدالله بن سلام نه ثابته نۀ ده،(۱) او دویم احتمال دا دې چه دابن سلام نه مراد دعبدالله بن سلام ځوئې وی د چا نوم چه یوسف دې لکه ځنګه چه په راتلونکی روایت کښې راځی دې د کشرانو صحابۀ نه دې او ابن حبان د دوئ زمانه موندلې ده لهذا په دې صورت کښې به دا روایت مسند او متصل وی.

## بَابُ التَّحَلُّقِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ الصَّلَاةِ

### باب دی په بیان د حلقه کې د جمعې په ورځ مخکې د مانځه نه

[۱۰۷۹](۲)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الشِّرَاءِ وَالْبَيْعِ فِي الْمَسْجِدِ، وَأَنْ تُنْشَدَ فِيهِ ضَالَّةٌ، وَأَنْ يُنْشَدَ فِيهِ شِعْرٌ، وَنَهَى عَنِ التَّحَلُّقِ قَبْلَ الصَّلَاةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ".

عمرو بن شعیب نه روایت دی او هغه د خپل پلار نه روایت کوي او هغه د خپل نیکه نه کوي، بېشکه رسول الله ﷺ منع کړي ده د شراء او د بیع نه په مسجد کې، او دا چې اعلان وکړی شي په هغې کې د ورک شوي شي، او دا چې وویل شي پکې شعر، او منع یې کړي ده د حلقي جوړولو نه د مانځه نه مخکې په ورځ د جمعه کې.

قوله. ان رسول الله صلی الله علیه وسلم نهی عن الشراء و البیع فی المسجد، په جومات کښې دننه بیع او شراء دا د جومات استعمال په غیر ما وضع له کښې دې ځکه چه د مساجدو بناء

---

(۱) ځکه چه دمحمد بن یحيي پیدائش،۴۷، هجری کښې شوې دې او د عبدالله بن سلام وفات په،۴۳، هجری کښې شوې دې۔

(۲): سنن الترمذي/الصلاة ۱۲٤ (۳۲۲)، سنن النسائي/المساجد ۲۳ (۷۱٦)، (تحفة الأشراف: ۸۷۹٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المساجد ٥ (۷٤۹)، مسند احمد (۱۷۹/۲) (حسن)

د تلاوت د قرآن او ذکر الله دپاره ده.
دا نهي د حنفیه او شافعیه په نیز د کراهیت دپاره ده د غیر معتکف په حق کښې او د حنابله په نیز مطلقا د تحریم دپاره ده که بیع قلیل یعنې لږه وی یا کثیر یعنی ډیره وی معتکف وی یا غیر معتکف وی، حضرت امام احمد رحمه الله په دې کښې متشدد دې او د بعضې شوافعو په نیز مطلقا جائز دې، او د امام طحاوی رائې کومه چه هغوی په شرح معانی الآثار کښې روایاتو سره ثابت کړې ده دا ده چه ممانعت په نفس بیع او شراء سره نۀ دې بلکه په کثرت بیع او شراء یعنی د اغستلو او خرڅولو په ډیروالی سره دې، دې هم اغستل او خرڅول کوی او هغه هم اغستل او خرڅول کوی تر دې چه د جومات حالت د بازار مشابه شی، که یو یا دوو سړی ځانله ځانله اغستل او خرڅول اوکړی نو په دې کښې هیڅ باك نشته دې، چنانچه امام طحاوی رحمه الله په یو روایت سره د حضرت علی رضی الله عنه په جومات کښې په ناستې سره خصف نعل(پیزار ګنډل او جوړول) ثابت فرمائیلې دی د کوم علم چه حضور صلی الله علیه وسلم ته هم وو، چنانچه حضور صلی الله علیه وسلم د دی په باره کښې د یوې واقعې د لاندې اوفرمائیل، و لکنه خاصف النعل فی المسجد، امام طحاوی رحمه الله فرمائی د دینه معلومه شوه چه عمل فی المسجد جائز دې خو د نفس عمل دپاره نۀ د کثرت عمل دپاره، که ډیر خلق په جومات کښې خپل خپل پیزار سمولو دپاره کینی په کوم سره چه د جومات هیئت بدل شی نو ظاهره ده چه د دې څوك اجازت ورکولې شی.
وان تنشد فیه ضالة، د دې بیان په ابواب المساجد کښې په باب فی کراهیة انشاد الضالة فی المسجد د لاندې تیر شوې دې، و ان ینشد فیه شعر،

## د انشاد الشعر فی المسجد بحث:

په دې حدیث کښې د انشاد شعر فی المسجد نه منع کړې شوې ده او د ډیرو روایاتو نه د دې جواز معلومیږی، چنانچه امام ترمذی رحمه الله د دې حدیث په ذیل کښې فرمائی، وقد رُوی عن النبی صلی الله علیه وسلم فی غیر حدیث رخصة فی انشاد الشعر فی المسجد، چنانچه په صحیحینو کښې دی چه یو ځل د حضرت عمر رضی الله عنه د مسجد نبوی سره تیریدل اوشو هغه وخت حضرت حسان رضی الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم شاعر په جومات کښې شعرونه وئیل نو حضرت عمر رضی الله عنه هغوی طرف ته په تیزنظرونو سره اوکتل نو په دې باندې حضرت حسان رضی الله عنه عرض اوکړو، کنت انشد فیه و فیه من هو خیر منك، چه ما به په جومات کښې اشعار د هغه چا په موجودګئ کښې وئیل کوم چه د دستانه افضل وو(یعنی حضور صلی الله علیه وسلم) دغه شان د ترمذی په یو روایت کښې دی چه حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه حضور صلی الله علیه وسلم به د حضرت حسان رضی الله عنه دپاره په جومات کښې منبر ایخودلو بیا به هغۀ په هغې باندې اودریدلو او په اشعارو کښې به ئې د کفارو بدی بیانوله، دا حدیث د ترمذی په ابواب الاستیذان،ص،۱۰۷،ج،۲، په آخره کښې دې او دې ځائې کښې د حضرت انس رضی الله عنه یو بل حدیث دې چه کله حضور صلی الله علیه وسلم په عمرة القضاء کښې مکې مکرمې ته داخلیدو نو عبدالله بن رواحه رضی الله عنه به د حضور صلی الله علیه وسلم نه وړاندې دا اشعار لوستل او روان به وو.

خلوا بنی الکفار عن سبیله　　اليوم نضربكم على تنزيله
ضربا يزيل الهام عن مقيله　　و يذهل الخليل عن خليله

## د متعارضه رواياتو په مينځ کښې تطبيق:

الحاصل، په دې باره کښې د جواز او منع دواړه شان روايتونه راغلي دی جمهورو علماؤ د دې په مابين کښې تطبيق دغه شان فرمائيلي دې چه د منع تعلق د هغۀ اشعارو سره دې په کوم کښې چه تفاخر وی يا د داسې سرې مدح وی کوم چه قابل د مدح نۀ وی، يا د داسې سرې مذمت يعنی بدی د چا مذمت چه جائز نۀ وی او کله چه اشعار د دين او اسلام د مدحې او د کفارو د مذمت يا د بل څۀ حکمت خبرې وی او د مکارم اخلاق ترغيب وی نو په دې کښې څۀ باك نشته دې.[1]

د حديث شارحينو ابن العربی او امام نووی وغيره هم دا ليکلي دی او يو عالم دې ابوعبدالله البونی د هغوی رائې دا ده چه احاديث النهی د احاديث د اذن دپاره ناسخ دی خو چا هم د دوئ موافقت نۀ دې کړې(من المنهل) د امام طحاوی رحمه الله رائې هم دلته هم هغۀ ده چه ممانعت د مطلقا انشاد شعر نه نۀ دې بلکه د دې کثرت او غلبې سره دې چه ډير خلق په جومات کښې کينی او شعر او شاعری او بيت بازی شروع کړی دا ممنوع ده.

و نهى عن التحلق قبل الصلوة يوم الجمعة: يعنی د جمعې په ورځ د جمعې د مونځ نه وړاندې بعضې خلق راشی او په جومات کښې حلقه جوړه کړی او کينی د دېنه منع کړې شوې ده ځکه چه دا هيئت د مونځ د هيئت خلاف دې د صف بندئ خلاف دې په دې سره قطع صوفوف لازميږی کله چه څۀ خلق په جومات کښې حلقه جوړه کړی او کينی نو دومره برخه د صف نه منقطع شی او نورې هم بعضې خرابئ دی مثلا دا چه کله خلق حلقه جوړه کړی او کينی نو په خبرو اترو کښې مشغول شی حال دا دې چه په جومات کښې آمد يعنی راتلل د مونځ د ادا کولو دپاره وی نۀ د خبرو اترو دپاره، او په حديث کښې د قبل الصلوة دقيد نه معلوميږی چه بعدالصلوة تحلق فی المسجد ممنوع نۀ دې د مونځ نه پس په حلقه جوړولو سره کيناستې شی، دغه شان د جمعې د ورځ د علاوه په نورو ورځو کښې د تحلق اجازت دې د جمعې د ورځې خصوصيت خو د دې وجه نه دې چه په دې ورځ په جومات کښې ګڼړه وی

[1] ابن العربی فرمائی چه انشاد الشعر في المسجد کښې هيڅ حرج نشته دې کله چه هغۀ اشعار د دين او ديندارئ په مدح کښې وی اګرکه(ضمنا په دې اشعارو کښې علي عادت العرب) د خمر يعنی شرابو او د هغې د ښيښو صفاتو ذکر د مدحې په توګه ولې نۀ وی،
قصيده بانت سعاد، او په تحقيق سره په جومات کښې مدح کړې ده کعب بن زبير رضی الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم په خپله مشهوره قصيده کښې(قصيده بانت سعاد سره مشهوره ده) چه د هغې د شروع مصرعه دا ده، ع، بانت سعاد فقلبي اليوم متبول، په کومې کښې چه وړاندې لاړ شی نو د خمر د مدحې په باره کښې دغه شان دی، کانه منهل بالراح معلول، په بذل کښې ليکلي دی چه حافظ عراقی فرمائی چه دا قصيده مونږ ته په ګڼړو طريقو سره رارسيدلې ده خو په دې کښې يوطريق هم صحيح نۀ دې، محمد بن اسحاق هم دې قصيدې لره ذکر کړې ده خو په سند منقطع سره هغۀ فرمائی او که تسليم کړې شی چه دا قصيده د حضور صلی الله علیه وسلم د وړاندې په جومات کښې لوستلې شوې ده نو بيا مونږ دا وايو چه په دې کښې په څه ځائې کښې د شرابو مدح نۀ ده شوې البته د ريق شرابو مدح په دې کښې ده(بذل)۔

خلق ډیر وختنی په جوماتت کښې جمع کیدل شروع کیږي، دتبکیر الی الجمعه د حکم د وجې نه، او په حلقه جوړولو سره کیناستلو سره رومبې خو د مونځ هیئت باقي نهٔ پاتې کیږي د کوم دپاره چه راغلې وی دویمه دا چه د ځائې تنګ والې راځي هلته څوك دویم کس نهٔ شي کیناستلې وغیره وغیره خرابئ دی. او د امام طحاوی رائې دلته هم هغه ده چه ممانعت د نفس تحلق نهٔ دې بلکه د کثرت تحلق دې چه مختلف خلق خپلې خپلې حلقې جوړې کړی او په جوماتت کښې کینی، صرف په یوه نیمه حلقه جوړولو سره کیناستلو کښې څهٔ باك نشته دې، والله تعالی اعلم بالصواب.

# بَابٌ فِي اتِّخَاذِ الْمِنْبَرِ

## باب دی په بیان د جوړولو د منبر کښې

دا ترجمه نورو مصنفینو حضراتو هم قائمه کړې ده، چنانچه امام بخاری او امام ترمذی رحمهماالله. باب الخطبه علی المنبر، باب تړلې دې.

### د ترجمة الباب غرض:

حضرت ګنګوهی په تقریر الکوکب الدری کښې لیکلې دی، شاید د دېنه مقصود د مصنف دا ثابتول دی چه دا بدعت یا خلاف تواضع نهٔ دی او په دې کښې شاید څوك دا اوګڼړی چه دا به د جابره او د متکبرینو عادت وی، بلکه دا خو د حضور ﷺ نه ثابت دی، نیز دا ئې لیکلې دی چه د حضور ﷺ د منبر درې درجات یعنی پوړئ وی په دریمه باندې به هغوی کیناستل او د دوئ قدمونه مبارك به په دویمه پوړئ باندې وو، بیا د حضور ﷺ نه روستو صدیق اکبر ؓ ادباً په دویمه باندې کیناستل او په رومبی باندې به ئې قدمونه وو، بیا د دوئ نه روستو حضرت عمر فاروق ؓ په دریمه پوړئ باندې کیناستلو او په زمکه باندې به ئې پښې وی، بیا حضرت عثمان ؓ دپاره اوس بله پوړئ نه وه پاتې نو ځکه هغوی به د ټولو نه اولنئ درجه باندې کیناستلو، او په حاشیه د کوکب کښې لیکلې دی چه په شروع کښې یو څو کاله به حضرت عثمان ؓ دا اوکړل چه په آخری پوړئ باندې به کیناستلو د حضرت عمر ؓ پشان بیا روستو ئې پورتنئ پوړئ باندې کیناستل شروع کړل.

[۱۰۸۰] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدٍ الْقَارِيُّ الْقُرَشِيُّ، حَدَّثَنِي أَبُو حَازِمِ بْنُ دِينَارٍ، أَنَّ رِجَالًا أَتَوْا سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِيَّ وَقَدِ امْتَرَوْا فِي الْمِنْبَرِ مِمَّ عُودُهُ، فَسَأَلُوهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأَعْرِفُ مِمَّا هُوَ، وَلَقَدْ رَأَيْتُهُ أَوَّلَ يَوْمٍ وُضِعَ، وَأَوَّلَ يَوْمٍ جَلَسَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَرْسَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى فُلَانَةَ امْرَأَةٍ قَدْ سَمَّاهَا سَهْلٌ أَنْ مُرِي غُلَامَكِ النَّجَّارَ أَنْ يَعْمَلَ لِي أَعْوَادًا أَجْلِسُ عَلَيْهِنَّ إِذَا كَلَّمْتُ النَّاسَ" فَأَمَرَتْهُ فَعَمِلَهَا مِنْ طَرْفَاءِ الْغَابَةِ، ثُمَّ جَاءَ بِهَا فَأَرْسَلَتْهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَأَمَرَ بِهَا فَوُضِعَتْ هَاهُنَا" فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى عَلَيْهَا وَكَبَّرَ عَلَيْهَا، ثُمَّ رَكَعَ وَهُوَ عَلَيْهَا، ثُمَّ نَزَلَ الْقَهْقَرَى فَسَجَدَ فِي أَصْلِ الْمِنْبَرِ، ثُمَّ عَادَ" فَلَمَّا فَرَغَ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، فَقَالَ: "أَيُّهَا النَّاسُ

[1]: صحيح البخاري /الصلاة ۱۸ (۳۷۷)، والجمعة ۲٦ (۹۱۷)، صحيح مسلم /المساجد ۱۰ (۵٤٤)، سنن النسائي /المساجد ٤۵ (۷٤۰)، (تحفة الأشراف: ٤۷۷۵)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه /إقامة الصلاة ۱۹۹ (۱٤۱٦)، مسند احمد (۵/۳۳۹)، سنن الدارمي /الصلاة ٤۵ (۱۲۹۳) (صحيح)

إِنَّمَا صَنَعْتُ هَذَا لِتَأْتَمُّوا بِي، وَلِتَعَلَّمُوا صَلَاتِي".

مونږ ته حدیث بیان کړی دی ابو حازم بن دینار، بېشکه څه سړي راغلل سهل بن سعد الساعدي ته، او د هغوی شک وو په منبر کې چې د څه شي نه وو د هغه لرګی، نو هغه نه یي تپوس وکړو د هغه په باره کې، هغه وویل: قسم په الله زه پیژنم چې هغه د څه شي نه وو، او ما هغه لیدلی وو په اولنی ورځ چې کېخودلی شو، او اولنی ورځ چې ناست وو په هغې باندې رسول الله ﷺ، ولېږلو رسول الله ﷺ فلانکۍ ته. یوه ښځه چې مسمی کړه هغې لره سهل. چې امر وکړه ستا نجار غلام ته چې ماله څه لرګي تیار کړي چې زه پرې کینم چې کله د خلقو سره خبرې کوم، نو هغې ورته امر وکړو نو هغه یي جوړ کړو د طرفاء الغابه نه، بیایي راوړلو هغې ولېږلو نبي ﷺ ته، نو امریي وکړو نو هغه کېخودلی شو دلته، ما ولیدلو رسول الله ﷺ مونځ یي وکړو په هغې او تکبیریي وویله په هغې، بیایي رکوع وکړه په هغې، په شا راکوز شو، سجده یي وکړه بیخ د منبر سره، بیا واپس شو، هرکله چې فارغ شو خلقو ته رامخامخ شو، ویې ویل: ای خلقو ما داسې وکړل چې تاسو ماپسې اقتداء وکړئ، او تاسو پوهه شئ زما په مانځه.

**قوله**: ان رجالا اتوا سهل بن سعد الساعدی و قد امتروا فی المنبر مم عوده الخ،

**مضمون حدیث**

بعضې خلق سهل بن سعد ته راغلل کومو چه چه د منبر شریف په لرګی کښې اختلاف کولو او په خپلو کښې په جهګړه وو هغوی راغلل او د دوئ نه ئې پوښتنه اوکړه چه د حضور ﷺ منبر شریف د کومې اونې د لرګی نه جوړ شوې وو، هغوی اووئیل آو واقعی زۀ دا خبره ډیره ښۀ پیژنم چه هغۀ د کوم لرګی نه جوړ کړې شوې وو او د جوړولو نه پس چه کله په رومبی ځل باندې حضور ﷺ په هغې باندې کیناستلو ټول زما په ذهن کښې دی ټول زما د لیدلې شوې دی.

الی فلانة امرأة، د حدیث مضمون دا دې چه حضور ﷺ یو انصاری ښځې ته دا خبر اولیږلو چه تۀ خپل غلام یعنی خادم باندې کوم چه د ترکاڼۍ کار کوی زما دپاره منبر جوړ کړۀ چنانچه هغې ښځې خپل غلام ته اووئیل او منبر ئې جوړ کړو.

قوله، من طرفاء الغابة، غابه د مدینې نزدې د یو ځائې نوم دې طرفاء وائی د جهاؤ اونې ته، او د بخاری په روایت کښې د دې په ځائې د ، أثل الغابه، دې خو په دې کښې څه تعارض نشته دې هغۀ د طرفاء اونې یو قسم لیکلې دې چه د طرفاء څلور قسمه دی په کومو کښې چه یو أثل هم دې، بیا وراندې حدیث کښې دا دی چه کله هغۀ منبر جوړ شو او هغۀ د هغې په ځائې باندې کیخودلې شو نو په رومبۍ ورځې حضور ﷺ په هغې باندې اودریدلو او مونځ ئې ورکړو تکبیر تحریمه قیام او رکوع ئې په دې باندې اوکړل او سجدې ئې د هغې نه خښکته راکوز شول او اوئې کړه، او بیا حضور ﷺ په منبر باندې د مونځ کولو مصلحت بیان اوفرمائیلو چه تاسو زما مونځ اوګورئ او د دې په ښۀ شان اتباع اوکړې شئ ځکه چه روستو صفونو واله په پوره شان امام لره نۀ شی لیدلې په خلاف د دې نه چه کله په منبر

باندې اوريږي او مونځ اوکړې شي نو ظاهره ده چه ټول مقتديان به ئې اوليدلې شي.
دا حديث متفق عليه دې په بخاری او مسلم دواړو کښې شته، د دې انصاری ښځې په نوم کښې اختلاف دې وئيلې شوې دی چه، لم يعرف اسمها و قيل اسمها فکيهه و قيل عائشة، دغه شان د دې غلام په نوم کښې هم اختلاف دې قيل اسمه قبيصة و قيل باقوم، او بعضې کتابونو کښې باقوم رومی ليکلې دې و قيل ميمون، حافظ رحمه الله دې آخری قول لره اختيار کړې دې.

## دفع د تعارض بين الروايات:

د دې حديث د ظاهر نه معلوميږی چه حضور ﷺ په خپله دې ښځې ته د منبر جوړولو وينا کړې وه او د بخاری په يو روايت کښې دی چه دې ښځې په خپله حضور ﷺ ته عرض کړې وو، يا رسول الله الا اجعل لك شيئًا تقعد عليه، د دې توجيه دا کيدې شي چه ړومبې په خپله دې ښځې درخواست کړې وو روستو حضور ﷺ هم د دې يادګيرنې او پوره کولو دپاره قاصد ليږلې وی.

**فائده:** په تاريخ خميس، ص، ۶۸، ج، ۲، کښې ليکلی چه د دې منبر جوړول په اتم کال د هجرت کښې شوې وو او علامه عينی د ابن سعد نه اووم کال نقل کړې دې او د مولانا انور شاه کشميری قطعی رائې دا ده چه د دې اتخاذ په دويم کال د هجرت کښې شوې وو هغه فرمائی چه ما سره ګڼړ روايتونه داسې موجود دی کوم چه په دې باندې دلالت کوی.

| [۱۰۸۱](۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ ابْنِ أَبِي رَوَّادٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَدَّنَ، قَالَ لَهُ تَمِيمٌ الدَّارِيُّ: أَلَا أَتَّخِذُ لَكَ مِنْبَرًا يَا رَسُولَ اللَّهِ يَجْمَعُ، أَوْ يَحْمِلُ عِظَامَكَ؟ قَالَ: "بَلَى" فَاتَّخَذَ لَهُ مِنْبَرًا مِرْقَاتَيْنِ. |
|---|

د ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دی بېشکه نبي ﷺ چې هرکله غټ شو (درونډ) هغه ته تميم الداري ووېل: ايا نه جوړوو تالره منبر ای د الله رسوله! چې جمع کوي (او يا باروي) هډوکي ستا؟ هغه وفرمايل: ولې نه، جوړيې کړو د هغه لپاره منبر دوه پوړو والا.

۳. حدثنا الحسن بن علی الخ، قوله، ان النبی صلی الله عليه وسلم لمّا بدّن، دا لفظ د باب تفعيل نه دې په تشديد د دال سره يا دمجرد نه دې په تخفيف سره دواړه شانه دې لوستلې شوې دې د ټولو نه ړومبې دا لفظ په ابواب الامامت کښې په باب ما جاء ما يؤمر به المامون من اتباع الامام کښې تير شوې دې هم هلته دې د دې تحقيق اوکتلې شی، د دې نه پس دويم ځلې دا مضمون په باب الرجل يعتمد فی الصلوة علی عصا کښې دغه شان تير شوې دې، ان رسول الله صلی الله عليه وسلم لمّا اسنّ و حمل اللحم، اوس دريم ځل دا لفظ دلته راغلې دې.

قال له تميم الداری الا اتخذ لك منبرا يا رسول الله، د باب په دويم حديث کښې دا دی چه حضرت تميم داری د حضور ﷺ په خدمت کښې د منبر جوړولو پيشکش اوکړو او بيا هم هغوی دا منبر جوړ کړو.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۷۶۵) (صحيح)

## یو بل دفع د تعارض:

دا حدیث د تیر شوي حدیث خلاف دې او خو دا د سنن حدیث دې ابوداؤد او بیهقي دې لره روایت کړې دې او ړومبې حدیث متفق علیه دې ظاهره ده چه ترجیح به هم دې لره وي او یا دا توجیه اوکړې شي چه اصل خو هغه دې کوم چه د باب په ړومبي حدیث کښې تیر شوې دې خو د دې خبر تمیم داري ته نۀ وو نو ځکه هغوي د خپل طرف نه د حضور ﷺ په خدمت کښې درخواست اوړاندې کړو او حضور ﷺ هغۀ منظور کړو په دې شان چه هغۀ هم په دې سلسله کښې سعي او کوشش اوکړي او کومې ښځې ته چه د جوړولو دپاره وئیلې شوې وو هغې سره دې ملاؤ شي او د جوړولو تقاضا دې اوکړي او بیا هم داسې اوشول، والله تعالی اعلم.

قوله. مرقاتین، د دېنه معلومه شوه چه د منبر شریف صرف دوه درجې وې حال دا دې چه په مشهور روایت کښې دا دی چه د دې درجې(پوړۍ) درې وې، جواب دا دې چه کیدې شي چه په دې روایت کښې د ټولو نه ړومبئ پوړۍ په کومې باندې به چه حضور ﷺ کیناستلو هغۀ ئې نۀ وی شمیر کړې لهذا مطلب دا شو چه په کومو پوړو باندې به هغوئ پورته کیدل هغۀ دوه وې.

## د منبر شریف په باره کښې یوه واقعه:

په منهل کښې کښې لیکلې دی(لکه ځنګه چه پورته تیر شو) چه په دې کښې درې درجې وې او هم دغه شان دې هیئت راروان وو تر دې چه حضرت معاویه ﷺ د خپل خلاف په زمانه کښې مروان ته کوم چه دغه وخت د مدینې امیر وو دا اولیکل چه دا منبر شریف د دې ځائې نه اوباسه او دلته ما ته ملك شام ته ئې رااولیږه نو مروان د دۀ د حکم په تعمیل کښې دې لره د هغه د ځائې نه اوویستلو او د حضرت معاویه ﷺ طرف ته ئې د لیږلو اراده اوکړه نو په مدینه کښې یو دم نمر تندر اونیولو ټوله مدینه توره تیارۀ شوه تر دې چه د ورځې ستوري ښکاره شو او سخته هوا شروع شوه مروان اوویریدلو جومات ته راغلو او هغۀ خلقو ته خطبه ورکړه او په هغې کښې ئې دا اووئیل چه تاسو خلق به دا ګنړئ چه زۀ دا منبر امیر المؤمنین ته لیږل غوارم او هغۀ دې لره غواړي خو داسې نۀ ده نۀ خو امیر المؤمنین داسې غواړي او نۀ زۀ داسې کول غوارم، امیر المؤمنین خو ما ته دا حکم راکړې دې چه زۀ د دې په درجو یعنې پوړو کښې اضافه یعنې زیاتوالې اوکړم او دې لره پورته کړم چنانچه ما په دې کښې د لاندې درې پوړۍ زیاتې کړې او په خپل ځائې کښې مې نصب کړو.

## واقعه حنین الجذع:

او هغۀ حنین الجذع یعنی د تنې ژړا واقعه خو د احادیثو په کتابونو کښې مشهوره ده کومه چه د حضور ﷺ په ښکاره معجزاتو کښې شمیرلې شي کومه چه د بخاري شریف په صفه، ۱۲۵، باندې ده چه په شروع کښې به حضور ﷺ د کهجورې یوې تنې ته کومه چه په مسجد نبوی کښې وه تکیه لګوله او خطبه به ئې ورکوله بیا چه کله منبر جوړ شو او د دې تنې په ځائې باندې حضور ﷺ په منبر باندې تشریف فرما شول نو هغۀ تنه د جدائۍ په وجه باندې د هغۀ اوښي پشان آوازونه شروع کړل کومې نه چه بچې ورك شوې

وى دي آواز لره تول جومات واله واوريدلو نو حضور ﷺ د منبر نه راكوز شو او دې تنې ته نزدې ئې تشريف راوړو او په دې باندې ئې خپل لاس مبارك كيخودلو چه په هغې سره هغه چپ شوه، حنين الجذع واله روايت چونكه په ابو داؤد شريف كښې نشته دې نو ځكه دې لره د مقام په مناسبت سره ذكر كړې شو.

## بَابُ مَوْضِعِ الْمِنْبَرِ

### باب دى په بيان د ځاى د منبر كښې

[۱۰۸۲]() حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، قَالَ: "كَانَ بَيْنَ مِنْبَرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ الْحَائِطِ كَقَدْرِ مَمَرِّ الشَّاةِ".

د سلمة بن الاكوع رضي الله عنه نه روايت دى هغه ويلې دي: وو په مابين د منبر د رسول الله كې او مابين د ديوال كې په اندازه د تېريدو د ګډې.

قوله، كان بين منبر رسول الله صلى الله عليه وسلم و بين الحائط كقدر ممر الشاة،

**شرح حديث:**

د حائط نه مراد مخامخ ديوال يعنى د قبلې ديوال دې، منبر شريف په جومات كښې دننه مخامخ ديوال په كوم ځائې كښې چه د امام محراب وى هغې سره پيوست وو، د ديوال او منبر په مينځ كښې فاصله تقريباً ديو ګز په اندازه په څومره ځائې كښې چه بيزه تيريدلې شى دومره وه، په بذل كښې ليكلې دى چه منبر شريف د محراب ښى اړخ ته وو د استقبال قبله په صورت كښې، يعنى په جومات كښې دننه مخ په قبله اودريدلو په اعتبار سره ښى اړخ ته وو، په منهل كښې ليكلى دى چه د دې حديث تخريج بخارى او مسلم دواړو كړې دې دغه شان دا حديث په دې باندې دلالت كوى چه منبر د جومات دننه ديوال سره بالكل يو ځائې نه دې پكار بلكه د دواړو په مينځ كښې لږه غوندې فاصله پكار ده.

## بَابُ الصَّلَاةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ الزَّوَالِ

### باب دى په بيان د مانځه كې په ورځ د جمعه كې د زوال نه مخكې

د دې باب تعلق د اوقات منهيه سره دې، د دې سلسلې ګنړ ابواب د صلوة الخوف نه روستو ابواب التطوع و ركعات السنة د لاندې راروان دى، ګويا د اوقات منهيه اصل بيان هلته راځى نو ځكه د دې تفصيل به مونږ انشاء الله هم هلته كوو.

**مذاهب ائمه:**

دلته په دې باب كښې خاص د جمعې د ورځې د مكروه وخت بيان دې، په اصل كښې د جمهورو علماؤ ائمه ثلاثه په نيز اوقات مكروه درې دى، وقت الطلوع، وقت الغروب، وقت الاستواء، يعنى نصف النهار، او د امام مالك رحمه الله په نيز صرف دوه دى، وقت الاستواء د هغوى په نيز باندې وقت مكروه نه دې جمعه وى يا غيرد جمعې نه كومه ورځ وى په دې وخت

---

[1]: صحيح البخاري/الصلاة ۹۱ (٤۹۷)، صحيح مسلم/الصلاة ٤۹ (٥۰۹)، (تحفة الأشراف: ٤٥۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٥٤، ٥٤) (صحيح)

کښې د هغوی په نيز مونځ کول مکروه نۀ دی، البته د امام شافعي په نيز د جمعې د ورځې تخصيص دې چه په دې کښې عندالاستواء نفل مونځ کولې شي هم دا رائې د امام ابويوسف ده، او د اکثرو علماؤ رائې دا ده چه د اوقات منهيه په باره کښې جمعه او غير جمعه دواړه برابر دی، د حضرت امام شافعي دليل د باب رومبنې حديث دې

[۱۰۸۳]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ أَبِي الْخَلِيلِ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَّهُ كَرِهَ الصَّلَاةَ نِصْفَ النَّهَارِ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَقَالَ: إِنَّ جَهَنَّمَ تُسْجَرُ إِلَّا يَوْمَ الْجُمُعَةِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ مُرْسَلٌ، مُجَاهِدٌ أَكْبَرُ مِنْ أَبِي الْخَلِيلِ، وَأَبُو الْخَلِيلِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي قَتَادَةَ.

د ابو قتادة نه روايت دی، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه بېشکه هغه مکروه ګڼلی دی مونځ په نيمايي د ورځ کې مګر په ورځ د جمعې نه، او هغه ووېل بېشکه جهنم ګرمولی شي مګر په ورځ د جمعې نه. ويلي دي ابوداود هغه مرسل دی، مجاهد مشر دی د ابو الخليل نه. او ابو الخليل نه دی اورېدلی د ابو قتاده نه.

۱. حدثنا محمد بن عيسٰی الخ، قوله، عن ابی قتادة عن النبی صلی الله عليه وسلم انه کره الصلوة نصف النهار الا يوم الجمعة و قال ان جهنم تسجر الا يوم الجمعة، يعنی نصف النهار کوم ته چه زمونږ په عرف کښې د زوال وخت وائی کښې مونځ مکروه دې خو د جمعې ورځ د دينه مستثنٰی ده صرف د جمعې په ورځ په نصف النهار کښې مونځ کول جائز دی او د دې وجه حضور ﷺ دا ارشاد فرمائيلې ده چه په هره ورځ کښې د نصف النهار په وخت کښې جهنم لره تيزولې شی غير د جمعې د ورځې نه چه په دې ورځ کښې تسجير د جهنم نۀ کيږی

## د شافعيه د دليل جواب

امام شافعي او امام ابويوسف رحمهما الله هم دې حديث سره استدلال کړې دې، د جمهورو د طرف نه د دې جواب دا دې چه دا حديث ضعيف دې منقطع دې د ابوالخليل سماع د ابوقتاده نه ثابته نۀ ده لکه څنګه چه په خپله وړاندې په کتاب کښې راروان دی او د مطلق منع حديث صحيح دې په هغې باندې څه کلام نشته دې، دغه شان محرّم او په مبيح کښې چه کله تعارض وی نو ترجيح محرم لره وی

## په اوقات منهيه کښې د مکې مکرمې استثناء:

دلته په دې يوه خبره بله هم پوهيدل پکار دی چه د حضرات شافعيه په نيز باندې اوقات منهيه چه څومره هم دی د هغې تعلق د غير مکه سره دې او مکه مکرمه کښې د دوئ په نيز باندې هيڅ وخت هم مکروه نۀ دې هلته هر وخت مونځ ادا کولې شی د دې په دليل کښې هغوی د حضرت جبير بن مطعم رضی الله عنه هغه حديث مرفوع وړاندې کوی کوم چه په کتاب الحج کښې په باب الطواف بعدالعصر، ص، ۲۶۰، دلاندې راروان دې. لا تمنعوا احدا يطوف بهذا البيت ويصلی ایّ ساعة شاء من ليل اونهار، زمونږ د طرف نه به د دې جواب انشاء الله هم هلته راځی

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۸۳) (ضعيف)

**د شافعیه په دلیل باندې نقد:**

قوله، قال ابوداؤد هو مرسل، مرسل په معنی د منقطع دې، چونکه دا حدیث په کوم باندې چه مصنف کلام فرمائی په مذکوره مسئله کښې د شافعیه دلیل دې نو ځکه شیخ ابن حجر مکی شارح د مشکوٰة کوم چه شافعی دې هغوی د مصنف د دې نقد جواب دا ورکړې دې چه هیڅ حرج نشته دا حدیث په طریق موصول سره هم ثابت دې په دې باندې ملا علی قاری حنفی رحمه الله فرمائی چه د دې حواله دې پیش کړې شی چه په کوم طریق سره دا موصول ثابت دې او هغه په کوم کتاب کښې دې.

## بَابٌ فِي وَقْتِ الْجُمُعَةِ

**باب دی په بیان د وقت د جمعې کښې**

یعنی د جمعې د ورځې د فرض مونځ دوخت تقابل د دې نه معلومیږی چه د تیر شوې باب تعلق د جمعې د فرض مونځ سره نۀ وو بلکه د جمعې په ورځ د نصف النهار په وخت کښې د نفل مونځ سره وو.([1]).

**د جمعې مونځ قبل الزوال کښې د علماء اختلاف:**

د دې نه پس دا زده کول پکار دی چه د ائمه ثلاثه او جمهورو علماؤ په نیز د جمعې د مونځ وخت هم هغه دې کوم چه د ماسپخین د مونځ چه د هغې ابتداء د زوال نه پس وی او د امام احمد او اسحٰق بن راهویه او د بعضې سلفو په دې کښې اختلاف دې د هغوی په نیز د جمعې مونځ د زوال نه وړاندې هم جائز دې. په دې باب کښې مصنف دوه حدیثه ذکر فرمائیلي دی یو د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه چه د حضور صلی الله علیه وسلم معمول مبارك د جمعې د مونځ بعد الزوال کولو وو، دا حدیث خو د جمهورو دلیل دې.

**د حنابله دلیل او د هغې جواب:**

او د باب دویم حدیث کوم چه د سلمة بن الاکوع نه مروی دی د کوم الفاظ چه دا دې چه، کنا نصلی مع رسول الله صلی الله علیه وسلم الجمعة ثم ننصرف و لیس للحیطان فئ، د دې حدیث نه حنابله استدلال کوی چه د جمعې مونځ قبل الزوال جائز دې ځکه چه د حدیث مطلب دا دې چه مونږ به د حضور صلی الله علیه وسلم سره د جمعې مونځ اوکړو او کورونو طرف ته به واپس شو نو تر هغۀ وخته پورې به دغربی دیوالونو سورې په زمکه باندې نۀ وو، ظاهره خبره ده چه قبل الزوال د هر یو څیز سورې که دیوال وی او که بل څه څیز او هغه د مغرب طرف ته وی او بعدالزوال کله چه نمر د مغرب یعنی نمر پریواتۀ طرف ته واوړی نو هغه وخت به د غربی دیوال سورې یقینا په شرقی جانب باندې پریوځی او دلته راوی وائی چه کله به مونځ د جمعې د مانځه نه فارغ شو او واپس به راتللو نو بیا به هم د غربی دیوال سورې نۀ وو نو اوس ضرور د دې مقتضی دا ده چه دا اومنلې شی چه د جمعې مونځ قبل الزوال کړې شوې وو کما هو مذهب الحنابله، د دې جواب د جمهورو د طرف نه دا ورکړې شوې دې چه دا

---

[1]) خو په بذل المجهود کښې هم د تیر شوی باب د لاندې د جمعې د(فرض) مونځ اختلاف ذکر کړې شوې دې په خپله حضرت هم په دې باندې تنبیه فرمائیلې ده.) ۱۲ منه.

حدیث بخاری او نسائی کښې هم شته هلته په دې حدیث کښې یو زیادت دې چه، ولیس للحیطان فئ یُستظل به، یعنی دومره سورې نۀ وو په کوم سره چه سورې حاصل کړې شی او د نمر نه د ځان ساتلو دپاره پوره شی نو معلومه شوه چه د مطلق سوری نفی نۀ ده ځکه چه قاعده داده چه کله نفی په مقید باندې داخله شی نو ددې تعلق قید سره وی لکه چه اووائی، ماجاء نی زید راکبًا، نو دلته دمطلق مجئ نفی مراد نۀ ده بلکه د قید نفی مراد ده و هو الرکوب.

[۱۰۸۴](¹)حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنِي فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ التَّيْمِيُّ، سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ إِذَا مَالَتِ الشَّمْسُ".

عثمان بن ابي التيمي ويلي دي ما اوریدلي دي د انس بن مالک نه، هغه به ویل: وو رسول الله ﷺ نه چې د جمعې مونځ یې کولو چې کله به نمر مائل شو.

[۱۰۸۵](²)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا يَعْلَى بْنُ الْحَارِثِ، سَمِعْتُ إِيَاسَ بْنَ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كُنَّا نُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُمُعَةَ، ثُمَّ نَنْصَرِفُ وَلَيْسَ لِلْحِيطَانِ فَيْءٌ".

سلمة بن الاکوع نه روایت دی هغه ویلي دي: وو مونږ چې مونځ مو کولو د رسول الله ﷺ سره د جمعې، بیا به تللو او د دیوالونو به سوری نه وو.

[۱۰۸۶](³)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: "كُنَّا نَقِيلُ وَنَتَغَدَّى بَعْدَ الْجُمُعَةِ".

د سهل بن سعد نه روایت دی هغه وایي: مونږ به قیلوله او کوله د غرمې خوراک د جمعې نه وروسته.

عن سهل بن سعد قال کنا نقیل و نتغدٰی بعدالجمعة، د دې حدیث نه هم په جمعه قبل الزوال باندې استدلال کړې شوې دې په دې شان چه غداء د صبا خوراك ته ونیلې کیږی کومه چه قبل الزوال وی او عشاء د ماښام خوراك ته وائی، دغه شان قیلوله هغه استراحت او آرام ته وائی کوم چه قبل الزوال وی، او په دې حدیث کښې صحابی فرمائی چه مونږ خلقو به د حضور ﷺ په زمانه کښې غداء او قیلوله دواړه د جمعې د مونځ نه پس کول، لهٰذا د دینه معلومه شوه چه د جمعې مونځ به ئې د زوال نه وړاندې کولو، ځکه که چرته بعدالزوال ئې کړې وې نو دې نه پس چه کوم خوراك وی هغې ته غداء وئیل به صحیح نۀ وی بلکه داسې خوراك ته به عشاء وائی هم داسې قیلوله ته به هم که بعدالزوال وی نو هغې ته به قیلوله وئیل صحیح نۀ وی.

¹): صحيح البخاري/الجمعة ١٦(٩٠٤)، سنن الترمذي/الجمعة ٩ (٥٠٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٨/٣، ١٥٠، ٢٢٨) (صحيح)

²): صحيح البخاري/المغازي ٢٥ (٤١٦٨)، صحيح مسلم/الجمعة ٩ (٨٦٠)، سنن النسائي/الجمعة ١٤ (١٣٩٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٨٤ (١١٠٠)، (تحفة الأشراف: ٤٥١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦/٤، ٥٠)، سنن الدارمي/الصلاة ١٩٤(١٥٨٧) (صحيح)

³): والاستئذان ٣٩ (٦٢٧٩)، (تحفة الأشراف: ٤٦٨٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجمعة ٩ (٨٥٩)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٦١ (الجمعة ٢٦) (٥٢٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٨٤(١٠٩٩) (صحيح)

د دې جواب دا دې چه کوم ځیز د کوم قائم مقام وی په هغې باندې هم د هغې اطلاق کیږی، کوم سړې چه د ناظم په ځائې باندې کیني او کار اوکړی خواه که هغهٔ د یو څو ورځو وی نو هغې ته به هم ناظم وئیلې شی، او د ابوداؤد او نسائی په کتاب الصوم کښې یو روایت دې چه عرباض بن ساریه ﷛ فرمائی چه یو ځل حضور ﷺ پیشمنی خوړلو زهٔ د هغوی د ورانډې تیریدلم نو هغوی اوفرمائیل، هلمّ الی الغداء المبارك، په دې حدیث کښې پیشمنې کوم چه د شپې په آخره کښې خوړلې کیږی حضور ﷺ پرې د غداء اطلاق کړې دې چونکه د روژه دار پیشمنې د غداء قائم مقام وی نو ځکه حضور ﷺ په دې باندې د غداء اطلاق فرمائیلې دې، زمونږ حضرت شیخ نور الله مرقده به فرمائیل چه اې روره تهٔ د جمعې مونځ راکاږی او دې اړخ ته ئې راوړې نو دا غداء او قیلوله بل اړخ ته ولې نهٔ راکاږی.

## بَابُ النِّدَاءِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### باب دی په بیان دا اذان کې په ورځ د جمعه کې

[۱۰۸۷] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي السَّائِبُ بْنُ يَزِيدَ، "أَنَّ الْأَذَانَ كَانَ أَوَّلُهُ حِينَ يَجْلِسُ الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا" فَلَمَّا كَانَ خِلَافَةُ عُثْمَانَ وَكَثُرَ النَّاسُ أَمَرَ عُثْمَانُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِالْأَذَانِ الثَّالِثِ، فَأُذِّنَ بِهِ عَلَى الزَّوْرَاءِ، فَثَبَتَ الْأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ".

مونږ ته خبر راکړی دی سائب بن یزید: بېشکه اولنی اذان وو کله چې به امام کیناستلو په منبر باندې په ورځ د جمعه کې په زمانه د نبي ﷺ او ابي بکر او عمر ﷠ کې، کله چې خلافت د عثمان شو او خلق ډیر شول نو امر وکړو عثمان په ورځ د جمعه کې په دریم اذان سره، نو اذان يې وکړو د زوراء په مقام کې، برقرار شو امر په دغې.

د باب ړومبې حدیث دې، اخبرنی السائب بن یزید ان الاذان کان اوله حین یجلس الامام علی المنبر یوم الجمعة، الخ،

### شرح حدیث:

سائب بن یزید د صغار صحابه نه دې د حضور ﷺ نه د دوئ سماع ثابت ده د حضور ﷺ د وفات په وخت کښې دوئ واړهٔ وو د دوئ عمر اووهٔ کاله وو (ترمذی، ص، ۳۸، ج، ۲) هغه فرمائی چه د حضور ﷺ او د شیخینو په زمانه کښې د جمعې په ورځ یو آذان وو کوم وخت به چه امام منبر ته اورسیدلو، حضرت عثمان غنی ﷛ په خپله زمانه کښې د مسلمانانو ډیروالی ته اوکتل او د دریم آذان زیاتوالې ئې اوکړو کوم به چه د جومات نه بهر یو ځائې باندې چه د کوم نوم زوراء وو کولې کیدو، د زیادت د علت طرف ته اشاره په خپله په حدیث کښې موجود ده چه د خلقو ډیروالې دې ځکه چه ړومبې آذان خو به په جومات کښې دننه منبر سره نزدې کولې کیدو چه د هغې آواز به ټولو خلقو ته رسول مشکل وو، دې دریم

(۱): صحیح البخاري/الجمعة ۲۱ (۹۱۲)، ۲۲ (۹۱۳)، ۲٤ (۹۱۵)، ۲۵ (۹۱٦)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۵۵ (الجمعة ۲۰) (۵۱٦)، سنن النسائي/الجمعة ۱۵ (۱۳۹۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۹۷ (۱۱۳۵)، (تحفة الأشراف: ۳۷۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤٤۹، ٤۵۰) (صحیح)

اذان لره تغلیباً اذان وئیلې شوې دې اقامت لره هم دواړو اذانونو سره شامل کړې شوې دې، اوپه یو روایت کښې د بالأذان الثالث په ځائې باندې بالاذان الاول دې، په دې کښې څه منافات نشته د حضرت عثمان ﷺ آذان ته ثالث وئیل په اعتبار د مشروعیت سره دې چه د ړومبی نه دوه مشروع دی روستو بیا دا دریم مشروع شو، او اول وئیل دې لره په دې اعتبار سره دی چه دا فعلاً په دې دواړو باندې مقدم دې.

[۱۰۸۸](۱)حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: "كَانَ يُؤَذَّنُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ، وَأَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ" ثُمَّ سَاقَ نَحْوَ حَدِيثِ يُونُسَ.

د سائب بن یزید نه روایت دی، هغه ویلي دي: اذان به کولی شو مخامخ د رسول الله ﷺ کله چې به هغه په منبر کېناستلو د جمعې په ورځ په دروازه د مسجد کې، او د ابي او د عمر بیایې بیان کړو حدیث پشان د حدیث د یونس

**قوله**: عن السائب بن یزید قال کان یؤذن بین یدی رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا جلس علی المنبر یوم الجمعة علی باب المسجد، دا د هغهٔ ړومبی حدیث دویم طریق دې اول دا د ابن شهاب نه روایت کونکی یونس وو او دې لره د هغوی نه روایت کونکی دمحمد بن اسحاق دې، محمد بن اسحاق په روایت کښې یو زیاتې دې کوم چه د یونس په روایت کښې نهٔ وو.

## د جمعې د دویم اذان د محل تعیین

هغه دا چه په دې کښې د آذان د محل تعیین دې یعنی علی باب المسجد، چه دا آذان د خطیب په منبر باندې دکیناستلو نه پس د هغهٔ د وړاندې په باب مسجد باندې به وو د جومات دا دروازه شمالي اړخ ته وه د خطیب د وړاندې، او د جنوب په اړخ باندې د قبلې په جانب باندې د حضور ﷺ منبر شریف او مصلی وه، او د دې متبادر معنی دا ده چه دا آذان به د جومات نه خارج وو خو دا زیاتې د بخاری په روایت کښې نشته دې او د دې راوی هم محمد بن اسحاق دې کوم چه متکلم فیه دې، د بخاری د روایاتو سیاق ته په نظر کولو سره دا وئیلې شو چه دا آذان به منبر سره نزدې په جومات کښې کیدو چنانچه مهلب د بخاری شارح فرمائی، الحکمة فی جعل الاذان فی هذا المحل لیعرف الناس بجلوس الامام علی المنبر فینصتون له اذا خطب، یعنی په دې ځائې د آذان کولو کښې مصلحت دا دې چه کوم خلق د امام نه په فاصله باندې دی د جومات په آخری حصه کښې په جومات کښې دننه په آواز کولو سره به دوئ ته معلومه شی چه اوس امام منبر ته رسیدلې دې او هغهٔ دې د دې دپاره انصات یعنی چپوالي اختیار کړی، اګر که د مهلب بیان کړی حکمت باندې حافظ رحمه الله د ابن اسحاق د روایت دالفاظو پیش نظر دا اشکال کړې دې چه دا آذان خو به د جومات په دروازه باندې وو نو پس ظاهره دا ده چه دا آذان به دمطلق اعلام دپاره وو نهٔ د خالص انصات یعنی چپوالی دپاره آو چه کله د دویم آذان زیاتوالې اوشو نو اوس دا وئیلې شی چه ړومبې آذان خو به دنفس اعلام دپاره وو او کوم

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۷۹۹) (منکر)

چه د خطيب د وړاندې به کيدو هغهٔ د انصات دپاره وو، (کذا فی الفتح، ص، ۳۲۷، ج،۲)
د دې نه معلومه شوه چه حافظ ابن حجر دا خبره منلې ده چه د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کښې د جمعې په ورځ ړومبې اذان په مقام زوراء باندې خارج د مسجد نه او دويم اذان به د خطيب د وړاندې په جومات کښې کيدو، اګر که د مهلب د کلام تقاضا خو دا ده چه دا اذان هم د حضور صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې منبر سره نزدې په جومات کښې کيدو پس صاحب هدايه ليکلي، و اذا صعد الامام المنبر جلس و اذن المؤذن بين يدی المنبر بذالك جری التوارث، هسې خو عام طور سره فقهاء په جومات کښې دننه آذان لره مکروه او خلاف اولی ليکی خو زمونږ حضرت سهارنپوری رحمه الله صاحب بذل المجهود په خپل تاليف تنشيط الآذان فی تحقيق محل الاذان کښې ليکلی دی چه دا کراهيت او خلاف اولويت د عام اذان په اعتبار سره دې د جمعې د دويم اذان سره د دې تعلق نشته دې د دې احکام جدا دی، چنانچه د دې اذان په حقله يو چيستان (دونږه) مشهوره ده چه اوښايئ چه هغه کوم اذان دې چه په هغې کښې زيات آواز پورته کول مطلوب نهٔ دې، حضرت ته د دې په باره کښې مستقل تصنيف ليکلو نوبت د دې دپاره پيښ شو چه په هغهٔ زمانه کښې بريلميانو د جانب نه دا فتنه پورته شوې وه چه د دې دويم آذان په جومات کښې وئيل بدعت او مکروه تحريمی دې، په بذل المجهود کښې حضرت رحمه الله د علی باب المسجد، د لاندې ليکی چه، تمسك به رئيس اهل البدعة فی زماننا احمد رضا البريلوی و اذاع الفتن والشرور فی هذه المسئلة و کتب فيها الکتب والرسائل و لی فيها رسالة وجيزة، الخ،

[۱۰۸۹](١) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ السَّائِبِ، قَالَ: "لَمْ يَكُنْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مُؤَذِّنٌ وَاحِدٌ بِلَالٌ" ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَاهُ.

د سائب نه روايت دی، هغه ويلي دي: نه وو د رسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره مګر يو مؤذن چې بلال وو، بيايې ذکر کړه معنی د هغې.

۳. حدثنا هناد بن السری الخ، قوله، عن السائب قال لم يکن لرسول الله صلی الله عليه وسلم الا مؤذن واحد بلال، دا حديث په بخاری شريف کښې هم دې په دې باندې امام بخاری رحمه الله ترجمه تړلې ده، باب المؤذن الواحد يوم الجمعة،

## حديث باندې يو اشکال او د هغې جواب:

د يوم الجمعة قيد سره يو اشکال لرې شو او هغه دا چه دحضور صلی الله علیه وسلم دپاره د بلال رضی الله عنه نه علاوه يو بل مؤذن ابن ام مکتوم هم وو، چنانچه په روايت کښې راځی چه، لا يغرنکم اذان بلال فانه يؤذن بليل فکلوا واشربوا حتی يؤذن ابن ام مکتوم، د دې جواب د ترجمة الباب نه ظاهر شو چه د راوی مراد د جمعې د مونځ مؤذن دې او هغه صرف بلال وو، دغه شان په رواياتو سره ثابته ده چه د حضور صلی الله علیه وسلم دريم مؤذن سعد قرظ هم وو او خو دوئ لره حضور صلی الله علیه وسلم د مسجد قباء مؤذن جوړ کړې وو او نهٔ د مسجد نبوی دغه شان د حضور صلی الله علیه وسلم په مؤذنانو کښې

(١): انظر حديث رقم: ۱۰۸۷، (تحفة الأشراف: ۳۷۹۹) (صحيح)٦

دابو محذوره شمیر هم دې خو دوئ لره حضور ﷺ په مکه کښې د مسجد حرام مؤذن جوړ کړې وو او دلته خبره د مسجد نبوی د مؤذن کیږی.
او د اصل اشکال یو بل جواب هم ورکړې شوې دې هغه دا چه د مؤذن نه مراد تاذین دې چه د حضور ﷺ په زمانه کښې د جمعې دپاره به صرف یو آذان وو.

[۱۰۹۰]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ صَالِحٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ ابْنَ أُخْتِ نَمِرٍ أَخْبَرَهُ، قَالَ: "وَلَمْ يَكُنْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ مُؤَذِّنٍ وَاحِدٍ"، وَسَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ وَلَيْسَ بِتَمَامِهِ.

بیشکه سائب بن یزید چې خوری د نمر دی خبر ورکړی دی ابن شهاب ته، هغه ویلي دي: او نه وو د رسول الله ﷺ لپاره بغیر د یو مؤذن نه، او بیان یې کړو دا حدیث، پوره نه.

**فائده**: امام ابوداؤد رحمه الله خو دتو حُد یا دتعدُّد دمؤذنینو دپاره کوم باب نهٔ دې قائم کړې په خلاف د امام نسائی چه هغوی په دې سلسله کښې څو بابونه تړلې دی، چنانچه یو ترجمة الباب دا دې ، المؤذنان للمسجد الواحد، او دویم ترجمه دا ده ، هل یؤذن جمیعًااو فرادیٰ، دریمه ترجمه دا ده چه، اذان المنفردین فی السفر،

## بَابُ الْإِمَامِ يُكَلِّمُ الرَّجُلَ فِي خُطْبَتِهِ

### باب دی په بیان د امام کې چې خبرې کوې د سړي سره په خطبه کې

یعنی پخپله خطیب د خطبې په مینځ کښې یو سړی سره خبرې کولې شی؟ حضرت رحمه الله په بذل کښې د ملاعلی قاری رحمه الله نه نقل کوی او لیکلی دی چه مسئله دا ده چه د حنفیانو په نیز د خطیب دپاره د خطبې په مینځ کښې خبرې کول مکروه ده آو که هغه خبرې د امر بالمعروف دقبیلې نه وی نو جائز دی او د بذل په حاشیه کښې دعلامه شعرانی نه دا نقل کړې دی چه د خطیب کلام کله چه د مانځه د مصلحت دپاره وی د امام مالك رحمه الله په نیز باندې مباح دې، خلافا للائمه ثلاثة.

**فائده**: د دې ترجمة الباب د لاندې یوه بله مسئله هم راتلې شی هغه دا چه منبر ته په رسیدلو سره د امام تسلیم یعنی سلام اچولو کښې اختلاف دې حنفیه او مالکیه د دې قائل نهٔ دی پخلاف د امام احمد او شافعی چه د دوئ په نیز باندې د خطیب منبر ته رسیدو سره السلام علیکم وئیل سنت دی، چنانچه په حرمینو کښې په دې باندې عمل دې د دې سلسلې روایاتو لره علامه زیلعی په نصب الرایه کښې ذکر کړې دی د ابن ماجه او طبرانی وغیره روایتونه یکسر ضعیف دی، بلکه د ابن ماجه روایتونو لره خو بعضو په کومو کښې چه امام ابو حاتم رازی هم دې موضوع گرځولې دی.

د دې باب مقابل یو څو ابوابه روستو راځی، باب الکلام و الامام یخطب، یعنی د خطبه په وخت کښې په حاضرینو او سامعینو کښې د چا خبرې کول، د دې حکم به هم هغه ځائې کښې راشی، په دې باب کښې مصنف صرف یو حدیث د حضرت جابر رضي الله عنه بیان کړې دې.

(): انظر حدیث رقم: ۱۰۸۷، (تحفة الأشراف: ۳۷۹۹) (صحیح)

[۱۰۹۱]()حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ كَعْبٍ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: لَمَّا اسْتَوَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، قَالَ: "اجْلِسُوا" فَسَمِعَ ذَلِكَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَجَلَسَ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ، فَرَآهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "تَعَالَ يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا يُعْرَفُ مُرْسَلًا، إِنَّمَا رَوَاهُ النَّاسُ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَخْلَدٌ هُوَ شَيْخٌ.

د جابر نه روایت دی هغه ویلي دي: هرکله چې برابر شو رسول الله ﷺ په ورځ د جمعه نو هغه به ویل: کینئ، نو ابن مسعود دغه خبره واوریده نو کېناستلو په دروازه د مسجد کې، نو رسول الله ﷺ ولیدلو، ویې فرمایل: راشه عبد الله بن مسعوده! ویلي دي ابوداود: دا پیژندلی شي مرسل، خلقو روایت کړی دی د عطاء نه او هغه د نبي ﷺ نه، او مخلد شیخ قابل اعتبار دی.

## مضمون حدیث:

یو ځل د جمعې په ورځ چه کله رسول الله ﷺ منبر ته اورسیدله (کیدې شی بعضې خلقو حضور ﷺ لره ولاړ لیدلي وی) نو حضور ﷺ اوفرمائیل خلقو کینئ، کله چه حضور ﷺ دا ارشاد اوفرمائیلو نو دغه وخت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه جومات ته داخلیدلو د جومات په دروازه کښې وو چه ناڅاپه ئې د حضور ﷺ دا فرمان واوریدلو نو بیا وړاندې نۀ شو بلکه هم هغلته په دروازه کښې کیناستلو د امر مبارکه په امتثال یعنی پوره کولو کښې کله چه حضور ﷺ دا اولیدل چه دوئ خوهم هلته کیناستل نو اوئې فرمائیل، تعال یا ابن مسعود.

قال ابوداؤد هذا یعرف مرسل، یعنی د معروفو روایتونو نه دا معلومیږی چه دا حدیث د عطاء نه مرسلاً مروی دی (بغیر د ذکر د صحابی نه)

ومخلدٌ و هو شیخ، لفظ شیخ د ادنٰی درجې تعدیل دپاره دي بظاهر دا وئیل غواړی چه دې حدیث لره د مرسل پځائې مسنداً روایت کونکی مخلد بن یزید راوی دې اوهغه ډیر ثقه نۀ دې.

## بَابُ الْجُلُوسِ إِذَا صَعِدَ الْمِنْبَرَ

### باب دی د کېناستلو کله چې منبر ته وخیژي

[۱۰۹۲]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ يَعْنِي ابْنَ عَطَاءٍ، عَنِ الْعُمَرِيِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ كَانَ يَجْلِسُ إِذَا صَعِدَ الْمِنْبَرَ حَتَّى يَفْرَغَ أُرَاهُ قَالَ الْمُؤَذِّنُ، ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ، ثُمَّ يَجْلِسُ فَلَا يَتَكَلَّمُ، ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ".

نافع د ابن عمر نه روایت کوي چې هغه ویلي دي: وو نبي ﷺ چې دوه خطبې به یې ویلې. کېناستلو به کله چې به منبر ته ختلو ترڅو چې فارغ شو. زما خیال دی چې هغه وویل: مؤذن. بیا به پاڅیدلو نو خطبه به یې ویله، بیا به کېناستلو او خبرې به یې نه کولې، بیا به پاڅیدلو او خطبه به یې ویله.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲٤٦٤) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۷۲۵)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ۳۰ (۹۲۸)، صحيح مسلم/الجمعة ۱۰ (۸٦۱)، سنن الترمذي/الصلاة ۲٤٦ (الجمعة ۱۱) (۵۰٦)، سنن النسائي/الجمعة ۳۳ (۱٤۱۷)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۸۰ (۱۱۰۳)، مسند احمد ۲/۹۸، سنن الدارمي/الصلاة ۲۰۰ (۱۵۹۹) (صحيح)

د خطيب منبر ته رسيدلو نه پس په شروع کښې د اذان پوره کيدو په انتظار کښې کيناستل دجمهور علماء او ائمه اربعه په نيز مستحب دی، خو امام نووی رحمه الله په دې کښې د حنفيانو اختلاف ليکلې دې چه هغوی د ې قائل نهٔ دې او دا د امام مالك هم يو روايت دا دې، حضرت شيخ د اوجز په صفحه. ۳۳۸ج،۱، کښې ليکلی چه په دې مسئله کښې د حنفيانو اختلاف د ابن بطال وغيره بعضې شراحو هم نقل کړې دې خو دا نقل صحيح نهٔ دې علامه عينی په شرح د بخاری کښې په دې باندې ډير زور سره رد فرمائيلې او دغه شان علامه باجی مالکی هم د مالکيه مذهب دجمهورو موافق ليکلې دی.

## بَابُ الْخُطْبَةِ قَائِمًا

### باب دی په بيان د خطبه کې په ولاړه

### مسائل الباب:

په بذل کښې د شوکانی نه نقل کړې دی چه د خطبې قائما کيدل عندالجمهور واجب دی او د حنفيانو په نيز باندې سنت دې، او د بذل په حاشيه کښې د امام احمد مسلك د حنفيه موافق ليکلې دې يعنی سنيت، دغه شان د مالکيه په دې کښې دوه قوله دی، کما فی الشرح الکبير للدردير، خو د ابن العربی مالکی مختار او غوره وجوب دقيام دې، کما فی عارضة الاحوذی، دغه شان په بدائع کښې ليکلې دی چه د حنفيه په نيز په خطبه کښې قيام شرط نهٔ دې، قاعدا يعنی په ناسته باندې هم جائز ده، وړاندې هغه ليکی، روی عن عثمان انه کان يخطب قاعدا حين کبر و اسنّ، او شوکانی ليکی ، اخرج ابن ابی شيبة عن طاوس قال خطب رسول الله صلی الله عليه وسلم قائما و ابوبکر و عمر و عثمان، و اول من جلس علی المنبر معاويه، و فی رواية منه ان معاوية انما خطب قاعدا لما کثر شحمُ بطنه و لحمه،

[۱۰۹۳] (۱) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَخْطُبُ قَائِمًا، ثُمَّ يَجْلِسُ، ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا، فَمَنْ حَدَّثَكَ أَنَّهُ كَانَ يَخْطُبُ جَالِسًا فَقَدْ كَذَبَ، فَقَالَ: فَقَدْ وَاللَّهِ صَلَّيْتُ مَعَهُ أَكْثَرَ مِنْ أَلْفَيْ صَلَاةٍ".

د جابر بن سمرة نه روايت دی بېشکه رسو ل الله ﷺ وو چې خطبه به يې ويله په ولاړه. بيا به کېناستلو، بيا به پاڅيدلو خطبه به يې ويله په ولاړه، چا چې تاته بيان وکړو چې هغه به ناسته خطبه ويله نو دروغ يې ووېل هغه وفرمايل يقيناً قسم په الله ما مونځ کړی دی د هغه سره زيات د دوه زره مونځونو نه.

[۱] . حدثنا عبدالله بن محمد النفيلی الخ، قوله، کان يخطب قائما ثم يجلس ثم يقوم فيخطب، : دلته دوه مسئلې دی اول دا چه دواړه خطبې واجب دی يا يوه، دويمه دا چه دجلوس بين الخطبتين څهٔ حکم دې؟ پس د جمهور علماء په کومو کښې چه حنفيه او مالکيه هم دی په نيز يوه خطبه واجب ده او دويم خطبه سنت ده، او امام شافعی د وجوب الخطبتين قائل دې او ـ

[۱]: صحيح مسلم/الجمعة ۱۰ (۸۶۲)، (تحفة الأشراف: ۲۱۵۶)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الجمعة ۳۲ (۱٤۱٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۸۵ (۱۱۰۵)، مسند احمد (۸۹/۵، ۹۰، ۹۱، ۹۲، ۹۳، ۹٤، ۹۵، ۹۷، ۹۸، ۹۹، ۱۰۰، ۱۰۱، ۱۰۲، ۱۰۷)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۹۹ (۱۵۹۸) (حسن)

امام احمد نه دوه روایتونه دی خو مشهور د دوئ د وجوب روایت دې کما فی المغنی وغیره،
او جلوس بین الخطبتین یعنی د دوو خطبو په مینځ کښې کیناستل نو د جمهور علماء په نیز
سنت دی او د امام شافعی په نیز واجب دی،(کذا قال الشعرانی والقاری والشوکانی)
دلته یوه مسئله بله ده او هغه دا چه دنفس خطبې څۀ حکم دې؟ نو جواب دا دې چه د
جمهورو علماء ائمه اربعه په نیز د جمعې خطبه واجب او شرط د صحت صلوة ده.

## ایا د جمعې خطبه د رکعتینو قائم مقام ده؟

امام نووی رحمه الله فرمائی دې دپاره چه د جمعې په مانځه کښې کوم قصر شوې دې او د
څلورو په ځائې باندې دوه رکعاته کولې شی نو دا قصر هم د خطبې د وجه نه دې ګویا خطبه
د رکعتینو بدل ده(منهل) په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی چه امام مالك هم په مدونه کښې
د دې تصریح کړې ده او د حنابله د کتابونه نه هم دا معلومیږی، خو د حنفیانو په نیز داسې
نۀ ده چنانچه د درمختار په صفه، ۱۵۰ کښې دی ، و هل هی قائمة مقام رکعتین الاصح لا بل
کشطرها فی الثواب،([1]) نو ځکه د حنفیانو په نیز د جمعې د خطبې دپاره هغه شرائط نشته دې
کوم چه د مانځه دپاره دی لکه استقبال قبله، طهارت وغیره، دا مذاهب خو د ائمه اربعه
شول، او د حسن بصری، ابن حزم،داؤد ظاهری، او ابن حبیب مالکی په نیز خطبه صرف
مستحب ده نۀ شرط ده او نۀ واجب ده دعلامه شوکانی میلان هم دې طرف ته دې.(منهل)

، قوله، فقدوالله صلیت معه اکثر من الفی صلوة حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه کوم سړې دا
اووائی چه حضور صلی الله علیه وسلم به په ناسته باندې خطبه ورکوله نو هغه کاذب دې ځکه چه ما د
حضور صلی الله علیه وسلم سره د دوو زرو نه زیات مونځونه کړې دی، د دینه د جمعې مونځونه مراد نۀ دی
بلکه مطلق فرض مونځونه مراد دی ځکه چه حضور صلی الله علیه وسلم صرف په مدنی ژوند کښې کوم چه
لس کاله دې د جمعې مونځ ادا فرمائیلې وو او په لسو کالو کښې تقریبا څلور سوه
اتیا ،۴۸۰، جمعې راځی.

[۱۰۹۴]([2])حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "كَانَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطْبَتَانِ كَانَ يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيُذَكِّرُ النَّاسَ".

د جابر بن سمرة نه روایت دی هغه ویلي دي: وې رسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره دوه خطبې چې
کېناستلوبه د دواړو په مینځ کې او قرآن به یې لوستلو ، او خلقو ته به یې نصیحت کولو.

**قوله:** عن جابر بن سمرة قال كان لرسول الله صلى الله عليه وسلم خطبتان يجلس بينهما يقرأ القرآن و يذكر الناس،

---

[1] ، علامه شامی لیکی ، هذا تاویل لما ورد به الاثر من انّ الخطبة كشطر الصلوة فان مقتضاه انها قامت مقام ركعتين من الظهر كما قامت الجمعة مقام ركعتين منه فيشترط له شروط الصلوة كما هو قول الشافعي) ۱۲ منه_

[2]: صحيح مسلم/الجمعة ۱۰ (۸٦۲)، (تحفة الأشراف: ۲۱٦۹) (حسن)

### د خطبې ارکان:

په دې کښې څۀ قدرې اختلاف دې، علامه شعرانی په خپل تالیف میزان الکبرٰی کښې لیکلې دی چه عند الشافعی و احمد او د امام مالك په قول راجح کښې د خطبې پنځه ارکان دی، حمد او ثناء، صلوة او سلام علی النبی ﷺ التذکیر یعنی وعظ او نصیحت، القراءة، الدعاء للمؤمنین والمؤمنات، او د امام ابوحنیفه او د مالك نه په یو روایت کښې فرمائی چه د خطبې حقیقت مطلق ذکر دې یعنی ذکر الله کما قال الله تعالی، اذا نودی للصلوة من یوم الجمعة فاسعوا الی ذکر الله، لهذا د دوئ په نیز باندې صرف تهلیل یا تسبیح یا تحمید پوره دې، او صاحبین فرمائی چه، لابد من کلام یسمٰی خطبة عادة، یعنی داسې مختصر غوندې کلام چه کوم ته په عرف کښې خطبه وئیلې شی(میزان) او صاحب منهل د شافعیه او حنابله په نیز باندې د خطبې ارکان هم پنځه لیکلې دی، او د مالیکه په نیز هغوی لیکلې دی چه د دې ارکان اتۀ دی، بعضې شرطونو لره هم هغوی په ارکانو کښې شامل کړې دی او اتۀ ئې وئیلې دی مثلاً د دې په عربی کښې کیدل او جهرا کیدل، په جومات کښې کیدل وغیره وغیره، هغوی د شافعیه او حنابله مذهب هم دا لیکلې دې چه د خطبې په عربی کښې کیدل شرط دی.

[۱۰۹۵](١)حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَخْطُبُ قَائِمًا، ثُمَّ يَقْعُدُ قَعْدَةً لَا يَتَكَلَّمُ" وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

د جابر بن سمرة نه روایت دی هغه ویلي دي: ما رسول الله ﷺ ولیدلو چې خطبه یې ویله په ولاړه، بیا به کېناستلو لګ شانته خبرې به یې نه کولې، او حدیث یې بیان کړو.

## بَابُ الرَّجُلِ يَخْطُبُ عَلَى قَوْسٍ

### باب دی په بیان سرې کې چې خطبه وایي په لینده باندې

[۱۰۹۶](٢)حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا شِهَابُ بْنُ خِرَاشٍ، حَدَّثَنِي شُعَيْبُ بْنُ زُرَيْقٍ الطَّائِفِيُّ، قَالَ: جَلَسْتُ إِلَى رَجُلٍ لَهُ صُحْبَةٌ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهُ: الْحَكَمُ بْنُ حَزْنٍ الْكُلَفِيُّ فَأَنْشَأَ يُحَدِّثُنَا، قَالَ: وَفَدْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَابِعَ سَبْعَةٍ، أَوْ تَاسِعَ تِسْعَةٍ، فَدَخَلْنَا عَلَيْهِ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، زُرْنَاكَ فَادْعُ اللَّهَ لَنَا بِخَيْرٍ، فَأَمَرَ بِنَا، أَوْ أَمَرَ لَنَا بِشَيْءٍ مِنَ التَّمْرِ وَالشَّأْنُ إِذْ ذَاكَ دُونٌ فَأَقَمْنَا بِهَا أَيَّامًا شَهِدْنَا فِيهَا الْجُمُعَةَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَقَامَ مُتَوَكِّئًا عَلَى عَصًا أَوْ قَوْسٍ، فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ كَلِمَاتٍ خَفِيفَاتٍ طَيِّبَاتٍ مُبَارَكَاتٍ، ثُمَّ قَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّكُمْ لَنْ تُطِيقُوا أَوْ لَنْ تَفْعَلُوا كُلَّ مَا أُمِرْتُمْ بِهِ وَلَكِنْ سَدِّدُوا وَأَبْشِرُوا". قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: سَمِعْتُ أَبُو دَاوُد، قَالَ: ثَبَّتَنِي فِي شَيْءٍ مِنْهُ بَعْضُ أَصْحَابِنَا وَقَدْ كَانَ انْقَطَعَ مِنَ الْقِرْطَاسِ.

د شعیب بن زریق الطائفي نه روایت دی هغه ویلي دي زه کېناستم یو سړي ته چې د هغه صحبت وو د رسول الله ﷺ سره، چې هغه ته حکم بن حزن الکلفي ویلي کیدو، هغه مونږ ته حدیث بیان کړو، او ویې ویل: زه وفد کې راغلم رسول الله ﷺ ته اوم د اوو نه. او نهم د

(١): سنن النسائي الكبري/ الصلاة العيدين ٢٣ (١٧٨٨)، (تحفة الأشراف: ٢١٩٧) (حسن)

(٢): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ٣٤١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٢/٤) (حسن)

نهو نه. مونږ داخل شو په هغه، مونږ وویل ای د الله رسوله! مونږ ستا ملاقات وکړو مونږ ته دعاء وکړه د خیر، امر یې وکړو زمونږ لپاره په څه شي سره د کجورو ن، او حالت په دغه وخت کې کمزوری وو، همدغسې مونږ ډیری ورځې پاتې شو، مونږ حاضر شو جمعې ته د رسول الله ﷺ سره، هغه پاڅیدلو د تکیا په حالت کې په امسا باندې، او په لینده باندې، د الله حمدیې وویلو او ثنایې وویله د هغه، سپکې او پاکې او برکتي کلمې وې، بیایې وویل ای خلقو! تاسو هیڅکله طاقت نه لرئ. او یا هیڅ کله نشئ کولی. ټول هغه څه چې تاسو ته یې امر کیدی شي، لیکن نیغ شئ او زیری واخلئ. ویلي دي ابو علي ما واوریدل د ابوداود نه هغه ویل مضبوط کړی دی مالره بعضو ملګرو زما څه شی د دینه، او بېشکه پرې شوی دی څه شی د کتابچې نه.

۱. حدثنا سعيد بن منصور. الخ، د دې حدیث د راوی صحابی نوم حَکَم بن حزن دې، قوله، متوکئا علی عصًا او قوس فحمد الله و اثنی علیه، د دې حدیث نه معلومه شوه چه حضور ﷺ به د جمعې په ورځ چه کله خطبه ورکوله نو عصا یا کمان به ئې په لاس مبارك کښې ساتلو او په هغې باندې به ئې د اودریدلو دپاره اډونه لګوله

په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه د جمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه مطلق مسلك دا دې چه خطیب لره پکار دی چه په یو لرګی وغیره باندې اډونه اولګوی او اودریږی، په دې کښې ئې حکمت دا لیکلې دې چه په دې سره لاسونه د عبث فعل او حرکت نه بندول او د سکون کیفیت حاصلیدل دی لکه څنګه چه د مانځه په حالت دقیام کښې د وضع الیدین هم یو حکمت دا بیان کړې شوې دې، او بعضې دخطباء او د مقررینو عادت وی چه هغوی په بیان کښې لاسونه بیا بیا غزوی او حرکت ورکوی، دا څیز خلاف سنت دې، نو د عصا په لاس کښې کیدل د سکون حالت قائمولو کښې معین دې

اوس دا چه عصا په کوم لاس کښې کیدل پکار دی، د شافعیه او مالکیه په نیز په ښی لاس کښې او د حنابله په نیز په چه هر یو لاس کښې وی، بیا شافعیه دا وائی چه ګس لاس لره دې په منبر باندې کیږدی چه بل لاس هم مشغول پاتې شی، او حنابله دا وائی چه اختیار مند دې که دویم لاس د منبر په غاړه باندې کیږدی یا دا زوړند اوساتی، صاحب منهل لیکی چه د دې تفصیلونو څۀ دلیل یا ثبوت په حدیث کښې نشته دې، دا مذاهب خو د جمهورو او ائمه ثلاثه شو پاتې شوه مسئله د حنفیه ؤ، دفقهاء احنافو خبره په دې سلسله کښې زما په خیال کښې محقق او منقح نۀ ده. هغه حضرات دافرمائی چه کوم ملك مسلمانانو عنوة د قتال په ذریعې سره فتح کړې وی هلته خطیب لره پکار دی چه، متکئا علی سیف، خطبه ورکړی او دا توره د دۀ په ګس لاس کښې کیدل پکار دی او ګویا په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه دا ملك د توری په زور سره فتح شوې دې نو که تاسو خلق الله دې نۀ کړی د اسلام نه واوړئ نو په مونږ کښې دا توره باقی پاتې ده، کذا فی مراقی الفلاح، په دې باندې علامه طحطاوی لیکی چه په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه اتکاء علی عصا یا علی قوس مکروه ده، خو په دې کښې ابن امیرالحاج بحث کړې دې هغه دا چه د

ابوداؤد وغیره د روایاتو نه دا بحث ثابت دي چه حضور ﷺ به په مدینه کښې په عصا یا قوس باندې اتکاء فرمائیله، (بیا دې لره مکروه یا خلاف سنت وئیل څنګه صحیح دی).

## مضمون حدیث

دا صحابی دې فرمائی چه زهٔ د حضور ﷺ په خدمت کښې په یو وفد کښې شامل حاضر شوم، مونږ ټول ملګری اووهٔ کسان وو په کومو کښې چه اووم زهٔ ووم یا ټول نهٔ وو په کومو کښې چه نهم زهٔ ووم مونږ د حضور ﷺ خدمت ته اورسیدو او حضور ﷺ نه مونږ د دعاء درخواست اوکړو نو حضور ﷺ زمونږ دپاره څهٔ کهجورې راوغوښتلې او د مسلمانانو حالت دغه وخت څهٔ کم وو، یعنی مالی حالت ئې کمزورې وو.([1])

## شرح حدیث

قوله، و لکن سددوا وابشروا([2]): حضور ﷺ ارشاد فرمائی چه هر عمل علی وجه الکمال او څنګه چه د هغې حق دې پوره کول د چا د وس خبره نهٔ ده، لهذا څومره چه تحمل او برداشت وی د هغې په اندازه کوشش کوئ او میانه روی اختیار کړئ مهبالکل همت بائیلی او مه د دې قصد کوی چه هر عمل به علی وجه الکمال پوره کوم. قال الله تعالیٰ. فاتقوا الله ما استطعتم، چه د استطاعت مطابق دتقوی ژوند تیروئ. و قال النبی صلی الله علیه وسلم لن یشادّ الدین احد الا غلبه، چه کوم سړې په دینی کارونو کښې د خپل طاقت نه زیات کوشش کوی او وړاندې تلل غواړی نو هغه به مغلوب شی او د دهٔ نه به او نهٔ شی لهذا د اعتدال لاره اختیارول پکار دی په کوم چه افراط او تفریط یعنی کمې او زیاتې نهٔ وی

[۱۰۹۷]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ، عَنْ أَبِي عِيَاضٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ إِذَا تَشَهَّدَ قَالَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا، مَنْ يَهْدِهِ اللَّهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، أَرْسَلَهُ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ، مَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ رَشَدَ، وَمَنْ يَعْصِهِمَا فَإِنَّهُ لَا يَضُرُّ إِلَّا نَفْسَهُ وَلَا يَضُرُّ اللَّهَ شَيْئًا".

د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی، بیشکه رسول الله ﷺ وو چې کله به یې خطبه ویله نو هغه به ویل. الحمدُ لله: ټول حمدونه الله لره دي، مونږ د هغه نه مدد غواړو، او د هغه نه بخښنه غواړو، او پناه نیسو الله پورې د شرونو د خپلو نفسونو نه، چاته چې الله هدایت وکړي د هغه ګمراه کونکی نشته، او څوک چې ګمراه کړي د هغه لپاره هدایت کونکی نشته دی، زه ګواهي کوم چې نشته مستحق د عبادت مګر یو الله دی، او زه ګواهي کوم چې محمد د الله بنده او رسول دی. الله رالیږلی دی په حق سره زیری ورکونکی او ویره ورکونکی نژدې

---

[1] دا ئې دپاره اوئیل چه کیدې شی د چا دا خیال راشی چه د میلمنو خاطر صرف په کهجورو سره اوکړې شو د دینه زیات یو بیزه وغیره په ذریعې سره ولې او نهٔ شو. (ودی؛ غوښه وغیره به ئې پرې خوړولې وه.)

[2] خلقو ته زیری واوروی او هغوی ته د علم ترغیب ورکوئ. لکه څنګه چه زمونږ حضرت شیخ د فضائلو رسائل تصنیف کولو سره دا کار په ډیر ښهٔ طریقه پوره کړې دی. ۱۲ منه.

[3]: تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ۹۶۳۶) ویأتي هذا الحدیث في النکاح (۲۱۱۹) (ضعیف)

قیامت ته، چا چې د الله او د رسول اطاعت وکړو نو هغه په هدایت شو، او چا چې د دواړو نافرماني وکړه نو بېشکه هغه ضرر نه شي ورکولی مګر خپل ځان ته، او الله ته هیڅ ضرر نشي ورکولی.

[۱۰۹۸](۱)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، أَنَّهُ سَأَلَ ابْنَ شِهَابٍ، عَنْ تَشَهُّدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ: وَمَنْ يَعْصِهِمَا فَقَدْ غَوَى، وَنَسْأَلُ اللَّهَ رَبَّنَا أَنْ يَجْعَلَنَا مِمَّنْ يُطِيعُهُ وَيُطِيعُ رَسُولَهُ وَيَتَّبِعُ رِضْوَانَهُ وَيَجْتَنِبُ سَخَطَهُ، فَإِنَّمَا نَحْنُ بِهِ وَلَهُ.

د یونس نه روایت دی بېشکه هغه تپوس وکړو د ابن شهاب نه د خطبې د رسول الله ﷺ په ورځ د جمعه کې، نو هغه ذکر کړه پشان د هغه، هغه وویل: او چا چې نافرماني وکړه د دواړو یقینًا هغه ګمراه شو، او سوال کوو د الله نه چې رب زمونږ دی چې مونږ وګرځوي د هغه چانه چې د هغه اطاعت کوي او د هغه د رسول طاعت کوي، او تابعدار وي د رضا د الله، او ځان ساتي د غوسې د هغه نه بېشکه مونږ د هغه پورې او د هغه یو.

[۱۰۹۹](۲)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ رُفَيْعٍ، عَنْ تَمِيمٍ الطَّائِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، أَنَّ خَطِيبًا خَطَبَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: مَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ رَشَدَ وَمَنْ يَعْصِهِمَا، فَقَالَ "قُمْ أَوِ اذْهَبْ بِئْسَ الْخَطِيبُ أَنْتَ".

د عدي بن حاتم نه روایت دی، بېشکه یو خطیب خطبه ویله د نبي ﷺ په حضور کې، هغه وویل: (من یطع اللّه و رسوله فقد رشدَ، او من یعصهما) نو هغه وفرمایل: پاڅه. او یا لاړه شه. ناکاره خطیب یې ته.

۲. حدثنا مسدد الخ، قوله، عن عدی بن حاتم ان خطیبا خطب عند النبی صلی الله علیه وسلم فقال من یطع الله و رسوله و من یعصهما فقال قم او اذهب بئس الخطیب انت، دا روایت مختصر دې په دې کښې د خطبې پوره الفاظ مذکور نهٔ دی، د روایت اصل الفاظ لکه څنګه چه د نورو کتابونو د حدیثو مسلم وغیره نه معلومیږی داسې دی چه، من یطع الله و رسوله فقد رشد و من یعصهما فقد غوی،

## د بئس الخطیب انت، توجیهات:

په دې خطیب باندې حضور ﷺ چه کوم انکار فرمائیلې وو د دې په حقله د عام شراحو رائې دا ده چه دا انکار د دې دپاره وو چه دې خطیب الله او رسول لره په یو ضمیر کښې راجمع کړل او د دواړو دپاره ئې ضمیر د تثنیه استعمال کړو حال دا دې چه په ضمیر د تثنیه کښې د تسویه ایهام یعنی د برابری والی وهم دې ګویا الله او رسول دوړو لره العیاذ بالله په یوه درجه کښې ږدی خو په دې باندې دا اشکال کیږی چه دالله او رسول دپاره د تثنې دضمیر استعمال په ډیرو مرفوع روایاتو کښې ثابت دې مثلا، من کان الله و رسوله احب الیه مما سواهما، د دې جواب عزالدین ابن عبدالسلام دا ورکړې دې چه دا د حضور

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۴۰۷، ۱۹۳۵۴) (ضعیف) (دا حدیث مرسل دی)

(۲): صحیح مسلم/الجمعة ۱۳ (۸۷۰)، سنن النسائي/النکاح ۴۰ (۳۲۸۱)، (تحفة الأشراف: ۹۸۵۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۵۶/۴، ۳۷۹) (صحیح)

ﷺ خصوصیات دی د بل چا دپاره جائز نۀ دی، بیا په دې باندې دا اشکال کړې شوې دې چه حضور ﷺ د خطبې هم دا الفاظ د تثنیه په ضمیر سره عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ته ښودلې وو نو بیا دا د حضور ﷺ خصوصیات کوم ځائې شو لهذا دا جواب صحیح نۀ شو، نور هم څو جوابونه ورکړې شوې دی. ۱:- دا انکار د خصوصیت د مقام د وجه نه دې یعنی د موقع او محل د خلاف کیدو د وجه نه ممکن ده په دې موقع باندې داسې حاضرین او سامعین یعنی اوریدونکو کښې بعضې داسې وی چه د هغوی په باره کښې د تسویه یعنی برابروالی وهم او ګمان کیدې شو. ۲. دا انکار د متکلم د خصوصیت د وجه نه دې د دۀ د حال او اسلوب بیان نه د تسویه وهم کیدې شی. ۳. په دې انکار سره مقصود بیان د اولویت دې نۀ د عدم جواز.

## د امام طحاوی رائې

دلته د ټولو شارحینو نه جدا ده. حضرت شیخ نورالله مرقده به فرمائیل چه زما په دې کښې د امام طحاوی رائې ډیره خوښه شوه هغوی په خپل تصنیف مشکل الآثار کښې د دې په حقله لیکلې دی چه حضور ﷺ دا انکار د وقف فی غیر محله د وجه کړې وو چه دې خطیب بې ځایه خپله ساه ماته کړه او وقف ئې اوکړو په کوم سره چه د معنی فساد لازمیږی. (۱)

اوګورئ! دلته په کلام کښې دوه شرطونه دی. او د هر شرط نه پس متصلاً د دې جزاء مذکور ده، من یطع الله و رسوله، شرط دې،فقد رشد، د دې جزاء ده او،من یعصهما، دویم شرط دې او،فقد غوی، د دې جزاء ده. دې خطیب د ړومبی شرط په جزاء باندې د وقف پځائې باندې په دویم شرط باندې ساه ماته کړه، من یطع الله و رسوله فقد رشد و من یعصهما، تر دې ځائې پورې ئې په یو ساه کښې اولوستل او وقف ئې اوکړو او، فقدغوي، ئې مستقل جدا ساه کښې اولوستلو چه دهغې د وجه نه د. فقد رشد، تعلق د ماقبل او مابعد دواړو شرطونو سره اوشو او مطلب دا شو چه کوم سړې د الله او د رسول اطاعت کوی هغه کامیاب دې او څوك چه د دې دواړو نافرمانی کوی هغه کامیاب دې او څوك چه د دې دواړو نافرمانی کوی.

[۱۱۰۰](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خُبَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ مَعْنٍ، عَنْ بِنْتِ الْحَارِثِ بْنِ النُّعْمَانِ، قَالَتْ: مَا حَفِظْتُ ق إِلَّا مِنْ فِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَخْطُبُ بِهَا كُلَّ جُمُعَةٍ". قَالَتْ: "وَكَانَ تَنُّورُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَنُّورُنَا وَاحِدًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنْ شُعْبَةَ، قَالَ: بِنْتُ حَارِثَةَ بْنِ النُّعْمَانِ، وَقَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ: أُمُّ هِشَامٍ بِنْتُ حَارِثَةَ بْنِ النُّعْمَانِ.

(۱) لکه څنګه چه یو پاکستانی سړې ما اولیدلو چه هغۀ به حاجیانو ته د طواف په وخت کښې په هغوی باندې د طواف دعاګانې لوستلې او په دعاء کښې چه کله به لاحول ته اورسیدلو نو ونیل به ئې، لاحول ولا، یعنی په دویم، لا، باندې به ئې وقف کولو او په دویمه ساه به ئې ونیل، قوة الا بالله، حال دا دې چه پکار دا وو چه، لاحول، ولاقوة، په دې طواف کونکو کښې بعضې عرب هم وو هغوی د دۀ دې طرز نه ډیر پریشانه ښکاریدل چه دا، لاحول و لا، څۀ څیز دې په دې باندې ما له ډیر خندا راغله چه دا غریب عرب د دې عجمی په جال کښې ګیر شول ۱۲. دا واقعه هم د وقف فی غیر محله یو مثال دې).

(۲): صحيح مسلم/الجمعة ۱۳ (۸۷۲)، سنن النسائي/الجمعة ۲۸ (۱٤۱۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳٦۳)، وقد أخرجه: مسند أحمد (٦/٤٣٢، ٤٣٦، ٤٦٣) (صحيح)

د لور د حارث بن النعمان نه روايت دی، هغې ولي دي: ما نه دی ياد کړی سورت ق مګر د خولې د رسول الله ﷺ نه، هغه به په هغې سره خطبه کوله هره جمعه، هغې ويلي دي: او زمونږ او د رسول الله ﷺ تنور يو وو. ويلي دي ابوداود: ويلي دي روح بن عبادة د شعبه نه، هغه وويل: بنتُ حارثة النعمان، او ويلي دي ابن اسحاق: ام هشام بنت حارثة بن النعمان.

**(د بنت الحارث اسم)**

**قوله:** عن بنت الحارث بن النعمان، صحيح بنت حارثة دي لکه څنګه چه وړاندې راروان دی د دوئ کنيت ام هشام دې دا دعمره بنت عبدالرحمٰن اخيافی خور ده، د وړاندې روايت نه معلوميږی چه دې حديث لره ام هشام نه د دې خور عمره هم روايت کوی.

**قوله،** قالت ما حفظت قاف الا من فی رسول الله، ام هشام وائی چه ماته سورة قاف په ياده صرف د دې وجه نه ياد شو چه ما به دا د حضور ﷺ نه د جمعې په خطبه کښې اوريدلو حضور ﷺ به دې لره د هرې جمعې په خطبه کښې لوستلو.

د خطبې ارکان څۀ دی په دې کښې اختلاف زمونږ په نيز وړاندې تير شوې دې د علماؤ په دې کښې اختلاف کيږی چه محل د قراءت کومه خطبه ده خطبه اولی يا ثانيه؟ په بذل المجهود کښې د نورو علماؤ د اقوالو ليکلو نه پس د حنفيه دا مذهب ليکلې دې چه د دوئ په نيز باندې په خطبه اولی کښې قراءت د قرآن مسنون دی.

**قوله،** قالت و کان تنور رسول الله صلی الله عليه وسلم و تنورنا واحدًا،

**شرح حديث:**

ام هشام وائی چه زمونږ او د حضور ﷺ تنور چه په هغې ډوډئ پخيږی يو وو، ګويا دا د حضور ﷺ سره خپل جوار يعنی ګاونډيتوب ثابتوی چه هم د دې قرب يعنی نزديکت د وجه نه به هغې هره جمعه د حضور ﷺ سره کوله، او کومه خبره چه هغۀ نقل کوی هغۀ هغې ته ښۀ ياده ده هم دا مقصد دې د دې کلام د ذکر کولو نه.

[۱۱۰۱] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي سِمَاكٌ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَصْدًا وَخُطْبَتُهُ قَصْدًا يَقْرَأُ آيَاتٍ مِنَ الْقُرْآنِ وَيُذَكِّرُ النَّاسَ".

د جابر بن سمرة ﷺ نه روايت دی، هغه ويلي دي: وو مونځ د رسول الله ﷺ درميانه او خطبه دهغه درميانه، چې هغه به پکې څه ايتونه دقرآن لوستل، او خلقو ته به يې نصيحت کولو.

**تشريح: قوله:** کانت صلوة رسول الله صلی الله عليه وسلم قصدا و خطبته قصدا، قصد په معنی د مقتصد او معتدل دې يعنی د حضور ﷺ مونځ او خطبه دواړه به معتدل وو او د حضور ﷺ خطبه به ډيره اوږده نۀ وه چه دهغې د اوريدو نه څوک ستړې شی لکه څنګه چه د اکثرو خطيبانو عادت وی د اوږدو خطبو.

**تنبيه:** د مونځ او خطبې معتدل کيدو دپاره دا ضروری نۀ ده چه دواړه دې برابر وی بلکه د جمعې مونځ نسبتًا د خطبې نه اوږد کيدل پکار دی چنانچه په مسلم شريف کښې د حضرت

¹: سنن النسائي/الجمعة ۳۵ (۱٤۱۹)، صلاة العيدين ۲۵ (۱۵۸۵)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۸۵ (۱۱۰٦)، (تحفة الأشراف: ۲۱٦۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۸٦، ۸۸، ۹۳، ۹۸، ۱۰۲، ۱۰٦، ۱۰۷) (حسن)

عمار رضي الله عنه مرفوع حديث دې چه حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل، ان طول صلوة الرجل و قصر خطبته مئنة من فقهه، چه د سړي د مونځ اوږديدل او د خطبې لنډ کيدل د دۀ د فقيه کيدو نښه ده چه په دې حديث کښې د مونځ د اوږدوالي نه في نفسه د دې اوږدوالي مراد نۀ دې بلکه بالنسبة الى الخطبته، د دې وجه ظاهره ده چه مونځ اصل او مقصود دې او خطبه د دې د متعلقاتو نه ده، فقهاؤ ليکلې دی چه د خطبې مقدار د طوال مفصل د سورتونو نه د يو سورت په اندازه کيدل پکار دی.

[۱۱۰۲]() حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ أُخْتِهَا، قَالَتْ: مَا أَخَذْتُ ق إِلَّا مِنْ فِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْرَؤُهَا فِي كُلِّ جُمُعَةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، وَابْنُ أَبِي الرِّجَالِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ أُمِّ هِشَامٍ بِنْتِ حَارِثَةَ بْنِ النُّعْمَانِ.

عمره د خپلې خور نه روايت کوي هغې ويلي دي: ما نه دی ياد کړی سورت ق مګر د خولې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه، هغه به لوستلو په هره جمعه کې. ويلي دي ابوداود: همداسې روايت کړی دی يحيى بن ايوب او ابن ابي الرجال د يحيى بن سعيد نه او هغه د عمرې نه او هغې د ام هشام بنت حارثة بن النعمان نه

[۱۱۰۳]() حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِي، يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ أُخْتٍ لِعَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ كَانَتْ أَكْبَرَ مِنْهَا، بِمَعْنَاهُ.

د عمرې نه روايت دی هغه د خپلې خور نه روايت کوي چې لور د عبد الرحمن ده، هغه مشره وه د عمرې نه، په معنی د هغه حديث سره.

# بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عَلَى الْمِنْبَرِ

## باب دی په بيان د اوچتولو د لاسونو کې په منبر باندې

دا هم هغه څيز راغلو کوم چه مونږه په باب الرجل يخطب على قوس کښې بيان کړي وو چه په لاس کښې د همسا اغستلو کښې يو حکمت دا هم دې چه د خطبې په دوران کښې خطيب خپل لاسونه او نۀ غورزوی.

[۱۱۰۴]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: رَأَى عُمَارَةُ بْنُ رُوَيْبَةَ بِشْرَ بْنَ مَرْوَانَ وَهُوَ يَدْعُو فِي يَوْمِ جُمُعَةٍ، فَقَالَ عُمَارَةُ: قَبَّحَ اللَّهُ هَاتَيْنِ الْيَدَيْنِ. قَالَ زَائِدَةُ: قَالَ حُصَيْنٌ: حَدَّثَنِي عُمَارَةُ قَالَ: لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ مَا يَزِيدُ عَلَى هَذِهِ يَعْنِي السَّبَّابَةَ الَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ".

د حصين بن عبد الرحمن نه روايت دی هغه ويلي دي عمارة بن رويبة بشر بن مروان وليدلو او هغه دعاء کوله د جمعې په ورځ، وويل عمارة: الله دې هلاک کړي دا دواړه لاسونه. ويلي

(): انظر حديث رقم: ۱۱۰۰، (تحفة الأشراف: ۱۸۳٦۳) (صحيح)

(): انظر حديث رقم: ۱۱۰۰، (تحفة الأشراف: ۱۸۳٦۳) (صحيح)

(): صحيح مسلم/الجمعة ۱۳ (۸۷٤)، سنن الترمذي/الصلاة ۲٥٤ (الجمعة ۱۹) (٥١٥)، سنن النسائي/الجمعة ۲۹ (۱٤۱۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۷۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳٥/٤، ۱۳٦، ۲٦۱)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۰۱ (۱٦۰۱) (صحيح)

دي زائدة. وويل حصين: ماته حديث بيان کړی دی عمارة، هغه ويلي دي: بېشکه ما رسول الله ﷺ ليدلی وو او هغه په منبر وو زيادت يي نه کولو په دې، يعني په سبابي هغي باندې چې ابهامي ته نژدې ده.

قوله، رأى عمارة بن روية بشر بن مروان و هو يدعوني يوم جمعة فقال عمارة قبح الله هاتين اليدين،

**مضمون حديث:**

عماره يو صحابی دې هغوی د بشر بن مروان کوم چه دعبدالملك بن مروان رور او د کوفي امير وو هغۀ لره اوليدلو چه هغۀ د جمعې په ورځ خطبه ورکولو په وخت کښې خپلو لاسونو لره حرکت ورکوی. عمارة رضي الله عنه ښکاره په هغۀ باندې انکار اوفرمائيلو چه الله دې دا لاسونه تباه کړی، او وړاندې فرمائي چه ما حضور ﷺ ليدلی وو چه کله کله به ئې په خطبه کښې صرف په يوې ګوتې سره اشاره فرمائيله د دينه زيات نه.

[۱۱۰۵] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُعَاوِيَةَ، عَنْ ابْنِ أَبِي ذُبَابٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: "مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاهِرًا يَدَيْهِ قَطُّ يَدْعُو عَلَى مِنْبَرِهِ وَلَا عَلَى غَيْرِهِ، وَلَكِنْ رَأَيْتُهُ يَقُولُ هَكَذَا: وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ وَعَقَدَ الْوُسْطَى بِالْإِبْهَامِ".

د سهل بن سعد نه روايت دی هغه ويلي دي: ما نه دی ليدلی رسول الله ﷺ چې اوچتونکی وو د خپلو لاسونو هېڅکله د دعاء په حالت کې په منبر باندې، او نه په غير د منبر نه، ليکن ما هغه ليدلی وو چې ويل يي: داسې، اشاره يي وکړه په سبابې او راغونډه يي کړه وسطی او ابهامه.

**تشریح: قوله:** ما رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم شاهراً يديه. ما حضور ﷺ لره په خطبه کښې که هغوی به په منبر وو يا په غير منبر باندې چرې هم لاس پورته کونکې او غورزونکي نۀ دې ليدلي.

## بَابُ إِقْصَارِ الْخُطَبِ

### باب دی په بيان د لنډوالي د خطبې کې

[۱۱۰۶] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي رَاشِدٍ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ: "أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِإِقْصَارِ الْخُطَبِ".

د عمار بن ياسر نه روايت دی هغه ويلي دي: مونږ ته امر کړی دی رسول الله ﷺ په لنډوالي د خطبې.

[۱۱۰۷] (٣) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، أَخْبَرَنِي شَيْبَانُ أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ السُّوَائِيِّ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُطِيلُ الْمَوْعِظَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، إِنَّمَا هُنَّ كَلِمَاتٌ يَسِيرَاتٌ".

---

(١): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ٤٨٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣٧/٥) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٣٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٠/٤) (صحيح)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢١٩٢) (حسن)

د جابر بن سمرة السوائي نه روايت دی. هغه ويلي دي وو رسو ل الله ﷺ چې نه يي اوږدولو نصيحت د جمعي په ورځ. بېشکه وي به هغه لړي شانته کلمي نوې د خطبې د اختصار مضمون په تير شوی باب کښې تير شوې دې

## بَابُ الدُّنُوِّ مِنَ الْإِمَامِ عِنْدَ الْمَوْعِظَةِ

### باب دی په بیان د نزدیوالي کې امام ته په وخت د نصیحت کې

په دې باندې کلام په کتاب الطهارة کښې غسل يوم الجمعة کښې، ثم بكروا بتكر و مشى و لم يركب و دنا من الامام..الحديث، د لاندې تير شوې دې

[۱۱۰۸]([1])حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَ: وَجَدْتُ فِي كِتَابِ أَبِي بِخَطِّ يَدِهِ وَلَمْ أَسْمَعْهُ مِنْهُ، قَالَ قَتَادَةُ: عَنْ يَحْيَى بْنِ مَالِكٍ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "احْضُرُوا الذِّكْرَ، وَادْنُوا مِنَ الْإِمَامِ فَإِنَّ الرَّجُلَ لَا يَزَالُ يَتَبَاعَدُ حَتَّى يُؤَخَّرَ فِي الْجَنَّةِ وَإِنْ دَخَلَهَا".

د سمرة بن جندب نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ ويلي دي: تاسو ذکر ته حاضر شئ او امام ته نزدې شئ، بېشکه سړی همېشه وي چې لرې کيږي تردې چې وروسته شي په جنت کې اګر ورته داخل شي.

### د تحمل حديث قسم وجاده

قوله، قال وجدت في كتاب ابي بخط يده و لم اسمعه منه، معاذ بن هشام وائی چه دا حديث کوم چه زهٔ بيانوم دې لره ما د خپل پلار يعنی هشام په کتاب کښې موندلې دې کوم کتاب چه هغوی په خپل لاس سره ليکلې وو او ما دا حديث براه راست د هغوی نه نهٔ دې اوريدلې.
د تحمل حديث قسم وجاده: پوهيدل پکار دی چه دا د تحمل حديث د اقسامونه د کومو ذکر چه په شروع د کتاب کښې په ابتدائی مباحثو کښې تير شوې دې هغه قسم دې کوم ته چه وجاده وائی چه ي، راوی ته د يو محدث د لاس ليکلې شوی څو احاديث په يو کتاب يا کاغذ باندې ملاؤ شی په دې شرط چه هغهٔ دغه محدث پيژنی هم او دې کتاب نه نقل کونکی دپاره دا جائز نهٔ ده چه، حدثنی يا اخبرنی فلان، اووائی بلکه، وجدت فی کتاب فلان ونيل پکار دی، د اکثرو علماؤ په نيز د وجاده نه نقل شوې حديث د منقطع په حکم کښې دې. او دلته خو په سند کښې د انقطاع تصريح ده ځکه چه هغهٔ وائی چه، ولم اسمعه منه، په وجاده باندې کلام په بذل کښې په صفحه، ۱۸۷ ،ج ۲ ، کښې دلته او وړاندې د کتاب الصلوة په آخر کښې په صفحه، ۳۵۱ ، باندې هم راروان دې

### شرح حديث

قوله، فان الرجل لا يزال يتباعد حتى يؤخر في الجنة: په حديث کښې د امام ته نزدې کيدو حکم دې، ظاهره ده چه امام ته دا قرب او نزديکت هغه وخت حاصليدې شی کله چه په اول وخت کښې جومات ته رااورسی او په ړومبی صف کښې کينی، فرمائی چه کوم سړې د امام نه لرې وی نو د تاخير په وجه باندې کيدې شی چه جنت ته په داخليدو کښې به هم روستو او

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٦٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/١٠، ١١) (حسن)

بعد کښې به وی او يا مطلب دا دې چه کله جومات ته په تاخير سره رسيدو په وجه سره به په وروستنو صفونو کښې پاتې شی نو جنت کښې به هم لاندې درجو حاصليدل وی د اوچتو درجو نه به محروم شی اګر که جنت ته به خامخا داخليږی

## بَابُ الْإِمَامِ يَقْطَعُ الْخُطْبَةَ لِلْأَمْرِ يَحْدُثُ

### باب دی په د قطع کولو د امام کې لره د وجې د يو کار نه چې پيښ شي

يعنی د يو راتلونکی عارض د وجه نه امام خطبه منقطع کولې شی او که نهٔ؟ د حديث الباب نه معلوميږی چه آو کولې شی.

[۱۱۰۹] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ حُبَابٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ وَاقِدٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَقْبَلَ الْحَسَنُ، وَالْحُسَيْنُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَلَيْهِمَا قَمِيصَانِ أَحْمَرَانِ يَعْثُرَانِ وَيَقُومَانِ، فَنَزَلَ فَأَخَذَهُمَا فَصَعِدَ بِهِمَا الْمِنْبَرَ، ثُمَّ قَالَ: "صَدَقَ اللَّهُ إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ سورة التغابن آية ١٥، رَأَيْتُ هَذَيْنِ فَلَمْ أَصْبِرْ" ثُمَّ أَخَذَ فِي الْخُطْبَةِ.

عبد الله بن بريدة د خپل پلار نه روايت کوي هغه ويلي دي: مونږ ته خطبه ووبله رسول الله ﷺ، نو حسن او حسين راغلل (رضي الله عنهما) په دواړو باندې سره قميصونه وو ليدل او پاڅيدل، نو خکته شو دواړه يې راوچت کړل، منبر ته يې وخېژول، بيايي وويل: الله رشتيا ويلي دي (بېشکه ستاسو مالونه او اولاد فتنه ده) ما دا دواړه وليدل نو ما صبر ونه کړو، بيايي په کې شروع شو.

### مضمون حديث:

**قوله:** خطبنا رسول الله صلى الله عليه وسلم فاقبل الحسن والحسين عليهما قميصان احمران يعثران و يقومان..الخ، يو ځلې حضور ﷺ مونږ ته په منبر باندې خطبه راکوله حضور ﷺ اوکتل چه د مخامخ نه د حضور ﷺ دواړه نوسی حسن او حسين رضي الله عنهما راروان دی دواړو سور رنګې قميصونه اغوستې دی او د راتلو په وخت کښې هغه دواړه ماشومان په تلو تلو کښې به راغورزيدل او پورته کيدل کله چه حضور ﷺ دا کيفيت اوليدلو نو خطبه ئې اودروله د منبر نه راښکته شو او هغوی دواړه ئې پورته کړل او ځان سره ئې په منبر باندې کينول د دېنه پس حضور ﷺ بيا خطبه شروع کړله.

د دې حديث نه د ترجمة الباب ثبوت کيږی چه د عارض د وجه نه خطيب خطبه منقطع کولې شی دغه شان دا هم معلومه شوه چه کلام في الخطبه جائز دی د دې مستقل باب هم تير شوې دې هلته دا تير شوې دی چه د خطيب کلام اګر که د امر بالمعروف د قبيلې نه وی يا د څه ضرورت يا د مجبورئ د وجه وی نو په اتفاق سره جائز دې ګڼنی بغير د ضرورت نه کلام د حنفيانو په نيز مکروه دې خو په دې سره خطبه نهٔ فاسديږی.

ملا علي قاری رحمه الله په، يعثران و يقومان، باندې ليکی چه د هغوی دواړو بيا بيا غورزيدل د کم عمرئ د وجه نه وو ډير واړهٔ وو، خو حضرت په بذل کښې دا ليکې دی چه داسې نهٔ وه

[1]: سنن الترمذي/المناقب ٣١ (٣٧٧٤)، سنن النسائي/الجمعة ٣٠ (١٤١٤)، والعيدين ٢٧ (١٥٨٦)، سنن ابن ماجه/اللباس ٢٠ (٣٦٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٩٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٤/٥) (صحيح)

ځکه چه دغه وخت د هغوی عمر بظاهر د څلور کالو او دریو کالو وو ځکه چه د حسن رضي الله عنه پیدائش په دریم کال د هجرت کښې په رمضان کښې دې او دحسین رضي الله عنه په څلورم کال د هجرت کښې په شعبان کښې او د منبر بناء په اتم یا أووم کال د هجرت کښې ده او د دریو څلورو کالو ماشوم دومره وړوکې او کمزورې نهٔ وی چه بیا بیا دې غورزیږی بلکه ظاهر داده چه ددوئ بیا بیا غورزیدل د قمیص د اوږدوالی د وجه نه وو هغوی به په خپل قمیص کښې په انختلو انختلو سره غورزیدل.

زهٔ وایم چه د حضرت رحمه الله د رائې تائید د بعضې روایاتو د الفاظو نه هم کیږی چنانچه د نسائی،ص،۲۰۹، د روایت الفاظ دی چه، يعثران في قميصهما.

**قوله**: ثم قال صدق الله انما اموالكم و اولادكم فتنة، او د ابن ماجه په روایت کښې د رسوله زیادت دې، صدق الله و رسوله، اوس خو دا یا به د راوی وهم ګرځولې شی یا دې د دې مناسب تاویل اوکړې شی.(۱)

## باب الاحتباء والإمام يخطب

**باب دی په بیان د احتباء په داسې حال کښې چې امام خطبه وایي**

یعنی د اوریدونکو د خطبې په وخت کښې په پرلتئ وهلو سره کیناستل، په دې باب کښې مصنف دوه حدیثونه ذکر کړې دی ړومبې د ممانعت او دویم د جواز.

[۱۱۱۰](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ،حَدَّثَنَا الْمُقْرِئُ،حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ،عَنْ أَبِي مَرْحُومٍ،عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ،عَنْ أَبِيهِ،أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الْحُبْوَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ".

د سهل بن معاذ بن انس نه روایت دی هغه روایت کوي دخپل پلار نه، ببشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع کړې ده د احتباء نه په ورځ د جمعه کښې په داسې حال کښې چې خطبه وایي.

تشریح: علماؤ د منع دا حکمت لیکلې دې چه د ناستې دا هیئت او شکل د خوب راوستونکې دې ځکه چه په داسې ناستې سره آرام زیات ملا ویږی نو ځکه د خوب د راتلو ویره وه، خو جمهور او ائمه اربعه ټول د دې د جواز قائل دی.

**د جمهورو د طرف نه د حدیث جواب:**

دا دې چه ضعیف دې ابو مرحوم د چا نوم چه عبد الرحیم بن میمون دې هغه راوی ضعیف دې او په بل حدیث کښې دی چه، عن يعلى بن شداد قال شهدت مع معاوية بيت المقدس.. الخ،

یعلی بن شداد وائی چه زهٔ یو ځل د حضرت معاویه رضي الله عنه سره په بیت المقدس ته لاړم هغوی د جمعې مونځ ورکړو نو چه کله زهٔ هلته اورسیدم نو ما اوکتل چه اکثر صحابه کرام کوم چه په جومات کښې موجود وو هغوی د امام د خطبې په وخت کښې د حبوه یعنی د پرلتئ وهلو په حالت کښې ناست وو.

(۱) مثلا داسې دې اووئیلې شی چه تقدیر د عبارت دا دې، صدق الله و صدق رسوله، يعنى الله ربښتیا وئیلی چه د هغې تصدیق رسول الله کوی او دا هم وئیلې شی چه اګر که قول خو د الله دې خو امت ته خو په د واسطه رسول الله رارسیدلې دی د دې حیثیت نه دې لره زیات کړې شو.

(۲): سنن الترمذي/الصلاة ۲۵۳ (الجمعة ۱۸) (۵۱٤)،(تحفة الأشراف: ۱۱۲۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۹/۳) (حسن)

[۱۱۱۱]()حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ حَيَّانَ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزِّبْرِقَانِ، عَنْ يَعْلَى بْنِ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: "شَهِدْتُ مَعَ مُعَاوِيَةَ بَيْتَ الْمَقْدِسِ فَجَمَّعَ بِنَا فَنَظَرْتُ، فَإِذَا جُلُّ مَنْ فِي الْمَسْجِدِ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَأَيْتُهُمْ مُحْتَبِينَ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَحْتَبِي وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، وَأَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، وَشُرَيْحٌ، وَصَعْصَعَةُ بْنُ صُوحَانَ، وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ، وَإِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ، وَمَكْحُولٌ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ سَعْدٍ، وَنُعَيْمُ بْنُ سَلَامَةَ، قَالَ: لَا بَأْسَ بِهَا. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ يَبْلُغْنِي أَنَّ أَحَدًا كَرِهَهَا إِلَّا عُبَادَةَ بْنَ نُسَيٍّ.

د يعلى بن شداد نه روايت دى هغه وايي: زه حاضر شوم د معاوية سره بيت المقدس ته نو هغه مونږ ته جُمعه وکړه، نو وکتل نو ډير د هغه کسانو نه چې په مسجد کې وو د رسول الله ﷺ صحابه وو، ما وليدل چې احتباء يې کړې وه او امام خطبه ويله. ويلي دي ابوداود: وو ابن عمر احتباء يې کوله او امام به خطبه ويله همدارنګه انس بن مالک او شريح او صعصعة بن صُوحانُ، او سعيد بن المسيب او ابراهيم النخعي او مکحول او اسماعيل بن محمد بن سعد او نُعيم بن سلامة، هغوی ويلي دي: هيڅ پروا نه کوي. ويلي دي ابوداود: ماته خبر نه دی رسيدلی چې دا چا مکروه ګڼلې وي سوا د عبادة بن نُسي نه.

تشريح: دا دويم حديث د جمهورو دليل کيدې شي، امام طحاوی رحمه الله د منع روايت په حبوه مستانفه باندې محمول کړې دې يعنی سړې عين د خطبې په مينځ کښې خپل نشست بدل کړې او پرلتئ اووهي، ځکه چه بظاهر د خطبې اودريدو او توجه الی الامام کښې دا مخل دې يعنی خلل اچونکې دې، او د جواز روايت په حبوه سابقه باندې محمول دې يعنی د خطبې د شروع کيدو نه وړاندې هم داسې ناست وی، او يو جواب وړاندې راغلې دې چه د منع روايت ضعيف دې.

قال ابوداؤ و لم يبلغنى ان احدًا كرهها الا عبادة بن نسيّ، او امام ترمذی رحمه الله په جامع ترمذی کښې فرمائی، و قد كره قوم من اهل العلم الحبوة يوم الجمعة والامام يخطب، په بذل کښې ليکلې دی چه مکحول شامی او عطاء او حسن بصری د دې دريواړو نه هم يو قول د کراهيت منقول دې.

## بَابُ الْكَلَامِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ

### باب دی په بيان د خبرو کې او امام خطبه وايي

### مذاهب ائمه:

د جمعې د خطبې په وخت کښې خبرې کول د جمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه په نيز حرام دی او د شوافعو په دې کښې دوه قوله دی يو پشان د جمهورو، او دويم قول د عدم حرمت د کلام دې دا د دوئ قول جديد دې او هم د دې قائل دی سفيان ثوری او داؤد ظاهری، او دا انصات يعنی چپوالې صرف مستحب دې، دغه شان حرمت کلام عند الجمهور د خطبې په شروع باندې دې هم دا رائې د صاحبينو ده او د امام ابوحنيفه ره په نيز باندې د کلام حرمت

(): تفرد به أبو داود (ضعيف)

د امام په خروج او د هغهٔ منبر ته په رسیدلو باندې کیږی، د امام صاحب استدلال په هغهٔ روایت مرفوعه سره دې ، اذا خرج الامام فلا صلوة و لا کلام، خو ابن همام فرمائی چه د دې حدیث رفع غریب ده معروف دا ده چه دا د زهری کلام دې کوم لره چه امام مالك رحمه الله په مؤطا کښې ذکر کړې دې چه دهغې الفاظ دا دی ، خروجه یقطع الصلوة و کلامه یقطع الکلام، او هم دې لره صاحبینو اختیار کړې دې یعنې د مونځ کراهیت په نفس خروج د امام باندې او د کلام حرمت په ابتداء د خطبې د شروع کیدو باندې دې، په منهل کښې لیکلي دی چه دا د هغهٔ سړی په حق کښې دی کوم چه خطبه اوری که په جومات کښې وی یا د جومات نه بهر وی، او کوم سړې ته چه د خطبې آواز نهٔ رسی د لرې کیدو د وجه نه نو د جمهورو په نیز خو د دهٔ هم دا حکم دې یعنې د کلام حرمت، خو امام احمد او ابراهیم نخعی رحمهما الله فرمائی چه، لا یحرم فی حقه،

[۱۱۱۲]([1])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قُلْتَ أَنْصِتْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ".

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی بیشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي: کله چې ته وویله چوپ شه او امام خطبه ویله نو تا لغوه وکړه.

**تشریح: قوله**: اذا قلت انصت والامام یخطب فقد لغوت، دا حدیث مشهور دې په صحاح سته کښې موجود دې. لغو وائی هغهٔ کلام ته چه دهغې څهٔ فائده نهٔ وی، وقیل الاثم وقیل المیل عن الصواب (د سمې لارې نه لرې کیدل) دا حدیث په حرمت دکلام باندې د خطبې په وخت کښې د جمهورو دلیل دې ځکه چه کله دغه وخت کښې امر بالمعروف ممنوع دې نو عامه خبره خو به په طریقه اولی ممنوع وی.

**فائده**: امام بخاری رحمه الله په دې سلسله کښې دوه بابه قائم کړې دی، باب الاستماع الی الخطبة، او دویم باب الانصات یوم الجمعة، انصات وائی یو کلام ته د اوریدلو دپاره چپ پاتې کیدل دا عامه خبره ده که آواز رسی او که نهٔ رسی، کما هو مسلك الجمهور و قد تقدم فیه خلاف احمد و النخعی.

[۱۱۱۳]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو كَامِلٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ، عَنْ حَبِيبٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَحْضُرُ الْجُمُعَةَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ: رَجُلٌ حَضَرَهَا يَلْغُو وَهُوَ حَظُّهُ مِنْهَا، وَرَجُلٌ حَضَرَهَا يَدْعُو فَهُوَ رَجُلٌ دَعَا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ إِنْ شَاءَ أَعْطَاهُ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُ، وَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِإِنْصَاتٍ وَسُكُوتٍ وَلَمْ يَتَخَطَّ رَقَبَةَ مُسْلِمٍ وَلَمْ يُؤْذِ أَحَدًا فَهِيَ كَفَّارَةٌ إِلَى الْجُمُعَةِ الَّتِي تَلِيهَا وَزِيَادَةِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ، وَذَلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يَقُولُ: مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا سورة الأنعام آية ١٦٠".

[1]: سنن النسائي/الجمعة ٢٢ (١٤٠٢، ١٤٠٣)، والعيدين ٢١ (١٥٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٤٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ٣٦ (٩٣٤)، صحيح مسلم/الجمعة ٣ (٨٥١)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٥١ (الجمعة ١٦) (٥١٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٨٦ (١١١٠)، موطا امام مالك/الجمعة ٢ (٦)، مسند احمد (٢/٢٤٤، ٢٧٢، ٢٨٠، ٣٩٣، ٣٩٦، ٤٨٥، ٥١٨، ٥٣٢)، سنن الدارمي/الصلاة ١٩٥ (١٥٨٩) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٨١، ٢١٤) (حسن)

د عبد الله بن عمرو نه روایت دی هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه، هغه ویلي دي: جمعې ته دري قسمه خلق راځي: یو سړی دی چې ورته حاضر شي او لغوه وکړي دا د هغه نصیب شو، او یو سړی حاضر شو چې دعاء کوي نو دا داسې سړی دی چې الله پاک لره رابللي که د هغه خوښه شوه وربه یې کړي او که د هغه خوښه شوه نو نه به یې ورکوي، او یو سړی دی حاضر شو ورته په چوپ والي سره، او خپه نه ړدي په څټ د مسلمان، او هېڅ ته ضرر نه رسوي نو دا کفاره شوه د راتلونکي جمعي پورې، او زیاتي درې ورځې، او دا د دې وجې نه چې الله فرمایي: (چا چې راتلل وکړل په یوې نیکۍ سره نو د هغه بدل لس چنده ده).

**قوله**: عن النبی صلی الله علیه وسلم قال یحضر الجمعة ثلثة نفر..الخ.

### مضمون حدیث:

دا دې چه د جمعې په مانځه کښې شرکت کونکی دري قسمه سړی دی:

۱. هغهٔ خلق کوم چه د خطبې په وخت کښې څهٔ عبث فعل یا خبرې اترې کوی د داسې خلقو حکم دا دې چه د داسې خلقو په برخه کښې هم هغه لغوه څیز راځی د جمعې ثواب او د دې فضیلت د دوئ په حق کښې هیڅ نشته دې.

۲. کوم سړې چه د خطبې په وخت کښې کلام یا عبث فعل خو څهٔ نهٔ کوی خو د خطبې اوریدو په ځائې باندې په دعاء غوښتلو کښې مشغول شی نو د دهٔ په حق کښې هم یقینی فائده نشته دې، الله تعالی لره اختیار دې چه دهٔ لره ورکوی او که نهٔ ورکوی.

۳. کوم خلق چه د بغیر د تخطئ رقاب (یعنی د خلقو په سټونو باندې اوړیدل) او بغیر د څه ایذاء ورکولونه په خاموشئ سره په جومات کښې کینی نو دداسې خلقودپاره دجمعې مونځ د دې جمعې نه تر راتلونکي جمعې پورې کفاره د سیئات وی او درې ورځې زیاتی.

## بَابُ اسْتِئْذَانِ الْمُحْدِثِ الإِمَامَ

### باب دی په بیان د اجازت غوښتلو کې د بې اودسه د امام نه

یعنی که یو مقتدی ته په مانځه کښې حدث یعنی بې اودسی راپیښه شی نو هغهٔ به اوس د جومات نه د وتلو دپاره د امام نه څنګه اجازت غواړی ځکه چه امام خو په مانځه کښې مشغول دې.

### د ترجمة الباب غرض:

په اصل کښې د دې ترجمې قائمولو مقصد دا دې چه په کلام پاک کښې دی ، و اذا کانوا معه علی امر جامع لم یذهبوا حتی یستاذنوه، یعنی صحابه کرام به د حضور ﷺ دمجلس نه بغیر د اجازت غوښتلو نه نهٔ تلل، د دینه معلومه شوه چه سړی لره پکار دی چه په مجلس کښې بغیر د مجلس د صدر د اجازت نه پورته نهٔ شی، لهذا مقتدی لره هم پکار دی چه د امام د استیذان نه بغیر د جومات نه لاړ نهٔ شی، نو د مصنف غرض بظاهر دې ترجمې سره د ترک استیذان د رخصت بیانول دی چه هغه وخت کښې استیذان ساقط دې کله چه امام په مانځه کښې دمشغول کیدو د وجه نه یا داسې اووایئ چه غرض د استیذان کیفیت لره بیانول دی او هغه کیفیت دا دې کوم چه د ترجمة الباب نه معلومیږی، فلیاخذ بانفه ثم لینصرف، یعنی

خپله پوزه دې په لاس سره اونيسي، په پوزه نيولو کښې ګويا په ظاهر کښې عذر دې چه د څه عذر د وجه څم.

[۱۱۱٤]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَحْدَثَ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَأْخُذْ بِأَنْفِهِ ثُمَّ لِيَنْصَرِفْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَأَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يَذْكُرَا عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

عائشې ﷞ ويلي دي. ويلي دي نبي ﷺ: کله چې يو سړی بې اودسه شي ستاسو نه نو ودې نيسي خپله پوزه بيا دې لاړ شي. ويلي دي ابوداود: حماد بن سلمة او ابو اسامة روايت کړی دی د هشام نه او هغه د خپل پلار نه او هغه د نبي ﷺ نه. دواړو عائشه ﷞ نه ده ذکر کړې.

**تشريح: قوله**: اخذ انف کښې بظاهره اشاره ده رعاف طرف ته خو چونکه په دې کښې تصريح نشته نو ځکه دې ته تکذيب نۀ شی وئيلې بلکه دا دستر العورة او اخفاء القبيح د قبيلې نه دې يعنی د خپل يوعيب يا نقص پرده پوشی کول. خپل يو نقص د خلقو د وړاندې ظاهر کول بغير د څه ضرورت يا مصلحت نه مناسب نۀ ده، او دغه شان کولو کښې د خلقو نه سلامتيا ده ګينې خلق به ور پورې توقې کوی يا به په غيبت کښې اخته شی، نو داسې کول دخپل ځان په لحاظ سره غوره دی او د نورو په لحاظ سره هم.

**قوله**: قال ابوداؤد و رواه حماد بن سلمة، الخ، تير شوې روايت د ابن جريج وو کوم چه هغوی د هشام نه روايت کړې وو، مصنف فرمائی چه حماد او ابوسلمه دې حديث لره د هشام نه روايت کړو نو د سند په آخر کښې د عروه نه پس ئې عائشه نۀ ده ذکر کړې لهذا روايت مرسل شو نو وينا دا کول دی چه دې حديث لره بعضې راويانو مسنداً او بعضو مرسلاً نقل کړې دې.

## بَاب إِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ

**باب دی، کله چې سړی داخل شي او امام خطبه وايي**

يعنی که يوسړې جومات ته په داسې وخت کښې داخل شی چه د جمعې خطبه شروع وی نو دغه وخت کښې تحية المسجد کول پکار دی او که نۀ؟ امام شافعي او احمد د دې قائل دی حنفيه مالکيه د دې منکر دی، په دې باب کښې مصنف ﷫ صرف هم يو حديث ذکر کړې دی يعنی د سُليك غطفانی قصه په ګڼرو طرقو (سندونو) سره.

[۱۱۱٥]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَمْرٍو وَهُوَ ابْنُ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ رَجُلًا جَاءَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ، فَقَالَ: "أَصَلَّيْتَ يَا فُلَانُ؟" قَالَ: لَا، قَالَ: "قُمْ فَارْكَعْ".

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۰٤۳)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۳۸ (۱۲۲۲) (صحيح)

[2]): صحيح البخاري/التهجد ۲۵ (۱۱٦٦)، والجمعة ۳۲ (۹۳۰)، ۳۳ (۹۳۱)، صحيح مسلم/الجمعة ۱٤ (۸۷۵)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۵۰ (الجمعة ۱۵) (۵۱۰)، سنن النسائي/الجمعة ۱٦ (۱۳۹٦)، (تحفة الأشراف: ۲۵۱۱)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۸۷ (۱۱۱۳)، مسند احمد (۲۹۷/۳، ۳۰۸، ۳٦۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۹٦ (۱٤۰٦) (صحيح)

د جابر رضی الله عنه نه روایت دی، بېشکه یو سړی راغی د جمعې په ورځ او نبی ﷺ خطبه ویله، ویې فرمایل ایا مونځ دې وکړو ای فلانی؟ هغه وویل نه، هغه وفرمایل پاځه مونځ وکړه.
قوله، عن جابر رضی الله عنه ان رجلاً جاء یوم الجمعة والنبی صلی الله علیه وسلم یخطب فقال اصلیت یا فلان قال لا قال قم فارکع، د دې سړی نوم سُلیك غطفانی دې لکه څنګه چه په دویم او دریم حدیث کښې د دې تصریح ده او هم دا نوم دبخاری او مسلم په روایت کښې هم دې ددوئ په نسب کښې اختلاف دې، قیل سُلیك بن هُدبة و قیل سُلیك ابن عمرو، خو د طبرانی په یو روایت کښې دسلیك په ځائې باندې نعمان بن فوقل راغلې دې، دعلامه عینی رحمه الله رائې خو د تعدد واقعې دې او د حافظ میلان عدم تعدد طرف ته دې هغه وائی چه صحیح هم سُلیك دې شافعیه او حنابله دې حدیث سره استدلال کوی.

## د حدیث جوابات:

نورو حضراتو د دې ګڼړ جوابونه ورکړې دی:
۱. د دار قطنی د روایت نه معلومیږی چه حضور ﷺ دې سړی دپاره خطبه اودروله او ولاړ وو، و انصتَ عن الخطبة،
۲. دا واقعه د خطبې شروع کیدو نه وړاندې پېښه شوې وه چنانچه امام نسائی په سنن کبری کښې باب قائم کړې دې، باب الصلوة قبل الخطبة،
۳. د نسخ الکلام فی الصلوة نه د وړاندې واقعه ده ځکه چه خطبه په حکم د صلوة کښې ده بیا چه کله دخطبې په مینځ کښې امربالمعروف ونهی عن المنکر ممنوع شو کوم چه فرض کار دې نو تحیة المسجد کوم چه نفل دی په طریقه اولی سره منسوخ شو، قال الطحاوی و ابن العربی،
۴. دا د ذکر شوې سړی خصوصیت دې ځکه چه په روایاتو کښې راځی چه، کان ذا بذاذةٍ، چه دا سړې ډیرخراب حال، غریب او فقیر وو، په یو روایت کښې دی چه، و کان عریاناً، نو حضور ﷺ خلقو لره دهٔ باندې صدقه کولو دپاره د خطبې په مینځ کښې دهٔ ته د مونځ کولو حکم اوکړو چه خلق د دهٔ بدحالئ باندې خبردار شی او د دهٔ اعانت او امداد اوکړی او خلقو د دهٔ امداد اوکړو په کپړو وغیره ورکولو سره کما فی روایة فالقوا ثیاباً،
۵. دا سړې صاحب تربیت وو او غالباً د صبا مونځ دهٔ نهٔ وو کړې نو ځکه حضور ﷺ دهٔ ته اولاً د قضاء مونځ کولو حکم اوفرمائیلو، چنانچه د دې تائید د بعضې الفاظو د روایت نه کیږی، لکه، اصلیت یا فلان، ځکه که د تحیة المسجد سره د دې حدیث تعلق وې نو بیا د حضور ﷺ د سوال حاجت نهٔ وو ځکه چه هغهٔ سړې د دوئ په وړاندې جومات ته داخل شوې وو او د هغهٔ تحیة المسجد نهٔ کول ظاهر وو،
۶. دا حدیث خبر واحد دې چه د احادیث صحیحه او نص قطعی نه خلاف دې، قال الله تعالٰی، واذا قرئ القرآن فاستمعوا له، الایة، نو دغه وخت کښې مونځ کول د خطبې د استماع یعنی اوریدلو نه خلاف دې لهذا په دې حدیث باندې به عمل نهٔ کولې کیږی،
**اشکال:** خو یو اشکال باقی پاتې شو هغه دا چه حضور ﷺ خو قاعده کلیه بیانوی، اذا جاء

احدکم یوم الجمعة والامام یخطب فلیصل رکعتین.

(جواب): د دې جواب دا کیدې شي چه دا حدیث مبیح دې او نور احادیث مُحَرِّم دی او قاعده ده چه دمحرم او د مبیح په مینځ کښې د تعارض په وخت کښې محرِم لره ترجیح ورکولې شي، والله تعالى اعلم

[۱۱۱۶]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، وَعَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَا: جَاءَ سُلَيْكٌ الْغَطَفَانِيُّ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ، فَقَالَ لَهُ: "أَصَلَّيْتَ شَيْئًا؟" قَالَ: لَا، قَالَ: "صَلِّ رَكْعَتَيْنِ تَجَوَّزْ فِيهِمَا".

جابر او ابو صالح دواړه د ابوهریره نه روایت کوي، دواړو ویلې دي راغی سلیک الغطفاني او رسول الله ﷺ خطبه ویله، هغه ورته وفرمایل څه مونځ دې وکړو؟ هغه وویل نه، هغه ورته وفرمایل: دوه رکعاته مونځ وکړه او سپکوالی پکې وکړه.

[۱۱۱۷]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ الْوَلِيدِ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ طَلْحَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ يُحَدِّثُ، أَنَّ سُلَيْكًا جَاءَ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، زَادَ: ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، قَالَ: "إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَلْيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ يَتَجَوَّزْ فِيهِمَا".

د جابر بن عبد الله نه روایت دی چې حدیث یې بیانوه، بیشکه سلیک راغی، ذکر یې کړه پشان دهغه حدیث زیادت یې پکې وکړو: بیا مخامخ شو خلقوته ویې فرمایل کله چې یو تاسونه راشي اوامام خطبه کوي دواړه رکعاته مونځ دې وکړي اواختصاردې پکې وکړي

## بَابُ تَخَطِّي رِقَابِ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

### باب دی په بیان د خپو کښخودو کې دی د خلقو په څټونو د جمعې په ورځ

[۱۱۱۸]()حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي الزَّاهِرِيَّةِ، قَالَ: كُنَّا مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَجَاءَ رَجُلٌ يَتَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُسْرٍ: جَاءَ رَجُلٌ يَتَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اجْلِسْ فَقَدْ آذَيْتَ".

د ابو الزاهریه نه روایت دی، هغه ویلې دي وو مونږ د عبد الله بن بسر سره چې صحابي د رسول الله ﷺ دی د جمعې په ورځ، نو راغی یو سړی چې تیریدلو په څټونو د خلقو، وویل عبد الله بن بسر: راغی سړی تیریدلو په څټونو د خلقو د جمعې په ورځ او د رسول الله ﷺ خطبه ویله، هغه ته نبي ﷺ وویل کښېنه تا تکلیف ورکړو

تشریح: یعنی که یو سړې د جومات د وړاندې او اول صف فضیلت حاصلولو دپاره د جمعې په ورځ د خلقو په ستونو باندې واوړی او وړاندې لاړ شي نو د دې د ممانعت بیان، د رومبی صف د فضیلت حاصلولو دا طریقه غلطه ده چه د خلقو په ستونو باندې واوړی او

[1]: صحيح مسلم/الجمعة ١٤ (٨٧٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٨٧ (١١١٤)، (تحفة الأشراف: ٢٢٩٤، ١٢٣٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٦/٣) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٣٣٩)، مسند احمد (٢٩٧/٣) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/الجمعة ٢٠ (١٤٠٠)، (تحفة الأشراف: ٥١٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٨/٤، ١٩٠) (صحيح)

وړاندې لاړ شي بلکه د دې صحيح طريقه تبكير الى الجمعة يعنى جمعې ته مخکښې راتلل دی چه دهغې فضيلت په احاديثو کښې راغلې دې، يعنی په اول وخت کښې جومات ته اورسی او دا فضيلت حاصل کړی نۀ دا چه په تاخير سره راشی او د تخطئ رقاب يعنی د خلقو په ستونو باندې واوړی او وړاندې صف ته د رسيدلو کوشش کوی، په اصل کښې تخطئ رقاب د اکرام مسلم خلاف ده بلکه په دې کښې ايذاء د مسلمان ده کومه چه حرامه ده که د جمعې ورځ وی يا د غير جمعې ورځ، خو چونکه د دې نوبت عموما د جمعې په ورځ راځی د خلقو د ډير والی د وجه نه نو ځکه د دې قيد لګوی، امام نووی رحمه الله فرمائی د دې د حرمت تصريح کړې ده او نورو حضراتو مکروه ليکلې دی، د بعضو نه په دې کښې تشديد منقول دې د کعب احبارنه منقول دی هغۀ فرمائی، لان ادع الجمعة احبّ الى من ان اتخطى الرقاب.

## تخطی رقاب کله جائز دې؟

خو په دې کښې څۀ مستثنيات دی، چنانچه بعضې علماؤ امام لره د دې نه مستثنی کړې دې يعنی د دۀ په حق کښې جائز دې اګر که دۀ لره هم پکاردی چه په احتياط سره وړاندې لاړ شی هم داسې که په وړاندې صف کښې خالی ځائې پاتې وی نو د هغې ډکولو دپاره د تخطئ رقاب اجازت دې، هم داسې په دې مسئله کښې بعضې علماؤ د هغه سړی هم استثناء کړې ده چه د کوم سړی تيريدل دا خلق موجب د برکت ګڼړی مثلا، پير و مرشد يا يو بزرګ، دغه شان فقهاؤ قبل خروج الامام او هم داسې دعدم ايذاء په صورت کښې دتخطی رقاب ګنجائش ليکلې دې، او د عدم ايذاء صورت دا دې چه د چا جامې يا لاس پښه وغيره پائمال نۀ کړې شی.

## سخت وعيد:

په يو روايت مرفوعه کښې د کوم تخريج چه امام ترمذی او ابن ماجه کړې دې تخطی رقاب باندې سخت وعيد راغلې دې، من تخطی رقاب الناس يوم الجمعة اتخذ جسرًا الی جهنم، کوم سړې چه د جمعې په ورځ تخطی رقاب اوکړی نو هغۀ لره به د جهنميانو دپاره جهنم ته د تللو دپاره پل جوړ کړې شی يعنی هغوی به دۀ لره د پښو لاندې پائمال کونکی لاړ شی، دا مطلب په هغۀ صورت کښې دې کله چه، اُتخذ. لره فعول مجهول اولوستلې شی، بعضې علماء وائی چه دا ډيره سخته ده، صحيح دا ده چه دا د معروف صيغه ده په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه دۀ خان ته جهنم ته د تللو دپاره لاره هواره کړه.

## بَابُ الرَّجُلِ يَنْعَسُ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ

### باب دی په بيان د سړي کې چې خوب ورشي او امام د خطبې په حالت کې وي

[۱۱۱۹]([1]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدَةَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَلْيَتَحَوَّلْ مِنْ مَجْلِسِهِ ذَلِكَ إِلَى غَيْرِهِ".

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ٢٦٢ (الجمعة ٢٧) (٥٢٦)، (تحفة الأشراف: ٨٤٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢/٢، ٣٢، ١٣٥) (صحيح)

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي ما اوریدلي دي د رسول الله ﷺ نه هغه به ویل کله چې خوب ورشي یو سړي ته یو کس ستاسو نه او هغه په جماعت کې وي نو لاړ دي شي د خپل ځای نه بل ځای ته.

قوله، اذا نعس احدکم و هم فی المسجد فلیتحول من مجلسه ذالك الى غيره، د ترمذی په روایت کښې د يوم الجمعة زیادت دي، اذا نعس احدکم يوم الجمعة.

د حدیث مطلب خو ظاهر دې چه کوم سړې د جمعې په ورځ جومات کښې په یو ځائې باندې کینې که دهٔ لره په هغهٔ ځائې کښې په ناسته ناسته باندې نعاس (پرکالی) راشي نو دهٔ لره پکار دی چه د هغهٔ ځائې نه پاسی او خپل ځائې بدل کړی چه په دې نقل و حرکت او د ځائې بدلولو سره د دهٔ خوب لاړ شی، د حدیث په مضمون باندې هیڅ اشکال نشته

## د مصنف په ترجمه باندې اشکال

خو مصنف رحمه الله چه په دې کښې په خپل اجتهاد سره چه کوم عموم پیدا کړې دې که خطبه شروع وی نو بیا هم پاسیدل پکار دی دا موجب د اشکال دې ځکه چه د خطبې په وخت کښې انصات یعنی چپوالی او استماع یعنی اوریدلو نه علاوه د په بل څیز کښې اخته کیدل ممنوع دی تر دې چه د احتباء هم ممانعت دې لکه څنګه چه وړاندې ذکر شوې دی امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث په حبوه مستأنفه باندې محمول دې، نو چه هر کله د اړخ بدلولو ممانعت دې نو د ځائې بدلولو به څنګه ګنجائش کیدې شی خو مصنف رحمه الله چونکه دې لره جائز ګنړی لهذا دا به اووئیلې شی چه دا د دوئ خپل مسلك دې

## بَابُ الإِمَامِ يَتَكَلَّمُ بَعْدَ مَا يَنْزِلُ مِنَ الْمِنْبَرِ

### باب دې په بیان د هغې کې چې امام خبرې کوې پس د راخکته کیدلو د منبر نه

د امام صاحب رحمه الله په نیز باندې د خروج امام یعنی د امام منبر ته د رسیدو نه واخله تر فراغ عن الصلوة پورې خبرې اترې کول مکروه دی او د صاحبینو په نیز باندې د خطبه شروع کیدو نه د هغې د ختمیدو پورې خبرې کول مکروه دی لهذا د دوئ په نیز باندې د امام د منبر نه راکوزیدو نه پس خبرې جائز دی خو دا دې هم واضحه وی چه دا د مقتدی په حق کښې دی، او خپله د امام په حق کښې خو ظاهره دا ده چه جائز دی او د دې ترجمې تعلق هم د امام سره دې او د دې نه وړاندې، باب الامام یتکلم الرجل فی خطبته، تیر شوې دې هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی.

[۱۱۲۰] (۱) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ جَرِيرٍ هُوَ ابْنُ حَازِمٍ، لَا أَدْرِي كَيْفَ قَالَهُ مُسْلِمٌ أَوْ لَا، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَنْزِلُ مِنَ الْمِنْبَرِ فَيَعْرِضُ لَهُ الرَّجُلُ فِي الْحَاجَةِ، فَيَقُومُ مَعَهُ حَتَّى يَقْضِيَ حَاجَتَهُ، ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي". قَالَ أَبُو دَاوُد: الْحَدِيثُ لَيْسَ بِمَعْرُوفٍ عَنْ ثَابِتٍ هُوَ مِمَّا تَفَرَّدَ بِهِ جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ.

د انس رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي ما ولیدلو رسول الله ﷺ چې راخکته شو د منبر نه نو سړی به ورته راغی د حاجت دپاره، نو د هغه سره به ودریدلو تردې چې حاجت یې پوره

(۱): سنن الترمذي/الصلاة ۲۵۶ (الجمعة ۲۱) (۵۱۷)، سنن النسائي/الجمعة ۳۶ (۱۴۲۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۸۹ (۱۱۱۷)، (تحفة الأشراف: ۲۶۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۱۹، ۱۲۷) (ضعيف) (والصحيح هو الحديث رقم: ۲۰۱)

شي، بيا به پاڅېدلو او مونځ به يې کولو. ويلي دي ابوداود: دا حديث د ثابت نه معروف نه دی دا هغه دی چې جرير وربانديې تفرد کړی دی د حازم نه.

**مضمون حديث:**

حضرت انس ﷜ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ اوليدلو چه بعضې وختونو کښې به داسې کېدل چه کله به حضور ﷺ د منبر نه راکوز شول نو کوم صاحب د حاجت به د خپل حاجت په سلسله کښې حضور ﷺ سره خبرې کول غوغتل نو حضور ﷺ په هغوی سره خبرې کولې د دېنه پس به ئې مونځ کولو خو مصنف ﷫ په دې حديث باندې په خپله اشکال کړې دې چنانچه فرمائی، قال ابوداؤد والحديث ليس بمعروف عن ثابت، مصنف ﷫ فرمائی چه دا حديث منکر او شاذ دې جرير بن حازم په دې سره متفرد دې د دهٔ نه علاوه بل چا دې لره د ثابت نه نهٔ دې روايت کړې، امام ترمذی هم د دې حديث به حقله دا فرمائيلي دی چه دا وهم دې بلکه صحيح ده چه کومه خبره په حديث کښې مذکور ده يعنی ديو صاحب حاجت د حضور ﷺ سره خبرې کول دا د جمعې د مونځ او د خطبې قصه نهٔ ده بلکه دا واقعه د ماسخوتن د مانځه د وخت ده د يو وارې خبره ده چه د ماسخوتن د مانځه دپاره اقامت شوې وو او مونځ شروع کېدونکې وو چه يو صاحب حاجت حضور ﷺ ته نزدې شواو د حضور ﷺ سره په خبرو شو.

## بَابُ مَنْ أَدْرَكَ مِنَ الْجُمُعَةِ رَكْعَةً

**باب دی په بيان د هغه چا کې چې د جمعې نه يې يو رکعات بيامو ندلو**

[۱۱۲۱]( )حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الصَّلَاةِ فَقَدْ أَدْرَكَ الصَّلَاةَ".

د ابو هريره ﷜ نه روايت دی هغه ويلي دي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: چا چې د مانځه نه يو رکعات بيامو ندلو نو هغه مونځ بيامو ندلو.

قوله، قال رسول الله صلی الله عليه وسلم من ادرك رکعة من الصلوة فقد ادرك الصلوة، د حديث دوه مطلبه کېدې شی.۱ کوم سړې چه د هر مونځ په اندازه د يو رکعت وخت اومومی نو د دهٔ په ذمه باندې هغه مونځ واجب شو لکه چه يوسړې د يومونځ په بالکل اخری وخت کښې په اسلام کښې داخل شو يا حائضه د خپل حيض نه پاکه شوه.۲ د دېنه د جماعت افضيلت مراد دې چه چا يو رکعت د جماعت سره اوموندلو نو دهٔ ته فی الجمله د جماعت فضيلت حاصل شو، دې حديث کښې اگر که د جمعې څه ذکر نشته دې خو صلوة د خپل عموم په بناء باندې جمعې ته هم شامل دې.

**د جمعې په مانځه کښې د مسبوق کېدونکی حکم:**

دلته يوه مسئله بله اختلافی ده هغه هم د دې حديث نه مستنبط کېږی هغه دا که څوك د جمعې په مانځه کښې مسبوق شی نو د دهٔ څهٔ حکم دې، طائفة من السلف عطاء، طاؤس او د

( ): صحيح البخاري/المواقيت ۲۹ (۵۸۰)، صحيح مسلم/المساجد ۳۰(۶۰۷)، سنن النسائي/المواقيت ۳۰(۵۵٤)، (تحفة الأشراف: ۱۵۲٤۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/وقوت الصلاة ۳(۱۵)، دي/الصلاة ۲۲(۱۲۵۶، ۱۲۵۷) (صحيح)

مجاهد مسلك دا دې چه د امام سره د دواړو رکعاتونو موندل ضروري دی بلکه د خطبې هم لهذا که د يوسړی نه د جمعې خطبه فوت شوه نو هغهٔ دې اوس د ماسپخين څلور رکعاته اوکړي، او ائمه ثلاثه او امام محمد رحمه الله فرمائي چه د جمعې د صحت دپاره امام سره کم نه کم د يو رکعات موندل ضروري دی که د چا نه د امام سره دواړه رکعاته فوت شی مثلا په التحيات کښې راشی او شامل شی نو د دهٔ د جمعې مونځ فوت شو په دهٔ باندې د ماسپخين بناء کول پکار دی، او شيخين يعنې دامام ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز باندې امام سره د يو رکعات موندل ضروري نهٔ دی بلکه د امام د سلام ګرځولو نه وړاندې که يو سړې تکبير تحريمه اووائی او په مانځه کښې شامل شی نو د دهٔ د جمعې مونځ صحيح دې

د جمهورو استدلال په حديث الباب سره دې دا حديث د سنن اربعه دې او د شيخينو استدلال دشيخينو (بخاری اومسلم) حديث سره دې کوم چه دلته هم په باب السعی الی الصلوة کښې تير شوې دې، ما ادرکتم فصلوا و ما فاتکم فاتموا، چه څومره مونځ د امام سره اومومئ هغه امام سره اوکړئ او کوم چه امام سره اونهٔ موندلې شی هغه پوره کړئ، د دې نه معلومه شوه چه کوم مونځ د امام سره کولو نه فوت شی هم هغهٔ دې اوکړې شی او ظاهره ده چه دلته کوم مونځ د امام سره فوت شوې دې هغه صلوة جمعه دې لهذا مسبوق به هم دې لره کوی.

## بَابُ مَا يُقْرَأُ بِهِ فِي الْجُمُعَةِ

### باب دی په د هغې کې چې په جمعه کې لوستلې شي

[۱۱۲۲] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْرَأُ فِي الْعِيدَيْنِ وَيَوْمِ الْجُمُعَةِ بِ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ، قَالَ: وَرُبَّمَا اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ فَقَرَأَ بِهِمَا".

د نعمان بن بشير نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ وو چې لوستل يې په اخترونو او جمعه کې سبح اسم ربک الاعلی او هل اتاک حديث الغاشية، هغه ويلي دي: او کله به دواړه راجمع شو په يوه ورځ کې نو دواړه به يې لوستل.

[۱۱۲۳] (۲) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ضَمْرَةَ بْنِ سَعِيدٍ الْمَازِنِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، أَنَّ الضَّحَّاكَ بْنَ قَيْسٍ سَأَلَ النُّعْمَانَ بْنَ بَشِيرٍ: مَاذَا كَانَ يَقْرَأُ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى إِثْرِ سُورَةِ الْجُمُعَةِ؟ فَقَالَ: "كَانَ يَقْرَأُ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ.

ضحاک بن قيس د نعمان بن بشير تپوس وکړو چې رسول الله ﷺ به څه شی لوستل د

[1]: صحيح مسلم/الجمعة ١٦ (٨٧٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٦٨ (الجمعة ٣٣) (٥٣٣)، سنن النسائي/الجمعة ٣٩ (١٤٢٥)، والعيدين ٣١ (١٥٩١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩٠ (١١٢٠)، ١٥٧ (١٢٨١)، (تحفة الأشراف: ١١٦١٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجمعة ٩ (١٩)، مسند احمد (٤/٢٧٠، ٢٧١، ٢٧٣، ٢٧٦، ٢٧٧)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٠٣ (١٤٢٥) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الجمعة ١٦ (٨٧٨)، سنن النسائي/الجمعة ٣٩ (١٤٢٤) سنن ابن ماجه/الإقامة ٩٠ (١١١٩)، (تحفة الأشراف: ١١٦٣٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجمعة ٩ (١٩)، مسند احمد (٤/٢٧٠، ٢٧٧)، دي/الصلاة ٢٠٣ (١٦٠٧، ١٦٠٨) (صحيح)

جمعي په ورځ وروسته د سورة الجمعه نه؟ هغه وفرمايل: لوستلو به يي هل اتاک حديث الغاشية (په دويم رکعات کي).

[١١٢٤] [1] حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ أَبِي رَافِعٍ، قَالَ: صَلَّى بِنَا أَبُو هُرَيْرَةَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَقَرَأَ بِسُورَةِ الْجُمُعَةِ، وَفِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ، قَالَ: فَأَدْرَكْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ حِينَ انْصَرَفَ، فَقُلْتُ لَهُ: إِنَّكَ قَرَأْتَ بِسُورَتَيْنِ كَانَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقْرَأُ بِهِمَا بِالْكُوفَةِ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقْرَأُ بِهِمَا يَوْمَ الْجُمُعَةِ".

ابن ابو رافع ويلي دي مونږ ته ابو هريره مونځ وکړو د جمعي په ورځ نو ويي لوستلو سورة الجمعة او په وروستني رکعات کي اذا جاءک المنافقون، هغه ويل: ما وموندلو ابو هريره کله چي فارغ شو او ورته ومي ويل: تا دوه سورتونه ولوستل علي ﷺ به په کوفه کي لوستل، ابو هريره وويل: بېشکه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي دواړه د جمعي په ورځ.
په دې سلسله کښې مصنف رحمه الله درې حديثونه ذکر کړي دی.

١. د نعمان بن بشير چه حضور ﷺ به د اخترونو او د جمعې په مانځه کښې سورة الاعلى او سورة الغاشيه لوستلو.

٢. دا هم د نعمان بن بشير نه مروی دی چه په ړومبی رکعات کښې به ئې سورة الجمعه او په دويم رکعت کښې به ئې سورة الغاشيه.

٣. د ابوهريره حديث، په ړومبی رکعت کښې به سورة الجمعه او په دويم رکعت کښې به ئې سورة المنافقون، ړومبی او دويم حديث احد الصحيحين يعنی مسلم شريف کښې هم مذکور دی او امام بخاری رحمه الله نه په دې سلسله کښې نه کوم ترجمة الباب قائم کړې او نه ئې کوم حديث ذکر کړې دې د ائمه فقه په دې کښې اختلاف دې.

**مختار ائمه:**

په منهل کښې ليکلي دی چه د امام شافعی او احمد په نيز باندې افضل دا ده چه په ړومبی رکعات کښې سورة الجمعه او په دويم رکعت کښې سورة المنافقون اولوستلې شی، د امام مالك په نيز اولى دا ده چه په ړومبی رکعت کښې سورة الجمعه او په دويم رکعت کښې سورة الغاشيه، حنفيان دا وائی چه امام لره اختيار دې که جمعه وی يا غير جمعه چه کوم سورت غواړی اودې لولی.

د دېنه په ړومبی باب ما يقراء فی صلوة الصبح يوم الجمعة د لاندې په بذل المجهود کښې د حسن بصری قول مصنف ابن ابی شيبه نه دا نقل کړې دې چه، انه يقراء الامام بما شاء، او د نورو بعضې صحابه او علماء نه هم د يو خاص سورت د قصد کراهيت نقل کړې شوې دې لکه عبدالله بن مسعود او سفيان بن عيينه، ابو اسحاق مروزی

بيا پوهيدل پکار دی چه د حنفيانو هغه مذهب نۀ دی کوم چه صاحب منهل او نور شارحين

[1]: صحيح مسلم/الجمعة ١٦ (٨٧٧)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٥٧ (الجمعة ٢٢) (٥١٩)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩٠ (١١١٨)، (تحفة الأشراف: ١٤١٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٩/٢) (صحيح)

ليکې بلکه زمونږ فقهاؤ تصريح کړې ده چه کوم سورتونه په احاديثو کښې منقول دی د هغې په مانځه کښې کله کله لوستل مندوب او مستحب دی.

قوله، عن جعفر عن ابيه، دا جعفر، جعفر صادق دې کوم چه د محمد باقر ځوئې دې، د ځوئې لقب صادق او پلار لقب باقر دې، د اهل بيتو نه دې، سلسله نسب ئې دغه شان دې، جعفر بن محمد بن علی بن حسين بن علی بن ابی طالب، د حضرت حسين رضي الله عنه د ځوئې نوم هم علی دې او لقب ئې زين العابدين دې.

[۱۱۲۵] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْرَأُ فِي صَلَاةِ الْجُمُعَةِ بِ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَهَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ".

د سمرة بن جندب نه روايت دی بېشکه رسول الله ﷺ به لوستلو د جمعې په مونځ سبح اسم ربک الاعلی او هل اتاک حديث الغاشية.

## بَابُ الرَّجُلِ يَأْتَمُّ بِالْإِمَامِ وَبَيْنَهُمَا جِدَارٌ

### باب دی په بيان د سړي کې چې اقتداء کوي د امام پسې او په مينځ د دواړو کې ديوال وي

په مسئلة الباب او حديث الباب باندې پوهيدلو نه وړاندې د جمهورو علماؤ او د حنفيانو فقهی اختلاف ذکر کړئ.

**(اختلاف ائمه)**

هغه دا چه شافعيه وغيره په نيز اختلاف مکان د اقتداء د صحت نه مانع نهٔ دې، مثلا امام په جومات کښې وی او مقتدی د جوماتٔ نه بهر وی يا دا چه امام د سړک يعنی د لارې دې طرف ته وی او مقتدی بل طرف ته او په مينځ کښې لاره حائل وی، يا په مينځ کښې يو نهر حائل وی او مخامخ مقتدی ته امام ښکاری، بلکه د اقتداء د صحت نه مانع د هغوی په نزد حيلولت دې، حيلولت هم هغه کوم چه د امام د حال لره موجب د اشتباه وی نهٔ نفس حيلولت، او د حنفيانو په نيز باندې په دې دواړو کښې هر يو مانع د صحت د اقتداء دې د مکان اختلاف هم او حيلولت هم(²) په کوم سره چه په مقتدی باندې د خپل امام حال مشتبه کيږی يعنی دا نهٔ معلوميږی چه هغهٔ دې وخت کوم رکن ادا کوی اوس د دينه پس تاسو حديث مضمون واورئ.

[۱۱۲۶] (³) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حُجْرَتِهِ وَالنَّاسُ يَأْتَمُّونَ بِهِ مِنْ وَرَاءِ الْحُجْرَةِ".

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي رسول الله ﷺ په خپله کوټه کې مونځ وکړو او خلقو وروسته د حجرې نه اخوا اقتداء کړې وه

---

¹: سنن النسائي/الجمعة ٣٩ (١٤٢٣)، (تحفة الأشراف: ٤٦١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٧، ١٣، ١٤، ١٩) (صحيح)

²) ففي الدر المختار ان كان الطريق نافذا فمانع و الا فلا،، والحائل يمنع الاقتداء ان لم يشتبه حال امامه بسماع او روية و لم يختلف المكان حقيقة و لا حكما،)_

³: صحيح البخاري/الأذان ٨٠ (٧٢٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٠) (صحيح)

عن عائشة رضی الله عنها قالت صلی رسول الله صلی الله علیه وسلم فی حجرته والناس یاتمّون به من وراء الحجرة، یعنی یو ځل حضور ﷺ په خپله حجره کښې مونځ کولو او خلقو دوئ پسې روستو د حجرې نه بهر نیت تړلې وو.

**شرح حدیث بحیث ینحل به المقام:**

د حجرې په مصداق کښې دوه قوله دی، حجره عائشة ﷞ کومه چه د حضور ﷺ او د دوئ مسکن وو یا حجرة الحصیر یعنی د جومات په یو ګوټ کښې بوجۍ اودرولو سره د اعتکاف وغیره په موقع باندې به حضور ﷺ دپاره یوه حجره غوندې جوړلې شوه، پس که دلته په حدیث کښې د حجرې نه حجرة الحصیر مراد دې نو بیا خو هیڅ اشکال نشته دې ځکه چه نهٔ خو دا د اختلاف مکان صورت دې او نهٔ داسې حیلولت کوم چه موجب د اشتباه وی، لهذا حدیث د چا خلاف هم نهٔ دې، او که د حجرې نه مراد حجرهٔ عائشه مراد دې نو په دې صورت کښې ظاهره ده چه اختلاف د مکان اوموندلې شو کوم چه د حنفیانو په نیز باندې مانع عن الاقتداء دې، لهذا حدیث د حنفیانو خلاف شو او د جمهورو خلاف ځکه نهٔ دې چه د دوئ په نیز باندې اختلاف مکان بهر حال مانع عن الاقتداء نهٔ دې البته حیلولت د دوئ په نیز باندې مانع دې او دلته اګر که حیلولت هم موندلې شوې دې خو داسې حیلولت نهٔ دې کوم چه موجب د اشتباه وی ځکه چه د بخاری په روایت کښې دی چه، فرای الناس شخص النبی صلی الله علیه وسلم، نو چه کله مقتدیانو ته حضور ﷺ په نظر راتلو نو اشتباه دحال کوم ځائې اوموندلې شوه، لهذا حنفیانو لره دجواب فکر کول پکار دی.

**(د حدیث الباب رومبې جواب)**

یو جواب خو دا کیدې شی چه ظاهره دا ده چه دلته په حدیث کښې حجرة الحصیر مراد ده ځکه که حجرهٔ عائشه مراد وی نو بیا به دا اشکال وی چه حضور ﷺ صحابه کرامو ته څنګه په نظر راتلو لکه څنګه چه د بخاری په روایت کښې دی، آیا د حجرې شریفې دیوالونه دومره مختصر او وارهٔ وو چه د بهر سړی دننه سړی ته کتلې شی، یو جواب خو دا شودا جواب خو منعی دې،

**(د حدیث الباب دویم جواب)**

دویم جواب تسلیمی دی چه مونږ منو چه د حجرې نه مراد حجرهٔ عائشه ده نو د اختلاف مکان جواب به دا وی چه زمونږ په نیز باندې مانع عن الاقتداء هغه اختلاف مکان دې کوم چه حقیقةً هم وی او حکماً هم وی، او دلته اختلاف مکان اګر که حقیقةً موندلې شوې دې خو حکماً نهٔ، ځکه چه په جومات کښې کوم صف جوړ وو هغه د حجرې دروازې سره متصل وو، او دحجرې شریفې دروازه مشهوره ده چه د جومات طرف ته پرانستلې شوې وه، نو چه هر کله د جومات صفونه د حجرې شریفې تر دروازې پورې رارسیدلې وو نو د اتصال صفوف د وجه نه مکان حکماً متحد شو، فالحمد لله علی ذلك، په هیڅ صورت کښې هم حدیث زمونږ خلاف نهٔ شو، ما د دې حدیث په حل کولو کښې ډیر غور او فکر اوکړو، والله الموفق و له الحمد والمنة.

# بَابُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْجُمُعَةِ

## باب دی په بیان د مونځ کې وروسته د جمعې نه

د دې باب نه مقصود د جمعې د ورځې د سنتو بیانول دي خو مصنف رحمه الله ترجمې لره سنن بعدیه یعنې روستنو سره خاص کړو سنن قبلیه سره په ترجمه کښې هیڅ تعرض ئې او نۀ کړو، حضرت امام بخاری رحمه الله ترجمه داسې قائمه کړې ده چه، باب الصلوة بعدالجمعة و قبلها، هغوی په ترجمه کښې ذکر خو د دواړو کړې دي خو خلاف قیاس ذکر کښې ئې بعدیه مقدم او قبلیه لره مؤخر کړې دی چه د هغې به یقینا څۀ وجه وی، وجه هم هغه ده کومه چه امام بخاری د باب د لاندې ذکر کړې ده په هغې کښې دسنن قبیله خو ذکر نشته دې آو امام بخاری رحمه الله په رواتب ظهر واله روایت کښې ذکر کړې دی، په کوم کښې چه دی چه حضور ﷺ به قبل الظهر رکعتین او دغه شان بعد الظهر رکعتین کول.

د بخاری شراح لیکی چه امام بخاری د جمعې مونځ لره په ماسپخین باندې قیاس کوی کوم سنتونه چه د ماسپخین دپاره مشروع دی، هغې لره په طریقې د قیاس جُمعې دپاره هم ثابتول غواړی څکه چه جمعه د ماسپخین د مونځ بدل ده، او دا هم وئیلې شوې دی چه امام بخاری رحمه الله د ابن عمر رضی الله عنه هغه روایت طرف ته اشاره کړې ده کوم چه په سنن ابوداؤد کښې مذکور دې،(د باب ړومبې حدیث هم دا دې)

د دینه پس زده کول پکار دی چه د جمعې سنن بعدیه خو په اتفاق سره ثابت دی او ائمه اربعه هم د دې قائل دی، امام ترمذی امام شافعی او احمد مذهب د رکعتین بعد الجمعة نقل کړې دې، او د طرفینو په نیز باندې روستنی سنتونه څلور رکعاته دی او دامام ابویوسف په نیز باندې شپږ رکعاته دی، او دامام مالك مشهور مذهب کوم به چه وړاندې په خپل ځائې باندې راشی دا دې چه هغۀ د رواتب مطلقا قائل نۀ دې غیر د سنت الفجر نه، غرض دا چه د جمعې سنن بعدیه په ثبوت باندې د ائمه اربعه اتفاق دې.

### د جمعې په سنن قبلیه کښې د ائمه مذاهب:

البته په سنن قبلیه کښې اختلاف دې حنابله د دې قائل نۀ دی او مصنف رحمه الله هم حنبلی دې نو څکه ئې په ترجمه کښې هم دې لره نۀ دی ذکر کړې، او حافظ ابن قیم حنبلی خو د سنن قبلیه په شدت سره انکار کړې دې په دې شان چه د حضور ﷺ معمول د جمعې د مانځه دپاره خروج بعد الزوال وو یعنی د زوال نه پس به متصلاً د حجرې شریفې نه جومات ته تشریف راوړلو او نیغ به منبر ته رسیدلو نو د سنن قبلیه وخت کوم ځائې وو. او د شافعیه نه په دې کښې دوه روایة دی، نفی، اثبات، امام نووی اثبات لره ترجیح ورکړې ده او هم دا د حنفیانو مذهب دې.

[۱۱۲۷] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَأَى رَجُلًا يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي مَقَامِهِ، فَدَفَعَهُ، وَقَالَ: أَتُصَلِّي الْجُمُعَةَ أَرْبَعًا" وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يُصَلِّي يَوْمَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ وَيَقُولُ هَكَذَا فَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟".

د نافع نه روایت دی، بېشکه ابن عمر یو سړی ولیدلو چې دوه رکعاته مونځ یې کولو د جمعې په ورځ په خپل ځای کې، نو هغه یې دېکه کړو، او ویې ویل: ایا ته د جمعې څلور رکعاته مونځ کوې؟ او وو عبد الله چې مونځ یې کولو د جمعې په ورځ دوه رکعاته په خپل کور کې، او ویل به یې: دارنګه رسول الله ﷺ کړي دي.

[۱۱۲۸] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ "يُطِيلُ الصَّلَاةَ قَبْلَ الْجُمُعَةِ، وَيُصَلِّي بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ" وَيُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذَلِكَ.

د ابن عمر نه روایت دی هغه ویلې دي: وو ابن عمر چې اوږدولو به یې مونځ مخکې د جمعې نه، او د جمعې نه وروسته به یې دوه رکعاته کور کې کول، او بیان به یې کولو چې رسول الله ﷺ به داسې کول.

**تشریح**: **قوله**: کان ابن عمر یطیل الصلوة قبل الجمعة و یصلی بعدها رکعتین فی بیته، دا فعل اګر که د ابن عمر دې او په دې لحاظ سره دا حدیث موقوف دې، خو وړاندې هغوی فرمائی چه، ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یفعل ذالك، نو ځکه دا حدیث مرفوع شو.

## د سنن قبلیه ثبوت:

د دې حدیث نه صلوة قبل الجمعة و بعد الجمعة د دواړو ثبوت کیږی ځکه د بخاری بعضې شارحینو لیکلی دی (کما تقدم قریبًا) چه د امام بخاری رحمه الله اشاره د ترجمة الباب په ذریعې سره هم دې حدیث د ابن عمر رضی الله عنه ته ده خو چونکه دا حدیث د امام بخاری د شرط موافق نه وو نو ځکه ئې دا وانغستلو او صرف اشاره ئې دې طرف ته اوکړه، خو حافظ ته په دې حدیث سره د سنن قبلیه په ثبوت کښې اشکال دې، اول خو ځکه چه، کان یفعل ذالك، اشاره بعضو وئیلي دی چه صرف ویصلی رکعتین فی بیته، طرف ته ده مجموعې طرف ته نۀ ده، او دویم اشکال حافظ د سنن قبلیه په حقله هم هغه کړې دې کوم چه پورته دحافظ ابن قیم نه نقل کړې شوې دې چه د هغې خلاصه دا ده چه، دیطیل الصلوة قبل الجمعة نه څۀ مراد دې؟ که قبل الزوال مراد وی نو بیا خو د جمعې دوخت نۀ کیدو د وجه نه دا د جمعې سنتونه څنګه شول، او که دا اووئیلې شی چه بعد الزوال مراد دی نو بیا دا څنګه صحیح کیدې شی ځکه چه حضور ﷺ خو به د زوال نه پس سمدستی جومات ته تشریف اوړلو او هم هغه وخت به ئې منبر ته تشریف اوړو او په اول وخت کښې به د جمعې آذان شروع شونو بیا د سنتو وخت کوم ځائې وو؟

¹): سنن النسائي/الجمعة ٤٣ (١٤٣٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٩٠ (١١١٨)، (تحفة الأشراف: ٧٥٤٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ٣٩ (٩٣٧)، صحيح مسلم/المسافرين ١٥ (٧٢٨)، والجمعة ١٨ (٨٨٢)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٥٩ (الجمعة ٢٤) (٥٢٢)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ٢٣(٦٩)، مسند احمد (٤٤٩/٢، ٤٩٩)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤٤(١٤٧٧) (صحيح)

²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٧٥٤٨) (صحيح)

## نور دلائل:

زه کول پکار دی چه د سنن قبلیه د قائلینو استدلال د ابن عمر رضی الله عنهما د حدیث نه علاوه نور هم ځنی احادیثو سره دې مثلاً، د عبدالله بن مغفل رضی الله عنه حدیث چه متفق علیه دې، بین کل آذانین صلوة، د دې حدیث په عموم کښې د جمعې آذان هم راځی، او بعضې صریح روایات هم دی چنانچه د سنن ابن ماجه او په طبرانی کښې د ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دې چه، کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یصلی قبل الجمعة اربعا لکن فیه مبشر بن عبید من الوضاعین، هم دغه شان حجاج بن ارطاة او عطیه عوفی دواړه ضعیف دی، علامه زیلعی په نصب الرایه کښې نور هم ګڼړ روایتونه ذکر کړې دی په کومو کښې چه بعضې داسې هم دی د چا په سند باندې چه هغوی هیڅ کلام او نقد نهٔ دې کړې، دغه شان امام ترمذی رحمه الله فرمائی چه، وروی عن عبدالله بن مسعود انه کان یصلی قبل الجمعة اربعا و بعدها اربعا، دا وړاندې تیر شوې دی چه امام نووی رحمه الله هم د ثبوت قول اختیار فرمائیلې دې.

[۱۱۲۹] (1) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ عَطَاءِ بْنِ أَبِي الْخُوَارِ، أَنَّ نَافِعَ بْنَ جُبَيْرٍ أَرْسَلَهُ إِلَى السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ ابْنِ أُخْتِ نَمِرٍ يَسْأَلُهُ عَنْ شَيْءٍ رَأَى مِنْهُ مُعَاوِيَةُ فِي الصَّلَاةِ، فَقَالَ: صَلَّيْتُ مَعَهُ الْجُمُعَةَ فِي الْمَقْصُورَةِ، فَلَمَّا سَلَّمْتُ قُمْتُ فِي مَقَامِي فَصَلَّيْتُ، فَلَمَّا دَخَلَ أَرْسَلَ إِلَيَّ، فَقَالَ: لَا تَعُدْ لِمَا صَنَعْتَ إِذَا صَلَّيْتَ الْجُمُعَةَ، فَلَا تَصِلْهَا بِصَلَاةٍ حَتَّى تَكَلَّمَ أَوْ تَخْرُجَ، فَإِنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَ بِذَلِكَ أَنْ لَا تُوصَلَ صَلَاةٌ بِصَلَاةٍ حَتَّى يَتَكَلَّمَ أَوْ يَخْرُجَ".

نافع بن جبیر عمر بن عطاء ولیږلو سائب بن یزید ته چې خوری د نمر دی، تپوس یې کولو د هغه نه د یو شي چې معاویه د هغه نه لیدلی وو په مانځه کې، هغه وویل: ما مونځ وکړو د هغه سره د جمعې په مقصوره کې، کله چې ما وسلام وګرځولو زه خپل ځای کې ودریدم مونځ مې وکړو، هرکله چې هغه راغی ماته څوک راولیږلو، ویې ویل: مه واپس کېږه هغه څه ته چې تا وکړل کله چې ته د جمعې مونځ وکړې وروسته ورپسې مونځ مه کوه تردې چې خبرې وکړې، او اوځې، بېشکه نبي صلی الله علیه وسلم امر کړی دی په دې، چې یو ځای نه کړی شي یو مونځ د بل مونځ سره تردې چې خبرې وکړې او یا اوځې.

**قوله، اخبرنی عمر بن عطاء ان نافع بن جبیر ارسله الی السائب بن یزید یسأله عن شیء رأی منه معاویة فی الصلوة،**

## مضمون حدیث:

عمر بن عطاء وائی چه زه نافع بن جبیر سائب بن یزید ته اولیږلم، (دا سائب د کشرانو صحابه کرامو نه دې) چه زهٔ لاړ شم او د هغوی نه دا سوال اوکړم چه ستا کوم هغهٔ څیز دې کوم چه حضرت معاویه رضی الله عنه تاسو نه لیدلې دې (مطلب دا دې چه ستا او د معاویه په مینځ کښې څهٔ واقعه پیښه شوې وه او ستاسو کوم فعل باندې هغوی انکار فرمائیلې وو) هغوی اوخودل چه ما یو ځل د حضرت معاویه رضی الله عنه سره په مقصوره کښې د جمعې مونځ ادا کړو د

(1): صحیح مسلم/الجمعة ۱۸ (۸۸۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱٤۱٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۹۵، ۹۹) (صحیح)

مانخه نه پس ما سمدستي د سنتو نيت بلا فصل هم په هغه ځائې باندې اوترلو ، معاويه چه کله خپل مونځ اوکړو او کور ته دننه لاړو نو هغوی زهٔ رااوغوښتلم او اوئې فرمائيل چه د فرض مونځ نه پس هم په هغه ځائې باندې سنت کول نهٔ دی پکار ، په فرض او نفل کښې وصل نهٔ دې پکار بلکه فصل پکار دې چه د هغې دوه صورتونه دی يا خو دهغهٔ ځائې نه پورته شی اوبل ځائې کښې اوکړی ياپه مينځ کښې دخبرو وغيره په ذريعې سره فصل اوشی.

**(د مقصوره نه څه مراد دی؟)**

په دې حديث کښې د مقصوره لفظ راغلی دې مقصوره هغهٔ وړوکي کوټې ته وائی کومه به چه په جومات کښې د محراب په ځائې باندې جوړولې شوه چه په هغې کښې امام او د دهٔ خواص مونځ اوکړې شی، امام نووی رحمه الله فرمائی چه د دينه معلومه شوه چه په جومات کښې مقصوره جوړول جائز دی که امير په دې کښې مصلحت او ضرورت ګنړی، په پخوا زمانه کښې به د خلفاء دپاره دا جوړولې شوه، د ټولو نه وړاندې حضرت معاويه رضي الله عنه د خپل تحفظ دپاره جوړه کړې وه کله چه يو خارجی په دوئ باندې حمله کړې وه، قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه په مقصوره کښې د جمعې مونځ هغه وخت جائز کيدې شی کله چه په دې کښې د مونځ کولو عام اجازت وی او که د يو خو کسانو دپاره مخصوص وی نو بيا به په دې کښې مونځ صحيح نهٔ وی (ځکه چه په دې صورت کښې به هغه مقصوره د جامع د حکم نه خارج شی يا داسې اووايه چه اذن عام د جمعې د صحت د شرائطو نه دې) دحضرت ابن عمر رضي الله عنه په باره کښې ئې ليکلې دی چه هغوی به په مقصوره کښې مونځ نهٔ کولو او که د وړاندې نه به په هغې کښې وو نو د مانځه دپاره به بهر راتلو.

[۱۱۳۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ الْمَرْوَزِيُّ، أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ إِذَا كَانَ بِمَكَّةَ فَصَلَّى الْجُمُعَةَ تَقَدَّمَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ تَقَدَّمَ فَصَلَّى أَرْبَعًا، وَإِذَا كَانَ بِالْمَدِينَةِ صَلَّى الْجُمُعَةَ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى بَيْتِهِ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَلَمْ يُصَلِّ فِي الْمَسْجِدِ، فَقِيلَ لَهُ: فَقَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ ذَلِكَ".

د ابن عمر نه روايت دی هغه ويلي دي وو به کله چې به مکه کې وو نو د جمعې مونځ به يې کولو، مخکې به شو دوه رکعاته مونځ به يې وکړو، بيا به مخکې شو څلور رکعاته مونځ به يې وکړو، او کله چې به په مدينه کې وو مونځ د جمعې به يې کولو، بيا به راغلو کورته نو دوه رکعاته مونځ به يې وکړو، او مونځ به يې نه کولو په مسجد کې، هغه وويل: وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې داسې يې کول

**تشريح: قوله:** عن عطاء عن ابن عمر قال كان اذا كان بمكة.. الخ، د قال ضمير د عطاء او د كان ضمير د ابن عمر طرف ته راجع دې يعنی چه کله به ابن عمر په مکه کښې وو نو د جمعې د مانځه نه پس به لږ غوندې وړاندې شو او اولاً به ئې دوه رکعاته او د دې نه پس لږ غوندې وړاندې شو او څلور رکعاته به ئې کول، او چه کله به هغوی په مدينه کښې وو نو جمعې د مانځه نه پس به د جومات په ځائې کور ته راغلو او صرف دوه رکعاته به ئې کول او فرمائيل

(۱): سنن الترمذي/الصلاة ۲۵۹ (۵۲۳)، (تحفة الأشراف: ۷۳۲۹) (صحيح)

به ئې چه حضور ﷺ به هم داسې کول
شارحینو لیکلې دی چه شاید د دې فرق وجه دا وی چه د دوئ کور د حرم نه لرې وو نو ځکه په حرم کښې به ئې سنت کول او په مدینه کښې چونکه د دوئ کور په کوم کښې چه دوئ مقیم وو هغه بالکل د جوماټ سره متصل وو نو ځکه به ئې هلته کول.

[۱۱۳۱]( )حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَالَ ابْنُ الصَّبَّاحِ: قَالَ: "مَنْ كَانَ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا وَتَمَّ حَدِيثُهُ"، وَقَالَ ابْنُ يُونُسَ: إِذَا صَلَّيْتُمُ الْجُمُعَةَ فَصَلُّوا بَعْدَهَا أَرْبَعًا، قَالَ: فَقَالَ لِي أَبِي: يَا بُنَيَّ، فَإِنْ صَلَّيْتَ فِي الْمَسْجِدِ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَتَيْتَ الْمَنْزِلَ أَوِ الْبَيْتَ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه وېلي دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي. ویلي دي ابن الصباح. هغه وویل: څوک چې د تاسو نه مونځ کونکی وي وروسته د جمعې نه نو مونځ دې وکړي څلور رکعاته او پوره شو حدیث د هغه. او ویلي دي ابن یونس: کله چې تاسو د جمعې مونځ وکړئ نو وروسته ترېنه څلور رکعاته کوئ هغه وايي ماته زما پلار وویل اې بچوړیه! کله چې ته په مسجد کې مونځ وکړې په مسجد کې دوه رکعاته بیا کور ته راشې نو دوه رکعاته وکړه.

[۱۱۳۲]( )حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ.

عبدالله بن عمر رضی الله عنهما وائی چه رسول الله ﷺ به د جمعې نه پس دوه رکعته په خپل کور کښې کول. ابوداؤد وائی: او عبدالله بن دینار هم دا حدیث د ابن عمر نه دغسې روایت کړې ده

[۱۱۳۳]( )حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، "أَنَّهُ رَأَى ابْنَ عُمَرَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ، فَيَنْمَازُ عَنْ مُصَلَّاهُ الَّذِي صَلَّى فِيهِ الْجُمُعَةَ قَلِيلًا غَيْرَ كَثِيرٍ، قَالَ: فَيَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ، قَالَ: ثُمَّ يَمْشِي أَنْفَسَ مِنْ ذَلِكَ، فَيَرْكَعُ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، قُلْتُ لِعَطَاءٍ: كَمْ رَأَيْتَ ابْنَ عُمَرَ يَصْنَعُ ذَلِكَ؟ قَالَ: مِرَارًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ وَلَمْ يُتِمَّهُ.

ابن جریج نه روایت دی هغه وايي ماته خبر راکړی دی عطاء، بېشکه هغه ابن عمر لیدلی وو، چې مونځ یې کولو وروسته د جمعې نه نو جدا به شو د خپل د مونځ د ځای هغې نه چې مونځ به یې پکې کړی وو د جمعې لږ شانته ډیر نه. هغه وايي دوه رکعاته به یې وکړل هغه وايي بیا به تللو لږ شانته د دغې نه څلور رکعاته به یې کول ما وویل عطاء ته ابن تا څو ځل لیدلی وو چې دغسې یې کړي وو؟ هغه وویل څو ځل ویلي دي ابوداود او د دې روایت عبد الملک بن سلیمان کړی دی او پوره کړی یې نه دی

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۹۰، ۱۲۶۵٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجمعة ۱۸ (۸۸۱)، سنن الترمذي/الجمعة ۲٤ (۵۲۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۹۵ (۱۱۳۰)، مسند احمد (۲/۲٤۹،٤٤۲، ٤۹۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۰۷ (۱۶۱۵) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: ۱۱۲۷، (تحفة الأشراف: ۶۹٤۸) (صحيح)
[3]: سنن النسائي/الجمعة ٤۲ (۱٤۲۹)، (تحفة الأشراف: ۷۳۲۹) (صحيح)

**قوله**: اخبرنی عطاء انه رای ابن عمر یصلی بعد الجمعة فینماز عن مصلاه الذی صلی فیه الجمعة، ینماز د انمیاز نه دې مَیْز معنی ده جدا کول. دې له ئې باب انفعال ته بوتلو، ابن عمر رضی الله عنه به د جمعې د مانځه نه پس سنت ادا کول پس لږې به شو او دهغې ځائې نه به جدا شو کوم ځائې به ئې چه د جمعې مونځ کړې وو، قلیلا، لږ غوندې او دوه رکعاته به ئې کول، ثم یمشی انفس من ذالك، او بیا به لږ غوندې نور لرې شو او څلور رکعاته به ئې اوکړل، د دېنه معلومه شوه چه ابن عمر رضی الله عنه به د جمعې نه پس شپږ رکعاته کول، اولاً به دوه او بیا به ئې څلور، په حنفیانو کښې امام ابویوسف هم د دې قائل دې خو هغه فرمائی چه ړومبې څلور رکعاته اوکړې شی بیا دوه، غالبًا د دې وجه دا ده چه په یو حدیث کښې راځی چه، لا یصلی بعد صلوة مثلها،

## بَاب صَلاَةِ الْعِيدَيْن

### باب دې په بیان د مونځ دا خترونو کې

د صلوات مخصوصه بیان شروع دې د دې سلسلې یو مونځ یعنی د جمعې د مونځ بیان تیر شو، د عیدین نه مراد عید الفطر او عید الاضحٰی دې.

### وجه تسمیه:

عید د عود نه ماخوذ دې په اصل کښې عِوْدٌ وو په قاعدې د اعلال سره واؤ ساکن ماقبل مسکور وندلو د وجه نه عید شو، بعضې خو وجه تسمیه دا لیکی چه دا د عَود نه ماخوذ دې ځکه چه دا ورځ هر کال خوشحالی راوړی او واپس راځی نو ځکه دې ته عید وئیلې شی او مسرت او خوشحالی د کومې خبرې ده؟ هغه د روژو پوره کیدل او مغفرت د ګناهونو او د جهنم نه د خلاصی ده ځکه چه عید الفطر د رمضان المبارك نه پس ړومبئ ورځ ده او د رمضان په میاشت کښې د ګناهونو معافی او د جهنم نه خلاصې په ګنړو روایتونو سره ثابت دې، او د عید الاضحٰی ورځ د عرفې د ورځې نه پس راځی او یوم عرفه افضل الایام ده په دې کښې لکهونو انسانان د حج غوندې عظیم عبادت کوی، په دې کښې هم په کثرت سره ګناهونه معاف کیږی او جهنم نه خلاصې وی نو ځکه وائی چه د اختر په ورځ خوشحالی د هغهٔ سړې دپاره ده څوك چه د رمضان المبارك قدردانی اوکړی او د خپل ګناهونو د معافئ پروانه حاصله کړې وی، لا لمن لبس الجدید و اکل الثرید، دغه شان دا وئیلې شوې دی چه د عید تسمیه د عائده نه ماخوذ ده په معنی د فائده او انعام، په دې ورځ چونکه دعوائد(انعامات الهیه) کثرت او ډیروالې وی په دې بناء باندې دې ته عید وئیلې شی.

لیکلې شوی دی چه د وړوکی اختر مونځ په ۲ هجری کښې مشروع شو اوهم په دغه کال د شعبان په میاشت کښې د روژې فرضیت دې.

### د اختر د مانځه حکم:

**صلوة العیدین عند الحنفیه واجب دې، لانه علیه السلام واظب علیهما بغیر ترك، و لقوله تعالٰی**

فصل لربك وانحر و قوله تعالی ولتكبروا الله علی ما هداكم، وئيلې شوې دی[1] چه آيت اولی په عيدالاضحی باندې محمول دې د دې مونځ او قربانی. او دآيت ثانيه اشاره د عيدالفطر طرف ته ده، او د جمهورو په نيز باندې سنت مؤكد دې، ابوسعيد اصطخری او د امام احمد په مشهور مذهب كښې فرض كفايه دې، په جوهره نيره كښې ليكلې دی چه د حنفيانو په دې كښې دوه قوله دی، اول انها واجبة و هو المشهور و قيل سنة مؤكدة قال في المبسوط و هو الاظهر.

[۱۱۳٤](۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ وَلَهُمْ يَوْمَانِ يَلْعَبُونَ فِيهِمَا، فَقَالَ: "مَا هَذَانِ الْيَوْمَانِ؟" قَالُوا: كُنَّا نَلْعَبُ فِيهِمَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَبْدَلَكُمْ بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا: يَوْمَ الْأَضْحَى، وَيَوْمَ الْفِطْرِ".

انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: راغی رسول الله ﷺ مديني ته او د هغوی دوه ورځې وي لوبې به يې کولې په هغو دواړو کې، دا دواړه د څه ورځې وي؟ هغوی وويل: مونږ به لوبې کولې په هغه دواړو کې په جاهليت کې، ويلي دي رسول الله ﷺ: بېشکه الله پاک بدل کې درکړی دی تاسو ته ډېر غوره د هغې دواړو نه، د غټ اختر ورځ ده، او د ورکوټي اختر ورځ ده.

**قوله**: قدم رسول الله صلی الله عليه وسلم المدينة و لهم يومان يلعبون فيها فقال ما هذان اليومان.

## شرح حديث:

کله چه حضور ﷺ هجرت اوکړو او مديني ته ئې تشريف راوړه نو چه کوم مسلمانان هلته اوسېدل هغوی لره حضور ﷺ اوليدل چه د کال په دوو ورځو کښې به هغوی لوبې کولې او خوشحالی به ئې کوله د حضور ﷺ په سوال باندې صحابه عرض اوکړو چه په دې ورځو کښې خوشحالی دلته د وړاندې نه د جاهليت د زمانې نه راروانه ده، د دې دوو ورځو نه مراد د نورز او د مهرجان ورځ ده، نوروز د جنورئ اول تاريخ په کوم کښې چه د نمر تحويل په برج حمل کښې وی. او په مهر جان کښې د نمر تحويل برج ميزان کښې کيږی، ليکلې دی چه دا دواړه ورځې د حرارت او برودت يعنی ګرموالی او يخوالی په اعتبار سره ډېر معتدل وی او دا چه ورځ او شپه په دې کښې برابر وی.

وئيلې شوې دی چه په تيره زمانه کښې حکماء واقفين د علم هيئت دې ورځو لره اختيار کړې وې نورو خلقو به د دوئ په دې کښې اتباع کوله تر دې چه انبياء عليهم السلام تشريف راوړلو نو هغوی د دې ابطال او ترديد اوفرمائيلو چنانچه وړاندې په حديث کښې حضور

---

[1] په دې باندې دې دا اشکال اونۀ کړې شی چه د صلوتين العيدين ثبوت په نص قطعی سره دې نو د عيدين مونځ فرض پکار وو، جواب دا دې چه دا نص د ثبوت په اعتبار سره خو اګر که قطعی دې خو د دلالت په اعتبار سره قطعی نۀ دې يعنی په دې دواړو آيتونو کښې چه کوم مضمون ثابتولې شی د دې آيتونو دلالت په هغې باندې قطعی نۀ دې، د دويمې معنی احتمال هم شته، قطعی الثبوت دپاره دا ضروری نۀ ده چه هغه دې قطعی الدلالت هم وی، او فرضيت هغه وخت ثابتيږی کله چه هغه نص قطعی الثبوت والدلالت دواړه وی.) ۱۲ـ

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/العيدين (١٥٥٧)، مسند احمد (٣/١٠٣، ١٧٨، ٢٣٥، ٢٥٠) (صحيح)

ﷺ دا هم فرمائي چه، ان الله قد ابدلكم بهما خيرا منهما، چه الله تعالى اې مسلمانانو تاسو لره د تشكر داظهار او خوشحالى كولو دپاره د دې دواړو په بدله كښې دوه نورې ورځې دركړې دى كومې چه دډېره غوره دى، يوم الاضحىٰ او يوم الفطر.
دا دواړه ورځې د ډېره ولې غوره دى د دې وجه خو ښكاره ده چه د دې دواړو انتخاب دحكماء او فلاسفه د طرف نه وو او د دې دواړو ورځو انتخاب دالله تعالى او د الله درسول او دانبياء د طرف نه دې.

## د كفارو په تهوارونو كښې شركت:

علماؤ د دې حديث د لاندې ليكلي دى چه د كفارو په تهوار او دخوشحالئ په ورځ كښې د مسلمانانو خوشحالى كول سخته گناه ده، ابوحفص كبير الحنفى فرمائى چه كوم سړې په نيروز كښې يو مشرك ته كومه معمولى غوندې هديه مثلا بيضه،(اگۍ) د دې ورځې د تعظيم په اعتقاد سره اوليږى نو هغه به كافر شى او د هغه ټول اعمال به حبط يعنى ضائع شى، او كه د ورځې دتعظيم په طور باندې نۀ وى بلكه صرف د محبت د اظهار او تعلق دپاره داسې اوكړى نو كافر كيږى نۀ البته د تشبيه د و جه نه مكروه ضرور به وى د دې هم ځان ساتل ضرورى دى.

## بَابٌ وَقْتِ الْخُرُوجِ إِلَى الْعِيدِ

### باب دى په بيان دوخت دوتلوكې اختر مانځه ته

د اختر د مونځ وخت په اتفاق سره د ارتفاع شمس يعنى د نمر ختلو نه تر زواله پورې دې، كه د اختر مونځ په رومبئ ورځ باندې په دې وخت كښې اونۀ كړې شى نو روستو د دې قضاء شته او كه نۀ؟ دا مسئله مختلف فيه ده د دې مستقل باب وړاندې راروان دې.

[۱۱۳۵](1)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خُمَيْرٍ الرَّحَبِيُّ، قَالَ: "خَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُسْرٍ صَاحِبُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ النَّاسِ فِي يَوْمِ عِيدِ فِطْرٍ أَوْ أَضْحَى، فَأَنْكَرَ إِبْطَاءَ الْإِمَامِ، فَقَالَ: إِنَّا كُنَّا قَدْ فَرَغْنَا سَاعَتَنَا هَذِهِ وَذَلِكَ حِينَ التَّسْبِيحِ".

يزيد بن خمير الرحبي وايي: چې عبد الله بن بسر چې د رسول الله ﷺ صحابي دى راووتلو د خلقو سره د اختر وركوټي اختر په ورځ او يا د غټ اختر په ورځ، نو هغه بد وگڼلو وروستوالى د امام، هغه وويل مونږ به وو چې په دې وخت كې به وزگار شوي وو. او دغه د اشارق وقت وو.

**قوله:** فقال انا كنا قد فرغنا ساعتنا هذه، د حديث مضمون دا دې چه عبدالله بن بُسرچه يو صحابى دې هغوى د حضور ﷺ نه پس په خپله زمانه كښې خلقو سره د اختر مونځ دپاره لاړلو خو امام صاحب دغه وخت پورې عيدگاه ته نۀ وو رارسيدلې نو هغوى دا تاخير يعنى روستوالې محسوس كړو او په دې باندې ئې انكار اوفرمائيلو او اوئې فرمائيل چه د حضور ﷺ په زمانه كښې خو به مونږ تر دې وخته پورې د اختر مونځ كړې وو او فارغ شوې به وو.

(1) سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۷۰ (۱۳۱۷)، (تحفة الأشراف: ۵۲۰٦) (صحيح)

و ذالك حين التسبيح، دا بظاهر د عبدالله بن بُسر كلام دي، مطلب دا دي چه د اختر د مونځ اول وخت او د دي د وخت ابتداء د هغهٔ وخت نه كيږي په كوم وخت كښې چه تسبيح يعنى نفل مونځ كول جائز شي، يعنى د نمر ختلو نه روستو چه نفل مونځ كول جائز كيږي هم هغه د اختر د مونځ وخت دي(لهذا دا اختر مونځ په اول وخت كښې كول پكار دى) (كذا فى المنهل) او حضرت په بذل كښې دا ليكلي دى چه ذالك حين التسبيح د يزيد بن خمير كلام دي او لفظ د ذالك اشاره هغه وخت طرف ته ده د كوم په رسيدو كښې چه امام تاخير كړي وو، او مراد د يزيد بن خمير دا دي چه تر كوم وخته پورې امام نهٔ وو راغلي دا هغه وخت وو په كوم كښې چه نفل مونځ كول جائز كيږي(يعنى اول وخت د اختر)

**فائده:** دا خو مونږ وړاندې بيان كړي دى چه د اختر د مونځ وخت د ارتفاع شمس يعنى نمر ختلو نه تر زواله پورې دي، د دېنه زيات دا زده كړئ چه په بعضې بعضې رواياتو كښې دا راغي چه حضور ﷺ به د وړوكي اختر مونځ هغه وخت ادا كولو كله به چه نمر د دوو نيزو په پورته والى باندې وو او د لوئې اختر مونځ به ئې هغه وخت كولو كله به چه نمر يوه نيزه وو. كان النبى صلى الله عليه وسلم يصلى بنا يوم الفطر والشمس على قيد رُمحين والاضحى على قيد رمح، د دېنه معلومه شوه چه د لوئې اختر په مانځه كښې تعجيل او وړوكي اختر كښې نسبةً تاخير مسنون دي[1]

## بابُ خُرُوجِ النِّسَاءِ فِي الْعِيدِ

### باب دى په بيان د وتلو د ښځوكې اختر ته

د ښځو وتل په عامو مونځونو كښې او په دې كښې چه څهٔ اختلاف دي هغه په خپل ځائې كښې تير شوي دي په دې باب كښې خاص د اختر د مونځ دپاره د ښځو د وتلو بيان كول مقصود دى چه آيا ښځې د اختر د مانځه دپاره عيدګاه ته تلې شي او كه نهٔ؟

> [۱۱۳۶](۲)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، وَيُونُسَ، وَحَبِيبٍ، وَيَحْيَى بْنِ عَتِيقٍ، وَهِشَامٍ فِي آخَرِينَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، أَنَّ أُمَّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: "أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُخْرِجَ ذَوَاتِ الْخُدُورِ يَوْمَ الْعِيدِ" قِيلَ: فَالْحُيَّضُ؟ قَالَ: "لِيَشْهَدْنَ الْخَيْرَ وَدَعْوَةَ الْمُسْلِمِينَ" قَالَ: فَقَالَتِ امْرَأَةٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنْ لَمْ يَكُنْ لِإِحْدَاهُنَّ ثَوْبٌ كَيْفَ تَصْنَعُ؟ قَالَ: "تُلْبِسُهَا صَاحِبَتُهَا طَائِفَةً مِنْ ثَوْبِهَا".

د محمد نه روايت دى، بېشكه ام عطيه ويلي دي، امر كړى دى مونږ ته رسول الله ﷺ چې

---

[1] په دې كښې حكمت او مصلحت دا ليكلي دي چه په عيدالاضحى كښې د مانځه نه د فراغيدو نه پس قربانۍ او د دې متعلقه امور كول وى لهذا په مانځه كښې دې جلتى اوكړې شى په خلاف د عيدالفطر نه چه هلته د مانځه نه پس اختر سره متعلق بل څه خاص كار نشته دي، يوه خبره بله هم ده چه په لوئې اختر كښې د مانځه نه وړاندې امساك يعنى خوراك څښكاك پريخودل مستحب دى او مستحب دا دى چه د دې ورځې خوراك څښكاك ابتداء ضيافت د الله يعنى د قربانۍ په غوښې سره وى.) ۱۲ منه.

[2]: صحيح البخاري/الحيض ۲۳ (۳۲٤)، والصلاة ۲ (۳۵۱)، والعيدين ۱۵ (۹۷٤)، ۲۰ (۹۸۰)، ۲۱ (۹۸۱)، والحج ۸۱ (۱٦۵۲)، صحيح مسلم/العيدين ۱ (۸۹۰)، والجهاد ٤۸ (۱۸۱۲)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۷۱ (۵۳۹)، سنن النسائي/الحيض والاستحاضه ۲۲ (۳۹۰)، والعيدين ۲ (۱۵۵۹)، ۳ (۱۵٦۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱٦۵ (۱۳۰۸)، (تحفة الأشراف: (۱۸۰۹۵، ۱۸۱۰۱، ۱۸۱۱۰، ۱۸۱۱۲، ۱۸۱۱٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸٤/۵، ۸۵)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۲۳ (۱٦۵۰) (صحيح)

اوکاږو مونږ پردو والا (زنانه) د اختر په ورځ، وویل شول: د حیض والا هم؟ هغه وفرمایل حاضرې دې شي خیر او دعوت د مسلمانانو ته. هغه وایي: چې وویله یوې ښځې ای د الله رسوله! که چېرې په مونږ د یوې کسې جامه نه وي نو څه به کوي؟ هغه وفرمایل: ورودې غوندې ملګرې د هغې هغې ته یوه ټکړه د خپلې جامې نه.

**قوله**: امرنا رسول الله صلی الله علیه وسلم ان نخرج ذوا الخدور یوم العید قیل فالحیّضُ،

**مضمون حدیث**:

ام عطیه رضي الله عنها فرمائی چه حضور ﷺ مونږ ته حکم اوفرمائیلو چه د اختر په ورځ باندې مونږ په کوټ کښې ناستې جینکۍ هم د اختر د مانځه دپاره رااوځو، خدور د خدر جمع ده خدر پردې ته وائی او د دې اطلاق د کور په هغه کوټ باندې هم کیږی په کوم باندې چه پرده زورنده وی په کوم کښې چه عام طور باندې باکره جینکۍ کینی پاسی. نو چه هر کله په حدیث کښې د ذوات الخدور وتلو حکم دې نو د دی نه د ډیر عمر والو ښځو حکم خو په طریقه اولی معلوم شو، وړاندې په حدیث کښې دی چه حضور ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه حائضه ښځې په دې ورځ باندې څۀ اوکړی نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه دوئ لره هم د خیر او برکت په مجامعو کښې حاضریدل پکار دی د مسلمانانو په دعاء کښې شریك کیدل پکار دی، دغه شان حضور ﷺ د یوې ښځې په سوال باندې اوفرمائیل چه کومې ښځې سره برقع یا څادر وغیره نۀ وی نو د هغې ملګرې لره پکار دی چه هغې ته د پردې دپاره د خپل څادر یوه حصه واغوندوی.

**مسئلة الباب کښې د ائمه مذاهب**:

د دې حدیث نه خو معلومیږی چه د ټولو ښځو عیدګاه ته وتل پکار دی اوس دا کتل دی چه په دې کښې فقهاء څۀ وائی په ائمه کښې دامام احمد په دې حدیث باندې عمل دې د دوئ په نیز باندې مطلقا ځوانه و غیر ځوانه ټولو دپاره دا جائز دی خو یو څو شرطونو سره، عدم التطیب، عدم التزین بالثیاب الفاخرۀ او د بعضې علماؤ په نیز باندې د ښځو د اختر د مانځه دپاره تلل مطلقا مکروه دی لکه سفیان ثوری، ابراهیم نخعی او ابن المبارك وغیره، په دې کښې دریم مذهب د ائمه ثلاثه حنفیه شافعیه مالکیه دې هغوی فرمائی چه، یجوز للعجائز دون الشواب، خو هغه شرطونو سره کوم چه پورته مذکور دی، د دینه معلومه شوه چه د جمهورو علماؤ او د ائمه ثلاثه په نیز په دې مسئله کښې د اختر مونځ او په عامو مونځو کښې کوم فرق نشته دې د ټولو حکم یو دې، البته حنابله د اختر د مانځه او په نورو مونځونو کښې د فرق قائل دی او د ظاهر د احادیثو نه د حنابله تائید کیږی ځکه چه په نورو مونځونو کښې د خروج ترغیب په یو حدیث کښې نشته دې صرف اجازت راغلې دې په خلاف د صلوة عید نه چه په دې کښې حضور ﷺ، امر بالخروج، فرمائی، والله اعلم بالصواب.

[۱۱۳۷]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: "وَيَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ مُصَلَّى الْمُسْلِمِينَ" وَلَمْ يَذْكُرِ: الثَّوْبَ، قَالَ: وَحَدَّثَ عَنْ حَفْصَةَ، عَنِ امْرَأَةٍ تُحَدِّثُهُ، عَنِ امْرَأَةٍ أُخْرَى، قَالَتْ: قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ مُوسَى فِي الثَّوْبِ.

د ام عطیه نه روایت دی د دې خبر، هغه وویل او لرې کېږي به حائضې د مصلی د مسلمانانو نه، او ذکر د ثوب یې ونه کړو، هغه وویل او حدیث یې بیان کړی دی د حفصې نه، هغې د یوې ښځې نه چې حدیث یې بیانولو د یوې بلې ښځې نه، هغې ویلي دي: وویل شو: ای د الله رسوله! ذکر یې کړه معنی د حدیث د موسی په ثوب کې

تشریح: قوله: و یعتزل الحُیَّض مصلی المسلمین. یعنی حائضې ښځې چه کله عیدګاه ته د مانځه دپاره لاړې شی نو د عیدګاه نه دې جدا یو طرف ته کینی، دا د اعتزال حکم د دې دپاره نه دې چه د حائضو ښځو عیدګاه ته داخلیدل ممنوع دي ځکه چه عیدګاه د جومات په حکم کښې نه ده بلکه د دې دپاره دې چه د صفونو قطع رانشی که ټولو ښځو سره ناستې وی دغه شان د هغه ځائې د ککړ یعنی ګنده کیدو احتمال هم شته

[۱۱۳۸]([2])حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، قَالَتْ: كُنَّا نُؤْمَرُ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَتْ: وَالْحُيَّضُ يَكُنَّ خَلْفَ النَّاسِ فَيُكَبِّرْنَ مَعَ النَّاسِ.

د ام عطیه نه روایت دی هغې ویلي دي: وو مونږ چې امر به راته کیدی شو د دې خبر، هغې ویلي دي: او حائضې به وروسته د خلقو نه وې. تکبیر وایې د خلقو سره

۳. حدثنا النفیلی... الخ، قوله، فیکبرن مع الناس، یعنی خارج الصلوة، ځکه چه هغوی په مانځه کښې نه دی داخل البته په تکبیر وئیلو کښې دې نورو سره شریك وی

[۱۱۳۹]([3])حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ يَعْنِي الطَّيَالِسِيَّ، وَمُسْلِمٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ عَطِيَّةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ جَمَعَ نِسَاءَ الْأَنْصَارِ فِي بَيْتٍ، فَأَرْسَلَ إِلَيْنَا عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، فَقَامَ عَلَى الْبَابِ، فَسَلَّمَ عَلَيْنَا، فَرَدَدْنَا عَلَيْهِ السَّلَامَ، ثُمَّ قَالَ: أَنَا رَسُولُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْكُنَّ "وَأَمَرَنَا بِالْعِيدَيْنِ أَنْ نُخْرِجَ فِيهِمَا الْحُيَّضَ وَالْعُتَّقَ، وَلَا جُمُعَةَ عَلَيْنَا، وَنَهَانَا عَنِ اتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ".

د ام عطیه نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ چې هرکله مدینې ته راغی، راجمع یې کړې ښځې د انصارو په یو کور کې، مونږ ته یې عمر بن الخطاب راولېږلو، په دروازه کې ودریدو مونږ ته یې سلام وکړو، مونږ ورته د سلام جواب ورکړو، بیایې وویل: زه د رسول الله ﷺ استازی یم تاسو ته، او مونږ ته یې امر کړی په اخترونو کې چې اوباسو په دوارو کې حائضې ښځې او هغه جینکۍ چې بلوغ ته نزدې وي، او نشته جمعه په مونږ باندې او مونږ یې منع کړي یو د جنازو نه

قوله: عن ام عطية ان رسول الله صلى الله عليه وسلم لما قدم المدينة جمع النساء الانصار في بيت،

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۹۵) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: ۱۱۳۶، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۹۵، ۱۸۱۱٤، ۱۸۱۲۸) (صحيح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۸۰)، وقد أخرجه: (۸۵/۵، ٤۰۸/٦) (ضعيف)

## شرح حدیث

دا واقعه د فتح مکې نه روستو ده یعنی حضور ﷺ د فتح مکې نه پس کله چه مدینې منورې ته واپس تشریف راوړلو نو هغه وخت حضور ﷺ د انصارو ښځو لره په یو کور کښې راجمع کړې او بیعت ئې فرمائیلې وو، په بذل کښې لیکلې دی چه د فتح مکې په ورځ په مکه کښې په حضور ﷺ باندې، یا ایها النبی اذا جاءك المؤمنات یبایعنك، آیت شریف په کوم کښې چه د بیعت مضمون مذکور دې نازل شوې وو، په دې موقع باندې حضور ﷺ د سړو لره په صفا باندې بیعت فرمائیلې وو او ښځو لره د صفا د لاندې، د دینه پس بیا مدینې منورې ته په واپسئ باندې حضور ﷺ د انصارو ښځو لره بیعت اوفرمائیلو کوم چه په بیعت النساء سره مشهور دې، په بیعت کښې چه په کومو څیزونو باندې عهد اغستلې شوې وو هغه په دې آیت کښې مذکور دی او دا آیت په سورة ممتحنه کښې دې.

وړاندې په حدیث کښې د بیعت صورت مذکور دې هغه دا چه حضور ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه سره د خپل طرف نه بیعت کولو دپاره د انصارو ښځو ته اولیږلو هغوی لاړل او په دروازه کښې اودریدل او هم د بهر نه ئې سلام اوکړو ښځو د هغې جواب ورکړو بیا ئې اوفرمائیل چه زۀ د حضور ﷺ د طرف نه رالیږلې شوې یم د بیعت کولو دپاره او د آیت په مضمون باندې ئې د حضور ﷺ نه بیعت واغستلو.

قوله، ان نخرج فیهما الحیض والعتق، عتّق د عاتق جمع ده د دې جمع عواتق هم راځی دا باکره یعنی پیغلې ښځې ته وائی، یا په معنی د شابه یعنی بالغه یا هغه کومه چه قریب البلوغ وی د دې نه وړاندې ذوات الخدور لفظ په حدیث کښې راغلې دې د هغې طرف ته اشاره ده.

# بَابُ الْخُطْبَةِ يَوْمَ الْعِيدِ

## باب دی په بیان د خطبه کې د اختر په ورځ

د اخترونو خطبه سنت ده په خلاف د جمعې د خطبې چه هغه واجب ده او شرط هم ده ځکه په مانځه باندې مقدم ده او د اخترونو خطبه په اتفاق سره مؤخر ده.

[۱۱۴۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ رَجَاءٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ. ح وَعَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: أَخْرَجَ مَرْوَانُ الْمِنْبَرَ فِي يَوْمِ عِيدٍ، فَبَدَأَ بِالْخُطْبَةِ قَبْلَ الصَّلَاةِ، فَقَامَ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا مَرْوَانُ خَالَفْتَ السُّنَّةَ أَخْرَجْتَ الْمِنْبَرَ فِي يَوْمِ عِيدٍ وَلَمْ يَكُنْ يُخْرَجُ فِيهِ، وَبَدَأْتَ بِالْخُطْبَةِ قَبْلَ الصَّلَاةِ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِيُّ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ، فَقَالَ: أَمَّا هَذَا فَقَدْ قَضَى، مَا عَلَيْهِ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ رَأَى مُنْكَرًا فَاسْتَطَاعَ أَنْ يُغَيِّرَهُ بِيَدِهِ فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذَلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ".

د ابو سعید الخدري نه روایت دی هغه ویلې دي مروان د اختر په ورځ منبر راوېستلو، خطبه یې شروع کړه د مانځه نه مخکې، یو سړی پاځیدلو ویې ویل: ای مروانه! تا مخالفت

(۱): صحیح مسلم/الإیمان ۲۰ (۴۹)، سنن الترمذي/الفتن ۱۱ (۲۱۷۲)، سنن النسائي/الإیمان ۱۷ (۵۰۱۱، ۵۰۱۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۵۵ (۱۲۷۵)، (تحفة الأشراف: ۴۰۸۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰/۳، ۲۰، ۴۹، ۵۲، ۵۳، ۵۴، ۹۲)، وأعاده المصنف في الملاحم (۴۳۴۰) (صحیح)

وکړو د سنت نه، منبر دي راوېستلو د اختر په ورځ، او دا به نه راوېستلی کېدو ، او خطبه دې د مانځه نه مخکې شروع کړه، ابو سعيد الخدري ووېل: دا څوک دی؟ هغوی ووېل: فلانی د فلاني ځوی، هغه ووېل: هر چې دا دی ده پوره کړه هغه څه چې په ده باندې وو، ما اورېدلي دي د رسول الله ﷺ نه ویل به يې: چا چې د تاسو نه منکر ولیدلو او طاقت يې وو چې بندیې کړي په خپل لاس سره نو بند دي کړي په خپل لاس، که طاقت يې نه وي نو په ژبه سره، او که طاقت يې نه وي نو په زړه سره، او دا کمزوری ایمان دی.

تشریح: قوله: عن ابی سعید الخدری قال اخرج مروان المنبر فی یوم عید فبدأ بالخطبة قبل الصلوة،

## مضمون حدیث:

ابوسعيد الخدری رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل مونږ کله چه مروان د مدينې امير وو د اختر د مونځ دپاره عیدګاه ته اورسیدلو نو هلته په رسیدلو سره مونږ اوکتل چه مروان د خطبې ورکولو دپاره منبر بهر ایخودې وو بیا کله چه د مانځه وخت راغلو نو مروان ابتداء د خطبې نه اوکړه او مونځ ئې مؤخر کړو.

فقام رجل فقال یا مروان خالفت السنة، یو سړې اودریدلو او په مروان باندې ئې اعتراض اوکړو چه تا دوه کارونه خلاف سنت اوکړل، یو اخراج المنبر یعنی د منبر رااوخکل حال دا چه حضور ﷺ به په منبر باندې خطبه نۀ ورکوله او دویم څیز ابتداء بالخطبة،یعنی په خطبې سره شروع کول په دې باندې ابوسعيد الخدری رضی الله عنه اوفرمائیل چه دې نهی عن المنکر کونکی حق ادا کړو.

د مروان په باره کښې لیکلي دی چه هغۀ به په خپله خطبه کښې په اهل بیت د علی او اصحاب د علی باندې تعریض کولو او د هغوی به ئې مذمت کولو، نو ځکه به ډیر خلق د هغۀ خطبه اوریدو نه بغیر پاسیدل او تلل به کله چه دۀ دا اوکتل نو بیا دویم حرکت ئې دا اوکړو چه خطبه ئې په مانځه باندې مقدم کړه ځکه چه بغیر د مانځه نه خلق واپس کیدې نۀ شول نو ځکه مجبورا به ئې خطبه اوریدله.د فقام رجل په باره کښې حافظ لیکلې دی چه شاید دا سړې ابومسعود بدری دې لکه څنګه چه د مصنف عبدالرزاق د روایت نه معلومیږی، او د بعضې روایاتو نه معلومیږی چه انکار کونکې په خپله ابوسعید الخدری رضی الله عنه وو پس کیدې شی دا دوه جدا جدا واقعې وی.

## اول من قدم الخطبة:

د خطبې د تقدیم په حقله امام ترمذی رحمه الله په صفحه، ۷۰، کښې فرمائی، یقال اول من خطب قبل العید مروان، په دې باندې په کوکب کښې لیکلي دی یعنی په نیت فاسده سره ګینی د مروان نه وړاندې د خطبې تقدیم حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه کړې دې، خو د هغوی د تقدیم منشاء نور څۀ وه او بله دا چه د دۀ په زمانه کښې مسلمانان ډیر زیات شوې وو د عیدګاه آخره پورې رسیدلې وو نو هغوی په دې خیال سره چه د خلقو نه د اختر مونځ فوت نۀ شی مونځ ئې د خطبې نه روستو کړو او په دې باندې د دغه زمانې دصحابه یا تابعینو نه چا هم انکار نۀ وو فرمائیلي لهذا د هغوی دا کار فعل حسن شو.

حضرت شیخ رحمه الله د کوکب په حاشیه کښې لیکلې دی چه علامه سیوطی رحمه الله په تاریخ الخلفاء کښې تقدیم الخطبه علی الصلوة لره د اولیات عثمان نه شمار کړې دې، او دائې هم وئیلې دی چه، اول من قدم الخطبة علی الصلوة معاویة، لکه څنګه چه د مصنف عبدالرزاق د یو روایت نه معلومیږی، خو بعضې علماء په کومو کښې چه ملا علی قاری رحمه الله هم دې (کما فی البذل) لیکلې دی چه حضرت عثمان یا معاویه رضی الله عنهما ته د تقدیم دخطبې نسبت کول غلط دی ځکه چه په حدیث الباب کښې تصریح ده چه د مروان نه وړاندې داسې هیڅ چا نۀ وو کړی چنانچه د بخاری، ص، ۱۳۱، په روایت کښې دی چه، فقال ابوسعید فلم یزل الناس علی ذالك حتی خرجت مع مروان،الخ، دغه شان د بخاری شریف په دویم روایت کښې دی چه ابن عباس رضی الله عنه فرمائی، شهدت العید مع رسول الله صلی الله علیه وسلم و ابی بکر و عمر و عثمان فکلهم کانوا یصلون قبل الخطبة، دغه شان علامه عینی رحمه الله هم فرمائی چه حضرت عثمان رضی الله عنه ته د دې نسبت کول صحیح نۀ دی.

**تنبیه**: په حدیث الباب کښې مذکور دی چه، اخرج مروان المنبر، په دې کښې دا اشکال دې چه دا د بخاری او مسلم د روایت خلاف دې په بخاری شریف صفحه، ۱۳۱، کښې دی چه ابوسعید الخدری رضی الله عنه فرمائی چه زۀ د مدینې امیر مروان سره عیدګاه ته اورسیدم هلته مونږ اولیدل چه یو منبر جوړې شوې دې کوم چه کثیر بن الصلت جوړ کړې وو نو مروان په هغې باندې د خطبې ورکولو اراده اوکړه، دې روایت نه معلومیږی چه هلته منبر جوړ شوې وو نو بیا د اخراج منبر کوم روایت چه په ابوداؤد کښې مذکور دې د دې څۀ مطلب دې؟ د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه د ابوداؤد دا روایت د منبر د بناء نه وړاندې دې، کیدې شی مروان په شروع کښې په مصلی یعنی عیدګاه کښې ایخودې وی بیا د خلقو د اعتراض د وجه نه ئې په هغۀ ځائې کښې مستقل جوړ کړې وی.

## وجوب تبلیغ:

په دې حدیث کښې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر حکم مذکور دې، په منهل صفحه، ۳۱۶ج، ۶، کښې لیکلې دی چه دا امر بالاجماع د وجوب دپاره دې، قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر د اسلام د دعائمو نه دې (یعنی د اسلام یو اهم رکن دې) چه دهغې په وجوب باندې د ټولو اتفاق دې سوا د روافضو نه، صاحب منهل لیکی چه امر بالمعروف دپاره دا شرط نۀ دی چه امر کونکې دې په خپله هم عامل یعنی عمل کونکې وی ځکه چه دلته دوه حقونه جمع کیږی یو په خپله د بدئ نه منع کیدل، او دویم بل لره د بدئ نه منع کول، دا دواړه حقونه جدا جدا او مستقل دی په یو حق نه موجودیدلو سره دویم حق نۀ ساقطیږی، دا جدا خبره ده چه درجۀ د کمال دا ده چه دې په خپله هم عمل کونکې وی.

## تبلیغ په چا چا باندې واجب دې:

او بیا هغه وړاندې لیکی چه د اسلام هغه واجبات کوم چه بالکل ښکاره دی لکه مونځ او روژه او دغه شان هغه محرمات د کومو حرمت کښې مشهور دې لکه، زنا او د شرابو

څښکل وغیره د دې څیزونو تبلیغ په علما، او غیر علماء په ټولو باندې برابر دې دا فریضه په ټولو باندې یوشان عائدیږي البته د اسلام چه کوم احکام مخفی او غیر ظاهر دی د هغې ابلاغ یعني ورسول تر علماؤ پورې خاص دی.

[۱۱٤۱]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَامَ يَوْمَ الْفِطْرِ فَصَلَّى، فَبَدَأَ بِالصَّلَاةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ، ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ، فَلَمَّا فَرَغَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ فَأَتَى النِّسَاءَ فَذَكَّرَهُنَّ وَهُوَ يَتَوَكَّأُ عَلَى يَدِ بِلَالٍ، وَبِلَالٌ بَاسِطٌ ثَوْبَهُ تُلْقِي فِيهِ النِّسَاءُ الصَّدَقَةَ". قَالَ: تُلْقِي الْمَرْأَةُ فَتَخَهَا وَيُلْقِينَ وَيُلْقِينَ، وَقَالَ ابْنُ بَكْرٍ: فَتَخَتَهَا.

د جابر بن عبد الله نه روایت دی هغه ویلي دي ما اوریدلي دي د هغه نه چې ویل به یې: بېشکه نبي ﷺ ودریدلو د وړکوټي اختر په ورځ، نو شروع شو په مانځه مخکې د خطبې نه، بیایې خطبه وویله خلقو ته، هرکله چې فارغ نبي ﷺ راکښته شو ښځو ته ورغی، وعظ یې ورته وکړو او هغه تکیا وکړه په لاس د بلال، او بلال خپله جامه خوره کړې وه ښځو به پکې صدقې اچولې. هغه وایي: اچولو به ښځې ګوتمه خپله، او اچولو به دوی اچولو به دوی، او ویلي دي ابن بکر: فتختها (په زیادت د تاء سره).

**تشریح: قوله:** فلما فرغ نبی الله صلی الله علیه وسلم نزل فاتی النساء، په لفظ د نزل باندې اشکال دې څکه چه د دېنه معلومیږي چه حضور ﷺ په منبر وغیره یو اوچت څیز باندې خطبه ورکوله، او وړاندې تیر شوې دي چه دا د سنت نه خلاف ده د حضور ﷺ نه په منبر باندې خطبه ورکول ثابت نۀ دی د دې وجه نه حافظ رحمه الله د دې لفظ تاویل کړې دي او هغه دا چه د نزول نه مراد نزول من مکان عالٍ الی سافل نۀ دې بلکه مطلق انتقال من مکان الی مکان دې.

**د حدیث مضمون:**

دا دي چه حضور ﷺ د مونځ نه پس خطبه اولاً سړو ته ورکړې وه، ښځې چونکه په عیدګاه کښې څانله او یو طرف ته وې تر هغۀ ځائې پورې د خطبې آواز نۀ ورسیدلو نو څکه حضور ﷺ د سړو د ځائې نه منتقل شو او کوم طرف ته چه ښځې وې هغه طرف ته ئې تشریف یوړلو، حضرت بلال رضي الله عنه د حضور ﷺ خادم خاص دوئ سره وو حضور ﷺ د دوئ په سهارې یعني اډونې سره روان وو حضور ﷺ خو په خطبه ورکولو کښې مشغول شو او حضرت بلال رضي الله عنه کپړه غوړولې وه (څکه چه حضور ﷺ په خطبه کښې د صدقې ترغیب هم ورکولو څکه) او ښځو په دې کښې د اچولو کالی د غوږونو والئ او د لاسونو او خپو ګوتې غرض دا چه څۀ هم دوئ سره وو هغۀ ئې په دې کپړه کښې اچول، زمونږ حضرت شیخ رحمه الله به فرمائیل چه اهل مدارس چه په جلسو کښې کومه چنده راغونډ وی د دې اصل دا حدیث دې، و یلقین و یلقین، د دې ځائې نه دا اچوی او د هغۀ ځائې نه هغۀ اچوی، و قال ابن بکر فتختها، یو روای د فتخها او یو رواوی فتختها وئیلې دې، فتخته په تاء سره مفرد دې او فتخ بغیر د تاء نه جمع ده، لوئې ګوتۍ ته وائی.

(): صحيح البخاري/العيدين ٧ (٩٦١)، صحيح مسلم/العيدين (٨٨٥)، (تحفة الأشراف: ٢٤٤٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي/العيدين ٦ (١٥٦٣)، ١٩ (١٥٧٦)، مسند احمد (٣/٣١٤، ٣١٨)، سنن الدارمي/الصلاة ٢١٨ (١٦٤٤) (صحيح)

[۱۱۴۲]([1]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وَحَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: أَشْهَدُ عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، وَشَهِدَ ابْنُ عَبَّاسٍ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ خَرَجَ يَوْمَ فِطْرٍ فَصَلَّى، ثُمَّ خَطَبَ، ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ وَمَعَهُ بِلَالٌ". قَالَ ابْنُ كَثِيرٍ: أَكْبَرُ عِلْمِ شُعْبَةَ، فَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ فَجَعَلْنَ يُلْقِينَ.

د عطاء نه روایت دی هغه وایي زه ګواهي کوم په ابن عباس، او ابن عباس ګواهي کوي په رسول الله ﷺ، بېشکه هغه ووتلو د ورکوټي اختر په ورځ مونځ يي وکړو، بيايي خطبه وويله، بيا ښځوته راغی اودهغه سره بلال وو. ويلي دي ابن کثير: لوی علم د شعبه دا دی. چې امريي وکړو هغوی ته په صدقې سره نو شروع شوې هغوی چې اچولو يي.

[۱۱۴۳]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ: "فَظَنَّ أَنَّهُ لَمْ يُسْمِعِ النِّسَاءَ، فَمَشَى إِلَيْهِنَّ وَبِلَالٌ مَعَهُ، فَوَعَظَهُنَّ وَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ" فَكَانَتِ الْمَرْأَةُ تُلْقِي الْقُرْطَ وَالْخَاتَمَ فِي ثَوْبِ بِلَالٍ.

د ابن عباس نه روایت دی په معنی دهغه حدیث سره، هغه وايي: د هغه ګمان دی چې هغه ښځوته نه دی اوروليـ لاړلو هغوی ته اوبلال ورسره وو، نووعظ يي ورته وکړو او امريي ورته وکړو په صدقه، وه به زنانه چې اچولو به يي اوالۍ او ګوتمه په جامه د بلال کې.

[۱۱۴۴]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَجَعَلَتِ الْمَرْأَةُ تُعْطِي الْقُرْطَ وَالْخَاتَمَ، وَجَعَلَ بِلَالٌ يَجْعَلُهُ فِي كِسَائِهِ، قَالَ: فَقَسَمَهُ عَلَى فُقَرَاءِ الْمُسْلِمِينَ.

د ابن عباس نه روایت دی په دې حديث کې هغه ويلي دي: شروع شوه ښځه چې ورکوله به يي اوالۍ او ګوتمه، او شروع شو بلال چې اچولو به يي په خپله جامه کې، هغه وايي: هغه تقسيم کړي په غريبانو مسلمانانو باندې.

## بَابُ يَخْطُبُ عَلَى قَوْسٍ

### باب دی چې خطبه وايي په لينډې باندې

[۱۱۴۵]([4]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي جَنَابٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْبَرَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نُوِّلَ يَوْمَ الْعِيدِ قَوْسًا فَخَطَبَ عَلَيْهِ".

يزيد بن البراء د خپل پلار نه روايت کوي، بېشکه نبي ﷺ ته ورکړی شو د اختر په ورځ لينده، خطبه يي وويله په هغې.

---

[1]): صحيح البخاري/الأذان ۱۶۱ (۸۶۳)، والعيدين ۱۶ (۹۷۵)، ۱۸ (۹۷۷)، والزكاة ۳۳ (۱٤٤۹)، والنكاح ۱۲۵ (۵۲٤۹)، واللباس ۵۶ (۵۸۸۰)، والاعتصام ۱۶ (۷۳۲۵)، صحيح مسلم/العيدين (۸۸٤)، سنن النسائي/العيدين ۱۳ (۱۵۷۰)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۵۵ (۱۲۷۳)، (تحفة الأشراف: ۵۸۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۰/۱، ۲۲۶، ۲٤۳، ۳٤۵، ۳٤۶، ۳۵۷، ۳۶۸)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۱۸ (۱۶٤٤)، و انظر ما يأتي برقم (۱۱۵۹) (صحيح)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۸۸۳) (صحيح)

[3]): انظر حديث رقم: ۱۱٤۲، (تحفة الأشراف: ۵۸۸۳) (صحيح)

[4]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۶۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸۲/٤، ۳۰٤) (حسن)

**تشريح: قوله:** ان النبی صلی الله علیه وسلم نُوّل یوم العید قوسا فخطب علیه، نُوّلَ د ماضی مجهول صيغه ده تنویل په معنی د عطاء کول یعنی حضور ﷺ ته د اختر په مونځ کمان پيش کړې شو او حضور ﷺ به د هغې په سهاره باندې اودریدلو او خطبه به ئې ورکوله، په ابواب الجمعه کښې په باب الرجل یخطب علی قوس کښې تير شوې دې، د دې متعلقات دې هلته اوکتلې شي.

## بَابُ تَرْكِ الْأَذَانِ فِي الْعِيدِ
### باب دی په بيان د ترک د اذان کې په اختر کې

د اختر مونځ بغير د آذان او اقامت نه دې عندالائمه اربعة، حافظ عراقی او ابن قدامه حنبلی په دې باندې اجماع نقل کړې ده البته ابن قدامه د عبدالله بن زبير په حقله ليکلي دی چه هغه د اخترونو دپاره د آذان او اقامت قائل وو او د نورو هم ډيرو حضراتو نوم په دې کښې اختسلې شی چنانچه وئيلې شی چه، اول من اذّن فی العیدین ابن زیاد و قیل حجاج و قیل مروان و قیل معاویة، ابن العربی فرمائی چه حضرت معاویه رضی الله عنه ته د دې نسبت کول غير موثق طريقې سره دې.

[۱۱٤٦] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَابِسٍ، قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ ابْنَ عَبَّاسٍ: أَشَهِدْتَ الْعِيدَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: نَعَمْ، وَلَوْلَا مَنْزِلَتِي مِنْهُ مَا شَهِدْتُهُ مِنَ الصِّغَرِ، فَأَتَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَلَمَ الَّذِي عِنْدَ دَارِ كَثِيرِ بْنِ الصَّلْتِ "فَصَلَّى، ثُمَّ خَطَبَ وَلَمْ يَذْكُرْ أَذَانًا وَلَا إِقَامَةً، قَالَ: ثُمَّ أَمَرَ بِالصَّدَقَةِ، قَالَ: فَجَعَلَ النِّسَاءُ يُشِرْنَ إِلَى آذَانِهِنَّ وَحُلُوقِهِنَّ، قَالَ: فَأَمَرَ بِلَالًا، فَأَتَاهُنَّ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د عبد الرحمن بن عباس نه روايت دی هغه ويلي دي: تپوس وکړو يو سړي د ابن عباس نه، ايا ته د رسول الله ﷺ سره اختر ته حاضر شوی يې؟ هغه وويل: آو، که زما مرتبه د هغه سره نه وی نو زه به په وړکوټوالي کې حاضر شوی نه وم، نو راغی رسول الله ﷺ هغه نخې ته چې د کثير بن الصلت د کور په خوا کې وه مونځ يې وکړو، بيايې خطبه وويله، او ذکر د اذان يې ونه کړو او نه د اقامت، هغه وايي: بيايي امر وکړو مونږ ته په صدقې باندې. هغه وايي: شروع شوې ښځې چې اشارې يې کولې خپلو غوږونو او مرو ته. هغه وايي: امريې وکړو بلال ته، راغی هغوی ته بيا واپس شو نبي ﷺ.

**تشريح: قوله:** سال رجل ابن عباس اشهدتَ العید مع رسول الله صلی الله علیه وسلم قال نعم و لو لا منزلتی منه ما شهدت من الصغر،

### مضمون حديث:

يو سړی د حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته تپوس اوکړو چه آيا د حضور ﷺ په زمانه کښې تاسو د حضور ﷺ سره عيدګاه ته تللې وی او د اختر مونځ موکړې دې هغوی اوفرمائيل آو

[1]: صحيح البخاري/الأذان ١٦١ (٨٦٣)، العيدين ١٦ (٩٧٥)، ٨١ (٩٧٧)، النكاح ١٢٥ (٥٢٤٩)، الاعتصام ١٢٥ (٥٢٤٩)، سنن النسائي/العيدين ١٨ (١٥٧٦)، (تحفة الأشراف: ٥٨١٦) (صحيح)

داسې شوې دی او که زما د حضور ﷺ سره خصوصي تعلق او رشته نۀ وی نو شاید زۀ به د هغوی سره د وړوکوالی د وجه نه عیدګاه ته نۀ شوم تللې، (ځکه چه واړۀ ماشومان د لویو سره بغیر د څه خصوصي قربت یا د تعلق نه داسې ځایونو ته کوم ځائې شریك کیدې شي) دا ټول ښئۀ پیژنی چه حضرت ابن عباس رضي الله عنه د حضور ﷺ د ترۀ ځوئې وو او د دېنه علاوه د علم او فضل، عقل او دانش حامل وو.

**قوله:** فاتی رسول الله صلی الله علیه وسلم العلم الذی عند دار کثیر بن الصلت، ابن عباس رضي الله عنه د حضور ﷺ سره عیدګاه ته د تشریف اوړولو بیان کوی او دا چه دغه وخت عیدګاه کوم ځائې وه د دې پته یعنی ځائې ښائی، چه حضور ﷺ هغه میدان ته تشریف یوړلو په کوم کښې چه یو خاص قسم نښه او علامه وه، او دا ځائې د کثیر بن الصلت د کور سره نزدې دې، مراد دا دې چه دغه وخت د کثیر بن الصلت کور چه کوم ځائې کښې وو هغې سره نزدې عیدګاه وه، کثیر بن الصلت د لویو تابعینو نه دې، د دې روایت نه دې دا اونۀ ګڼړلې شی چه دا کور د حضور ﷺ په زمانه کښې هم موجود وو، ځکه چه دا کور د حضور ﷺ د وصال نه څۀ موده پس جوړ شوې وو وړاندې نۀ وو.

د دې حدیث نه دا هم معلومه شوه چه د حضور ﷺ په زمانه کښې عیدګاه وه او د دې څه خاص نښه او علامه هم وه یعنی مثلاً، څه بناء (آبادی) یا ستون (ستن).

واضحه دې وی چه دا روایت متفق علیه دې امام بخاری او مسلم دواړو ددې تخریج کړې دې.

**قوله:** و لم یذکر اذاناً و لا اقامة، راوی وائی چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د دې سوال په جواب کښې د اختر د مونځ دپاره د آذان او اقامت هیڅ یو ذکر هم نشته دې، لهذا د دېنه معلومه شوه چه د اختر دپاره آذان او اقامت نشته دې.

[۱۱٤۷] ([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الْعِيدَ بِلَا أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ". وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، أَوْ عُثْمَانَ، شَكَّ يَحْيَى.

د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی بېشکه رسول الله ﷺ د اختر مونځ وکړو بې د اذان او اقامت نه، او ابو ابکر او عمر، او یا عثمان. شک کړی دی یحیی.

[۱۱٤۸] ([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَهَنَّادٌ وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ سِمَاكٍ يَعْنِي ابْنَ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ مَرَّةٍ وَلَا مَرَّتَيْنِ الْعِيدَيْنِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ".

د جابر بن سمرة نه روایت دی هغه ویلي دي: ما مونځ د اختر وکړو د نبي ﷺ سره یو ځل نه او نه دوه ځله بغیر د اذان او اقامت نه.

[1]: صحیح البخاري/العیدین ۸ (۹٦۲)، ۱۹ (۹۷۸)، التفسیر ۳ (٤۸۹٥)، صحیح مسلم/العیدین ۸ (۸۸٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٥٥ (۱۲۷٤)، (تحفة الأشراف: ٥٦۹۸) (صحیح)

[2]: صحیح مسلم/العیدین (۸۸۷)، سنن الترمذي/الصلاة ۲٦۷ (الجمعة ۳۲) (٥۳۲)، (تحفة الأشراف: ۲۱٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٤/٥، ۱۰۷) (حسن صحیح)

# بَابُ التَّكْبِيرِ فِي الْعِيدَيْنِ

## باب دی په بیان د تکبیر کې په اخترونو کې

## تکبیرات عیدین سره متعلق مسائل اربعه

(۱) حکم التکبیر، (۲) عدد التکبیر، (۳) محل التکبیر، (۴) مسئله اختلافیه

### مسئله اولی:

تکبیرات عیدین دحنفیه او مالکیه په نیز واجب دي او د امام شافعی او احمد په نیز سنت دي.

### مسئله ثانیه:

په دې کښې د علماؤ لس اقوال دی کوم چه حضرت په بذل المجهود کښې ذکر فرمائیلي دی موږ دلته د هغې نه صرف د ائمه اربعه مذاهب بیانوو، د ائمه ثلاثه په نیز باندې په اولنی رکعت کښې اووهٔ تکبیرات دی او په دویم رکعت کښې پنځه، خو د امام شافعی په نیز په رومبی رکعت کښې اووهٔ تکبیرات د تکبیر تحریمه نه علاوه دی او مع تحریمه اتهٔ دی، او د امام مالك او احمد په نیز باندې اووهٔ تکبیرات سره د تحریمه دی، او دحنفیانو په نیز باندې ټول تکبیرات شپږ دی په هر رکعت کښې درې درې تکبیرات دی.

### مسئله ثالثه:

د ائمه ثلاثه په نیز محل د تکبیر په دوو رکعتو کښې قبل القراءة دې، او دحنفیانو په نیز باندې فرق دې په اولنی رکعت کښې تکبیرات قبل القراءت دی او په دویم رکعت کښې قبل الرکوع دی، په دې صورت کښې به موالات بین القراءتین اوشی، او د جمهورو په نیز باندې تکبیرات د قراءتین په وسط کښې کیږی، په شرح احیاء کښې لیکلي دی چه موالات بین القراءتین او تکبیر ثلاثا د عبدالله بن مسعود، ابوموسٰی اشعری، ابوسعید الخدری، براء بن عازب او د ابوهریره رضی الله عنه نه منقول دی، چنانچه په مصنف عبدالرزاق کښې دعلقمه او اسود نه روایت دې چه د یو ځل واقعه ده چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه تشریف فرما وو او دغه وخت دوئ سره حذیفه او ابو موسٰی اشعری رضی الله عنهما موجود وو چه په حاضرینو کښې سعید بن العاص د تکبیرات عیدین په باره کښې سوال اوکړو، حضرت حذیفه رضی الله عنه اوفرمائیل د اشعری نه تپوس اوکړئ په دې باندې ابوموسی اوفرمائیل د عبد الله بن مسعود نه تپوس اوکړئ ځکه چه هغه زمونږ ټولو نه اقدم او اعلم دې، ابن مسعود رضی الله عنه نه سوال اوکړې شونو هغوی د تکبیراتو عدد او د دې د ترتیب په باره کښې هم هغه بیان اوکړو د کومو چه حنفیان قائل دی.

### مسئله رابعه:

دلته یوه بله اختلافی مسئله ده هغه دا چه تکبیرات د عیدینو د امام ابوحنفیه او شافعی او احمد دریواړو په نیز باندې د رفع یدینو سره دی او د امام مالك په روایت کښې دا دی چه رفع یدین به صرف په تکبیر تحریمه کښې وی په باقی تکبیراتو کښې به نهٔ وی و الیه ذهب ابویوسف.

[۱۱۴۹](۱)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُكَبِّرُ فِي الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى فِي الْأُولَى سَبْعَ تَكْبِيرَاتٍ، وَفِي الثَّانِيَةِ خَمْسًا".

د عائشي ﷺ نه روايت دى چې تكبيري ويلو په وركوتي او غټ اختر كې، په اولني كې اوه تكبيرونه او په دويم كې پنځه.

۱:. حدثنا قتيبة.. الخ، قوله، عن عائشة ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يكبر فى الفطر والاضحى فى الاولى سبع تكبيرات و فى الثانية خمسًا، دا حديث په عدد د تكبيراتو كښې د ائمه ثلاثه مستدل دې، د دې په سند كښې ابن لهيعه اعرابى دى چه متكلم فيه دې، او واقعه دا ده چه څنګه د امام احمد نه منقول دى چه د تكبيراتو د عيدين په سلسله كښې يو صحيح او قوى حديث نشته دې.

[۱۱۵۰](۲)حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "سِوَى تَكْبِيرَتَيِ الرُّكُوعِ".

د ابن شهاب نه روايت دى په اسناد د هغي سره او په معنى د هغي سره، هغه ويلي دي: علاوه د دوه تكبيرونو د ركوع نه.

[۱۱۵۱](۳)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الطَّائِفِيَّ يُحَدِّثُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "التَّكْبِيرُ فِي الْفِطْرِ سَبْعٌ فِي الْأُولَى، وَخَمْسٌ فِي الْآخِرَةِ، وَالْقِرَاءَةُ بَعْدَهُمَا كِلْتَيْهِمَا".

د عبد الله بن عمرو بن العاص نه روايت دى هغه ويلي دي، ويلي دي نبي ﷺ: تكبير په اولني كې اوه دي، او پنځه دي په وروستني كې، او قراءت وروسته د دواړو نه دى.

[۱۱۵۲](۴)حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ حَيَّانَ، عَنْ أَبِي يَعْلَى الطَّائِفِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُكَبِّرُ فِي الْفِطْرِ الْأُولَى سَبْعًا، ثُمَّ يَقْرَأُ، ثُمَّ يُكَبِّرُ، ثُمَّ يَقُومُ فَيُكَبِّرُ أَرْبَعًا، ثُمَّ يَقْرَأُ، ثُمَّ يَرْكَعُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ وَكِيعٌ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، قَالَا: "سَبْعًا وَخَمْسًا".

د عمروبن شعيب عن ابيه عن جده نه روايت دى، بېشكه نبي ﷺ وو چې تكبيريې ويلو په وركوتي اختر كې په اولني ركعات كې اوه، بيا به يې قراءت لوستلو، بيا به يې تكبير ويلو بيا ودريدلو تكبيرونه به يې ويل څلور، بيا به يې قراءت كولو، بيا به يې ركوع كوله. ويلي دي ابوداود: روايت كړى دى وكيع او ابن المبارک، دواړو ويلي دي: اوه او پنځه.

[۱۱۵۳](۵)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَابْنُ أَبِي زِيَادٍ الْمَعْنَى قَرِيبٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا زَيْدٌ يَعْنِي ابْنَ حُبَابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَكْحُولٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو عَائِشَةَ جَلِيسٌ لِأَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ سَأَلَ

۱): سنن ابن ماجه/إقامة ۱۵۶ (۱۲۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱٦٤۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٦۵، ۷۰) (صحيح)

۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱٦٤۲۵) (صحيح)

۳): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۵٦ (۱۲۷۸)، (تحفة الأشراف: ۸۷۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۰/۲) (حسن)

۴): انظر حديث رقم: ۱۱۵۱، (تحفة الأشراف: ۸۷۲۸) (حسن صحيح)

۵): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۳۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٦/٤) (حسن) (ملاحظه هو: صحيح ابي داود ١٠٤٦م)

أَبَا مُوسَى الْأَشْعَرِيَّ، وَحُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ: كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ؟ فَقَالَ أَبُو مُوسَى: "كَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا تَكْبِيرَهُ عَلَى الْجَنَائِزِ"، فَقَالَ حُذَيْفَةُ: صَدَقَ، فَقَالَ أَبُو مُوسَى: كَذَلِكَ كُنْتُ أُكَبِّرُ فِي الْبَصْرَةِ حَيْثُ كُنْتُ عَلَيْهِمْ، وَقَالَ أَبُو عَائِشَةَ: وَأَنَا حَاضِرٌ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ.

بېشکه سعيد بن العاص تپوس وکړو د ابو موسی الاشعري نه او د حذيفة بن اليمان نه، څرنګه وو رسول الله ﷺ چې تکبير به يي ويلو په غټ او ورکوټي اخترونو کې؟ ابو موسی وويل: هغه به څلور تکبيرونه ويل په جنازو باندې. وويل حذيفه: رشتيايي وويل، وويل ابو موسی: همداسې به ما تکبيرونه ويل په بصره کې، په کوم ځای کې چې زه مشر وم په هغوی. او ويلي دي ابو عائشه: او زه حاضر وم سعيد بن العاص ته.

قوله فقال ابوموسٰی کان يکبر اربعا تکبيره علی الجنائز، ابوموسٰی اشعری رضی الله عنه دا حديث د کوم تصديق چه حضرت حذيفه رضی الله عنه هم کړې دي د حنفيانو دليل دي د دوئ په نيز باندې په رومبی رکعت کښې سره د تکبير تحريمه څلور تکبيرات دی، دغه شان په دويم کښې هم سره د تکبير د رکوع څلور دی.

## د حنفيانو په دليل باندې د شافعيه نقد:

په دې باندې شافعيه وغيره دا نقد کړې دې چه د دې په سند کښې يو راوی ابوعائشه دې کوم چه مجهول دې، دغه شان عبدالرحمٰن بن ثوبان دا ضعيف دې، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه د عبدالرحمٰن بن ثوبان جرح متفق عليه نهٔ ده بلکه ډېرو علماؤ د دهٔ توثيق کړې دې، په بذل کښې په دې باندې تفصيلی کلام دې، او هم داسې ليکلې ئې دی چه دابوعائشه نه روايت کونکی دلته په سند کښې مکحول دې او د دهٔ متابعت کړې دې خالد بن معدان لکه څنګه چه په تهذيب التهذيب وغيره کتابونو د رجال کښې موجود دی. علامه زيلعی فرمائی چه، سکت عنه ابوداؤد ثم المنذری و رواه احمد في مسنده.

# بَابُ مَا يُقْرَأُ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ

## باب دی چې څه به لوستل کېږي په غټ او ورکوټي اختر کې

[۱۱۵۴] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ضَمْرَةَ بْنِ سَعِيدٍ الْمَازِنِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سَأَلَ أَبَا وَاقِدٍ اللَّيْثِيَّ: مَاذَا كَانَ يَقْرَأُ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ؟ قَالَ: "كَانَ يَقْرَأُ فِيهِمَا قٓ وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ، وَاقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ".

بېشکه عمر بن الخطاب تپوس وکړو د ابو واقد الليثي نه، رسول الله ﷺ به څه شی لوستلو غټ او ورکوټي اختر کې؟ هغه وويل: هغه به لوستل په دواړو کې ق و القرآن المجيد او اقتربت الساعة او انشق القمر

په حديث الباب کښې دی چه يو ځل حضرت عمر رضی الله عنه د ابوواقدليثی نه سوال اوفرمائيلو چه حضور ﷺ به د اخترونو په مانځه کښې څهٔ لوستل هغوی اوفرمائيل چه سورهٔ قاف او

(۱): صحيح مسلم/العيدين ۳ (۸۹۱)، سنن الترمذي/الصلاة ۲٦۸ (الجمعة ۳۳)، (۵۳٤، ۵۳۵)، سنن النسائي/العيدين ۱۱ (۱۵٦۸)، سنن ابن ماجه/إقامة ۱۵۷ (۱۲۸۲)، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۱۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ العيدين ٤ (۸)، مسند احمد (۲۱۷/۵، ۲۱۸، ۲۱۹) (صحيح)

سورة قمر به ئې لوستل، او د دینه وړاندې په ابواب الجمعه کښې د نعمان بن بشیر په حدیث کښې تیر شوې دی چه حضور ﷺ به د اخترونو او د جمعې په مانځه کښې سبح اسم ربك الاعلی او هل اتاك حديث الغاشيه لوستل، یعنی کله به ئې هغه لوستل او کله دا.

## بَابُ الْجُلُوسِ لِلْخُطْبَةِ

### باب دی په بیان د کیناستلو کې د خطبې دپاره

[١١٥٥] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى السِّينَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِيدَ، فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ، قَالَ: "إِنَّا نَخْطُبُ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَجْلِسَ لِلْخُطْبَةِ فَلْيَجْلِسْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَذْهَبَ فَلْيَذْهَبْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مُرْسَلٌ عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د عبد الله بن السائب نه روایت دی هغه وایي زه حاضر شوم د رسول الله ﷺ سره اختر ته، هرکله یې چې مونځ پوره کړو، ویې ویل: مونږ خطبه وایو د چا چې خوښه وي چې کیني نو هغه دې کیني، او د چا چې خوښه وي چې لاړ شي نو لاړ دې شي. ویلي دي ابوداود: دا مرسل دی د عطاء نه او هغه د نه ﷺ نه نقل کړی دی.

قوله، قال انا نخطب فمن احبَّ ان يجلس للخطبة فليجلس و من احبَّ ان يذهب فليذهب، په بذل المجهود کښې لیکلي دی چه د دې نه معلومه شوه چه د خطبې د اوریدلو دپاره کیناستل واجب نهٔ دی، انتهی کلامه، خو که کینی نو انصات یعنی چپوالی او سکوت پرې لازم دې.

قال ابوداؤد هذا مرسل، یعنی صحیح دا ده چه دا حدیث د عطاء مرسل دې دصحابی یعنی عبدالله بن السائب ذکر دلته په سند کښې صحیح نهٔ دی، یو راوی د صحابی نوم په غلطئ سره زیات کړې دې او دې حدیث لره ئې مسند جوړ کړې دې حال دا دې چه په اصل کښې دا روایت مرسل وو.

## بَابُ يَخْرُجُ إِلَى الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ وَيَرْجِعُ فِي طَرِيقٍ

### باب دی په بیان د وتلو کې د اختر لپاره په یوه لار او راتلل په بله لار

[١١٥٦] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَخَذَ يَوْمَ الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ، ثُمَّ رَجَعَ فِي طَرِيقٍ آخَرَ".

د ابن عمر رضي الله عنهما نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ لاړلو د اخپر په ورځ یوه لار بیا راواپس شو په بله لار.

په حدیث الباب کښې دی چه ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی چه حضور ﷺ به عیدګاه ته د تللو دپاره یوه لاره اختیاروله او د واپس کیدو دپاره به ئې بله لاره، فقهاؤ هم دې اختلاف د لارې یعنی د لارې بدلولو لره مستحب لیکلې دې، د دې علماؤ ډیر حکمتونه لیکلي دی، حافظ ابن حجر فرمائی چه د شلو نه زیات زما د وړاندې حِکَم یعنی حکمتونه جمع شوې دی،

(١): سنن النسائي/العيدين ١٤ (١٥٧٢)، سنن ابن ماجه/إقامة ١٥٩ (١٢٩٠)، (تحفة الأشراف: ٥٣١٥) (صحيح)

(٢): سنن ابن ماجه/إقامة ١٦٢ (١٢٩٩)، (تحفة الأشراف: ٧٧٢٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٩/٢) (صحيح)

مثلا ، شهادة الطريقين و سكانهما من الثقلين، يعنى دې دپاره چه د قيامت په ورځ دواړه لارې د دې سړى په حق کښې ګواهى ورکړى او هم دغه شان د دواړو ځايونو ساکنين يعنى اوسيدونکى جن او انس، ۲. د اسلام د شان او شوکت اظهار، ۳. حصول البركة للطريقين.

## بَاب إِذَا لَمْ يَخْرُجِ الْإِمَامُ لِلْعِيدِ مِنْ يَوْمِهِ يَخْرُجُ مِنَ الْغَدِ

### باب دى، کله چې امام د اختر په ورځ ونه وځي نو وځي صباته

يعنى د اختر مونځ د څه وجه نه د اختر په ورځ باندې اونۀ کړې شى نو ورپسې ورځ کښې به د دې قضاء کولې شى.

[۱۱۵۷] (١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي وَحْشِيَّةَ، عَنْ أَبِي عُمَيْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عُمُومَةٍ لَهُ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَكْبًا جَاءُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْهَدُونَ أَنَّهُمْ رَأَوُا الْهِلَالَ بِالْأَمْسِ "فَأَمَرَهُمْ أَنْ يُفْطِرُوا، وَإِذَا أَصْبَحُوا أَنْ يَغْدُوا إِلَى مُصَلَّاهُمْ".

د ابو عمير بن انس نه روايت دى، هغه روايت کوي د هغه د ترونو نه چې د رسول الله ﷺ د صحابو نه وو: بېشکه يو وفد راغى رسول الله ﷺ ته هغوى ګواهي کوله چې مونږ سپوږمۍ ليدلې ده پرون، نو امر يې وکو هغوى ته چې روژه ماته کړي، چې کله صباح کړي دوى نو لاړې شي خپلې مصلى ته.

**تشريح: قوله:** ان رکبًا جاؤا الى النبى صلى الله عليه وسلم يشهدون انهم راءوا الهلال بالامس فامرهم ان يفطروا و اذا اصبحوا ان يغدوا الى مصلاهم، يعنى يوه قافله او جماعت د مدينې نه د بهر نه د حضور ﷺ په خدمت کښې راغلو او هغوى په راتلو سره شهادت ورکړو چه هغوى په تير شوي يوکم دېرشمې نيتې باندې د اختر مياشت ليدلې ده حضور ﷺ د هغوى شهادت قبول اوفرمائيلو او خلقو ته ئې د روژې د ماتولو حکم ورکړو او دا چه راروانه ورځ دې عيدګاه ته د مانځه دپاره راواورسى.

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:

د دينه معلومه شوه چه د اختر د مانځه قضاء شته که د امام او قوم ټولو نه فوت شى د وروکى اختر صرف په ورپسى ورځ باندې او د لوئې اختر د يوم النحر تر آخرى ورځ پورې د حنفيانو مذهب هم دا دې لکه څنګه چه په هدايه کښې ليکلې دې او په بذل کښې هم، خو حضرت شيخ رحمه الله د بذل په حاشيه کښې ليکلې دى چه امام طحاوى رحمه الله د اختر د مانځه د قضاء مذهب صرف د امام ابويوسف نقل کړې دې، او امام صاحب رحمه الله طرف ته ئې دا منسوب کړې دى چه هغه د قضاء قائل نۀ دې، علامه شوکانى د امام احمد ، امام ابوحنيفه او د صاحبينو مذهب د قضاء د مشروعيت ليکلې دې، او ملا على قارى د امام شافعى په دې کښې دوه قوله ذکر کړې دى خو په روضة المحتاجين صفحه، ۲۲۶ ، کښې ليکلې دى چه، يسُنُّ قضاءها ان خرج وقتها، او علامه شعرانى رحمه الله د امام مالك مذهب د عدم قضاء ليکلې دې او هم دا د انوار ساطعه نه هم معلوميږى، خلاصه دا چه د ائمه ثلاثه په نيز قضاء شته ده

(١): سنن النسائي/العيدين ١ (١٥٥٨)، سنن ابن ماجه/الصيام ٦ (١٦٥٣)، (تحفة الأشراف: ١٥٦٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٥٧، ٥٨) (صحيح)

او د مالیکه په نیز باندې نشته.
دلته یوه مسئله بله ده د کومې دپاره چه امام بخاری ترجمه قائمه کړې ده، باب اذا فاته العید یصلی رکعتین، چه که په کوم ښار کښې د اختر مونځ شوې وی او یو سړې په دې کښې شریك نه شی نو د دې سړی په حق کښې هم قضاء شته او که نه، حضرت شیخ رحمه الله په تراجم بخاری صفحه، ۲۰ ج، ۳، کښې لیکلې دی چه د مالیکه په دې کښې څلور روایتونه دی، راجع دا دې چه داسې سړی دپاره قضاء د اختر مستحب ده منفرداً لا جماعة، هم داسې د شافعیه په نیز هم مشروع ده خو منفرداً، و عند الحنابلة یسنّ قضائها یومها قبل الزوال و بعده علی صفتها، او د حنفیانو مسلك ئې په درمختار کښې دا لیکلې دې چه، ولا یصلیها وحده ان فاتت مع الامام.

[۱۱۵۸] (۱) حَدَّثَنَا حَمْزَةُ بْنُ نُصَيْرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سُوَيْدٍ، أَخْبَرَنِي أُنَيْسُ بْنُ أَبِي يَحْيَى، أَخْبَرَنِي إِسْحَاقُ بْنُ سَالِمٍ مَوْلَى نَوْفَلِ بْنِ عَدِيٍّ، أَخْبَرَنِي بَكْرُ بْنُ مُبَشِّرٍ الْأَنْصَارِيُّ، قَالَ: "كُنْتُ أَغْدُو مَعَ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمُصَلَّى يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ الْأَضْحَى، فَنَسْلُكُ بَطْنَ بَطْحَانَ حَتَّى نَأْتِيَ الْمُصَلَّى، فَنُصَلِّيَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ نَرْجِعُ مِنْ بَطْنِ بَطْحَانَ إِلَى بُيُوتِنَا".

مونږ ته خبر راکړی دی بکر بن مبشر الانصاري، هغه ویلي دي: وم زه چې تلم به د صحابو د رسول الله ﷺ سره مصلی ته د ورکوتي او غټ اختر په ورځ، مونږ به تللو د بطحان په مینځ کې تردې چې مصلی ته به راغلو، نو مونږ به مونځ وکړو د رسول الله ﷺ سره بیا به واپس کیدو خپلو کورونو ته د بطحان په مینځ.

**تشریح: قوله:** کنت اغدو مع اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم الی المصلی، یو صحابی بکر بن مبشر فرمائی چه مونږ به عیدګاه ته تللو د بطن بطحان په لار باندې (بطحان د یوې وادئ نوم دې) او بیا به هم په دې لارې سره واپس راتللو، د دینه معلومه شوه چه د لارې بدلول ضروری نه دی بلکه صرف سنت یا مستحب دی.
د دې حدیث د ترجمة الباب سره هیڅ مناسبت نشته دې بلکه دسابقه ترجمې سره ئې مناسب دې، لهذا دې حدیث لره دلته ذکر کول بظاهر د ناسخینو تصرف دې.

## بَابُ الصَّلَاةِ بَعْدَ صَلَاةِ الْعِيدِ

### باب دی په بیان د مونځ کې وروسته د اختر مانځه نه

د اختر په ورځ د اختر د مانځه نه وړاندې یا روستو نفل کول د حنفیانو په نیز باندې مکروه دی د امام او غیر امام دواړو دپاره، د اختر نه وړاندې خو مطلقا او د اختر د مانځه نه پس صرف په مصلی یعنی عیدګاه کښې په کور کښې کولې شی، د ابن ماجه په حدیث کښې دی چه حضور ﷺ به بعد العید په کور کښې رکعتین کول، او د امام شافعی په نیز کراهیت صرف د امام په حق کښې دې مطلقا او د مقتدی دپاره مطلقا جائز دې، او امام مالك رحمه الله فرمائی چه د امام په حق کښې خو کراهیت مطلقا دې او د مقتدی په حق کښې کراهیت هغه وخت دې کله چه مونځ په عیدګاه کښې وی او که په جومات کښې وی د کوم عذر باران وغیره د وجه نه نو بیا د مقتدی په حق کښې مکروه نه دی (المنهل وغیره) او د

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۰۲۶) (ضعیف)

حنابله مذهب په مغني وغیره کښې دا لیکلي دي چه کراهیت خاص د مانځه تر ځائې پورې دې خواه که په مصلی کښې وی یا په جومات کښې د دینه علاوه په نور ځایونو کښې مطلقا جائز دي.

[۱۱۵۹](۱)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، حَدَّثَنِي عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فِطْرٍ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهُمَا وَلَا بَعْدَهُمَا، ثُمَّ أَتَى النِّسَاءَ وَمَعَهُ بِلَالٌ، فَأَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ، فَجَعَلَتِ الْمَرْأَةُ تُلْقِي خُرْصَهَا وَسِخَابَهَا".

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی، هغه ویلي دي: راووتلو رسول الله ﷺ د ورکوتي اختر په ورځ دوه رکعاته مونځ یې وکړو مخکې او وروسته یې ترینه مونځ ونه کړو، بیا ښځو ته راغی او بلال ورسره وو، هغوی ته یې امر وکړو په صدقې سره، نو شروع شوه ښځه چې غوږځوله به یې خپله اوالی او ګوتمه.

قوله خرج رسول الله صلى الله عليه وسلم يوم فطر فصلى ركعتين لم يصل قبلها و لا بعدها ، د ائمه د مذاهبو تفصیل د ترجمة الباب د لاندې تیر شوې دې، دا حدیث د امام شافعي د مسلك عین مطابق دې ځکه چه د دې حدیث تعلق د امام سره دې او حضور ﷺ امام وو او حضور ﷺ د اختر د مانځه نه وړاندې یا بعد نفل مونځ نۀ دې کړې او هم دا شافعیه وائی چه کراهیت صرف د امام دپاره دې مالیکه هم دا وائی چه کراهیت صرف د امام دپاره دې او د مقتدی په حق کښې د دوئ په نیز تفصیل دي.

قوله، تلقی خرصها، د غوږونو والۍ، و سخابها، د غاړې امیل.

## باب يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْعِيدَ فِي الْمَسْجِدِ إِذَا كَانَ يَوْمَ مَطَرٍ

### باب دی چې مونځ کوي خلقو ته په مسجد کې کله چې د باران ورځ وي

[۱۱۶۰](۲)حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ. ح حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا رَجُلٌ مِنَ الْفَرْوِيِّينَ، وَسَمَّاهُ الرَّبِيعُ فِي حَدِيثِهِ عِيسَى بْنَ عَبْدِ الْأَعْلَى بْنِ أَبِي فَرْوَةَ، سَمِعَ أَبَا يَحْيَى عُبَيْدَ اللَّهِ التَّيْمِيَّ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ أَصَابَهُمْ مَطَرٌ فِي يَوْمِ عِيدٍ "فَصَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْعِيدِ فِي الْمَسْجِدِ".

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی: بېشکه ورسیدو هغوی ته باران د اختر په ورځ نو مونځ وکړو دوی ته رسول الله ﷺ د اختر په مسجد کې.

**تشریح:** قاعده دا ده چه د اختر مونځ دې په صحراء یعنی عیدګاه کښې ادا کړې شي الا بعذر مثل المطر، چنانچه په حدیث الباب کښې دی چه یو ځل په مدینه منوره کښې د اختر په ورځ باندې باران وو او چه دهغې د وجه نه حضور ﷺ د اختر مونځ د عیدګاه په ځائې باندې په

(۱): صحيح البخاري/العيدين ٨ (٩٦٤)، ٢٦ (٩٨٩)، الزكاة ٢١ (١٤٣١)، اللباس ٥٧ (٥٨٨١)، ٥٩ (٥٨٨٣)، صحيح مسلم/العيدين (٨٨٤)، سنن الترمذي/الجمعة ٣٥ (٥٣٧)، سنن النسائي/العيدين ٢٩ (١٥٨٨)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ١٦٠ (١٢٩١)، (تحفة الأشراف: ٥٥٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٥٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٢١٩ (١٦٤٦)، وانظر أيضاحديث رقم: ١١٤٢) (صحيح)

(۲): سنن ابن ماجه/إقامة ١٦٧ (١٣١٣)، (تحفة الأشراف: ١٤١٢٠) (ضعيف)

جومات کښې ادا کړو د جمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه هم دا مذهب دې، په دې کښې د امام شافعی اختلاف دې هغه فرمائی چه په اختر کښې قاعده دا ده چه دا دې په جومات کښې ادا کړې شی که ټول خلق په جومات کښې راتللې شو هغوی فرمائی چه د حضور ﷺ د اختر د مانځه دپاره خروج الی المصلی د ضیق مسجد یعنی د جومات د تنګوالی د وجه وو.

## جُمَّاعُ اَبْوَابِ صَلٰوةِ الْاِسْتِسْقَاءِ وَتَفْرِيْعِهَا

### داستسقاء دابوابو مجموعه او ددې متعلقات

## بَابٌ

### باب: داستسقاء مونځ او ددې احکام او مسائل

ضمیر (په تفریعها کښې) د ابواب طرف ته راجع دې، ای تفریع ابواب صلوة الاستسقاء، لفظ د جماع په ورزن د کتاب او په وزن د رمّان دواړه شان صحیح دې په معنی د جامع یا د مجموع، دا لفظ د دینه وړاندې په ابواب الامامة کښې هم راغلې دې یعنی د ابواب الاستسقاء د تفصیل مجموعه یا جامع بیان، په شروع کښې د تمهید په طور باندې د یو څو خبرو زده کول ضروری دی او په حدیث الباب باندې پوهیدلو دپاره فائده مند دی.

### بحث اول: د استسقاء لغوی تحقیق

استسقاء د سُقیاء نه ماخوذ ده یعنی باران، او د استسقاء معنی شوه طلب السُقیاء، د الله پاك نه د باران طلب كول.

### بحث ثانی: د دې مشروعیت

د دې مشروعیت په شپږم کال د هجرت کښې شوې وو.

### بحث ثالث: دا ددې امت خصوصیت دې

صلوة استسقاء د دې امت د خصائصو نه ده.

### بحث رابع: (د استسقاء دمونځ په جماعت کښې اختلاف)

د جمهورو علماؤ او د ائمه ثلاثه او د صاحبینو په نیز باندې د استسقاء د مانځه دپاره باجماعت مونځ مشروع او مسنون دې او د امام ابوحنیفه په نیز د دې حقیقت دعاء او استغفار دې د دوئ په نیز باندې داستسقاء دپاره باجماعت مونځ مسنون یا مشروع نۀ دې،(قولان) که خلق یواځې بغیر د جماعت نه مونځ اوکړی نو هیڅ باك نشته دې، په دې باندې کلام د باب د رومبی حدیث د لاندې راروان دې.

### بحث خامس: (په صلوة استسقاء کښې د خطبې حکم)

په صلوة استسقاء کښې دټولوعلماؤ په نیزباندې خطبه مسنون ده سوادامام صاحب رحمه الله نه ځکه چه هغه دباجماعت دمانځه قائل نۀ دې،خوخطبه به په زمکه باندې وی نۀ په منبرباندې.

### بحث سادس: (د تحویل رداء حکم)

د خطبې په دوران کښې تحویل رداء یعنی د څادر اړول د امام دپاره د ائمه ثلاثه او د امام محمد په نیز باندې سنت دې د امام صاحب په نیز باندې سنت نۀ دې، لعدم الخطبة و الصلوة

بجماعة، او د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت مختلف دي.

## بحث سابع: (د تكبيرات زوائد حكم)

په دې مانځه كښې د امام احمد او شافعي رحمهما الله په نيز تكبيرات زوائد مشروع دی د اختر د مانځه پشان، هم دا يو روايت د امام محمد رحمه الله نه هم دې او د امام مالك او ابويوسف په نيز باندې په دې كښې تكبيرات زوائد نشته.

## بحث ثامن: (د استسقاء د مونځ د وخت مسئله)

د استسقاء د مونځ وخت د جمهورو په نيز باندې هم هغه دې كوم چه د اختر دې او په يو روايت كښې د امام شافعي نه دا دې چه مطلقا كوم وخت چه غواړې كولې شي.

[۱۱۶۱](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ، عَنْ عَمِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَرَجَ بِالنَّاسِ لِيَسْتَسْقِيَ، فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ جَهَرَ بِالْقِرَاءَةِ فِيهِمَا، وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ وَرَفَعَ يَدَيْهِ فَدَعَا وَاسْتَسْقَى وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ".

د عباد بن تميم نه روايت دى، هغه روايت كوي د خپل تره نه، بېشكه رسول الله ﷺ راووتلو خلقو ته لپاره د طلب د استسقاء خلقو ته يې دوه ركعاته لمونځ وكړو، جهري وكړو په قراءت سره په دواړو كې، او تحويل د څادريې وكړو، او لاسونه يې اوچت كړل، دعاء يې وكړه او مخ يې كړو قبلې ته.

**تشريح: قوله:** عن عباد بن تميم عن عمّه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم خرج بالناس يستسقى فصلى بهم ركعتين جهر بالقراءة فيهما..الخ، دا حديث د عم عباد يعنى د عباد د تره دې د چا نوم چه عبدالله بن زيد بن عاصم دې.

### د روايات الباب جائزه او د استسقاء دپاره د مانځه ثبوت:

په دې باب كښې مصنف رحمه الله صرف دوه حديثونه ذكر كړې دی يو د دوئ او بل د ابن عباس رضي الله عنهما رومبى حديث لره ئې په ګڼرو طريقو سره او دويم حديث ئې صرف په يو طريق سره ذكر كړې دې او د دينه روستو راتلونكى باب كښې مصنف رحمه الله ګڼر روايات ذكر كړې دی د مختلفو صحابه كرامو نه خو په هغې كښې په اكثرو كښې د صلوة ذكر نشته دې بلكه صرف د دعاء ذكر دې، صرف يو روايت د حضرت عائشه رضي الله عنها ئې داسې ذكر كړې دې په كوم كښې چه مونځ ذكر شوې دې خو مصنف په دې باندې د غرابت حكم لګولې دې لكه چه هغه ځائې كښې به راشي، نو ګويا په سنن ابوداؤد كښې په لسو روايتونو كښې صرف په دريو كښې د مونځ ذكر دې، دعبدالله بن زيد بن عاصم، ابن عباس، عائشه رضى الله عنهم اجمعين. امام بخارى رحمه الله د استسقاء دپاره ګڼر تراجم او ابواب قائم كړې دی په كومو كښې چه ګڼر

(1): صحيح البخاري/الاستسقاء ۱ (۱۰۰۵)، ٤ (۱۰۱۲)، ۱۵ (۱۰۲۳)، والدعوات ۲۵ (٦٣٤٣)، صحيح مسلم/الاستسقاء ۱ (۸۹٤)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۷۸ (الجمعة ٤٣) (٥٥٦)، سنن النسائي/الاستسقاء ۲ (۱۵۰٤)، ۳ (۱۵۰٦)، ٥ (۱۵۰۸)، ٦ (۱۵۰۹)، ۷ (۱۵۱۰)، ۸ (۱۵۱۱)، ۱۲ (۱۵۱۹)، ۱٤ (۱۵۲۱)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۱۵۳ (۱۲٦۷)، (تحفة الأشراف: ٥۲۹۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الاستسقاء ۱(۱)، مسند احمد (٣٨/٤، ٣٩، ٤٠، ٤١، ٤٢)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۸۸ (۱٥٤۱) (صحيح)

حدیثونه ذکر کړي دی، خو په هغې کښې د مونځ ذکر صرف د عبدالله بن زید بن عاصم ﷺ په بعضې طرقو کښې دی او هم دا حال د مسلم شریف هم دې، حافظ ابن قیم په زادالمعاد کښې او شیخ عبدالحق محدث دهلوی د سفر السعاده په شرح کښې لیکلې دی چه د حضور ﷺ نه استسقاء (د باران دعاء) شپږ ځله ثابته ده او په دې شپږو کښې صرف یو ځل د مونځ ثبوت ملاویږي، نو ځکه امام صاحب فرمائی چه د استسقاء حقیقت دعاء او استغفار دې، کما قال الله تعالی، استغفروا ربکم انه کان غفارا یرسل السماء علیکم مدرارا، په آیت کریمه کښې نزول مطر یعنی د باران وریدل په استغفار باندې مرتب کړې شوې دې، په هدایه کښې د امام صاحب نه نقل کړې دی چه هغوی اوفرمائیل چه د حضور ﷺ نه استسقاء منقول ده خو په دې کښې صلوة منقول نهٔ دې، په دې باندې علامه زیلعی په نصب الرایه کښې اعتراض کړې دې چه د ثبوت صلوة انکار صحیح نهٔ دې، د دې جواب شیخ ابن الهمام ورکړې دې چه د صاحب هدایه مراد مطلقا نفی نهٔ ده بلکه د کوم استسقاء چه هغه ذکر کوی خاص په هغهٔ استسقاء کښې د مونځ نفی مقصود ده چنانچه یو دوه کرخو نه پس صاحب هدایه په خپله فرمائی چه، فعله مرة و ترکه أخریٰ.

حاصل دا چه استسقاء د حضور ﷺ نه په کثرت سره منقول ده خو په دې کښې د مونځ ثبوت صرف په یو ځل کښې دی نو بیا مونځ ته سنت څنګه وئیلې شي ځکه چه مسنون خو د حضور ﷺ دائمی معمول یا کم نه کم اکثر معمول ته وائی او دلته داسې نهٔ ده، هم دغه شان په یو روایت کښې دی چه د حضرت عمر ﷺ په زمانه کښې یو ځل قحط سالی وه نو هغوی د حضور ﷺ ترهٔ محترم حضرت عباس ﷺ د ځان سره عیدګاه ته بوتلو او هغوی ئې په منبر باندې کینول او په خپله هغوی سره برابر لاندې اودریدلو او د هغوی په وسیله سره ئې دعاء غوغتل شروع کړل، اللهم انا نتوسل الیك بعم نبیك، او تر ډیر وخته پورې دعاء غوغتله د منبر نه له راکخته شوې نهٔ وو چه باران شروع شو، په حدیث الباب کښې دی چه، وجهر بالقراءة، دائمه اربعه مذهب هم دادې چه داستسقاء دپاره په مانځه کښې قراءت به جهرا وی.

[۱۱٦۲] (¹) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، وَيُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبَّادُ بْنُ تَمِيمٍ الْمَازِنِيُّ، أَنَّهُ سَمِعَ عَمَّهُ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا يَسْتَسْقِي، فَحَوَّلَ إِلَى النَّاسِ ظَهْرَهُ يَدْعُو اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ". قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ: "وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ". قَالَ ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ: "وَقَرَأَ فِيهِمَا". زَادَ ابْنُ السَّرْحِ: "يُرِيدُ الْجَهْرَ".

د تمیم المازني نه روایت بېشکه هغه اوریدلي دي د خپل تره نه، او هغه وو د صحابو د رسول الله ﷺ نه، ویل یې: راووتلو رسول الله ﷺ یوه ورځ چې طلب د باران یې کولو خلقو ته یې خپله شا وګرځوله الله یې رابللو ـ ویلي دي سلیمان بن داود: مخ یې کړو قبلې ته او تحویل د څادریې وکړو ـ بیایې دوه رکعاته مونځ وکړو ـ ویلي دي ابن ابي ذئب ـ او قراءت یې وکړو په هغې دواړو کې زیادت کړی دی ابن السرح: چې اراده یې وه د جهر.

¹ انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۲۹۷) (صحیح)

**تشریح: قوله**، انه اسمع عمّه، د دوئ نوم عبدالله بن زید بن عاصم دې لکه چه وړاندې تیر شو، امام بخاری رحمه الله فرمائی چه سفیان بن عیینه ته دلته وهم شوې دې چه دا عبدالله بن زید صاحب آذان دې یعنی عبدالله بن زید بن عبدربه، حال دا دې چه داسې نهٔ ده.

[۱۱۶۳]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، قَالَ: قَرَأْتُ فِي كِتَابِ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ يَعْنِي الْحِمْصِيَّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَالِمٍ، عَنِ الزُّبَيْدِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ بِإِسْنَادِهِ، لَمْ يَذْكُرِ الصَّلَاةَ، قَالَ: "وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ فَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْمَنَ عَلَى عَاتِقِهِ الْأَيْسَرِ، وَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْسَرَ عَلَى عَاتِقِهِ الْأَيْمَنِ، ثُمَّ دَعَا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ".

د محمد بن مسلم نه د دې حدیث روایت دی په خپل اسناد سره هغه نه دی ذکر کړی مونځ، هغه ویلي دي: او تحویل د څادربې وکړو، وبې ګرځولو طرف د هغې د ښې طرف په خپل چپ طرف د غاړې، او وبې ګرځولو چپ طرف د خپلې په ښې طرف، بیابې دعاء وغوښتله د الله عز وجل نه.

**تشریح: قوله**: و حَوَّل ردائه و جعل عطافه الایمن علی عاتقه الایسر و جعل عطافه الایسر علی عاتقه الایمن، عطاف څادر ته وائی دلته ترینه مراد د څادر یو ګوټ دې.

**د څادر اړولو طریقه:**

مطلب دا دې چه د څادر اړول د حضور ﷺ نه په دې شان دی چه ښی لره په ګس او ګس لره په ښی یعنی د څادر چه کومه حصه په ښئ اوګه باندې وه هغهٔ ئې په ګس طرف باندې کړله او کومه حصه چه په ګسه اوګه باندې وه هغهٔ ئې په ښی طرف باندې کړله، په بذل کښې لیکلې دی چه دا هغه وخت ده کله چه څادر مدور یعنی ګول وی او که مربع یعنی څلور ګوټیز وی نو پورته طرف به ښکته او ښکته طرف به پورته کړی، او که قباء وی نو اپوته دې کړی یعنی بطانه یعنی دننه طرف دې ظهاره یعنی ښکاره کړی او ظهاره دې بطانه کړی یعنی د دننه حصه دې بهر کړی او د بهر حصه دې دننه کړی.

**قوله**، فلما ثقلت قلبها علی عاتقه، یعنی حضور ﷺ به د خپل څادر اړول په شروع کښې په دې شان سره کول غوښتل چه اعلی به ئې اسفل او اسفل به ئې اعلی کړو خو دا ترینه اونهٔ شول په دې کښې سختوالي پیدا شو نو بیا حضور ﷺ د تحویل رداء دا صورت اختیار کړو چه د څادر ښی طرف به ئې ګس او ګس به ئې ښې کړو.

[۱۱۶۴]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَيْدٍ، قَالَ: "اسْتَسْقَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ خَمِيصَةٌ لَهُ سَوْدَاءُ، فَأَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْخُذَ بِأَسْفَلِهَا فَيَجْعَلَهُ أَعْلَاهَا، فَلَمَّا ثَقُلَتْ قَلَبَهَا عَلَى عَاتِقِهِ".

ببشکه عبد الله بن زید ویلي دي طلب د اوبو وکړو رسول الله ﷺ په هغه یوه شړۍ وه توره، نو اراده وکړه رسول الله ﷺ چې ونبسي لاندې اړخ د هغې چې بره یې کړي، هرکله چې دا کار درووند شو نو تقلیب د څادربې وکړو په خپله غاړه.

[1]: انظر حدیث رقم: (۱۱۶۱)، (تحفة الأشراف: ۵۲۹۷) (صحیح)
[2]: انظر حدیث رقم: (۱۱۶۱)، (تحفة الأشراف: ۵۲۹۷) (صحیح)

## بَابٌ فِي أَيِّ وَقْتٍ يُحَوِّلُ رِدَاءَهُ إِذَا اسْتَسْقَى

### باب دی، کله به څادر اړوي کله چې طلب د باران کوي

[۱۱۶۶](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَيْدٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَرَجَ إِلَى الْمُصَلَّى يَسْتَسْقِي، وَأَنَّهُ لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، ثُمَّ حَوَّلَ رِدَاءَهُ".

عباد بن تمیم نه روایت دی، بېشکه عبد الله بن زید ورته خبر ورکړی دی، بېشکه رسول الله ﷺ راووتلو مصلی ته طلب د باران یې کولو، او هغه چې کله اراده وکړه چې دعاء وکړي نو مخ یې واړولو قبلې ته، بیایې تحویل د څادر وکړو.

**تشریح: قوله:** عن عبّاد بن تمیم ان عبدالله بن زید، په دې روایت کښې د عباد د ترهٔ د نوم تصریح مذکور ده په تیر شوی روایت کښې د نوم تصریح نهٔ وه، و انه لما اراد ان یدعو استقبل القبلة ثم حوّل ردائه.

#### د رداء د تحویل وخت او د صلوة استسقاء په کیفیت کښې د ائمه اختلاف:

د دې حدیث نه معلومیږی چه تحویل رداء حضور ﷺ د استقبال قبله نه پس کړې دې حال دا دې چه د حنفیانو په نیز تحویل رداء مقدم دې په استقبال قبله باندې ځکه چه د دوئ په نیز باندې د صلوة استسقاء طریقه دا ده چه اولاً دې دوه رکعته مونځ اوکړې شی د مانځه نه فارغ کیدو نه پس دې امام خلقو ته خطبه ورکړی او د خطبې په مینځ کښې دی تحویل رداء اوکړی او بیا خطبه پوره کیدو نه پس دې امام قبلې ته مخامخ اودریږی او دعاء دې اوغواړی، لهذا د دې حدیث توجیه دې دا اوکړې شی چه لفظ د ثمّ دلته د واؤ په معنی کښې واغستلې شی چه د ترتیب د مخالفت اشکال لرې شی، او د شافعیه په نیز باندې د صلوة استسقاء طریقه دا ده، (کما فی الانوار الساطعه) چه رومبې دې دوه رکعته مونځ اوکړې شی د مانځه نه پس دې امام دوه خطبې خلقو ته واوروی په اولنئ خطبه کښې دې دعاء داستسقاء اوکړی او بیا دې د دویمې خطبې په مینځ کښې استقبال قبله او تحویل رداء اوکړی او خپله خطبه دې پوره کړی او ځان دې فارغ کړی، د دې مذکوره کیفیت مقتضٰی دا ده چه دا حدیث دې د شوافعو هم خلاف اووئیلې شی ځکه چه په دې حدیث کښې دعاء استسقاء د استقبال قبله نه پس ده حال دا دې چه د شوافعو په نیز دعاء د استسقاء په اولنئ خطبه کښې کیږی.

[۱۱۶۷](۲) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، أَنَّهُ سَمِعَ عَبَّادَ بْنَ تَمِيمٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَيْدٍ الْمَازِنِيَّ، يَقُولُ: "خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمُصَلَّى، فَاسْتَسْقَى وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ حِينَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ".

عباد بن تمیم ویلي دي، ما اوریدلي دي د عبد الله بن زید المازني نه هغه به ویل: راووتلو

(۱): انظر حدیث رقم: (۱۱۶۱)، (تحفة الأشراف: ۵۲۹۷) (صحیح)

(۲): انظر حدیث رقم: (۱۱۶۱)، (تحفة الأشراف: ۵۲۹۷) (صحیح)

رسول الله ﷺ مصلی طلب د باران یي وکړو، او تحویل د څادر یي وکړو کله چې یي قبلې ته مخ کړو.

[۱۱۶۵]()حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ نَحْوَهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كِنَانَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، قَالَ: أَرْسَلَنِي الْوَلِيدُ بْنُ عُقْبَةَ، قَالَ عُثْمَانُ ابْنُ عُقْبَةَ: وَكَانَ أَمِيرَ الْمَدِينَةِ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ أَسْأَلُهُ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الِاسْتِسْقَاءِ، فَقَالَ: "خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَبَذِّلًا مُتَوَاضِعًا مُتَضَرِّعًا حَتَّى أَتَى الْمُصَلَّى، زَادَ عُثْمَانُ: فَرَقِيَ عَلَى الْمِنْبَرِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، وَلَمْ يَخْطُبْ خُطَبَكُمْ هَذِهِ، وَلَكِنْ لَمْ يَزَلْ فِي الدُّعَاءِ وَالتَّضَرُّعِ وَالتَّكْبِيرِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ كَمَا يُصَلِّي فِي الْعِيدِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَالْإِخْبَارُ لِلنُّفَيْلِيِّ، وَالصَّوَابُ ابْنُ عُقْبَةَ.

ماته حدیث بیان کړی دی هشام بن اسحاق بن عبد الله بن کنانة، هغه ویلي دي ماته خبر راکړی دی زما پلار، هغه وایي ولېږه مالره ولید بن عُتبه. ویلي دي عثمان بن عقبة: او هغه وو د مدینې امیر. ابن عباس ته، چې زه ترینه تپوس وکړم د مانځه د رسول الله ﷺ په باره د اوبو غوښتلو کې، هغه وایي: راووتلو رسول الله ﷺ کمزورې حالت کې عاجزي کونکی او زاري کونکی، تردې چې مصلی ته راغی. عثمان دا زیادت کړی دی: منبر ته وختلو، بیا دواړو اتفاق کړی دی. او خطبه یي ونه ویله ستاسو د دې خطبې پشان، لیکن همېشه وو په دعاء او تضرع او تکبیر ویلو کې، بیایي دوه رکعاته مونځ وکړو لکه څنګه چې مونځ کوه په اختر کې. ویلي دي ابوداود: او اخبار د نفیلي دي، او صواب ابن عقبة دی.

**تشريح: قوله:** خرج رسول الله صلى الله عليه وسلم متبذلاً..الخ، حضور ﷺ په ثیاب بذله یعنی په ډېر معمولي او ساده لباس کښې راووتلو، زاد عثمان فرقی علی المنبر، د مصنف رحمه الله دوه استاذان دی په دې کښې یو دا زیادت ذکر کړې دې او د دویم استاذ نفیلی په روایت کښې دا زیادت نشته، د دینه په وړاندې باب کښې په حدیث د حضرت عائشه رضي الله عنها کښې هم د منبر ذکر دې خو محدثینو په دې کښې کلام کړې دې، چنانچه راتلونکې حدیث د عائشه رضي الله عنها په باره کښې مصنف فرمائیلې دی، هذا حديث غريب، هم دغه شان حافظ ابن القیم رحمه الله په زاد المعاد کښې د منبر ذکر کولو په ثبوت کښې دتردد اظهار کړې دې فرمائی، فی القلب منه شیء، بلکه دا چه د بخاری شریف په یو روایت کښې دی چه یو ځل عبدالله بن زید انصاری د ډېرو صحابه کرامو په موجودګۍ کښې صلوة استسقاء اوکړلو د روایت الفاظ دا دی، فاستسقى فقام لهم على رجليه على غير منبر، دغه شان په روایاتو کښې تصریح ده د دې خبرې چه د اختر د مانځه دپاره اخراج منبرنهٔ کیدو بلکه په دې کښې به خطبه په زمکه باندې په اودریدلو سره کیدله نو ځکه شراحو لیکلې دی چه که په اختر کښې منبر نهٔ وو نو په استسقاء کښې به طریقه اولی سره نهٔ دی پکار، ځکه په دې کښې خواظهار دتواضع او مسکنت ډېر وی. فلم يخطب خطبكم هذه، جمهور علماء په استسقاء کښې چونکه د خطبې قائل دی نو ځکه هغوی وائی چه په دې روایت کښې نفی د نفس خطبې نهٔ ده بلکه د نفی

(): سنن الترمذي/الصلاة ۲۷۸ (۵۵۸)، سنن النسائي/الاستسقاء ۳ (۱۵۰۷)، سنن ابن ماجه/إقامة ۱۵۳ (۱۲٦٦)، (تحفة الأشراف: ۵۳۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۳۰، ۲٦۹، ۳۵۵) (حسن)

تعلق د قید سره دې نۀ د مقید سره، یعنی ځنګه خطبه چه تاسو خلقو ورکوئ داسې خطبه به حضور ﷺ نۀ ورکوله، او امام صاحب چونکه په دې کښې د خطبې قائل نۀ دې لهذا د هغوی د طرف نه به اووئیلې شی چه اصل هم د خطبې نفی ده چنانچه د راتلونکی کلام نه د دې تائید کیږی، و لکن لم یزل فی الدعاء والتضرع.

## بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِي الاِسْتِسْقَاءِ

### باب دی په بیان د اوچتولو د لاسونو کې د باران په غوښتلو کې

یعنی د صلوة استسقاء نه پس ږومبې خطبه وی خطبه پوره کیدو نه پس امام لره پکار دی چه په ولاړه باندې لاسونه پورته کړی او قبلې ته مخامخ دعاء اوکړی دا خو د حنفیانو په نیز دی او د شوافعو په نیز دعاء خو به د لاسوه پورته کولو سره وی، خو په خطبه اولی کښې به مستقبلًا الی الناس وی و قد تقدم تفصیله.

[۱۱۶۸](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ حَيْوَةَ، وَعُمَرَ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى بَنِي آبِي اللَّحْمِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَسْتَسْقِي عِنْدَ أَحْجَارِ الزَّيْتِ قَرِيبًا مِنَ الزَّوْرَاءِ قَائِمًا يَدْعُو يَسْتَسْقِي رَافِعًا يَدَيْهِ قِبَلَ وَجْهِهِ لَا يُجَاوِزُ بِهِمَا رَأْسَهُ".

د مولی بنی ابی اللحم نه روایت دی، بېشکه هغه رسول الله ﷺ لیدلی وو چې د بارن غوښتنه یې کوله د احجار الزیت په خوا کې، نزدې زوراء ته په ولاړه، دعایې کوله باران یې غوښتلو لاسونه یې اوچت کړي وو برابر د مخ، د سر نه یې نه وو تېر کړي.

### (د ابی اللحم وجه تسمیه)

**تشریح: قوله:** عن عمیر مولی بنی آبی اللحم، آبی اللحم یو مشهور صحابی دی په جنګ احد کښې شهید شوې وو د دوئ په نوم کښې اختلاف دې ګڼړ اقوال دي کوم چه په بذل کښې مذکور دی یو قول دا دې چه د دوئ نوم عبد الله بن عبدالملك دې،آبی اللحم دوئ ته ځکه وائی چه دوئ به غوښه نۀ خوړله، آبی د اسم فاعل صیغه ده انکار کونکې، او بعضې وائی چه دوئ د اسلام راوړلو نه وړاندې په حالت د کفر کښې هم چه کوم حیوان د غیرالله یعنی د بتانو په نوم باندې ذبح کړې کیدل هغۀ به ئې نۀ خوړل، دلته راوی عمیر دې دا هم صحابی دې او د آبی اللحم آزاد کړې شوې غلام دې نو ځکه دوئ ته مولی بنی آبی اللحم وائی او دلته په روایت کښې مولی آبی اللحم مذکور دې دا د روستو په اعتبار سره دې اصلا دا مولی آبی اللحم دې خو ظاهر دا ده چه آبی اللحم د وفات نه پس د دۀ د ځامنو مولی وئیلې شی(بذل)

**قوله:** لا یجاوز بهما راسه، د راتلونکی روایت نه معلومیږی چه حضور ﷺ د استسقاء نه علاوه په بله کومه موقع باندې دعاء دپاره لاسونه نۀ دې پورته کړی، علماء د دې دا تاویل کړې دې چه مراد دا دې چه ځنګه مبالغې سره به حضور ﷺ رفع یدین په صلوة استسقاء کښې کول په بله کومه موقع به ئې داسې نۀ کول، معلومه شوه چه د سر په برابرئ باندې به ئې ایخودل نو ظاهره ده چه په دې کښې هم مبالغه فی الرفع ده، فلا تعارض بینه و بین ما قالوا فی تاویل الحدیث.

---

(١): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٠٩٠٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجمعة ٤٣ (٥٥٧)، مسند احمد (٥/٢٢٣) (صحيح)

[۱۱۶۹] (۱) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي خَلَفٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ، عَنْ يَزِيدَ الْفَقِيرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَوَاكِي، فَقَالَ: "اللَّهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيثًا مَرِيئًا نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ عَاجِلًا غَيْرَ آجِلٍ"، قَالَ: فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ.

د جابر بن عبد الله نه روايت دی هغه وايي: راغله نبي ﷺ ته نفسونه ژړا والا، هغه ووېل: ای الله خړوب کړي مونږ په باران باندې فائده ورکونکی، ښه عافيت والا، د فائدې والا، نفع ورکونکی چې نقصان والا نه وي، په جلتۍ سره نه په تاخير سره. هغه وايي: نو راجوخت شو په دوی اسمان (يعني باران عام شو).

**شرح حديث:**

**قوله:** اتت النبی صلی الله عليه وسلم بواکی: بواکی د باکية جمع ده يعنی نفوس باکيه، بعض ژړا کونکی سړي يا مراد ترينه ښځې ژړا کونکې دی يعنی څه ښځې او ماشومان ژړا کونکې د حضور ﷺ په خدمت کښې راغلل(د قحط سالئ نه پريشانه وو) او په بعضې نسخو کښې داسې دی چه، رايت النبی صلی الله عليه وسلم يواکی، د مضارع په صيغه سره يعنی يعتمد، مراد په لاس پورته کولو سره دعاء غوښتل دی.

**(د بعضې الفاظو لغوی تحقيق)**

**قوله:** اللهم اسقنا[۲]: دا په مجرد کښې د باب ضرب نه راځي، دلته مجرد هم کيدې شی او د باب افعال نه په همزه قطعی سره هم احتمال شته، يا الله مونږ له داسې باران راکړه چه زمونږ دپاره معين او فرياد رس ثابت شی، مريئا، ښائسته او ښۀ انجام واله، مربعا، دا په فتح د ميم او ضمې دواړو سره لوستلې شوې دې يعنی شنکې رازرغونکې، د مراعة نه ماخوذ دې چه معنی ئې شينکې ده، د فتحې په صورت کښې به دمجرد نه وي، مرع مراعة، شين کيدل، او د ضمې په صورت کښې به د باب افعال نه اَراع يُريع اراعة، هم دغه شان وئيلې شوې دی چه دا لفظ مربعا په باء موحده سره دې په دې صورت کښې به دا ماخوذ وی د ربيع نه، فاطبقت عليهم السماء، سمدستی په مدينې والو باندې وريخ خوره شوه.

[۱۱۷۰] (۳) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنَ الدُّعَاءِ إِلَّا فِي الِاسْتِسْقَاءِ، فَإِنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ إِبْطَيْهِ".

د انس رضی الله عنه نه روايت دی بېشکه نبي ﷺ وو چې نه به يې اوچتول خپل دواړه لاسونه په هېڅ دعاء کې مګر په استسقاء کې، بېشکه هغه به اوچتول دواړه لاسونه تردې چې د

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۱٤۱) (صحيح)

(۲) د استسقاء دعاء يو خو دا ده، اللهم اسقنا غيثا مغيثا مريئا مريعا نافعا غير ضار عاجلا غير آجل، دويمه دعاء وړاندې راروانه ده، اللهم اسق عبادت و بهائمك وانشر رحمتك و احي بلدك الميّت، ۱۲ـ

(۳): صحيح البخاري/الاستسقاء ۲۲ (۱۰۳۱)، والمناقب ۲۳ (۳۵٦۵)، والدعوات ۲۳ (٦۳٤۱)، صحيح مسلم/الاستسقاء ۱ (۸۹۵)، سنن النسائي/الاستسقاء ۹ (۱۵۱۲)، وقيام الليل ۵۲ (۱۷٤۹)، سنن ابن ماجه/إقامة ۱۱۸ (۱۱۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱٦۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۱/۳، ۲۸۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۸۹ (۱۵٤۳) (صحيح)

تخرږونو سپینوالی به یي ولیدل شو.

**قوله**: کان لا یرفع یدیه الا فی الاستسقاء، دا نفی یا خو د خپل علم په اعتبار سره کوی ګینی په رفع یدین سره د حضور ﷺ دعاء غوغتل په نورو مواقع باندې هم ثابت دی، او یا به دا اوونیلي شي چه نفس رفع نفی مقصود نۀ ده بلکه دمبالغه فی الرفع نفی مراد ده په دې باندې کلام وړاندې تیر شوې دې.

[۱۱۷۱]( ) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَسْتَسْقِي هَكَذَا، يَعْنِي، وَمَدَّ يَدَيْهِ وَجَعَلَ بُطُونَهُمَا مِمَّا يَلِي الْأَرْضَ حَتَّى رَأَيْتُ بَيَاضَ إِبْطَيْهِ"

د انس ﷺ نه روایت دی، بېشکه نبي ﷺ وو چې طلب د باران یي کولو داسې. یعني. اوږده یي کړل دواړه لاسونه او ویي ګرځولي خېټې د دواړو ځمکې طرف ته، تردې چې ما ولیدلو سپینوالی د تخرږونو د هغه.

**قوله**: و جعل بطونهما مما یلي الارض، یعنی د دعاء په وخت کښې ئې لاسونه اپوته کړل دا تفاؤلا د قلب حال طرف ته اشاره ده، د شوافعو په کتابونو کښې دا هم لیکلي دی چه د دعاء په وخت کښې دې لاسونه اپوته پورته کړې شی نو په دې صورت کښې به دا د تحویل رداء د قبیلې نه شی او د بعضو شراحو رائې دا ده چه دا حدیث په خپل ظاهر باندې نۀ دې د لاسونه اپوته کول مراد نۀ دی بلکه د راوی غرض مبالغه فی الرفع لره بیانول دی چه حضور ﷺ به په دعاء کښې د لاسونه دومره پورته کړل چه د سر طرف ته د بشکته کیدو د وجه نه به د لاسونو شاه اړخ د آسمان طرف ته شول.

[۱۱۷۲](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، أَخْبَرَنِي مَنْ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو عِنْدَ أَحْجَارِ الزَّيْتِ بَاسِطًا كَفَّيْهِ".

د محمد بن مروان نه روایت دی هغه وایي ماته خبر راکړی دی هغه چا چې نبي ﷺ یي لیدلی دی دعایي کوله داحجاز الزیت په خواکې چې خواره کړي یي ووخپل دواړه لاسونه.

[۱۱۷۳](٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ سَعِيدٍ الْأَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ نِزَارٍ، حَدَّثَنِي الْقَاسِمُ بْنُ مَبْرُورٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: شَكَا النَّاسُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُحُوطَ الْمَطَرِ، فَأَمَرَ بِمِنْبَرٍ فَوُضِعَ لَهُ فِي الْمُصَلَّى، وَوَعَدَ النَّاسَ يَوْمًا يَخْرُجُونَ فِيهِ، قَالَتْ عَائِشَةُ: فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ بَدَا حَاجِبُ الشَّمْسِ، فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَكَبَّرَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَمِدَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّكُمْ شَكَوْتُمْ جَدْبَ دِيَارِكُمْ وَاسْتِئْخَارَ الْمَطَرِ عَنْ إِبَّانِ زَمَانِهِ عَنْكُمْ، وَقَدْ أَمَرَكُمُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ تَدْعُوهُ وَوَعَدَكُمْ أَنْ يَسْتَجِيبَ لَكُمْ، ثُمَّ قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ. لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ، اللَّهُمَّ أَنْتَ اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ الْغَنِيُّ وَنَحْنُ الْفُقَرَاءُ أَنْزِلْ عَلَيْنَا الْغَيْثَ، وَاجْعَلْ مَا أَنْزَلْتَ لَنَا قُوَّةً وَبَلَاغًا إِلَى حِينٍ"، ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَلَمْ يَزَلْ فِي الرَّفْعِ حَتَّى بَدَا بَيَاضُ إِبْطَيْهِ، ثُمَّ حَوَّلَ إِلَى النَّاسِ ظَهْرَهُ وَقَلَبَ، أَوْ حَوَّلَ رِدَاءَهُ، وَهُوَ رَافِعٌ يَدَيْهِ، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، وَنَزَلَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، فَأَنْشَأَ اللَّهُ سَحَابَةً فَرَعَدَتْ وَبَرَقَتْ، ثُمَّ أَمْطَرَتْ بِإِذْنِ اللَّهِ،

---

١): صحیح مسلم/الاستسقاء ١ (٨٩٦)، (تحفة الأشراف: ٣٢٣)، وقد أخرجه: (١٥٣/٣، ٢٤١) (صحیح)

٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٠٠) (صحیح)

٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٣٤٠) (حسن)

فَلَمْ يَأْتِ مَسْجِدَهُ حَتَّى سَالَتِ السُّيُولُ، فَلَمَّا رَأَى سُرْعَتَهُمْ إِلَى الْكِنِّ ضَحِكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ، فَقَالَ: "أَشْهَدُ أَنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، وَأَنِّي عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ إِسْنَادُهُ جَيِّدٌ، أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَقْرَءُونَ. مَلِكِ يَوْمِ الدِّينِ. وَإِنَّ هَذَا الْحَدِيثَ حُجَّةٌ لَهُمْ.

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي: شکايت وکړو خلقو رسول الله ﷺ ته د بنديدلو د باران، نو امريي وکړو په يو منبر، نو هغه ورله په مصلی کې کېښودلی شو، او وعده يي وکړه د خلقو سره يوه ورځ چې راوځي به په هغې کې، عائشي وويله: نو ووتلو رسول الله ﷺ کله چې ښکاره شوه سترګه د نمر، نو کېناستلو په منبر، تکبير وويله پيغمبر ﷺ، او د الله حمد يي وويله، بيايي وويل: تاسو شکايت وکړو د قحط د کورونو ستاسو، او د وروستوالي د باران نه د خپل وخت نه، او بېشکه الله امر کړی دی تاسو ته چې هغه راوبلئ، او تاسو سره يي وعده کړي ده چې ستاسو اجابت وکړي. بيايي وويل: ټول حمدونه الله لره دي چې رب د مخلوقاتو دی رحمن او رحيم دی مالک د ورځې د قيامت دی، نشته لائق د عبادت مګر هم هغه دی، کوي هغه چې هغه يي وغواړي، ای الله ته الله يي، نشته لائق د عبادت مګر ته غني يي او مونږ فقيران يو، نازل کړې په مونږ باندې باران، او وګرځوي هغه څه چې ته نازل کړې دی طاقت او رسونکی زمونږ مقصود ته تر يو وخت پورې، بيايي لاسونه اوچت کړل، هميشه وو په اوچتوالي کې تردې چې ښکاره شو سپينوالی د تخرږونو د هغه، بيايي خلقو ته شا وګرځوله، او څادريي واړولو، او د هغه لاسونه اوچت وو، بيا مخامخ شو خلقو ته او راخکته شو، دوه رکعاته مونځ يي وکړو، نو الله پيدا کړه وريځ نو غرومبښت او برېښنايي وکړه، بيايي باران وکړو د الله په اذن باندې، هغه لا خپل مسجد ته نه وو راغلی چې سيلابونه روان شول، هرکله چې يي د دوی سرعت وليدلو خپلو کورونو ته نو وخندل نبي ﷺ، تردې چې غاښونه يي ښکاره شول، نو هغه وويل: زه ګواهي کوم چې الله پاک په هر شي باندې قدرت والا دی، او زه د الله بنده او رسول يم. ويلي دي ابوداود: او دا حديث غريب دی، اسناد يي جيد دی، د مديني والا قراءت کوي مَلِک يوم الدين، او دا حديث د هغوی حجت دی.

**قوله**: فامر بمنبر فوضع له فى المصلى، په دې باندې کلام زمونږ په نيز وړاندې تير شوې دې،

**قوله**، انكم شكوتم جدب دياركم و استيخار المطر عن ابان زمانه عنكم، تاسو ماته د خشک سالئ او د قحط سالئ شکايت کړې او د باران د روستو کيدو د دې د وخت نه، يعنې کوم وخت چه باران وريدل پکار وو هغه وخت اونه وريدلو او نور روستو کيږي،

**قوله**، ثم اقبل على الناس و نزل فصلى ركعتين،

### فى الحديث تقديم الخطبة على الصلوة:

په دې حديث کښې د مونځ ذکر د خطبې نه پس دې او خطبه مقدم ده کوم چه د ټولو رواياتونو او مذاهبو نه خلاف دې، جواب دا دې چه دا حديث غريب دې كما سياتى قريبا فى المتن، دغه شان په دې حديث کښې اخراج دمنبر هم مذکور دې حال دا دې چه هغه هم ثابت نه دې لکه څنګه چه وړاندې تير شو.

[۱۱۷۴] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَيُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: أَصَابَ أَهْلَ الْمَدِينَةِ قَحْطٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَيْنَمَا هُوَ يَخْطُبُنَا يَوْمَ جُمُعَةٍ إِذْ قَامَ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلَكَ الْكُرَاعُ، هَلَكَ الشَّاءُ، فَادْعُ اللَّهَ أَنْ يَسْقِيَنَا" فَمَدَّ يَدَيْهِ وَدَعَا". قَالَ أَنَسٌ: وَإِنَّ السَّمَاءَ لَمِثْلُ الزُّجَاجَةِ فَهَاجَتْ رِيحٌ، ثُمَّ أَنْشَأَتْ سَحَابَةً، ثُمَّ اجْتَمَعَتْ، ثُمَّ أَرْسَلَتِ السَّمَاءُ عَزَالِيَهَا فَخَرَجْنَا نَخُوضُ الْمَاءَ حَتَّى أَتَيْنَا مَنَازِلَنَا فَلَمْ يَزَلِ الْمَطَرُ إِلَى الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى، فَقَامَ إِلَيْهِ ذَلِكَ الرَّجُلُ أَوْ غَيْرُهُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، تَهَدَّمَتِ الْبُيُوتُ فَادْعُ اللَّهَ أَنْ يَحْبِسَهُ، فَتَبَسَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: "حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا" فَنَظَرْتُ إِلَى السَّحَابِ يَتَصَدَّعُ حَوْلَ الْمَدِينَةِ كَأَنَّهُ إِكْلِيلٌ.

د انس ﷺ نه روایت دی هغه ویلي دي: ورسیده د مدیني والاو ته قحط په زمانه د رسول الله ﷺ کي، هغه یو ځل مونږ ته خطبه ویله د جمعي په ورځ، ناڅاپه یو سړی پاڅیدلو، ویې ویل: ای د الله رسوله! هلاک شو بهائم، هلاکي شوي ګډې، دعاء وغواړه د الله نه چې باران وکړي په مونږ، نو لاسونه یي اوږده کړل او دعایي وغوښته، وایي انس: اسمان په شان د شیشي وو، باد راوالوته، بیایي وریځ جوړه کړه، بیا راجمعه شوه، بیا ر اپرانستې اسمان خولي، مونږ ووتلو داخل شو اوبو کې، تردې چې کورونو ته راغلو، همیشه وو باران تر بلي جمعي پورې، نو دغه سړی پاڅیدلو او یا بل، هغه وویل: ای د الله رسوله! کورونه وران شول، د الله نه دعاء وغواړه چې بندیي کړي، نو تبسم وکړو رسول الله ﷺ بیایي وویل: ګرد چاپیره زمونږ نه نه په مونږ. نو ما وکتل وریځ ته چې چاودله ګرد چاپیره د مدیني نه ګویا کې هغه تاج دی.

**قوله:** حدثنا مسدد..الخ، دا هغه حدیث دې کوم چه په بخاری او مسلم کښې هم شته.

**مضمون حدیث:**

یو ځل حضور ﷺ د جمعې خطبه ورکوله دغه وخت یو سړی د حضور ﷺ په خدمت کښې د قحط سالۍ شکایت اوکړو نو حضور ﷺ دغه وخت د خطبې په مینځ کښې دعاء دپاره لاسونه پورته کړل، نو ځکه امام بخاری رحمه الله په دې باندې ترجمه قائمه کړې ده، باب الاستسقاء فی خطبة الجمعة، او بیا لاس په لاس په شیبو شیبو باران وریدل شروع شو او تر راتلونکې جمعې پورې پرله پسې وریدو، ورپسې جمعه کښې بیا هم داسې د خطبې په دوران کښې دغه سړی یا بل یو سړی د باران د ډیروالی شکایت اوکړو نو په دې باندې حضور ﷺ اوخندل د خلقو په حالت د سرعت انقلاب یعنی زر حالت بدلیدلو باندې چه اول د باران نهٔ کیدو د وجه نه پریشانه وو او اوس د ډیروالی د وجه نه ویریږی، وان السماء لمثل الزجاجة، یعنی آسمان د وړاندې نه زیات صفا وو لکه څنګه چه شیشه وی د نوم دپاره هم وریځ نهٔ وه چنانچه سمدستی هوا اوچلیدله او هغې وریځې رانښکاره کړې ډیره وریځ جمع شوه، ثم ارسلت السماء عزالیها، بس بیا څهٔ وو! بیا خو آسمان خپلې خولې پرانستلې، عزالی د عزلاء

¹): صحیح البخاري/الجمعة ٣٤ (٩٣٢)، الاستسقاء ٦ (١٠١٣)، ٧ (١٠١٤)، ٨ (١٠١٥)، ٩ (١٠١٦)، ١٠ (١٠١٧)، ١١ (١٠١٨)، ١٢ (١٠١٩)، ١٤ (١٠٢١)، ٢١ (١٠٢٩)، ٢٤ (١٠٣٣)، المناقب ٢٥ (٣٥٨٢)، (تحفة الأشراف: ٤٩٣)، وقد أخرجه: الاستسقاء ١ (٨٩٧)، ٢ (٨٩٧)، سنن النسائي/الاستسقاء ١ (١٥٠٣) ١٠، مسند احمد (١٠٤/٣، ١٨٢، ١٩٤، ٢٤٥، ٢٦١، ٢٧١) (صحيح)

جمع ده د مشکیزې خولې ته وائی، قوله، ثم قال حوا الینا و لا علینا، داد حضور ﷺ کمال ادب دې او د باران د نعمت پوره پوره قدردانی ده، حضور ﷺ دا او نهٔ فرمائیل چه، اللهم احبس المطر عنا، چه زمونږ نه باران بند کړهٔ په دې کښې د الله تعالی د نعمت نه سترې کیدل مونډلې کیږی، او یو د نعمت ناقدری ده نو ځکه دا ئې اوفرمائیل یا الله د دې باران رخ بدل کړه کوم ځائې کښې چه د دې ضرورت وی هلته ئې منتقل کړه مونږ د دې نعمت نه مارهٔ شو.

قوله، فنظرت الی السحاب یتصدع حول المدینة کانه اکلیل، راوی وائی چه د حضور ﷺ د دعاء نه پس تولې وریځې د مدینې د آبادئ نه راغونډې شوې او څلورو واړو طرف پورته ځکښته داسې راجمع شوې چه دهغې نه داسې یو شکل جوړ شو لکه څنګه چه د سر دپاسه تاج وی.

[۱۱۷۵]([1])حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّهُ سَمِعَهُ، يَقُولُ: فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، قَالَ: فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ بِحِذَاءِ وَجْهِهِ، فَقَالَ: "اللَّهُمَّ اسْقِنَا" وَسَاقَ نَحْوَهُ.

د انس رضی الله عنه نه روایت دی، هغه اوریدلې دي د هغه نه چې ویل به یې: نو ذکر یې کړو پشان د حدیث د عبد العزیز، هغه ویلي دي: نو اوچت کړل رسول الله ﷺ خپل لاسونه برابر د مخ، ویې ویل: ای الله مونږ باندې باران وکړې. او بیان یې کړو په شان د هغې.

[۱۱۷۶]([2])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ. ح حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ قَادِمٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَسْقَى، قَالَ: "اللَّهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَبَهَائِمَكَ، وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ، وَأَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ". هَذَا لَفْظُ حَدِيثِ مَالِكٍ.

د عمرو بن شعیب نه عن ابیه عن جده نه روایت دی، هغه ویلي دي: وو رسول الله ﷺ، کله چې به یې باران غوښتلو، ویل به یې: ای الله خړوبه کړې بندګان ستا، او چارپایان ستا، او خور کړې رحمت ستا، او ژوندی کړې ستا مړ ښار. دا لفظ د حدیث د مالک دی.

## بَابُ صَلَاةِ الْكُسُوفِ

### باب دی په بیان د مونځ د کسوف کې

### ابحاث ثمانیه:

دلته یو څو بحثونه دی، ۱. معناه لغة والفرق بینه و بین الخسوف، ۲. حکم صلوة الکسوف، ۳. متی وجد الکسوف فی زمنه صلی الله علیه وسلم و هل فیه تعدد، ۴. د صلوة الکسوف طریقه او په تعدد د رکوع کښې اختلاف، ۵. دفع التعارض بین تلك الروایات، ۶. وقت صلوة الکسوف، ۷. هل فیها خطبة ام لا، ۸. هل فی خسوف القمر صلوة ام لا،

[1]: صحیح البخاري/الاستسقاء ٦ (١٠١٣)، ٧ (١٠١٤)، ٩ (١٠١٦)، ١٠ (١٠١٧)، صحیح مسلم/الاستسقاء ١ (٨٩٧)، سنن النسائي/الاستسقاء ١ (١٥٠٥)، (تحفة الأشراف: ٩٠٦) (صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٨١٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاستسقاء عن عمرو بن شعیب مرسلاً ٢ (٣) (حسن)

**بحث اول: (د کسوف لغوی معنی او په کسوف اوخسوف کښې فرق)**

د کسوف معنی ده تغیر الی سواد یعنی توروالی ته مائله کیدل، بي نوره کیدل، مشهور عند الفقهاء دا ده چه کسوف خاص دې تر نمر پورې او خسوف تر سپوږمۍ پورې خو توسعا د یو استعمال په بل کښې کیږی، و قیل بالعکس[۱]، یعنی کسوف د قمر دپاره دې او خسوف د نمر دپاره خو دا غلطه ده ځکه چه په قرآن کښې د خسوف استعمال د قمر دپاره شوې دې، فاذا برق البصر و خسف القمر، الآیه، (قاله العینی)

**بحث ثانی: (د کسوف د مونځ حکم)**

د کسوف په وخت کښې باجماعت مونځ کول متفق علیه مسئله ده په استسقاء کښې اگر چه اختلاف دې، کما تقدم، او دا مونځ د ائمه اربعه په نیز سنت مؤکده دې، او او ما په بعضې کتابونو د مالکیه کښې لیدلې دی هغوی لیکی چه عین سنت دې او وئیلې شوې دی چه سنت کفایه دې، او بعضې شافعیه لکه ابن خزیمه او هم داسې دبعضې حنفیانو نه وجوب منقول دی.

**بحث ثالث: (په دور نبوی ﷺ کښې د کسوف واقعه)**

ملاعلی قاری رحمه الله لیکلې دی چه ړومبې ځل د حضور ﷺ په زمانه کښې کسوف په پنځم کال د هجرت کښې موندلې شوې وو او د امام نووی او ابن الجوزی رحمهما الله د پنځم کال په ځائې شپږم کال د هجرت لیکلې دې، او په دویم ځل باندې د دې وقوع کوم چه د صحاح په ټولو روایتونو کښې مشهور او معروف ده هغه ورځ ده په کومه ورځ چه د حضور ﷺ د ځوئی ابراهیم انتقال شوې وو کوم چه د مشهور قول په بناء باندې په لسم کال د هجرت کښې پیښه شوې وه اگر که د نهم کال هم یو قول دې او د وقوع تاریخ هم لسم وو په میاشت کښې اختلاف دې، ربیع الاول یا رمضان دغه وخت د دوئ عمر څۀ وو؟ وئیلې شوې دی چه د شپاړس میاشتو په عمر کښې او وئیلې شوې دی چه د اتلسو میاشتو په عمر کښې، او ولادت ئې د ذی الحجه په اتم کال د هجرت کښې وو.

بیا پوهیدل پکار دی چه په کلی طور باندې په دې کښې د علماء اختلاف دې چه د حضور ﷺ په زمانه کښې په کسوف او صلوٰة کسوف کښې تعدد شوې وو یا نۀ؟ یو جماعت امام احمد رحمه الله او بخاری او بیهقی وغیره د عدم تعدد قائل دی، او یو بل جماعت اسحاق بن

---

[۱] په مسلم شریف کښې زهری روایت کوی د عروه نه چه هغوی اوفرمائیل، لا تقل کسفت الشمس ولکن قل خسفت، خو دا خلاف مشهور دې اگر که یو قول دا هم دې چه عروه کوم وائی چه خسوف تر نمر پورې خاص دې ممکنه ده د عروه رائې هم دا وی خو د حضرت گنگوهی په تقریر مسلم کوم چه د الحل المفهم په نوم سره چاپ شوې دې په دې کښې حضرت د عروه د کلام دا توجیه کړې ده چه د زهری اصل روایت کوم چه د عروه نه وو هغه په لفظ د خسف الشمس دې خو زهری په وخت د روایت کښې په ځائې د خسفت سره کسفت الشمس نقل کړې دې، عروه چه کله دا واوریدل نو په زهری باندې ئې رد اوکړو چه څنګه تا زمانه دا روایت اوریدلې دې هم هغه شان ئې روایت کوه، تا ته په دې کښې د تغیر کولو څۀ اختیار نشته دې او د دوئ دا مراد نۀ وو چه د کسوف استعمال په نمر کښې نۀ کیږی، والله تعالی اعلم بالصواب)۔

راهویه، ابن خزیمه، خطابی، ابن الجوزی د تعدد قائل دی.

**بحث رابع: (د صلوة الکسوف طریقه)**

د صلوة الکسوف طریقه د حنفیانو په نیز باندې هم هغه ده کومه چه د نورو مونځونو ده قراءت طویله یعنی اوږد قراءت سره صرف دوه رکعت کول پکار دی، قراءت به سرا وی یا جهرا دا مسئله مختلف فیه ده، جمهور علماء او دائمه ثلاثه په نیز باندې سرا به وی، دامام احمد او صاحبینوپه نیز جهرا، په خلاف د صلوة استسقاء نه چه په هغې کښې قراءت په اتفاق سره جهرا به وی، هم دغه شان په صلوة الکسوف کښې تکبیرات زوائد په اتفاق سره نشته دې په خلاف د صلوة استسقاء نه چه په دې کښې اختلاف دې دغه شان د جمهورو په نیزپه دې کښې خطبه نشته دې پخلاف دامام شافعی نه چه هغه په دې کښې دخطبې قائل دی.
او د جمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه په نیز د صلوة الکسوف طریقه د نورو مونځونو نه بالکل مختلف ده د دوئ په نیز باندې صلوة الکسوف کښې دوه رکعته دی او په هر رکعت کښې دوه رکوع او دوه قیام دی یوه رکوع به اوکړی او بیا به قیام ته واپس شی او دویم قیام نه پس به بیا دویمه رکوع اوکړی، سجود او تشهد وغیره هم د نورو مونځونو پشان دی.
روایات د حدیثو د تعدد د رکوع او قیام په باره کښې ډیر مختلف دی د صحاح په کتابونو کښې د یو رکوع روایات هم موجود دی او د دوو رکوع نه واخله تر پنځو رکوع پورې هم شته دې، د دې روایاتو نه امام بخاری رحمه الله صرف د رکوعین روایات اخستې دی، او امام مسلم په صحیح مسلم کښې د رکوعین او دریو او څلورو رکوع واله روایات هم اغستې دی، او امام ابوداؤد په دې باندې زیاتی د پنځو رکوع واله روایت هم اغستې دې، خو ائمه ثلاثه په دې روایاتو کښې صرف د رکوعین واله روایات غوره کړې دی او باقی ئې ترک کړې دی، او حنفیان دا وائی چه څنګه تاسو د دوو نه زیات رکوع واله روایات ترک کړې دی نو مونږ وایو چه د یو نه زیات یعنی د دوو رکوع واله روایات هم ترک کول پکار دی، څکه چه مشهور دا ده چه، اذا تعارض تساقط، لهذا درکوع واحد واله احادیث کوم چه د قیاس او اصل مطابق دی هم دې لره اختیار کړې شی نو څکه اقل متیقن هم هغه دې او د یو رکوع نه زیات واله روایات مشکوک دی.

**بحث خامس: (دفع تعارض بین الروایات)**

اوس په دې روایات متعارضه کښې د تطبیق او دفع د تعارض شکل څۀ دې؟ په دې کښې د علماؤ دوه جماعته دی، یو جماعت هغه دې کوم چه د حضور ﷺ په زمانه کښې د تعدد کسوف قائل دی او دویم جماعت د عدم تعدد دې، کوم حضرات چه د تعدد قائل دی هغوی دا وائی چه دا اختلاف المباح د قبیلې نه دې یعنی په هر شان سره جائز او مباح دې، حضور ﷺ دې مونځ لره کله داسې کړې وو او کله هغه شان.
او کوم حضرات چه د تعدد قائل نۀ دی هغوی د دفع تعارض دپاره د ترجیح طریقه اختیاره کړې ده او د رکوعین واله روایات ئې راجح او باقی ټول روایات ئې معلل او وهم ګرځولي دی، او د احنافو علماؤ رکوع واحد لره ترجیح ورکوی څکه اول خو دا د قیاسي او اصل

مطابق دی او دویم دا چه په صلوة الکسوف کښې روایات دوه قسمه دی فعلیه او قولیه، په فعلیه کښې خو ډیر اختلاف دې او قولی روایات د تعارض نه سالم دی د دېنه صرف هم د رکوع واحد ثبوت کیږی، د دې روایاتو نشاندهی به مونږ انشاء الله وړاندې کوو لهذا د نورو مونځونو پشان په دې کښې به هم یوه رکوع وی.

د تعدد درکوع واله روایاتو توجیه خو زمونږ د مشائخو نه داسې منقول ده چه حضور ﷺ به په دې مانځه کښې د عجائب او غرائب مشاهده فرمائیله او د عالم آخرت بعضې مناظر هم حضور ﷺ ته اوخودلې شو، د جنت نعمتونه او د جهنم بلاګانې او مصیبتونه، دغه شان کله کله به حضور ﷺ دعاء غوښتله او کله به ئې پناه غوښتله، او کله به حضور ﷺ د مانځه په حالت کښې وړاندې طرف ته قدم وړاندې کړو د جنت د اونو غونچې نیولو دپاره، او کله به ئې د جهنم د نیولو نه ځان ساتلو دپاره روستو لرې کیدلو، او د دې ټولو خبرو باوجود قراءت او قیام به دومره اوږد وو چه د معمول نه بالکل خلاف دې، نو څکه بعضې بعضې صحابه کرامو ته به کله کله د حضور ﷺ دعا غوښتلو یا پناه غوښتلو د وجه دا شبه اوشوه چه شاید حضور ﷺ رکوع ته ځی بیا به ورته علم اوشو چه نهٔ دی تلې لهذا اوبدریدل او چونکه د قیام مقدار ډیر اوږد وو نو ځکه مختلفو خلقو ته څو ځله دا نوبت راپیښ شو، نو وجه دا شوه چه په اصل کښې په تعدد د رکوع کښې د داسې خبرې پیښیدل څۀ لرې خبره نۀ ده، اوس زمونږ په زمانه کښې هم په کوم جماعت کښې چه ګڼړه او د خلقو ډیروالې وی مثلاً داخترپه مونځ کښې په عیدګاه کښې دداسې قسمه غلط فهمی نوبت راځی.

## بحث سادس: (د صلوة کسوف وخت)

د حنفیه او حنابله په نیز د مکروه وخت نه علاوه کښې کولې شی او د امام شافعی په نیز مطلقا په هروخت کښې کولې شی، او د امام مالك په نیز د صلوة الکسوف وخت هم هغه دې کوم چه د اختر د مونځ وخت دې.

## بحث سابع: ایا په صلوة کسوف کښې خطبه شته؟)

امام شافعی په دې کښې د خطبې قائل دې په خلاف د جمهورو نه، امام بخاری رحمه الله په دې باندې یو مستقل باب قائم کړې دې، باب خطبة الامام فی الکسوف، جمهور دا وائی چه د کسوف په موقع باندې حضور ﷺ د مونځ قائمولو او تکبیر او د صدقې حکم ورکړې وو او د خطبې حضور ﷺ امر نۀ وو فرمائیلې او حضور ﷺ اګر که د مانځه نه پس خطبه ورکړې وه خو هغه خطبه معروفه نۀ وه بلکه هغه یو مخصوص خبرداري وو کوم چه هغه وخت سره مناسب وو ځکه چه په هغۀ زمانه د جاهلیت کښې خلقو دا ګنړله چه کسوف شمس یعنی نمر تندر نیولٌ هغه وخت کیږی کله چه پیښه یا نوې خبره راپیښه شی په کومه ورځ چه په مدینه کښې کسوف شمس شوې وو هم په دغه ورځ د حضور ﷺ د ځوئی د وفات قصه راپیښه شوې وه په کومې سره چه د دې خلقو د خیال تائید کیدې شو نو ځکه حضور ﷺ دې خاص موضوع سره متعلق ارشاد فرمائیلې وو، لهذا دې ته د صلوة الکسوف خطبه نۀ شی وئیلې کیدې.

**بحث ثامن: (ایا په کسوف قمر کښې هم مونځ دې؟)**

امام بخاری په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې، باب الصلوة فی خسوف القمر، خو د دې د لاندې چه امام بخاری رحمه الله کوم حدیث راوړې دې په هغې کښې صرف د کسوف شمس ذکر دې د خسوف قمر نشته، بعضې شارحینو خو دا وئیلې دی چه د دې حدیث په بعضې طرق کښې د خسوف قمر ذکر دې امام بخاری هغې طرف ته اشاره کړې ده، او بعضې دا وائی چه امام بخاری په خسوف قمر کښې مونځ لره په قیاس سره ثابت کول غواړی چه څنګه په کسوف کښې مونځ شته هم دغه شان په خسوف کښې هم شته.

د حنفیانو په نیز باندې په خسوف قمر کښې باجماعت مونځ مسنون نهٔ دې فرادیٰ فرادیٰ یعنی ځانله ځانله به کولې شی امام مالك هم په دې کښې د جماعت قائل نهٔ دې پخلاف د امام شافعی او احمد نه چه دوئ دواړه په دې کښې د صلوة باجماعت قائل دی، امام ترمذی په جامع ترمذی صفحه، ۷۳، کښې فرمائی، و یرٰی اصحابنا ان یصلی صلوة الکسوف فی جماعة فی کسوف الشمس والقمر، د حضور ﷺ نه په دې کښې مونځ ثابت دې او که نهٔ. په دې کښې د علماؤ اختلاف دې، د صحاح سته یا دیو مشهور روایت نه د دې ثبوت نشته دې، حافظ ابن قیم هم د ثبوت نه انکار کړې دې، علامه قسطلانی،ص، ۲۷۹،ج،۲، کښې لیکی چه د سیرت ابن حبان په یو روایت کښې دی چه، انه ﷺ صلی بالناس فی خسوف القمر سنة خمس، بعضې علماؤ د دې تاویل دا کړې دې چه د دېنه د حضور ﷺ په خپله د مونځ کول مرادنهٔ دی بلکه امر بالصلوة مراد دې، والله تعالی اعلم، په هر کیفیت سره که دا روایت صحیح دې نو د ثبوت دپاره کافی دې.

د حضرت شیخ په الابواب والتراجم کښې په دې باندې مزید کلام دې هغه دې اوکتلې شی، د دې باب ابتدائی مباحث پوره شول. [1]

[۱۱۷۷] ([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، أَخْبَرَنِي مَنْ أُصَدِّقُ، وَظَنَنْتُ أَنَّهُ يُرِيدُ عَائِشَةَ، قَالَ: كُسِفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،

---

[1]: د کوم چه اجمال او فهرست دا دې:
۱ معني الکسوف لغة والفرق بینه و بین الخسوف و قال عروة لا تقولوا،الخ،
۲. حکمه، سنة مؤکدة عندالاربعة و عن بعض الحنفیة الوجوب،
۳. متي وجد، یوم مات ابراهیم رضي الله عنه، ۱۰،ربیع الاول، ۱۱، رمضان، ۱۰،هجري، و هذا بالاتفاق،
٤. و هل فیه تعدد؟ قال البخاري والبیهقي لا و عند الخطابي والنووي،نعم قاري، ۵، هجري ابن الجوزي، ٦هجري،
۵. صفة صلوة الکسوف برکوع او برکوعین،
٦. القراءة سراً عند الجمهور و عند احمد والصاحبین جهراً،
۷. وقتها غیر المکروه عندنا و احمد و عند الشافعي مطلقا و عند مالك وقت العید، ۸. الخطبة عند الشافعي فقط بحث تعدد الرکوع في البخاري رکوعان لا غیر و في مسلم الي اربع رکوعات و في ابي داؤد الي خمس، القائلون بالتعدد حملوه علی اختلاف المباح، و بعدم التعدد اختاروا الترجیح، دطلبهٔ حدیث او نوې مدرسینو د آسانتیا دپاره دا اجمال اولیکلې شو والله الموفق۔

[2]: صحیح مسلم/الکسوف ۱ (۹۰۱)، سنن النسائي/الکسوف ۱۰ (۱٤۷۱)، (تحفة الأشراف: ۱٦۳۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦۷۷٦) (صحیح)

فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيَامًا شَدِيدًا يَقُومُ بِالنَّاسِ، ثُمَّ يَرْكَعُ، ثُمَّ يَقُومُ، ثُمَّ يَرْكَعُ، ثُمَّ يَقُومُ، ثُمَّ يَرْكَعُ، فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ ثَلَاثُ رَكَعَاتٍ يَرْكَعُ الثَّالِثَةَ، ثُمَّ يَسْجُدُ حَتَّى إِنَّ رِجَالًا يَوْمَئِذٍ لَيُغْشَى عَلَيْهِمْ مِمَّا قَامَ بِهِمْ حَتَّى إِنَّ سِجَالَ الْمَاءِ لَتُصَبُّ عَلَيْهِمْ، يَقُولُ إِذَا رَكَعَ: اللَّهُ أَكْبَرُ، وَإِذَا رَفَعَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ، حَتَّى تَجَلَّتِ الشَّمْسُ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ، وَلَكِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ يُخَوِّفُ بِهِمَا عِبَادَهُ، فَإِذَا كُسِفَا فَافْزَعُوا إِلَى الصَّلَاةِ".

عبيد بن عمير نه روايت دی، هغه وايي ماته خبر راکړی دی هغه چا چې زه يي تصديق کوم، او زما گمان دی چې د هغه اراده عائشه وه، هغه ويلي دي: خړ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ کې، نو پاځيدلو رسول الله ﷺ په پاځيدلو سختو سره، چې ودريدلو خلقو ته، بيايي رکوع وکړه، بيا پاځيدلو، بيايي رکوع وکړه، بيايي رکوع وکړه، دوه رکعاته يي وکړل، په هر رکعات کې درې رکوع وې، چې رکوع يي وکړه دريمه بيا به يي سجده کوله تردې چې څه سړي په دغه ورځ باندې بې هوشه شول د وجې د قيام نه، تردې چې بوکې د اوبو راوارولی شوې په دوی، ويل به يي چې کله يي رکوع کوله: الله اکبر، او چې کله يي سر اوچت کړو: سمع الله لمن حمده، تردې چې نمر روښانه شو، بيايي وويل: بېشکه نمر او سپوږمۍ نه خړيږي د چا د مرگ د وجې نه او نه د چا د ژوند د وجې نه، ليکن دا دوه نښې دي د نښو د الله نه ويروي په دی دواړو باندې خپل بندگان، کله چې دواړه خړ شي نو توجه وکړئ مانځه ته.

قوله، فقام النبی ﷺ قياما شديدا، دا قيام د اوږديدو د وجه نه سخت وو فقهاؤ تصريح کړې ده چه په دې مانځه کښې د قوم رعايت او تخفيف مطلوب نۀ دې بلکه قراءت اوږد پکار دې اگر که سخته وی، دا وړاندې تير شوی دی چه په دې مونځ کښې قراءت د امام صاحب او د جمهورو په نيز باندې سرا دې، د امام احمد او صاحبينو په نيز باندې جهرا، زمونږ علماء کله د امام صاحب په قول باندې عمل کوی او کله د صاحبينو په قول باندې، زمونږ دلته په مدرسه مظاهر علوم کښې هم تر اوسه پورې دواړه شان شوې دی بعضې وختونو کښې سرا کړې شوې دې او په بعضې وختونو کښې جهرا.

که قراءت سرا وی نو د قيام اوږد والې زيات سخت تيريږی او د جهرا کيدو په صورت کښې چونکه توجه د قرآن اوريدلو طرف ته شی نو په دې کښې زيات احساس نۀ کيږی.

## شرح حديث:

**قوله، حتی ان رجالا يومئذ ليغشی عليهم مما قام بهم حتی ان سجال الماء لينصبُّ عليهم.** يعنی د قيام د اوږدوالی د وجه نه به په بعضې خلقو باندې بيخودی راتله(او هغوی به غورزيدل) او د بيخودئ نه پخود کيدو دپاره به په دوئ باندې د اوبو بالټی اړولې کيدل.

دلته دا سوال کيږی چه خلق خو به ټول په مانځه کښې مشغول وو نو بيا به په دوئ باندې اوبۀ چا اړولې، جواب دا دې چه کيدې شی چه د مانځه نه د فارغ کيدو نه پس بهيول مراد وی يا دا اوونيلې شی چه د بيخوده کيدو د وجه نه ظاهره ده چه د دوئ اودس ماتيده نو هغوی به د مانځه نه خارج شو نو يا خو به هم په دوئ کښې بعضې په بعضو باندې اوبۀ اړولې يا هر يو د لږ ښۀ کيدو نه پس په خپل ځان باندې په خپله اوبۀ اړوی، **قوله، حتی تجلت**

الشمس، يعني حضور ﷺ دومره اوږد مونځ اوکړو چه د مانځه نه د فارغ کيدو پورې د نمر رڼا هم صفا شوې وه، په هدايه کښې ليکلې دی چه مقصود دا ده چه د کسوف پوره وخت په مونځ او دعاء کښې تيريدل پکار دی ترڅو پورې چه نمر پوره صفا شوې نۀ وی هم په دې کښې اخته وی خوا که مونځ اوږد وی يا د مونځ پخائې که غواړي نو د مونځ نه پس دې دعاء دومره اوږده کړی تر دې چه نمر صفا شی، او د امام صاحب نه يو روايت دا هم دې (کما في البذل) چه د دوو رکعاتو قيد نشته دې بلکه څلور او د دينه زيات هم کولې شی.

## باب مَنْ قَالَ أَرْبَعُ رَكَعَاتٍ

### باب دی په بيان د هغه چا کې چې وئيلي دي څلور رکوع دي

د رکعات نه مراد رکوعات دی، دا ترجمه د جمهورو د مسلك مطابق ده د دوئ په نيز باندې د صلوة الکسوف په دوو رکعتونو کښې څلور رکوع دی، په هر رکعت کښې دوه رکوع دی.

### د ترجمة الباب غرض:

خو په دې باب کښې چه مصنف رحمه الله کوم روايتونه ذکر فرمائيلي دی هغه په هر رکعت کښې دوه رکوع او درې رکوع تر دې چه پنځو رکوع پورې روايتونه شته نو ځکه د اشکال نه د بچ کيدو دپاره دا به وئيلي شی چه د مصنف رحمه الله غرض د دې ترجمه نه مطلق تعدد د رکوع لره ثابتول دی اوس که هغه دوه وی يا د دوو نه زيات وی، په دې صورت کښې دا اکثر احاديثو مطابقت د باب سره د ترجمة الباب نه به ثابت شی خو اشکال يو بل دی او هغه دا چه په دې باب کښې مصنف رحمه الله د وحدت رکوع واله روايتونه هم راوړی دی، د دې دا جواب په پوهه کښې راتلې شی چه ممکنه ده چه د مصنف رحمه الله د ترجمة الباب نه دا وی چه، من قال اربع ركعاتٍ او اقلّ او اكثر من ذلك، يعني اختلاف د رواياتو لره بيانول مقصود دی، او يا دا اووئيلې شی چه د ترجمة الباب نه مقصود خو هم تعدد د رکوع لره بيانول دی خو د يو رکوع واله روايات ئې بناء بر اصل ذکر کړل چه يو رکوع کيدل خو هم اصل دی، يا بيا دا اقرار اوکړې شی چه د دې رواياتو د دې باب سره هيڅ مناسبت نشته دې، دا څۀ ضروری نۀ ده چه د هر اشکال حل دې خامخا رااوځي.

[۱۱۷۸](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ، حَدَّثَنِي عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: كُسِفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَانَ ذَلِكَ فِي الْيَوْمِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ إِبْرَاهِيمُ بْنُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ النَّاسُ: إِنَّمَا كُسِفَتْ لِمَوْتِ إِبْرَاهِيمَ ابْنِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ سِتَّ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ، كَبَّرَ، ثُمَّ قَرَأَ فَأَطَالَ الْقِرَاءَةَ، ثُمَّ رَكَعَ نَحْوًا مِمَّا قَامَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَقَرَأَ دُونَ الْقِرَاءَةِ الْأُولَى، ثُمَّ رَكَعَ نَحْوًا مِمَّا قَامَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَقَرَأَ الْقِرَاءَةَ الثَّالِثَةَ دُونَ الْقِرَاءَةِ الثَّانِيَةِ، ثُمَّ رَكَعَ نَحْوًا مِمَّا قَامَ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ فَانْحَدَرَ لِلسُّجُودِ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ قَامَ فَرَكَعَ ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ قَبْلَ أَنْ يَسْجُدَ لَيْسَ فِيهَا رَكْعَةٌ إِلَّا الَّتِي قَبْلَهَا أَطْوَلُ مِنَ الَّتِي بَعْدَهَا إِلَّا أَنَّ رُكُوعَهُ نَحْوٌ مِنْ قِيَامِهِ، قَالَ: ثُمَّ تَأَخَّرَ فِي صَلَاتِهِ فَتَأَخَّرَتِ

(١): صحيح بسلم/الكسوف ٣ (٩٠٤)، سنن النسائي/الكسوف ١٢ (١٤٧٧)، (تحفة الأشراف: ٢٤٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٧٤، ٣٨٢) (صحيح)

الصُّفُوفُ مَعَهُ، ثُمَّ تَقَدَّمَ فَقَامَ فِي مَقَامِهِ وَتَقَدَّمَتِ الصُّفُوفُ فَقَضَى الصَّلَاةَ وَقَدْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ، فَقَالَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ بَشَرٍ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ ذَلِكَ فَصَلُّوا حَتَّى تَنْجَلِيَ". وَسَاقَ بَقِيَّةَ الْحَدِيثِ.

د جابر بن عبد الله نه روایت دی هغه ویلي دي: خړ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ کې، او دغه وو په هغه ورځ کې چې مړ شوی وو پکې ابراهیم د رسول الله ﷺ ځوی، وویله خلقو: بېشکه خړ شوی دی د وجې د مرګ د ابراهیم نه ځوی د رسول الله ﷺ، ودریدلو رسول الله ﷺ، پاځیدلو مونځ یې وکړو خلقو ته شپږ رکعاته په څلورو سجدو کې، تکبیر یې وویلو بیایي قراءت وکړو اوږد قراءت، بیایي رکوع وکړه قریب د ودریدو ته، بیایي سر اوچت کړو، قراءت یې وویلو کم د اولني قراءت نه، بیایي رکوع وکړه چې نژدې وه ودریدو ته، بیایي سر اوچت کړو نو دریم ځل یې قراءت ولوستلو چې کم وو د دویم ځل نه، بیایي رکوع وکړه نژدې ودریدو ته، بیایي سر اوچت کړو خکته شو سجدې ته نو دوه سجدې یې وکړې، نو رکوع یې وکړې درې رکوع ګاني مخکې د سجدې نه، په دې کې رکوع نه وه مګر هغه مخکنۍ به اوږده وه د هغه وروستنۍ نه، مګر رکوع به یې قیام ته نژدې وه، هغه وایي: بیا وروسته شو په مانځه کې نو صفونه هم وروسته شول د هغه سره، بیا مخکې شو نو ودریدلو په خپل ځای کې او مخکې شول صفونه، مونځ یې پوره کړو، او یقیناً نمر ختلی وو، هغه وفرمایل: ای خلقو! بېشکه نمر او سپوږمۍ دوه نښې دي د نښو د الله نه نه خړیږي د چا د مرګ د وجې نه، کله چې تاسو د دې نه څه شی ووینئ نو مونځ کوئ تردې چې روښانه شي. او باقي حدیث یې بیان کړو.

[۱۱۷۹]([۱])حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كُسِفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي يَوْمٍ شَدِيدِ الْحَرِّ، فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَصْحَابِهِ، فَأَطَالَ الْقِيَامَ حَتَّى جَعَلُوا يَخِرُّونَ، ثُمَّ رَكَعَ فَأَطَالَ، ثُمَّ رَفَعَ فَأَطَالَ، ثُمَّ رَكَعَ فَأَطَالَ، ثُمَّ رَفَعَ فَأَطَالَ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ قَامَ فَصَنَعَ نَحْوًا مِنْ ذَلِكَ فَكَانَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَأَرْبَعَ سَجَدَاتٍ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

د جابر رضي الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: خړ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ کې په داسې ورځ کې چې سخته ګرمه وه، مونځ وکړو رسول الله ﷺ خپلو ملګرو ته، قیام یې اوږد کړو، تردې چې پریوتل، بیایي رکوع وکړه نو اوږده یې کړه، بیا اوچت شو نو اوږدیې کړو، بیایي رکوع وکړه اوږده، بیا اوچت شو اوږدیې کړو، بیایي دوه سجدې وکړې، بیا ودریدلو ویې کړو پشان د هغې، نو شوې څلور رکوع ګانې او څلور سجدې، او حدیث یې بیان کړو.

[۱۱۸۰]([۲])حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ /a>، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ،

---

[۱]): صحيح مسلم/الكسوف ۳ (۹۰٤)، سنن النسائي/الكسوف ۱۲ (۱٤۷۹)، (تحفة الأشراف: ۲۹۷٦)، وقد أخرجه: (۳/۳۷٤، ۳۸۲، ۳۳۵، ۳٤۹) (صحيح)

[۲]): صحيح البخاري/الكسوف ٤ (۱۰٤٦)، ۵ (۱۰٤۷)، ۱۳ (۱۰۵۸)، والعمل في الصلاة ۱۱ (۱۲۱۲)، وبدء الخلق ٤ (۳۱۹۹)، صحيح مسلم/ الكسوف ۱ (۹۰۱)، سنن النسائي/ الكسوف ۱۱ (۱٤۷٦)، سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ۱۵۲ (۱۲٦۳)، (تحفة الأشراف: ۱٦٦۹۲)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/ الصلاة ۲۷۹ (الجمعة ٤٤) (۵٦۱)، موطا امام مالك/صلاة الكسوف ۱ (۱)، مسند احمد (٦/۷٦، ۷۸، ۱٦٤، ۱٦۸)، سنن الدارمي/ الصلاة ۱۸۷ (۱۵٦۸) (صحيح)

عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: خُسِفَتِ الشَّمْسُ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَسْجِدِ، فَقَامَ، فَكَبَّرَ، وَصَفَّ النَّاسُ وَرَاءَهُ، فَاقْتَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِرَاءَةً طَوِيلَةً، ثُمَّ كَبَّرَ، فَرَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، فَقَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، ثُمَّ قَامَ فَاقْتَرَأَ قِرَاءَةً طَوِيلَةً هِيَ أَدْنَى مِنَ الْقِرَاءَةِ الْأُولَى، ثُمَّ كَبَّرَ فَرَكَعَ رُكُوعًا طَوِيلًا هُوَ أَدْنَى مِنَ الرُّكُوعِ الْأَوَّلِ، ثُمَّ قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْأُخْرَى مِثْلَ ذَلِكَ فَاسْتَكْمَلَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَأَرْبَعَ سَجَدَاتٍ، وَانْجَلَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَنْصَرِفَ".

عائشه چې د نبي ﷺ بي بي ده نه روایت دی هغې ویلي دي: خړ شو نمر په ژوند د رسول الله ﷺ کې، نو ووتلو رسول الله ﷺ مسجد ته، نو ودریدلو تکبیریې وویلو او صف جوړ کړو خلقو وروسته د هغه نه، رسول الله ﷺ اوږد قراءت وکړو، بیایي تکبیر وویله، اوږده رکوع یې وکړه، بیایي سر اوچت کړو، ویې ویل: سمع الله لمن حمده، ربنا ولک الحمد، بیا پاڅیدلو اوږد قراءت یې وویلو، چې هغه نزدې وو اولنې قراءت ته، بیایي تکبیر وویلو، رکوع یې وکړه اوږده چې نزدې وه اولنۍ رکوع ته، بیایي وویل: سمع الله لمن حمده ربنا ولک الحمد، بیایي په دویم رکعات کې همدغسې وکړل، څلور رکعاتونه یې پوره کړه، او څلور سجدې یې وکړې، او روښانه شو نمر مخکې د فارغیدو نه.

[۱۱۸۱]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: كَانَ كَثِيرُ بْنُ عَبَّاسٍ يُحَدِّثُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ كَانَ يُحَدِّثُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ" مِثْلَ حَدِيثِ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّهُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ رَكْعَتَيْنِ".

عبد الله بن عباس حدیث بیانوي، بېشکه رسول الله ﷺ مونځ وکړو په کسوف د نمر کې، په شان د حدیث د عروة د عائشې نه او هغې د رسول الله نه بېشکه هغه مونځ وکړو دوه رکعاته په هر رکعات کې دوه رکوع وې.

[۱۱۸۲]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْفُرَاتِ بْنِ خَالِدٍ أَبُو مَسْعُودٍ الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ الرَّازِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الرَّازِيِّ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحُدِّثْتُ عَنْ عُمَرَ بْنِ شَقِيقٍ، حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ الرَّازِيُّ، وَهَذَا لَفْظُهُ وَهُوَ أَتَمُّ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى بِهِمْ فَقَرَأَ بِسُورَةٍ مِنَ الطُّوَلِ وَرَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ قَامَ الثَّانِيَةَ فَقَرَأَ سُورَةً مِنَ الطُّوَلِ وَرَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ كَمَا هُوَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ يَدْعُو حَتَّى انْجَلَى كُسُوفُهَا".

د ابي بن کعب نه روایت دی هغه ویلي دي: خړ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ کې، او بېشکه نبي ﷺ مونځ وکړو دوی ته، ویې لوستلو یو سورت د طولو نه، او رکوع یې وکړې پنځه رکوعانې، او دوه سجدې یې وکړې، بیا پاڅیدلو دویم ځل، یویې لوستلو یو سورت

---

[1]): صحيح البخاري/الكسوف ٤ (١٠٥٢)، صحيح مسلم/ الكسوف ١ (٩٠٧)، سنن النسائي/ الكسوف ٩ (١٤٧٠)، (تحفة الأشراف: ٦٣٣٥) (صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٤/٥) (ضعيف)

د اورېدو نه، او پنځه ركوع گاڼي يې وكړې، او دوه سجدې يې وكړې، بيا كېناستلو لكه څنگه چې وو مخامخ قبلې ته دعاء يې كوله تردې چې ختم شو خړوالى د هغې.

[۱۱۸۳]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّهُ صَلَّى فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ، فَقَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ قَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ قَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ قَرَأَ، ثُمَّ رَكَعَ، ثُمَّ سَجَدَ وَالْأُخْرَى مِثْلُهَا".

ابن عباس ﷺ د نبي ﷺ نه روايت كوي، بېشكه هغه مونځ وكړو په كسوف الشمس كې، نو قراءت يې وكړو، بيايې ركوع وكړه، بيايې قراءت وكړو، بيايې ركوع وكړه، بيايې قراءت وكړو، بيايې بيايې ركوع وكړه، بيايې سجده وكړه او بله د هغې پشان.

[۱۱۸۴]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ قَيْسٍ، حَدَّثَنِي ثَعْلَبَةُ بْنُ عِبَادٍ الْعَبْدِيُّ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ، أَنَّهُ شَهِدَ خُطْبَةً يَوْمًا لِسَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ سَمُرَةُ: بَيْنَمَا أَنَا وَغُلَامٌ مِنَ الْأَنْصَارِ نَرْمِي غَرَضَيْنِ لَنَا حَتَّى إِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ قِيدَ رُمْحَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٍ فِي عَيْنِ النَّاظِرِ مِنَ الْأُفُقِ اسْوَدَّتْ حَتَّى آضَتْ كَأَنَّهَا تَنُّومَةٌ، فَقَالَ أَحَدُنَا لِصَاحِبِهِ: انْطَلِقْ بِنَا إِلَى الْمَسْجِدِ، فَوَاللَّهِ لَيُحْدِثَنَّ شَأْنُ هَذِهِ الشَّمْسِ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُمَّتِهِ حَدَثًا، قَالَ: فَدَفَعْنَا، فَإِذَا هُوَ بَارِزٌ" فَاسْتَقْدَمَ، فَصَلَّى، فَقَامَ بِنَا كَأَطْوَلِ مَا قَامَ بِنَا فِي صَلَاةٍ قَطُّ لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا، قَالَ: ثُمَّ رَكَعَ بِنَا كَأَطْوَلِ مَا رَكَعَ بِنَا فِي صَلَاةٍ قَطُّ لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا، ثُمَّ سَجَدَ بِنَا كَأَطْوَلِ مَا سَجَدَ بِنَا فِي صَلَاةٍ قَطُّ لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا، ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْأُخْرَى مِثْلَ ذَلِكَ، قَالَ: فَوَافَقَ تَجَلِّي الشَّمْسِ جُلُوسَهُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ، قَالَ: ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ قَامَ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، وَشَهِدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَشَهِدَ أَنَّهُ عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ"، ثُمَّ سَاقَ أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ خُطْبَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ثعلبة بن عباد العبدي چې د بصرې والا نه دى هغه حاضر شو يوه ورځ خطبې د سمرة بن جندب ته، هغه وويل، ويلي دي سمرة: يو ځل زه او يو غلام د انصارو نه مونږ نښنه وېشته، تردې چې سولو نمر په مقدار د نېزې او دوه نېزو او يا درې په نظر د كتونكې كې د افق نه نو تور شو، تردې چې شولو په شان د تنومه بوټې، نو يو په مونږ كې خپل ملگري ته وويل: بوزه مونږ مسجد ته، قسم په الله پېښ به كړي شان د دې نمر رسول الله ﷺ ته د هغه په امت څه نوى كار، هغه وايي: نو مونږ لاړو نو هغه ښكاره شوى وو، نو رامخكې شو، مونځ يې وكړو، قيام يې وكړو مونږ ته اوږد قيام په مانځه كې، مونږ د هغه اواز نه اورېدو. هغه وايي: بيايي ركوع وكړه اوږده ركوع په مانځه كې، مونږ د هغه اواز نه اورېدو، بيايي سجده وكړه مونږ ته اوږده هغه چې كړي يې وه په مانځه كې، مونږ د هغه اواز نه اورېدو، بيايي وروستني ركعات كې هم دغسې وكړل، هغه وايي: نو موافق شو روښانوالى د نمر د كېناستلو د هغه سره په دويم ركعات كې. هغه وايي: بيايي سلام وگرځولو، بيا پاڅېدلو د الله حمد يې وويلو او ثنايي وويله په هغه، او تشهد يې وويلو. بيا احمد بن يونس د نبي

[1]): صحيح مسلم/الكسوف ٤ (٩٠٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٧٩ (الجمعة ٤٤) (٥٦٠)، سنن النسائي/الكسوف ٨ (١٤٦٨-١٤٦٩)، (تحفة الأشراف: ٥٦٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/ ٢١٦، ٢٢٥، ٢٩٨، ٣٤٦، ٣٥٨)، سنن الدارمي/ الصلاة ١٨٧ (١٥٣٤)

[2]): سنن الترمذي/الصلاة ٢٨٠ (الجمعة ٤٥) (٥٦٢)، سنن النسائي/الكسوف ١٥ (١٤٨٥)، ١٩ (١٤٩٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥٢ (١٢٦٤)، (تحفة الأشراف: ٤٥٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/ ١٤، ١٦، ١٧، ١٩، ٢٣) (ضعيف)

ﷺ خطبه بیان کړه.

**تشریح: قوله**: انه شهد خطبة یوما لسمرة بن جندب قال قال سمرة بینما انا و غلام من الانصار نرمی غرضین لنا حتی اذا کانت الشمس قید رمحین او ثلاثة فی عین الناظر من الافق اسودّت حتی أضت کانها تنوّمةٌ،الخ، دا د دې باب اووم حدیث دې د دې راوی سمرة بن جندب صحابی دې او دغلام من الانصار نه مراد شاید د سمره ځوئې عبدالرحمٰن دې لکه څنګه چه د دې روایت نه معلومیږی کوم چه په راتلونکی،باب من قال یرکع رکعتین، کښې راروان دې.

## مضمون حدیث:

سمرة بن جندب رضی الله عنه فرمائی یو ځل زهٔ او یو انصاری هلك د حضور ﷺ په زمانه کښې د تیراندازئ او د نښې ویشلو مشق کولو (صحابه کرامو به د جهاد د تیارئ کښې سورلئ او د تیراندازئ وغیره مشق کولو) تر دې چه کله نمر د کتونکو په نظر کښې دوه یا درې نیزې په اندازه پورته شو نو ناساپه تورولې او تیارهٔ کښې په بدلیدلو شو او بې رنړا کیدو کیدو داسې شو چه ګویا هغه تنوّمه دې، دا د یو واښه نوم دې کوم چه په رنګ کښې توروالی ته مائله وی.

فقال احدنا لصاحبه انطلق بنا الی المسجد فوالله لیحدثن شان هذه الشمس لرسول الله صلی الله علیه وسلم فی امّته حدثا، مونږ یو بل ته اووئیل چه په دې کار کښې تیراندازی پریخودل او مسجد نبوی طرف ته تلل پکار دی قسم په الله د نمر دا حالت به د رسول الله ﷺ دپاره د دوئ د امت په حق کښې یو خاص کار پیدا کړی، مطلب دا دې چه مونږ له دې وخت پکار دی چه د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او هلته لاړ شو او اوګورو چه دې وخت حضور ﷺ څهٔ کوی او دې موقع کښې د امت دپاره د کوم څیز تعلیم فرمائی، قال فدفعنا فاذا هو بارزٌ، د دُفعنا ترجمه خو دا ده چه مونږ ته دهکې راکړې شوې یعنی راټیلوالې شو او دلته مراد تیز تیز تلل دی لکه څنګه چه څوك چا لره ټیل ورکړی او روان کړی، فاذا هو بارزٌ [۱] یعنې مونږ هلته لاړو او وموا وکتل چه حضور ﷺ بهر په مجلس کښې تشریف فرما دې، دا د بُروز نه دې د کوم معنی چه د ظهور ده او مطلب دا دې چه دا د کسوف شمس په وخت کښې دوئ په کور کښې نهٔ وو بلکه بهر د خلقو په مینځ کښې ښکاره ناست وو (تشریف فرما وو)

## د توحد رکوع واله حدیث:

په دې حدیث کښې د حضرت سمره رضی الله عنه چه د صلوة االکسوف کوم کیفیت بیان کړې دې په دې کښې صرف یوه رکوع مذکور ده لهذا دا حدیث د حنفیانو دلیل دې.

[۱۱۸۵][۱]حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ قَبِيصَةَ الْهِلَالِيِّ، قَالَ: كُسِفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَخَرَجَ، فَزِعًا يَجُرُّ ثَوْبَهُ وَأَنَا مَعَهُ يَوْمَئِذٍ بِالْمَدِينَةِ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ فَأَطَالَ فِيهِمَا الْقِيَامَ، ثُمَّ انْصَرَفَ وَانْجَلَتْ، فَقَالَ: "إِنَّمَا هَذِهِ الْآيَاتُ يُخَوِّفُ اللَّهُ بِهَا، فَإِذَا رَأَيْتُمُوهَا

[۱] او په بعضې نسخو کښې د بازَز دې آرَزَ وائې هجوم او ګنړې ته یعنی دغه وخت حضور ﷺ د خلقو په یو جماعت کښې وو، ۱۲ منه.

[۱]: سنن النسائي/الكسوف ١٦ (١٤٨٧، ١٤٨٨)، (تحفة الأشراف: ١١٠٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٦٠) (ضعيف)

فَصَلُّوا كَأَحْدَثِ صَلَاةٍ صَلَّيْتُمُوهَا مِنَ الْمَكْتُوبَةِ".

د قبصه الهلالي نه روايت دی، هغه ويلي دي: خړ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ کښې، نو راووتلو د يرې سره چې جامه يې راخکله او زه د هغه سره وم په دغه وخت کښې په مدينه کښې، دوه رکعاته مونځ يې وکړو، په دواړو کښې يې قيام اوږد کړو، بيا لاړلو او نمر روښانه شو، هغه وفرمايل: بېشکه دا نښې دي ويروي الله په دې سره کله چې تاسو دا ووينئ نو مونځ کوئ په شان د نزدې مونځ چې تاسو کړی وي د فرضو نه.

**تشريح**: قوله، عن قبيصة الهلالي. دا د قبيصه ابن المخارق حديث هم د حنفيانو موافق دې په دې کښې صرف يوه رکوع مذکور ده او د يوه د ښوالى خبره دا ده چه دا قول او فعل دواړو لره جمع کونکې دې چنانچه د دې په آخر کښې د حضور ﷺ دا ارشاد دې چه، فاذا رايتموها فصلو كاحدث صلوة صليتموها من المكتوبة، احدث د اسم تفضيل صيغه ده چه معنى ئې د اقرب ده او د حديث معنى جديد او نوې ده يعنى اوس په نزدې کښې چه کوم تاسو فرض مونځ کړې دې د هغې په شان دوه رکعته اوکړئ (کسوف شمس په وخت کښې) او نزدې ئې چه کوم مونځ کړې وو هغه د سحر مونځ وو ځکه چه د کسوف مونځ چه هغوى کړې وو هغه دڅاښت په وخت وو.

## نور روايات:

دغه شان د حنفيانو يو بل دليل په، باب من قال يركع ركعتين، کښې راروان دې په هغې کښې دعبدالله بن عمرو بن العاص حديث مذکور دې په کوم کښې چه صرف يوه رکوع ده، دغه شان څلورم حديث د حضرت ابوبکره ﷺ دې په نسائى کښې چه، ان النبى صلى الله عليه وسلم صلى ركعتين مثل صلوتكم هذه.

[۱۱۸۶](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا رَيْحَانُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ قَبِيصَةَ الْهِلَالِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّ الشَّمْسَ كُسِفَتْ، بِمَعْنَى حَدِيثِ مُوسَى، قَالَ: حَتَّى بَدَتِ النُّجُومُ.

د هلال بن عامر نه روايت دی بېشکه قبصة الهلالي ورته حديث بيان کړی دی، بېشکه نمر خړ شو، په معنى د حديث د موسى سره، هغه وايي: تردې چې ستورې ښکاره شو.

# بَابُ الْقِرَاءَةِ فِي صَلَاةِ الْكُسُوفِ

## باب دی په بيان د قراءت کې د کسوف په مانځه کې

[۱۱۸۷](2) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا عَمِّي، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، كُلُّهُمْ قَدْ حَدَّثَنِي، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كُسِفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ، فَقَامَ فَحَزَرْتُ قِرَاءَتَهُ، فَرَأَيْتُ أَنَّهُ قَرَأَ بِسُورَةِ الْبَقَرَةِ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ قَامَ فَأَطَالَ الْقِرَاءَةَ فَحَزَرْتُ قِرَاءَتَهُ، فَرَأَيْتُ أَنَّهُ قَرَأَ بِسُورَةِ آلِ عِمْرَانَ".

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۶۵) (ضعيف)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۴۵، ۱۶۳۵۲، ۱۷۱۸۵)، وقد أخرجه: (حم ۶/۳۲) (حسن) صححه الحاكم (۱/۳۳۳)

محمد بن اسحاق وايي ماته حديث بيان كړی دی هشام بن عروة او عبد الله بن ابي سلمة د سليمان بن يسار نه، هغو تولو ماته حديث بيان كړی دی د عروة نه او هغه د عائشي نه، هغې ويلي دي: خړ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ كې، راووتلو رسول الله ﷺ، مونځ يي وكړو خلقو ته، نو پاڅيدلو نو اټكل ولګولو د هغه د قراءت، نو ماته معلومه شوه چې هغه به سورة البقره ويلې وي. او حديث يي بيان كړو. بيايي دوه سجدې وكړې، بيا پاڅيدلو اوږد قراءت يي وكړو ما اندازه ولګوله د هغه د قراءت، نو هغه سورة آل عمران لوستلى وو.

### (دفع تعارض بين الحديثين)

**تشريح: قوله:** فحزرت قراءته، ما د حضور ﷺ د قراءت مقدار ته اوكتل او اندازه مې اوكړه چه حضور ﷺ به سورة بقره لوستلې وی د دينه معلوميږی چه په دې مونځ كښې به قراءت سرا وی ګڼلی د اندازه كولو څۀ مطلب، او وړاندې په حديث كښې دی چه اندازه دا ده چه حضور ﷺ په په دويم ركعت كښې سورة عمران لوستلې وی، او د دېنه په وړاندې حديث كښې، قرأ قراءة طويلة فجهربها، راغلي دی حال دا دې چه دواړه حديثونه د حضرت عائشه ﷺ نه مروی دی، لهذا په دواړو كښې تعارض اوشو، د دې جواب دامام احمد نه دا منقول دې هغوی فرمائی چه په دې حديث سره زهری متفرد دې، او يوه توجيه حافظ په فتح الباری كښې دا كړې ده چه كيدې شی د دې نه مراد كسوف القمر وی نه كسوف الشمس، زۀ وايم يادې دا تاويل اوكړې شی چه د بعضې آياتونو بلا قصده جهر كول مراد دی.

[۱۱۸۸](١) حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ مَزْيَدٍ، أَخْبَرَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، أَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ، أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ قِرَاءَةً طَوِيلَةً، فَجَهَرَ بِهَا" يَعْنِي فِي صَلَاةِ الْكُسُوفِ.

د عائشي ﷺ نه روايت دی، بېشكه رسول الله ﷺ قراءت يي وكړو اوږد قراءت، جهري وكړو په هغې سره. يعني د كسوف په مانځه كې.

[۱۱۸۹](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ كَذَا عِنْدَ الْقَاضِي، وَالصَّوَابُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: خُسِفَتِ الشَّمْسُ "فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ مَعَهُ، فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا بِنَحْوٍ مِنْ سُورَةِ الْبَقَرَةِ، ثُمَّ رَكَعَ" وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

د ابن عباس ﷺ نه روايت دی هغه ويلي دي: خړ شو نمر نو مونځ وكړو رسول الله ﷺ او خلق د هغه سره وو، قيام يي وكړو اوږد قيام په اندازه د سورة البقرة، بيايي ركوع وكړه، او بيان يي كړو حديث.

## بَابُ يُنَادَى فِيهَا بِالصَّلَاةِ

### باب دی چې اواز كولی شي په هغې كې د مانځه دپاره

يعنی آيادكسوف د نمردپاره به اعلان كولې شی دا يوسوال دې اوحديث الباب نه د دې جواب معلوميږی چه، الصلوة جامعة، وغيره الفاظوسره به خلقوته خبرداري وركولې كيږی.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٥١٧) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/ الصلاة ٥١ (٤٣١)، الكسوف ٩ (١٠٥٢)، صحيح مسلم/الكسوف ٣ (٩٠٧)، سنن النسائي/الكسوف ١٧ (١٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ٥٩٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٩٨، ٣٥٨) (صحيح)

[١١٩٠] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ نَمِرٍ، أَنَّهُ سَأَلَ الزُّهْرِيَّ، فَقَالَ الزُّهْرِيُّ: أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كُسِفَتِ الشَّمْسُ، "فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا، فَنَادَى أَنِ الصَّلَاةُ جَامِعَةٌ".

د عائشي رضي الله عنها نه روایت دی هغې ویلي دي: خړ شو نمر، نو امر وکړو رسول الله ﷺ یو سړي ته، اوازيي وکړ: مونځ راجمع کونکی دی.

## بَابُ الصَّدَقَةِ فِيهَا

### باب دی په بیان د صدقي ککې په هغې کې

فيها ای فی حالة الکسوف، او یا دې دا اووئیلې شي چه ضمیر صلوة کسوف ته راجع دې یعنی صلوة الکسوف، او فی په معنی د مع سره دې[٢] یعني دکسوف په وخت کښې مونځ سره صدقه وغیره کول لکه څنګه چه په حدیث الباب کښې مذکور دی د دې نه معلومه شوه چه کسوف شمس کښې د مانځه نه علاوه صدقه هم کول پکار دی.

زمونږ په اطرافو کښې د مسلمانانو په دې باندې عمل په لیدلو کښې نۀ دې راغلې البته دلته مقامی هندوان په دې باندې ضرور عمل کوی صدقه خیرات کوی هندو فقیران د کسوف شمس په وخت کښې ما لیدلي دی چه رااوځی.

[١١٩١] (٣) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا يُخْسَفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذَلِكَ فَادْعُوا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ وَكَبِّرُوا وَتَصَدَّقُوا".

د عائشي رضي الله عنها نه روایت دی بېشکه نبي ﷺ ویلي دي: نمر او سپوږمی نه خړېږي د چا د مرګ د وجې نه، کله چې تاسو وینئ دا دعاء غواړئ د الله نه، تکبیر ووایي او صدقه کوئ.

## بَابُ الْعِتْقِ فِيهِ

### باب دی په بیان د عتق ککې په هغې کې

[١١٩٢] (٤) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ فَاطِمَةَ، عَنْ أَسْمَاءَ، قَالَتْ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِالْعَتَاقَةِ فِي صَلَاةِ الْكُسُوفِ".

د اسماء نه روایت دی هغې ویلي دي: وو نبي ﷺ چې امریي کولو په ازادولو باندې په مانځه د کسوف کې.

**تشریح:** د وس مطابق غلامانو لره آزادول که چا سره غلام وی ګینی په دې زمانه کښې نۀ خو په عامه توګه جهاد کیږی او نۀ د خلقو سره غلام او وینځې شته.

---

[١]: صحيح البخاري/الكسوف (١٠٦٥)، صحيح مسلم/الكسوف ١ (٩٠١)، سنن النسائي/الكسوف ١٨ (١٤٩٥)، ٢١ (١٤٩٨) (تحفة الأشراف: ١٦٥٢٨) (صحيح)

[٢]: د دې تاویل حاجت څکه دې چه عین د مونځ په حالت کښې صدقه څنګه کولې شي.

[٣]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧١٤٨، ١٧١٧٣) (صحيح)

[٤]: صحيح البخاري/الكسوف ١١ (١٠٥٤)، والعتق ٣ (٢٥١٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٤٥)، سنن الدارمي/الصلاة ١٨٧ (١٥٣٩) (صحيح)

# بَابُ مَنْ قَالَ يَرْكَعُ رَكْعَتَيْنِ

## باب دی په بیان د هغه چا کې چې کوي په دوه رکعاته

[۱۱۹۳] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي الْحَارِثُ بْنُ عُمَيْرٍ الْبَصْرِيُّ، عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "فَجَعَلَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ، وَيَسْأَلُ عَنْهَا حَتَّى انْجَلَتْ".

د نعمان بن بشیر رضی الله عنه نه روایت دی، هغه ویلي دي: څرګ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ کې نو شروع شو چې مونځ یي وکړو دوه دوه رکعاته، او تپوس یي کولو د هغې نه، تردې چې روښانه شو.

### د ترجمة الباب او د حديث تشریح:

د رکعتین نه په ظاهر کښې د دې معنی حقیقی ده رکوعین مراد نهٔ دی او د ترجمه غرض دا دې چه، يصلي ركعتين ركعتين، يعنی په يو ځل دې څلور او نهٔ کړې شی بلکه دوه رکعته دې اوکړې شی نو اودې ګوری که نمر صفا شوې وی نو ډیره ښهٔ ده ګینی دوه رکعته دې نور اوکړی، د دې وجه نه په حدیث الباب کښې دی چه، فجعل يصلي ركعتين ركعتين و يسال عنها، يعنی د دوو رکعاتو کولو نه پس به ئې د نمر په حقله تپوس اوکړو چه صفا شوې دې او که نهٔ او بیا به ئې دویم ځلې دوه رکعته کول، علامه عینی د دې حدیث شرح داسې کړې ده او دحافظ ابن حجر رائې دا ده چه په دې حدیث کښې د رکعتین نه مراد رکوعین دی (٢) او د حدیث مطلب حافظ دا اغستې دې چه حضور ﷺ به د یو رکوع نه پس سرې اولیږلو چه معلوم کړی چه نمر صفا شوې دې او که نهٔ، او حافظ دا هم لیکلی دی چه بظاهره دا معلومول په مانځه کښې د اشارې په ذریعې سره به وی او علامه عینی رحمه الله چه کومه معنی بیان کړې ده هغه د ظاهر حدیث نه علاوه د احنافو د مسلك مطابق هم ده اول خو د ځکه چه د حنفیانو د رکوعین فی كل ركعة يعنی په هر رکعت کښې د دوو رکوع قائل نهٔ دی دویم ځکه چه زمونږه بعضې فقهاؤ لیکلي دی چه په صلوة الکسوف کښې د دوو رکعتو نه زیات هم کولې شی لکه څلور او شپږ. كما في البذل، ص، ۲۲۷، او حضرت ګنګوهی رحمه الله په دې حدیث کښې د رکعتین نه مراد رکوعین اغستې دې لکه څنګه چه حافظ ابن حجر رحمه الله خو په حدیث کښې چه، يسال عنها، کوم مذکور دې د دې هغه مطلب ئې نهٔ دې اغستې کوم چه حافظ اختیار کړې دې چه سرې اولیږی او معلوم کړی بلکه د يسال عنها مطلب ئې دا اغستې دې چه په مانځه کښې به ئې د الله پاك نه سوال او دعاء کوله د نمر په باره کښې چه الله تعالی د دې حالت سم کړی او د دې رانړا واپس کړی، او د علامه عینی واله مطلب له حضرت خکه نهٔ دې اختیار کړې چه دا د مشهور روایتونو خلاف دې ځکه چه د حضور ﷺ نه په کسوف کښې صرف دوه رکعته کول ثابت دی د دینه زیات نهٔ.

(١): سنن النسائي/الكسوف ١٦ (١٤٨٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥٢ (١٢٦٢)، (تحفة الأشراف: ١١٦٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٦٧، ٢٦٩، ٢٧١، ٢٧٧) (منكر)

(٢) لکه څنګه چه د شوافعو مذهب دې د دوی په نیز باندې په هر رکعت کښې دوه رکوع او دوه قیام دی ١٢ منه

[۱۱۹۴] (¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَكَدْ يَرْكَعُ، ثُمَّ رَكَعَ فَلَمْ يَكَدْ يَرْفَعُ، ثُمَّ رَفَعَ فَلَمْ يَكَدْ يَسْجُدُ، ثُمَّ سَجَدَ فَلَمْ يَكَدْ يَرْفَعُ، ثُمَّ رَفَعَ فَلَمْ يَكَدْ يَسْجُدُ، ثُمَّ سَجَدَ فَلَمْ يَكَدْ يَرْفَعُ، ثُمَّ رَفَعَ، وَفَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْأُخْرَى مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ نَفَخَ فِي آخِرِ سُجُودِهِ، فَقَالَ: أُفْ أُفْ، ثُمَّ قَالَ: رَبِّ أَلَمْ تَعِدْنِي أَنْ لَا تُعَذِّبَهُمْ وَأَنَا فِيهِمْ، أَلَمْ تَعِدْنِي أَنْ لَا تُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ"، فَفَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ صَلَاتِهِ وَقَدْ أَمْحَصَتِ الشَّمْسُ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

د عبد الله بن عمرو نه روايت دی، هغه ويلي دي: خړ شو نمر په زمانه د رسول الله ﷺ کې، ودريدلو رسول الله ﷺ، نژدې نه وو چې رکوع يې کړې وه، بيايې رکوع وکړه، نژدې نه وو چې اوچت شي، بيا اوچت شو، نژدې نه وو چې سجده وکړي، بيايې سجده وکړه، نژدې نه وو چې اوچت شي، بيا اوچت شو، نژدې نه وو چې سجده وکړي، بيايې سجده وکړه، نژدې نه وو چې اوچت شي، بيا اوچت شو، او ويې کړه په دويم رکعات کې په مثل د هغې، بيايې پوکې وکړو په اخيرنۍ سجده کې، ويې ويل: اُف، اُف، بيايې وويل: ای ربه! تا ماسره وعده نه وه کړې چې دوی ته به عذاب نه ورکوې حال دا چې زه په دوی کې يم، ايا تا ماسره وعده نه وه کړې چې ته به دوی ته عذاب نه ورکوې په داسې حال کې چې استغفار غواړي؟ فارغ شو رسول الله ﷺ د خپل مونځ نه، او نمر خلاص شوی وو، او حديث يې بيان کړو.

**تشريح: قوله:** حدثنا موسى بن اسماعيل..الخ، دا د عبدالله بن عمرو بن العاص حديث دې او د حنفيانو دليل دې كما تقدم قبل ذلك،

**قوله:** ثم نفخ في آخر سجوده فقال أف اف، يعنى حضور ﷺ په سجده کښې په زوره زوره ساه اخستله لکه څنګه چه د ساه بنديدلو (يا ستړی والی) په وخت کيږی.

**قوله:** فقال أف اف: حضور ﷺ به بعينه أف أف وئيل بلکه په نفخ يعنى پوکي وهل او ساه اغستلو سره چه کوم آواز راپورته کيږی د هغې د پوهه کولو دپاره په خپلو الفاظو کښې د هغې داسې تعبير کوی، د راوی مقصود د حکايت صوت او يا د آواز د نقل ويستلو نهٔ دې چه د دوئ د ژبې نه بعينه دا لفظ راوتلو لکه څنګه چه په صوت غراب يعنى د کارغهٔ آواز لره په غاق سره تعبير کوی نو دا مطلب خو نهٔ وی چه ګينی کارغهٔ بعينه هم داسې وائی بلکه دا خو د هغهٔ د آواز نقل دې، سبحان الله څهٔ غوره توجيه ده.

[۱۱۹۵] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ حَيَّانَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: بَيْنَمَا أَنَا أَتَرَمَّى بِأَسْهُمٍ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ كَسَفَتِ الشَّمْسُ فَنَبَذْتُهُنَّ، وَقُلْتُ: لَأَنْظُرَنَّ مَا أَحْدَثَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كُسُوفِ الشَّمْسِ الْيَوْمَ؟ فَانْتَهَيْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ رَافِعٌ يَدَيْهِ يُسَبِّحُ وَيُحَمِّدُ وَيُهَلِّلُ وَيَدْعُو حَتَّى حُسِرَ عَنِ الشَّمْسِ، فَقَرَأَ بِسُورَتَيْنِ وَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ".

¹): سنن النسائي/الكسوف ١٤ (١٤٨٣)، ٢٠ (١٤٩٧)، سنن الترمذي/الشمائل ٤٤ (٣٠٧)، (تحفة الأشراف: ٨٦٣٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الكسوف ٣ (١٠٤٥)، ٨ (١٠٥٨)، صحيح مسلم/الكسوف ٥ (٩١٠)، مسند احمد (١٧٥/٢) (صحيح)

²): صحيح مسلم/الكسوف ٥ (٩١٣)، سنن النسائي/ السكوف ٢ (١٤٦١) (تحفة الأشراف: ٩٦٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦١/٥، ٦٢) (صحيح)

د عبد الرحمن بن سمرة نه روايت دی، هغه ويلي دي: په دغه وخت کي ما وېشتل غشي په ژوند د رسول الله ﷺ کي ناڅاپه خر شو نمر، ما وغورځول، او ما وويل زه به خامخا ګورم چي د نمر خړوالي نن ورځ رسول الله ﷺ ته څه شی پېښ کړه، زه ورسيدم هغه ته او هغه اوچتونکی وو خپلو لاسونو لره چي تسبيح او حمد يي ويلو، او تهليل او دعاء يي کوله، تردې چي ښکاره شو نمر، ويي لوستل دوه سورتونه، او ويي کړل دوه رکعاته.

**تشريح: قوله:** عن عبدالرحمٰن بن سمرة قال بينما انا ارمي، دا حديث د دې نه وړاندې، باب من قال اربع ركعات، د لاندې تير شوې دې مونږ هلته د دې حواله هم ورکړې ده.

## باب الصلاة عند الظلمة ونحوها

### باب دی په بيان د مونځ کي په وخت تيارې کي يا د دې په شان

يعنی که د کسوف نه علاوه بله څه د ويرې او خطرې خبره راپيښه شي مثلا تيز باد يا په ورځ کښې تيارۀ خوره کيدل هم داسې زلزله وغيره، په دې سلسله کښې امام بخاری رحمه الله باب قائم کړې ده، باب ما قيل في الزلازل والايات.

### د امام بخاری او د مصنف په ترجمة الباب کښې فرق:

خو په دې باندې هغوی په لفظ د صلوة سره باب نۀ دې تړلې او نۀ ئې د باب د لاندې داسې روايت ذکر کړې دې په کوم کښې چه د مانځه ثبوت وی، خو زمونږ مصنف رحمه الله په لفظ د صلوة سره باب تړلې دې، حضرت شيخ رحمه الله د بخاری په تراجم کښې ليکلی دی چه ابن قدامه حنبلی صرف د زلزلې په وخت کښې مونځ کول د امام احمد مذهب ليکلې دې او د نورو آياتو او حوادثو په وخت کښې نۀ، هغوی د امام مالك او شافعی مذهب هم دا ليکلې دې ځکه چه د حضور ﷺ نه د غير کسوف دپاره مونځ کول ثابت نۀ دی، او د حنفيانو مذهب هغوی دا ليکلې دې چه د دوئ په نيز د ټولو آفاتو په وخت کښې د مونځ کول مستحب دی ځکه چه حضور ﷺ د صلوة کسوف علت دا بيان فرمائيلې دې چه هغه يو آية دې من آيات الله لهذا د ټولو آياتو په وخت کښې مونځ کول پکار دی.

### مذاهب ائمه:

خو حافظ ابن حجر په فتح الباری کښې دا ليکلې دی چه دا مسئله مختلف فيه ده او د امام احمد او اسحاق وغيره مذهب هغوی بغير د تخصيص د زلزلې نه دا ليکلې دې چه د دوئ په نيز باندې په داسې مواقعو کښې مونځ کول پکار دی، او د امام شافعی په باره کښې دا ليکلې دی چه هغوی د داسې کارونو دپاره مونځ کول د حديث په صحت پورې معلق کړې دی يعنی که د حديث نه ثابت شی نو بيا دې مونځ اوکړې شی، حافظ رحمه الله فرمائی چه د ابن عباس نه په دې سلسله کښې روايت ثابت دې[1] په مصنف عبدالرزاق وغيره کښې موجود دې او د حنفيانو مذهب دا دې چه په داسې مواقعو کښې مونځ کول بلا جماعت مستحب دې.

[1] حافظ په دې کښې يو روايت د حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم مرفوعا نقل کړې دې کوم چه په صحيح ابن حبان کښې دې چه دهغې دا دی، صلوة الايات ست ركعات واربع سجدات) ۱۲ منه_

[۱۱۹٦]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ جَبَلَةَ بْنِ أَبِي رَوَّادٍ، حَدَّثَنِي حَرَمِيُّ بْنُ عُمَارَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ النَّضْرِ، حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: كَانَتْ ظُلْمَةٌ عَلَى عَهْدِ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: فَأَتَيْتُ أَنَسًا، فَقُلْتُ: يَا أَبَا حَمْزَةَ، هَلْ كَانَ يُصِيبُكُمْ مِثْلُ هَذَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: مَعَاذَ اللَّهِ، إِنْ كَانَتِ الرِّيحُ لَتَشْتَدُّ فَنُبَادِرُ الْمَسْجِدَ مَخَافَةَ الْقِيَامَةِ.

د عبيد الله بن النضر نه روايت دی، ماته حديث بيان کړی دی زما پلار، هغه ويلي دي: تياره شوه په زمانه د انس بن مالک کې، هغه وايي: زه راغلم انس ته، ما وويل: ای ابو حمزه! ايا تاسو ته به د رسول الله په زمانه کې د دې پشان رسيدلو؟ هغه وويل: پناه غواړم په الله، شان دادی چې که سختيدلو به باد نو مونږ به تيزي کوله مسجد ته د وجې د وېرې د قيامت نه.

## بَابُ السُّجُودِ عِنْدَ الْآيَاتِ

### باب دی په بيان د سجدو کې په وخت د نښو کې

د حوادثو په وخت کښې الله پاك ته په سجده کښې پريوتل.

[۱۱۹۷]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي صَفْوَانَ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: قِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: مَاتَتْ فُلَانَةُ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَّ سَاجِدًا، فَقِيلَ لَهُ: أَتَسْجُدُ هَذِهِ السَّاعَةَ؟ فَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَأَيْتُمْ آيَةً فَاسْجُدُوا"، وَأَيُّ آيَةٍ أَعْظَمُ مِنْ ذَهَابِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د عکرمة نه روايت دی، هغه وايي: وويل شو ابن عباس ته، فلانۍ مړه شوه . بعضي د بيبيانو د نبي ﷺ نه.نو پريوتلو په سجده باندې، هغه ته وويل شول: ايا ته سجده کوې په دې وخت کې؟ هغه وويل: ويلي دي رسول الله ﷺ: کله چې تاسو څه نښه ووينئ نو سجده وکړئ. او کومه يوه نښه ډيره لويه د ختميدو د بيبيانو د نبي ﷺ نه.

**تشريح: قوله:** قيل لابن عباس ماتت فلانة بعض ازواج النبی صلی الله عليه وسلم فخرّ ساجدًا، د بعض ازواج نه مراد صفيه ﷺ يا حفصه ﷺ ده (قاله القاری) او په جمع الفوائد صفحه، ۲۳۴، ج، ۲، کښې د سوده ﷺ تصريح ده.

**په حديث شرح او سجده منفرده کښې مذاهب ائمه:**

د دې نه پس په دې پوهيدل پکار دی چه سجده منفرده د حنفيانو او مالکيه په نيز مشروع نهٔ ده په خلاف د شوافعو او حنابله نه چه د هغوی په نيز تعبّد بالسجدة المنفردة، معتبر دې لهذا حنفيه او مالکيه د خپل مسلك مطابق دلته سجده په صلوة باندې محمول کوی، هم دا اختلاف په سجده شکر کښې هم دې، د دې وجه نه د امام مالك ﷫ په نيز مکروه ده د شوافعو وغيره په نيز مشروع بلکه مستحب ده د صاحبينو هم دا مذهب دې او دامام صاحب په نيز باندې غير مشروع ده، بعضې وائی چه د امام صاحب رائې دا ده چه مشروع خو ده خو مستحب او سنت نهٔ ده، په دې کتاب يعنی سنن ابوداؤد کښې د کتاب الجهاد په آخره کښې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٢٥) (ضعيف)

[2]: سنن الترمذي/المناقب ٦٤ (٣٨٩١)، (تحفة الأشراف: ٦٠٣٧) (حسن)

سجده شکر باندې يو مستقل باب راروان دې، باب فی سجود الشکر، بذل،ص،۶۳،ج،۴.

قوله، قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا رايتم اية فاسجدوا، يعنى تاسو چه کله کومه پيښه يا آسمانى آفت يا د زمکې آفت اوګورئ نو سجده کوئ، د شافعيه او حنابله په نيز دا حديث په خپل ظاهر باندې دې، او د دوئ په نيز صلوة هم مراد اغستلې شى ځکه چه په يو روايت کښې دى چه، کان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا حزبه امر بادر الى الصلوة، او د حنفيه د اصولو او مسلك متقضى دا ده چه د دينه مراد هم صلوة واغستلې شى.(کما تقدم قريبًا)

# تَفْرِيْعُ اَبْوَابِ صَلَاةِ السَّفَرِ

### د سفر د مونځ د ابوابو تفريع (احکام ومسائل)

## بَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِ

### باب دى په بيان د مانځه د مسافر کې

دلته پنځه مسائل دى:(کما فى حاشية اللامع والاوجز)

۱. **مسافة القصر**: يعنى د شرعى سفر تعريف په کوم کښې چه مونځ په قصر سره کولې شى د دې مسئلې دپاره مستقل باب وراندې راروان دې،

۲. **متى يقصر المسافر**: يعنى شرعى مسافر لره په مانځه کښې قصر د کوم ځائې نه شروع کول پکار دى.

۳. **رخصة القصر فى السفر**: آيا په هر شرعى سفر کښې مونځ په قصر سره کولې شى يا په يو خاص سفر کښې؟

۴. **حکم القصر**: يعنى مسافر ته د قصر مونځ کول د رخصت درجه ده يا د عزيمت، قصر ضرور دې يا پوره هم جائز دى،

۵. **مدة الاقامة**: يعنى هغه کومه موده ده په کومه کښې چه د قيام په نيت سره شرعى مسافر د مقيم په حکم کښې کيږى، دا پنځه مسائل دى د کومو بيان به په خپل خپل باب کښې راشى، اوس بعضې مسائل نور هم دى، **تطوع فى السفر**، په سفر کښې سنت کول پکار دى او که نه، آذان فى السفر جمع بين الصلوتين فى السفر، په ذکر شوې باب سره د مصنف رحمه الله مقصود څلورمه مسئله بيانول دى.

**بحث رابع**: (**حکم القصر**): مسئله مختلف فيه ده، د حنفيه په نيز باندې قصر واجب دې او اتمام يعنى پوره کول ناجائز دى او که يو سړې اتمام اوکړى نو حنفيه دا فرمائى چه که دې سړى په دوو رکعتونو باندې قعده کړې وه نو بيا خو مونځ صحيح دې ګڼى فاسد دې، د دې وجه دا ده چه د حنفيه په نيز باندې په سفر کښې قصر يعنى دوه رکعته د رخصت په توګه باندې نشته دې بلکه هم دوه رکعته عزيمت دى بيا په دې باندې زيادت څنګه جائز کيدې شى.

[۱۱۹۸]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "فُرِضَتِ الصَّلَاةُ رَكْعَتَيْنِ، رَكْعَتَيْنِ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ، فَأُقِرَّتْ صَلَاةُ السَّفَرِ، وَزِيدَ فِي صَلَاةِ الْحَضَرِ".

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دى، هغې ويلي دي: فرض شوى دى مونځ دوه دوه ركعاته په حضر او سفركې، نوپه خپل حالت پاتې شو مونځ دسفر، او زيادت وكړې شو په مانځه د حضر كې.

## د حضرت عائشه رضي الله عنها د حديث مضمون كوم چه د حنفيانو مؤيد دې:

د باب رومبې حديث يعنى حديث د عائشه رضي الله عنها سره د حنفيه تائيد كيږي ځكه چه د حضرت عائشه رضي الله عنها د حديث مضمون دا دې چه په شروع كښې مونځونه هم دوه ركعته فرض شوې وو په سفر كښې وو يا په حضر كښې، بيا روستو په دې كښې ترميم اوشو هغه دا چه د حضر په مانځه كښې اضافه يعنى زياتوالې اوشو چه د دوو په ځائې باندې څلور ركعته شول، او د سفر مونځ په خپل زوړ حال باندې پاتې كړې شو، د دينه معلومه شوه چه په سفر كښې اصل هم دوه ركعته دى، دا مسلك خو د حنفيانو دې.

## (د شوافعو دلائل)

او د شافعيه وغيره په نيز په سفر كښې دوه ركعته په طريقې د رخصت دى او عزيمت په سفر كښې هم څلور ركعته دى لهذا اتمام هم جائز دې د شافعيه استدلال په آيت كريمه، و اذا ضربتم فى الارض فليس عليكم جناح ان تقصروا من الصلوة، سره دې د كوم نه چه معلوميږى چه د مسافر دپاره قصر د سهولت او آسانتيا دپاره دې كه هغه اوكړى نو په دې كښې هيڅ حرج نشته دې، د نفى د حرج تقاضا دا ده كه غواړى نو اتمام هم كولې شى كوم چه اصل دې او دحديث د عائشه رضي الله عنها تاويل هغه دا كوى چه د سفر مونځ په خپل حال باندې برقرار اوساتلې شو يعنى، لمن اراد ان يقتصر على الركعتين(قاله النووى،ص، ۲۴۱).

## (د احنافو د طرفه جواب)

: دې په خلاف حنفيه دې حديث د عائشه رضي الله عنها لره په ظاهر باندې ساتى او د آيت كريمه جواب دا وركوى چه دا آيت د سفر د مانځه سره متعلق نۀ دې بلكه د صلوة الخوف سره متعلق دې لكه څنګه چه په خپله په آيت كښې ددې تصريح ده او د قصر نه مراد قصر الصفة دې نه قصر العدد و بعبارة اخرى المراد القصر من حيث الكيفية لا من حيث الكمية، يعنى د څلورو ركعتونو په ځائې دوه ركعته كول مراد نۀ دى بلكه مونځ لره خفيف او مختصر كول، چه د ويرې په حالت كښې مختصر مونځ زر اوكړې شى دې لره دې اوږد نۀ كړې شى، او كه دې لره په صلوة سفر باندې محمول كړې شى نو بيا به داسې اووئيلې شى چه آيت كښې د مسافر په مونځ باندې د قصر اطلاق حقيقة او فى حد ذاته نۀ دې بلكه، بالنسبة الى صلوة الحضر، يعنى د حضر د مانځه په لحاظ سره د سفر مونځ ته قصر وئيلې شوې دې ګينى په واقع كښې هغه هم پوره دې(او قرينه په دې باندې حديث د حضرت عائشه رضي الله عنها دې).

[1]: صحيح البخاري/الصلاة ۱ (۳۵۰)، وتقصير الصلاة ۵ (۱۰۹۰)، فضائل الصحابة ۷۶ (۳۷۲۰)، صحيح مسلم/المسافرين ۱ (۶۸۵)، سنن النسائي/الصلاة ۳ (۴۵۶)، (تحفة الأشراف: ۱۶۴۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ۱ (۹)، مسند حمد (۶/۲۳۴، ۲۴۱، ۲۶۵، ۲۷۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۷۹ (۱۵۵۰) (صحيح)

## په قصر او اتمام کښې د مذاهب ائمه تفصيل:

د دې نه پس په دې پوهيدل پکار دی چه د شافعيه وغيره په نيز اګر که اتمام جائز دې خو افضل هم قصر دې، امام نووی په شرح د مسلم کښې په صفحه. ۲۴۱ کښې هم دې قول له صحيح او مشهور ليکلې دې[1] دويم روايت د دوئ دا دې چه اتمام افضل دې او دريم روايت ئې دا دې چه هما سواء دواړه برابر دی، او علامه صاوی مالکی ليکلې دی چه قصر د امام مالك په نيز سنت مؤکده دې او د اوجز نه معلوميږی چه د دوئ يو قول د قصر وجوب دې او يو د استحباب هم دې او د امام احمد يو قول دا دې چه قصر افضل دې، کما فی نيل المآرب،او يو قول دا دې چه سنت دې کما في الروض المربع، او د امام احمد نه منقول دی چه، احب العافية عن هذه المسئلة، خلاصه د مذاهبو دا رااوتله چه چه د حنفيانو په نيز اتمام ناجائز او د نورو علماؤ په نيز د دوئ د يو قول په بناء باندې ناجائز او د يو قول په بناء باندې جائز دې، او د شافعيه د مسلك تحقيق په حاشيه کښې اوليکلې شو د دوئ په نيز په يو صورت کښې اتمام افضل دې او په يو کښې قصر افضل دې خو اتمام جائز دې، بهر حال په خلاف د مالکيه او حنابله د دوئ په يو قول کښې اتمام ناجائز دې.

[۱۱۹۹][2] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ. ح وحَدَّثَنَا خُشَيْشٌ يَعْنِي ابْنَ أَصْرَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَابَيْهِ، عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، قَالَ: قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: أَرَأَيْتَ إِقْصَارَ النَّاسِ الصَّلَاةَ، وَإِنَّمَا قَالَ تَعَالَى: إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا سورة النساء آية ۱۰۱، فَقَدْ ذَهَبَ ذَلِكَ الْيَوْمَ؟ فَقَالَ: عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ "صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ اللَّهُ بِهَا عَلَيْكُمْ فَاقْبَلُوا صَدَقَتَهُ".

د يعلى بن امية نه روايت دی هغه وايي ما ووېل عمر بن الخطاب ته: ما خبر کړه په قصر د خلقو مانځه لره، بېشکه الله تعالى ويلي دي (که چېرې تاسو ويريدئ چې فتنه کې په واچوي تاسو لره کافران) نو هغه ورځ خو لاړه، هغه وفرمايل: زه هم تعجب کوم د هغه څه نه چې ته ترېنه تعجب کوې، نو دا خبره ما ذکر کړه رسول الله ﷺ ته، هغه ووېل: دا يوه صدقه ده چې الله کړې ده په تاسو، نو تاسو هغه قبوله کړئ.

**تشريح: قوله:** يعلى بن اميه، دوئ ته يعلى بن منيه هم وائي اميه ئې د پلار نوم او منيه ئې د

[1] ) د شافعيه مشهور مسلك على الالسنة دا دې چه د دوئ په نيز باندې اتمام افضل دې، خو امام نووی د دې برعکس قصر له افضل ليکلې دې بظاهر صحيح هغه دې کوم چه د شافعيه په مشهور کتاب شرح اقناع کښې ليکلې دې چه د کوم مسافر سفر على مسافة يومين يا مرحلتين وی نو د هغهٔ په حق کښې خو اتمام افضل دې (ځکه چه هغهٔ د بعضې علماؤ په نيز باندې مسافر نهٔ دې) او که د دهٔ سفر على مسافة ثلاثة مراحل يا ثلاثة ايام دې نو د دهٔ په حق کښې قصر افضل دې، خروجا عن خلاف ابي حنيفة ا هـ.

[2] ): صحيح مسلم/المسافرين ۱ (۶۸۶)، سنن الترمذي/تفسير سورة النساء ۵ (۳۰۳۴)، سنن النسائي/تقصير الصلاة ۱ (۱۴۳۴)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۷۳ (۱۰۶۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۵/۱، ۳۶)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۷۹ (۱۵۴۶) (صحيح)

مور نوم، مشهور صحابی دې، قال قلت لعمر بن الخطاب اراءیت اقصار الناس الصلوة، و انما قال الله عزوجل ان خفتم ان یفتنکم الذین کفروا، دا د باب دویم حدیث دې او رومبې حدیث یعنی حدیث د حضرت عائشه رضی الله عنها باندې کلام د ترجمة الباب د لاندې تیر شوې دې، په دې حدیث کښې چه کوم سوال او جواب مذکور دی هغه ظاهر دی د تشریح محتاج نهٔ دی د دې حدیث په آخر کښې دی چه، فاقبلوا صدقة، یعنی د سفر په مونځ کښې چه کوم قصر شوې وو هغهٔ د الله تعالی د طرف نه یو بخشش دې دې لره قبول کړئ.

د دې حدیث نه حنفیه او شافعیه دواړه استدلال کوی، حنفیه وائی چه زمونږ دلیل دې، فاقبلوا د امر صیغه ده د کومې نه چه معلومیږی چه قصر فی صلوة السفر واجب دې، او شافعیه دا وائی چه دا حدیث زمونږ موافق دې ځکه چه د دینه معلومیږی چه په سفر کښې رکعتین کول په طریقې د قصر دی په رکعتینو باندې د قصر اطلاق هغه وخت به صحیح وی کله چه اصل فریضه څلور رکعاته وی.

## په وجوب د قصر کښې د حنفیه دلائل:

په بذل المجهود کښې د حنفیه د مسلك په تائید کښې بالتفصیل اووهٔ دلائله ذکر کړې دی، د ټولو نه رومبې دلیل په دې کښې دا لیکلې دې چه د حضور صلی الله علیه وسلم نه د مشهورو روایاتو په اعتبار سره په خپل ټولو سفرونو کښې هم قصر ثابت دې همیشه به حضور صلی الله علیه وسلم قصر فرمائیلو که اتمام جائز وې نو کله به حضور صلی الله علیه وسلم د جواز د بیان دپاره داسې کړې وې، او دویم دلیل په بذل کښې د یعلی بن امیه واله حدیث دې شافعیه خو د دې په حقله دا وائی چه په متصدق علیه باندې د صدقې قبول واجب نهٔ دې بلکه دهٔ لره په دواړو کښې اختیار دې، زمونږ د طرف نه د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه د داسې څیز تصدق په کوم کښې چه د تملیك احتمال نهٔ وی لکه څنګه چه دلته رکعتین هغه په حکم د اسقاط کښې وی یعنی صاحب د حق خپل حق ساقط کړو لهذا د دې تحقق د بل په قبلولو باندې موقوف نهٔ دې بلکه په هر حال کښې به ساقط شی.

[۱۲۰۰] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي عَمَّارٍ يُحَدِّثُ، فَذَكَرَهُ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ، وَحَمَّادُ بْنُ مَسْعَدَةَ، كَمَا رَوَاهُ ابْنُ بَكْرٍ.

ما اوریدلي دي د عبد الله بن ابي عمارة نه چي حدیث یي بیانولو، ذکریي کړو پشان د هغي. ویلي دي ابوداود: د دې روایت کړی دی ابو عاصم او حماد بن مسعدة لکه څرنګه چې روایت کړی دی ابن بکر.

قوله، قال ابوداؤ رواه ابوعاصم و حماد بن مسعدة، کما رواه ابن بکر،

## شرح السند:

مصنف رحمه الله دې حدیث د یعلی لره په دوو سندونو سره ذکر کړې دې د دواړو مدار په ابن جریج باندې دې په رومبې سند کښې ابن جریج نه روایت کونکی یحی بن القطان وو او

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۵۹) (صحیح)

دلته په دويم سند کښې عبدالرزاق او محمد بن بکر دي، په دواړو سندونو کښې چه کوم فرق دي مصنف رحمه الله هغه ښائي او دا وائي چه ابوعاصم او حماد بن مسعده هم دغه شان روايت کړې دې څنګه چه محمد بن بکر کړې دې، هغه فرق دا دې چه په رومبي سند کښې ابن جريج او دعبدالله بن بابيه په مينځ کښې واسطه د عبدالرحمن بن عبدالله وه او په دې دويم سند کښې د عبدالرحمن په ځائې د هغوی دپلار عبدالله ده، او دې فرق لره دغه شان هم تعبير کولې شي چه په رومبی سند کښې د ابن جريج استاذ عبدالرحمن وو او په دې دويم کښې د عبدالرحمن پلار عبدالله دې.

**تنبيه:** په بذل المجهود کښې په دې ځائې کښې د تشريح په شروع کښې داسې دی ده د کومې نه چه دا وهم کيدې شي چه فرق په دواړو سندونو کښې د واسطه او عدم واسطه دې حال دا دې چه داسې نۀ ده بلکه فرق د واسطې د بدليدو دې بيا وړاندې حضرت چه د دې کوم تحقيق فرمائيلي دې هغه صفا دې.

## بَاب مَتَى يُقْصِرُ الْمُسَافِرُ

### باب دی چې مسافر په کله قصر کوي؟

### د ترجمة الباب تشريح:

د ترجمة الباب دوه مطلبه کيدې شي يو دا چه کوم سړې سفر شروع کوی نو هغه هم په خپل مانځه کښې قصر د کله نه کوی مسئله اختلافی ده.

په تقريبی توګه باندې د ائمه اربعه مذهب خو دا دې چه، اذا خرج من بيوت المصر، يعنی د آبادئ نه بهر وتلو نه پس په مانځه کښې قصر شروع کړی، د امام شافعی مشهور قول دا دې چه په دې کښې سورالبلد (د ښار پناه) لره اعتبار دې کوم چه د لويو ښارونو کښې وی دې نه د تيريدلو نه پس دې قصر شروع کړی اګر که هلته آبادی نۀ وی ختم شوې، او د مجاهد نه منقول دی که د سفر شروع په ورځ کښې شوې وی نو شپې راتللو نه وړاندې دې قصر نۀ کوی، او که د سفر ابتداء د شپې نه شوې وی نو ورځ کيدو نه وړاندې دې قصرنۀ کوی، ددې په مقابل کښې دعطاء مذهب دادې چه په آبادئ کښې هم قصر جائز دې.

او دويم احتمال په ترجمة الباب کښې دا دې چه د مصنف غرض د دينه د قصر مسافت لره بيانول دی يعنی په کوم سفر کښې دننه قصر کيږی يعنی د شرعی سفر مقدار.

د حديث الباب نه دا معلوميږی چه د مصنف غرض هم دې مسئلې لره بيانول دی چه په دې کښې اختلاف دې کومه چه وړاندې راروانه ده.

[۱۲۰۱](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَزِيدَ الْهُنَائِيِّ، قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنْ قَصْرِ الصَّلَاةِ، فَقَالَ أَنَسٌ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مَسِيرَةَ ثَلَاثَةِ أَمْيَالٍ أَوْ ثَلَاثَةِ فَرَاسِخَ، شُعْبَةُ شَكَّ، يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ".

د يحيی بن يزيد الهنائي نه روايت دی هغه وېلي دي ما تپوس وکړو د انس بن مالک نه، د قصر د مانځه، نو انس وويل: وو رسول الله ﷺ کله چې به وتلو په اندازه د درې ميلونو، او

(۱): صحيح مسلم/المسافرين ۱ (۶۹۱)، (تحفة الأشراف: ۱۶۷۱)، وقد أخرجه: حم(۳/ ۱۲۹) (صحيح)

يا درې فرسخونو ـ شک کړی دی شعبه ـ مونځ به کوي دوه رکعاته.

١: حدثنا ابن بشار..الخ، قوله، كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا خرج مسيرة ثلاثة اميال او ثلاثة فراسخ... يصلي ركعتين،

## د حديث نه د ظاهريه استدلال او د هغې جواب:

د قصر مسافت يعنى د سفر شرعى مقدار کښې اختلاف دې،د ظاهريه په نيز د دې مقدار درې ميله دی او دظاهريه ډلې امام جزرى په نيز يو ميل دې، د ظاهريه استدلال هم ددې حديث نه دې خو دې استدلال سره اولاً خو ځکه صحيح نۀ دې چه په حديث کښې د راوى شك مذکور دې د دريو ميلو او دريو فرسخو په مينځ کښې شعبه لره شك کيږى، يو فرسخ د دريو ميلو وى په دې حساب سره د دريو فرسخو نهۀ ميله کيږى، ثانياً جمهور دا وائى چه حضور ﷺ به نۀ په دريو ميلو باندې قصر کولو او نۀ په دريو فرسخو باندې، دا حديث يا خو په اختصار باندې مبنى دې يا د راوى په ظن باندې بلکه د رواى په وهم باندې، صحيح صورت حال هغه دې کوم چه د باب په دويم حديث کښې مذکور دې د کوم حاصل چه دا دې چه حضور ﷺ د خپل مکې په سفر کښې مدينې ته روانيدو نه پس چه ذوالحليفه ته اورسيدلو کوم چه د سفر ړومبې منزل دې هلته حضور ﷺ د قصر مونځ اوکړو کوم چه د مدينې نه تقريبا د شپږو ميلو په فاصله باندې دې اوس که کوم سړې دا وائى چه حضور ﷺ به په شپږو ميلو باندې قصر فرمائيلو نو دا صحيح نۀ ده ځکه چه ذوالحليفه د حضور ﷺ د سفر منتها يعنى آخرى منزل نۀ وو هغه خو په مينځ کښې منزل وو لکه څنګه چه څوك دسهارنپور نه دهلى دپاره روان شى او په لاره کښې د ديوبند په استيش باندې د قصر مونځ اوکړى نو ولې د دې به دا معنى شى چه تر ديوبند پورې سفر کښې به قصر کولې کيږى.

دا خو شو د باب ړومبى حديث باندې کلام او د ظاهريه د استدلال نه جواب.

## د قصر په مسافة کښې د ائمه اربعه مذاهب:

اوس تاسو د قصر د مسافت په حقله د ائمه اربعه مذاهب واورئ، د ائمه ثلاثه په نيز د شرعى سفر مقدار، يومان او يوم و ليلة، يعنى صرف دوه ورځې بغير د شپې دملولو او يا يوه ورځ او يوه شپه، او مرحلتان، مرحله لوې منزل ته وى، او اربعة بُرُدٍ، برد د بريد جمع ده بريد وړوکى منزل ته وائى کوم چه د دولسو ميلو وى، يعنى څلور واړۀ منزلونه يا دوه لوې منزلونه، او ستة عشر فرسخا، يو فرسخ د دريو ميلو وى لهذا د شپاړسو فرسخو اتۀ څلويښت ميلونه شول، دا تفصيل دې د ائمه ثلاثه په نيز.

و عندنا ثلاثه ايام من اقصر ايام السّنة بسير الابل او مشى الاقدام او ثلثه مراحل، يعنى درې ورځې يا درې لويې منزلونه، اصل تحديد خو زمونږ په نيز باندې هم دا دې، قال فى الهداية و لا عبرة بالفرسخ، يعنى زمونږ په اصل مذهب کښې اميال او فراسخ لره اعتبار نشته دې، خو د هدايه په حاشيه کښې ليکلې دى چه البته مشايخ د حنفيه يعنى متاخرينو د فرسخ اعتبار کړې دې، بيا په دې کښې هغوئ درې اقوال ليکلې دى، ١. يويشت فرسخ، ٢. اتلس فرسخ، ٣. پنځلس فرسخ، او دا ئې هم ليکلې دى چه فتوى په مينځنى قول باندې ده يعنى

په اتلسو فرسخو باندې، او يو فرسخ د دريو ميلو وى نو اتلسو له په دريو كښې ضرب وركولو سره څلورپنځوس ميله كيږى خو د وروستنو مفتيان كرامو فتوىٰ په اتۀ څلويښت ميلو باندې ده.

**تنبيه**: د جمهورو د ذكر شوې مسلك نه نه معلوميږى چه يوه مرحله د څليريشتو ميلو وى په دې حساب سره هغوى د مرحلتينو مقدار اتۀ څلويښت ميله بيان كړې دې اوس چه هر كله په مذهب حنفى كښې د شرعى سفر مقدار درې مراحله دې نو د دې ټول تعداد د ميلونو په اعتبار سره دوه اويا ميله كيږى، دا خبره د غور قابله ده.

**فائده**: مشهوره دا ده چه د احنافو په نيز د شرعى سفر مقدار د جمهورو د مقدار نه زيات دې په دې باندې زمونږ استاذ مرشد حضرت شيخ نور الله مرقده دا اشكال فرمائيلو چه مشهوره خو دا ده حال دا دې چه څنګه د اتۀ څلويښتو ميلو د سفر مسافت د جهمورو په نيز دې هم دغه شان زمونږ علماء هم نيكى نو بيا څۀ فرق پاتې شو خو د دې جواب پورته چه مونږ كوم د مذاهبو تشريح كړې ده د هغې نه په خپله حل كيږى او هغه دا چه اصل خو زمونږ په نيز تقدير بالزمان دې يا بالمراحل او هغه زمونږ په نيز باندې د جمهور نه زيات دې د هغوى په نيز دوه ورځې دى او زمونږ په نيز باندې درې ورځې او دا تقدير بالاميال خو د متاخرينو او اهل فتوىٰ ايجاد او پيدا كړې شوې دې.

[۱۲۰۲](1) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، وَإِبْرَاهِيمَ بْنِ مَيْسَرَةَ، سَمِعَا أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ: "صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ بِالْمَدِينَةِ أَرْبَعًا، وَالْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ".

انس بن مالک ويلي دي: ما مونځ وكړو د رسول الله ﷺ سره د ماسپخين، په مدينه كې څلور ركعاته، او د مازيګر په ذو الحُليفه كې دوه ركعاته.

# بَابُ الأَذَانِ فِي السَّفَرِ

## باب دى په بيان د اذان كې په سفر كې

په سفر كښې آذان غير مؤكد يعنى صرف مستحب دې، عند الاربعة. په هدايه كښې ليكلې دى چه د مسافر دپاره صرف اقامت باندې اكتفاء كول جائز دى، خو د آذان او اقامت دواړو پريخودل مكروه دى البته د داؤد ظاهرى او د عطاء په نيز د مسافر په حق كښې هم فرض دى. دغه شان په دې هم پوهيدل پكار دى چه آذان د منفرد په حق كښې هم مستحب دې عندالجهمور والائمه الثلاثة. او د امام مالك نه مروى دى چه د منفرد دپاره صرف اقامت دې، و قيل لا يستحب و قيل يستحب لمن يرجو حضور الجماعة.

(1): صحيح البخاري/تقصير الصلاة ٥ (١٠٨٩)، والحج ٢٤ (١٥٤٦)، ٢٥ (١٥٤٨)، ١١٩ (١٧١٤)، والجهاد ١٠٤ (٢٩٥١)، صحيح مسلم/المسافرين ١ (٦٩٠)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٧٤ (٥٤٦)، سنن النسائي/الصلاة ١١ (٤٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٣، ١٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/ ١١٠، ١١١، ١٧٧، ١٨٦، ٢٣٧، ٢٦٨)، سنن الدارمي/الصلاة ١٧٩ (١٥٤٨)، ويأتي في الحج برقم ١٧٧٣) (صحيح)

[۱۲۰۳](¹)حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، أَنَّ أَبَا عُشَّانَةَ الْمَعَافِرِيَّ حَدَّثَهُ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "يَعْجَبُ رَبُّكُمْ مِنْ رَاعِي غَنَمٍ فِي رَأْسِ شَظِيَّةٍ بِجَبَلٍ، يُؤَذِّنُ بِالصَّلَاةِ وَيُصَلِّي، فَيَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي هَذَا يُؤَذِّنُ وَيُقِيمُ الصَّلَاةَ، يَخَافُ مِنِّي قَدْ غَفَرْتُ لِعَبْدِي وَأَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ".

د عقبة بن عامر نه روايت دی، هغه ويلي دي: ما اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه چي ويل يي: تعجب کوي رب ستا د ساتونکي د ګډو نه په سر د غره کي، چي اذان کوي د مانځه دپاره، او مونځ کوي، نو وايي الله تعالى: اوګورئ زما دي بنده ته اذان کوي او مونځ قائموي، وېرېږي د مانه، ما خپله بنده ته بخښنه وکړه او جنت ته مي داخل کړو.

قوله، سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول يعجبُ ربك عزوجل من راعى غنم فى راس شظيّة بجبل يؤذن بالصلوة، الله تعالى د هغه شپونکی نه ډير خوشحاليږی(يا ئې ډير خوښوی) کوم چه د غر په څوکه باندي آذان ورکوی.

د دي حديث د ترجمة الباب سره په مطابقت کښي اشکال دی په ترجمة الباب کښي د مسافر ذکر دي او په حديث کښي د شپونکی د کوم دپاره چه د مسافر کيدل ضروری نهٔ دی بلکه عام دي، جواب دا دي چه هم په دي عموم سره استدلال دي، خو غوره دا وه د مصنف دپاره چه هغهٔ په دي باب کښي د مالك بن الحويرث حديث ذکر کړي وي لکه څنګه چه هغي لره امام نسائی، ترمذی او امام بخاری ﷫ ذکر کړي دي امام بخاری په دي سلسله کښي د ابوذرحديث هم ذکرفرمائيلي دي د کوم نه چه اذان فى السفر ثابتيږی.

## بَابُ الْمُسَافِرِ يُصَلِّي وَهُوَ يَشُكُّ فِي الْوَقْتِ

### باب دی په بيان د مسافر کي چي مونځ کوي او د هغه شک وي په وقت کي

مسئله اجماعی ده چه سړی ته ترڅو پوري د وخت د داخليدلو يقين او نهٔ شی تر هغه وخته پوري دهٔ لره په مانځه کښي شروع کول جائز نهٔ دی مسافر وی يا مقيم، په ترجمه کښي د مسافر قيد احترازی نهٔ دي بلکه په دي حيثيت سره دي چه د وخت په حقله شك زيات تر هم په سفر کښي راپيښيږی.

[۱۲۰۴](²)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْمِسْحَاجِ بْنِ مُوسَى، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ حَدِّثْنَا مَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: كُنَّا إِذَا كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ، فَقُلْنَا: زَالَتِ الشَّمْسُ أَوْ لَمْ تَزُلْ، صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ ارْتَحَلَ".

مسحاج بن موسی وايي ما وويل انس بن مالک ته، مونږ ته بيان کړه هغه څه چي ته اوريدلي دي د رسول الله ﷺ نه، هغه وويل: وو مونږ کله چي به د رسول الله ﷺ سره وو په سفر کي، مونږ به دا خيال کولو، چي نمر زوال وکړو او که نه، نو د ماسپخين مونځ به يي کولو بيا به روان شو.

¹): سنن النسائي/الأذان (٦٦٧/٢٦)، (تحفة الأشراف: ٩٩١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٥/٤، ١٥٧) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٨٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ١٥ (١١١١)، ١٦ (١١١٢)، صحيح مسلم/المسافرين ٥ (٧٠٤)، سنن النسائي/المواقيت ٤١ (٥٨٧)، مسند احمد (١١٣/٣، ٢٤٧، ٢٦٥) (صحيح)

قوله، فقلنا زالت الشمس او لم تزل صلی الظهر، د دینه د راوی مقصود مبالغه فی التعجیل لره بیانول دی چه په سفر کښې به حضور ﷺ د ماسپخین مونځ بالکل په اول وخت کښې ادا کولو، مونږ به سوچ کولو چه خبر نشته چه په نمهٔ شان به زوال شوې وی یا نهٔ؟

[۱۲۰۵] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي حَمْزَةُ الْعَائِذِيُّ، رَجُلٌ مِنْ بَنِي ضَبَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَزَلَ مَنْزِلًا لَمْ يَرْتَحِلْ حَتَّى يُصَلِّيَ الظُّهْرَ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: وَإِنْ كَانَ بِنِصْفِ النَّهَارِ؟ قَالَ: وَإِنْ كَانَ بِنِصْفِ النَّهَارِ".

یو سړی چې د بنې ضبة نه دی هغه وایي ما اوریدلي دي د انس بن مالک نه هغه به ویل: وو رسول الله ﷺ کله چې به يې پړاو ونېولو نو نه به تلو تردې چې د ماسپخین مونځ وکړي، نو هغه یو سړي وویل: اګر وو به نیمایي دورځ کي؟ هغه وویل: اګر وو به په نیمایي د ورځ کي.

## بَابُ الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ

### باب دی په بیان د جمع کولو د دوه مونځونو کي

د سفر احکام روان دی د دېنه یو حکم دا دي چه د سفر د وجه نه جمع بین الصلوتین جائز دی، او دا خبره په ډیرو احادیثو سره ثابته ده خو د علماؤ په دې کښې اختلاف کیږی چه د جمع نه مراد جمع حقیقی ده یعنی من حیث الوقت (یو مونځ لره د بل مونځ په وخت کښې کول) یا جمع صوری چه دهغې مطلب دا دې چه ړومبی مونځ لره بالکل د دې په آخری وخت کښې ادا کړې شی او دویم مونځ لره د دې په اول وخت کښې دلته صرف صورة جمع ده حقیقة نهٔ دې ته جمع من حیث الفعل سره هم تعبیر کوی.

جمهور علماء، ائمه ثلاثه احادیثو لره په جمع حقیقی باندې محمول کوی او د دې د جواز قائل دی او حضرات احناف د جمع صوری، احادیث په دې سلسله کښې محتمل دی د بعضو نه بظاهر جمع حقیقی په پوهه کښې راځی او د بعضو نه صراحة د جمع صوری تائید کیږی، وړاندې په کتاب کښې دواړه شان روایتونه راروان دی.

### داختلاف روایات په وخت کښ اوفق بالقران لره ترجیح:

زمونږ حضرت شیخ رحمه الله په خپل تقاریرو کښې په کثرت سره به دا خبره فرمائیله چه د احنافو د اصولو نه یو دا دې چه هغوی د اختلاف روایاتو په وخت کښې اوفق بالقرآن لره اختیاروی او ظاهره خبره ده چه روایاتو لره په جمع صوری باندې محمول کول اوفق بالقرآن دی، قال الله تعالی، ان الصلوة کانت علی المؤمنین کتابا موقوتا، په تفسیر بیضاوی کښې لیکلي دی چه، ای فرضا محدودالاوقات لا یجوز اخراجها عن اوقاتها فی شیء من الاحوال، دغه شان جلال الدین سیوطی لیکی چه، کتابا مکتوبا، ای مفروضا، موقوتا، ای مقدرا وقتها فلا تؤخر عنه، د مشکوٰة شریف شرح التعلیق الصبیح،ص،۱۲۴،ج،۲، کښې د شیخ اکبر محی الدین ابن العربی نه نقل کړې دی چه دا خبره بالکل واضحه ده چه دمونځ د وختونه هر یو ځانله ځانله نصوص صحیحه او صریحه سره ثابت دي لهذا هیڅ یو مونځ لره د هغې د معین وخت نه

¹: سنن النسائي/المواقيت ۲ (۴۹۹)، (تحفة الأشراف: ۵۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۲۰، ۱۲۹) (صحيح)

علاوه د بل په وخت کښې کولو جواز تر هغه وخته پورې نۀ شی کیدې ترڅو پورې چه د دې ثبوت په نص صریح غیر محتمل سره او نۀ شی او دلته داسې نۀ ده ځکه چه د جمع بین الصلوتین روایتونه محتمل او متکلم فیه دی یا صحیح دی خو نص نۀ دی.

## په جمع بین الصلوتین کښې د ائمه مذاهب:

د دې نه پس دا زده کول پکار دی چه جمع بین الصلوتین کښې شپږ مذهبه مشهور دی، ۱. الجواز مطلقا و هو مذهب الائمه الثلاثة، ۲. عدم الجواز مطلقا وهو قول ابی حنیفة والصاحبین والنخعی والحسن، خو په عرفات او مزدلفه کښې چه کوم جمع بین الصلوتین کیږی هغۀ د دینه مستثنٰی دی په دې دواړو ځایونو کښې جمع بین الصلوتین بالاجماع جائز ده.

۳. یجوز الجمع اذا جدّبه السیر، یعنی که کوم د جلتئ سفر وی(ایمرجنسی) دا د امام مالك مشهور قول دې، ۴. یجوز الجمع اذا اراد به قطع الطریق، بظاهر مطلب دا دې چه که جمع بین الصلوتین په دې مصلحت سره کولې شی چه سفر زر پوره شی نو بیا جائز دې ګینی محض تفریحاً او د آسانتیا په توګه باندې جائز نۀ دې دا د ابن حبیب مالکی قول دې، ۵. جمع بین الصلوتین اګر که جائز دې خو مع الکراهیة دا د امام مالك رحمه الله یو روایت دې، ۶. دابن حزم ظاهری مذهب دا دې چه جمع بین الصلوتین تاخیراً جائز دې تقدیماً نۀ، ددوئ رائې داده چه د حضور ﷺ نه جمع بین الصلوتین په سفر کښې صرف تاخیراً ثابت ده(مثلا ماسپخین او مازیګر دواړه د مازیګر په وخت کښې کول) تقدیماً ثابت نۀ دې.

**فائده:** د جمع بین الصلوتین مختلف اسباب دی، ۱. لاجل الاستحاضة، چنانچه په دې سلسله کښې روایات په ابواب الاستحاضه کښې تیر شوې دی، ۲. جمع بین الصلوتین لاجل السفر(دا خو زیر بحث دې) ۳، جمع بین الصلوتین فی الحضر لاجل المرض، دا په ائمه کښې صرف د امام احمد رحمه الله په نیز باندې جائز ده، ۴. جمع فی الحضر لاجل المطر، یعنی د حضر په حالت کښې د باران د زیاتوالی د وجه نه دوه مونځونو لره په یو ځائې کښې جمع کول دا د ائمه ثلاثه په نیز باندې جائز دی د حنفیانو په نیز باندې جائز نۀ دی(بلکه د دوئ په نیز خو یو قسم هم جائز نۀ دې) خو امام مالك دا فرمائی چه دا جمع لیلیتین یعنی د شپې په مونځونو کښې خو جائز ده او نهارتین یعنی د ورځې په مونځونو(ماسپخین او مازیګر) کښې جائز نۀ ده. چنانچه د باران د ډیروالی د وجه نه د دوئ په نیز په ماښام او ماسخوتن دواړو کښې جمع کولې شی، خلق جومات ته د ماښام مونځ کولو دپاره تللې وو هلته تیز باران شروع شو نو دا خلق دې د ماښام دمونځ سره د ماسخوتن مونځ هم اوکړی دې دپاره چه په دویم ځلی په باران کښې راتلل رانۀ شی نو جائز ده خو د ماسپخین او مازیګر په مونځونو کښې داسې کول جائز نۀ دی ځکه چه د ورځې کومه زیاته پریشانی نۀ وی، په خلاف د امام شافعی او احمد رحمهما الله نه چه د دوئ په نیز ماسپخین او مازیګر کښې هم جمع کولې شی.

## ایا جمع فی الحضر هم جائز ده؟

د جمع فی الحضر یو قسم باقي پاتې شو یعنی بغیر د څه عذر او مجبورۍ نه جمع بین الصلوتین کول، دا قسم په ائمه اربعه کښې د چا په نیز هم جائز نهٔ ده آو دبعضې نورو علماؤ په نیز باندې جائز ده بشرط ان لا یتخذه عادة ذهب الیه ابن سیرین و ربیعة الرایٔ و ابن المنذر و جماعة من اصحاب الحدیث.

[۱۲۰۶] [1] حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ الْمَكِّيِّ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ عَامِرِ بْنِ وَاثِلَةَ، أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ أَخْبَرَهُمْ، أَنَّهُمْ خَرَجُوا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ "فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْمَعُ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ، فَأَخَّرَ الصَّلَاةَ يَوْمًا، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيعًا، ثُمَّ دَخَلَ، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ جَمِيعًا".

معاذ بن جبل دوی ته خبر ورکړی دی، بېشکه دوی ووتل د رسول الله ﷺ سره په غزوه د تبوک کې، رسول الله ﷺ وو چې جمع به یې کوله په مابین د ماسپخین او مازیګر کې، او په مابین د ماښام او ماسخوتن کې، یوه ورځ یې مونځ وروسته کړو، بیا راووتلو د ماسپخین او مازیګر مونځ یې وکړو، بیا ننوتلو، بیا راووتلو، مونځ یې وکړو د ماښام او د ماسخوتن.

**تشریح:** اوس مونږ د هغهٔ تمهیدی مباحثو او مسائلو نه پس د کومو پیژندل چه ډیر ضروری او مفید وو د حدیث اصل مضمون لره اخلو.

**قوله:** حدثنا القعنبي عن مالك عن ابي الزبير المكي..الخ، دا د جمع بین الصلوتین په باره کښې د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث دې کوم چه مصنف رحمه الله په مختلفو طرقو سره ذکر کړې دې د دې بعضې طرقو کښې جمع تقدیم مذکور ده.

ابن حزم ظاهری په سفر کښې د جمع تاخیر خو قائل دې خو د جمع تقدیم قائل نهٔ دې هغه فرمائی چه جمع تقدیم په یو صحیح حدیث سره نهٔ ده ثابت، او دا وړاندې راغلې دی چه احناف نهٔ د جمع تقدیم قائل دی او نهٔ د جمع تاخیر د دوئ په نیز په دې ټولو احادیثو کښې د جمع نه مراد جمع صوری ده.

## په جمع تقدیم او جمع تاخیر باندې بحث:

خو د جمع صوری واله توجیه او تاویل په جمع تاخیر کښې په آسانتیا سره کیدې شی په جمع تقدیم کښې مشکل دې ځکه چه د جمع تاخیر مطلب دا دې لکه څنګه چه په بعضې روایاتو کښې د دې تصریح ده چه حضور ﷺ به کله د یو سفر په مینځ کښې د کوم منزل نه روانیدلو نو که هغه وخت به د ماسپخین وخت شروع شوې نهٔ وو نو بغیر د مونځ کولو نه به د هغهٔ ځائې نه روانیدلو او بیا وړاندې به لاړلو او د ماسپخین په آخر وخت کښې به ئې ماسپخین او مازیګر جمع فرمائیل، دا خو شوه جمع تاخیر، په دې کښې د حنفیانو توجیه

[1] صحیح مسلم/المسافرین ٦ (٧٠٦)، والفضائل ٣ (١٠/٧٠٦)، سنن النسائي/المواقیت ٤١ (٥٨٨)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ٧٤ (١٠٧٠)، وانظر مایأتي برقم: ١٢٢٠، (تحفة الأشراف: ١١٣٢٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الجمعة ٤٢ (٥٥٣)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ١ (٢)، مسند احمد (٥/٢٢٩، ٢٣٠، ٢٣٣، ٢٣٦، ٢٣٧)، سنن الدارمي/الصلاة ١٨٢ (١٥٥٦) (صحیح)

خو په آسانه کیدې شی چه ماسپخین ئې د دې په آخری وخت کښې او مازیګر ئې د دې په اول وخت کښې کړې دې.
او د جمع تقدیم کوم چه په بعضې ضعیف روایاتو سره ثابت دی د دې صورت دا راغلې دې چه حضور ﷺ به کله د یو منزل نه روانیدلو نو که دغه وخت به زوال شوې وو نو د ماسپخین او دې سره به ئې د مازیګر مونځ کولو، نو اوس اوګورئ دا جمع تقدیم ده په دې کښې د جمع صوری توجیه ډیره مشکله ده، خلاف ظاهر ده د دې جواب زمونږ سره دا دې چه جمع تقدیم د سره ثابت نهٔ ده، کما اعترف به ابن حزم.

## د روایات الباب تجزیه:

د دې نه پس تاسو پوهه شئ چه د باب دا ړومبې حدیث د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه دې دې له مصنف په ګڼړو طرقو سره ذکر کړې دې دا ړومبئ طریق د، عن مالك عن ابی الزبیر، دې په دې کښې صرف جمع تاخیر مذکور ده د دې نه پس متصلا هم دا حدیث د، سعد بن هشام، په طریق سره راروان دې په هغې کښې جمع تقدیم مذکور ده.
جواب دا دې چه سعد راوی ضعیف او متکلم فیه دې، دغه شان ځو احادیثه روستو بیا هم دا حدیث د معاذ رضی الله عنه په یوې بلې طریقې سره راځی، یزید بن ابی حبیب عن ابی الطفیل، په هغې کښې هم جمع تقدیم موجود ده خو په دې روایتونو باندې محدثینو نقد کړې دې په خپله مصنف هم، قال ابوداؤد لم یرو هذا الحدیث الا قتیبة وحده، د دې نه علاوه بل چا د لیث نه په دې کښې د جمع تقدیم ذکر نهٔ دې کړې، هم دا خبره امام ترمذی هم فرمائیلې ده، قال الترمذی حسن غیریب تفرد به قتیبة والمعروف عند اهل العلم حدیث معاذ من حدیث ابی الزبیر عن ابی الطفیل عن معاذ، بلکه ابن الجوزی خو دې حدیث د معاذ له په کوم کښې چه جمع تقدیم موجود ده موضوع ګرځولې دې، دغه شان وړاندې په کتاب کښې د حضرت انس رضی الله عنه حدیث راځی د هغې نه په صفا توګه دا معلومیږی چه حضور ﷺ صرف جمع تاخیر به فرمائیله نهٔ جمع تقدیم.

[۱۲۰۷](1)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ اسْتُصْرِخَ عَلَى صَفِيَّةَ وَهُوَ بِمَكَّةَ، فَسَارَ حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَبَدَتِ النُّجُومُ، فَقَالَ "إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَجِلَ بِهِ أَمْرٌ فِي سَفَرٍ جَمَعَ بَيْنَ هَاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ، فَسَارَ حَتَّى غَابَ الشَّفَقُ، فَنَزَلَ فَجَمَعَ بَيْنَهُمَا".

د نافع نه روایت دی بېشکه ابن عمر ته خبر ورکړی شو د مرګ د صفیه او هغه په مکه کې وو، نو روان شو تردې چې نمر ډوب شو او ستورې رابښکاره شول، نو هغه وویل بېشکه نبي ﷺ وو چې کله به جلتي کوله په هغه باندې څه کار په سفر کې، نو جمع به یې کوله په مابین د دې دواړو مونځونو کې، نو روان شو تردې چې شفق غائب شو، نو راخکته شول او

[1]: تفرد به أبو داود، ((تحفة الأشراف: ۷۵۸٤))، وقد أخرجه: صحیح البخاري/تقصیر الصلاة ٦ (۱۰۹۱)، والعمرة ۲۰ (۱۸۰۵)، والجهاد ۱۳٦ (۳۰۰۰)، صحیح مسلم/المسافرین ۵ (۷۰۳)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۷۷ (۵۵۵)، سنن النسائي/المواقیت ٤۳ (۵۹٦)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ۱(۳)، مسند احمد (۵۱/۲، ۸۰، ۱۰۲، ۱۰٦، ۱۵۰)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۸۲(۱۵۵۸) (صحیح)

دواړه یې جمع کړل.

۲. حدثنا سلیمان بن داؤد العتکی..الخ، قوله، ان ابن عمر أُستصرخ علی صفیة و هوبمکة،

## د حدیث مضمون:

حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ته کله چه هغوی په مکه کښې وو، د هغوی د بی بی صفیه قاصد رااورسیدلو او هلته لاړه او د دوئ د بی بی د طرف نه ئې خبرې اوکړې، یعنی د دوئ د بی بی د طرف نه ئې فریاد او استغاثه اوکړه، د استصراخ معنی ده د مصیبت په وخت کښې چا ته آواز کول د مدد دپاره، د ترمذی په روایت کښې د دې پځائې د، استغیث، لفظ دې، په اصل کښې د دوئ بی بی کومه چه غالبًا په مدینه منوره کښې وه هغه ډیر ناجوړه وه نو هغوی خپل خاوند ابن عمر رضی الله عنهما ته کله چه هغه په مکه کښې وو ډیو قاصد په ذریعې سره دا وینا اولیږله چه، انی فی آخر یوم من ایام الدنیا و اول یوم من الاخرة، چه دا زما د ژوند آخری ورځ ده که مخ مې کتل غواړې نو سمدستی راشه، چنانچه په دې باندې هغوی سمدستی د هغهٔ ځائې نه راروان شو او دا د مازیګر د مونځ نه پس وخت وو په لاره کښې د ماښام د مونځ وخت راغلو نو خادم ورته عرض اوکړو چه مونځ اوکړئ خو هغوی دغه وخت مونځ اونهٔ کړو او روان وو وړاندې په حدیث کښې دی.

فساد حتی غاب الشفق فنزل فجمع بینها، یعنی د غروب شفق نه پس هغوی د سورلئ نه راکوز شول او د ماښام او ماسخوتن مونځ ئې د ماسخوتن په وخت کښې جمع کړو، بظاهر دا جمع حقیقی ده خو صورت حال دا دې چه مصنف دې واقعه سره په مختلفو طریقو سره مکرر درې وارې په دې باب کښې ذکر کړې ده وړاندې د یو روایت الفاظ دا دی چه، حتی اذا کان قبل غیوب الشفق نزل فصلی المغرب ثم انتظر حتی غاب الشفق فصلی العشاء.

## د حنفیانو د مسلک واضح دلیل:

په دې روایت کښې تصریح ده چه هغهٔ د غروب شفق نه پس نهٔ وو بلکه د هغې نه وړاندې غروب ته نزدې د سورلئ نه کوز شو او د ماښام مونځ ئې ادا کړو بې لږ غوندې انتظار ئې اوفرمائیلو تر دې چه کله غروب شفق اوشو نو بیا ئې د ماسخوتن مونځ اوکړو، بحمد الله تعالی دا روایت بالکل صریح او صفا دې، لهذا په کوم روایت کښې چه دا دی چه د غروب شفق نه پس هغهٔ د سورلئ نه کوز شو د هغې نه مراد قرب غروب یعنی غروب ته نزدې، دغه شان د نسائی شریف په یو روایت کښې دی چه، حتی اذا کان فی آخر الشفق نزل، د دینه هم دا معلومیږی چه د هغوی نزول د غروب شفق نه وړاندې شوې وو، دا خو اګر که د ابن عمر رضی الله عنهما فعل او د هغوی واقعه ده خو وړاندې په روایت کښې مزید دا هم راغلی چه، ثم قال ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان اذا عجل به امر صنع مثل الذی صنعت، ابن عمر رضی الله عنهما د دې جمع صوری نه پس فرمائی چه حضور صلی الله علیه وسلم به هم په سفر کښې هم داسې کول، معلومه شوه چه د دې سلسلې په ټولو روایتونو کښې د جمع نه مراد جمع صوری ده، فلله الحمد والمنة.

[١٢٠٨] (¹) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ، وَاللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، وَإِنْ يَرْتَحِلْ قَبْلَ أَنْ تَزِيغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ حَتَّى يَنْزِلَ لِلْعَصْرِ، وَفِي الْمَغْرِبِ مِثْلُ ذَلِكَ إِنْ غَابَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَرْتَحِلَ جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ، وَإِنْ يَرْتَحِلْ قَبْلَ أَنْ تَغِيبَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتَّى يَنْزِلَ لِلْعِشَاءِ، ثُمَّ جَمَعَ بَيْنَهُمَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ حَدِيثِ الْمُفَضَّلِ، وَاللَّيْثِ.

د معاذ بن بن جبل رضي الله عنه نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ وو په غزوه د تبوک کې کله چې نمر به مائل شو مخکې د روانيدو نه، جمع به يې کوله په مابين د ماسپخين او مازيگر کې، او که سفر به يې کولو مخکې د مائل کيدو د نمر نه، نو وروسته کولو به يې ماسپخين تردې چې کوز به شو د مازيگر په وقت کې، او په ماښام کې به يې همدغسې کول، که نمر به ډوب شوی وو مخکې د روانيدو نه نو جمع به يې کوله په مابين د ماښام او ماسخوتن کې، او که روانيدو به مخکې د ډوبېدو د نمر نه نو وروسته کولو به يې ماښام تردې چې راخکته به شو د ماسخوتن دپاره، بيا به يې جمع وکړه په مابين د دواړو کې. ويلي دي ابوداود: روايت کړی دی دې لره هشام بن عروه د حسين بن عبد الله نه او هغه د کريب نه او هغه د ابن عباس نه او هغه د نبي ﷺ نه پشان دحديث د مفضل او دليث.

٣. حدثنا يزيد بن خالد..الخ، دا د حضرت معاذ رضي الله عنه هغه حديث دې په کوم کښې چه جمع تقديم ذکر ده په کوم باندې چه زمونږ په نيز باندې کلام وړاندې تير شوې دې.

[١٢٠٩] (²) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ، عَنْ أَبِي مَوْدُودٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "مَا جَمَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ قَطُّ فِي السَّفَرِ إِلَّا مَرَّةً". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا يُرْوَى عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، مَوْقُوفًا عَلَى ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ لَمْ يَرَ ابْنَ عُمَرَ جَمَعَ بَيْنَهُمَا قَطُّ إِلَّا تِلْكَ اللَّيْلَةَ، يَعْنِي لَيْلَةَ اسْتُصْرِخَ عَلَى صَفِيَّةَ، وَرُوِيَ مِنْ حَدِيثِ مَكْحُولٍ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّهُ رَأَى ابْنَ عُمَرَ فَعَلَ ذَلِكَ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ.

د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: رسول الله ﷺ د ماښام او ماسخوتن په سفر کې هيڅ کله نه دی جمع کړی غير د يو ځل نه. ويلي دي ابوداود: او د دې روايت کېږي د ايوب نه، او هغه د نافع نه چې موقوف دی په ابن عمر باندې، هغه ابن عمر نه دی ليدلی، هغه جمع نه ده کړي مګر دغه شپه يعني هغه شپه چې خبر ورته ورکړی شو د مرګ د صفيه، او نقل شوی دی د حديث د مکحول نه، او هغه د نافع نه، بېشکه هغه ابن عمر ليدلی دی، کړی يې دی دغه يو ځل او يا دوه ځله.

٤. حدثنا قتيبة..الخ، قوله، عن ابن عمر قال ما جمع رسول الله صلى الله عليه وسلم بين المغرب والعشاء قط في السفر الا مرة، په دې کښې يو لوئې اشکال دې چه حضور ﷺ صرف يو ځل په سفر کښې د ماښام او ماسخوتن جمع فرمائيلې ده، او حضور ﷺ خو څو څو ځله دا جمع

¹): انظر حديث رقم: ١٢٠٦، (تحفة الأشراف: ١١٣٢٠) (صحيح)

²): انظر حديث رقم: (١٢٠٧)، (تحفة الأشراف: ٧٠٩٣) (صحيح)

فرمائیلي ده، جواب دا دې چه د راوي مقصود مطلق سفر نهٔ دې بلکه په ديو خاص سفر په باره کښې دا وائي چه په هغې کښې حضور ﷺ صرف يو خل جمع فرمائيلي وه. فلا اشكال.

[١٢١٠](١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ الْمَكِّيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيعًا، وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ جَمِيعًا فِي غَيْرِ خَوْفٍ وَلَا سَفَرٍ"، قَالَ: قَالَ مَالِكٌ: أَرَى ذَلِكَ كَانَ فِي مَطَرٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ نَحْوَهُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، وَرَوَاهُ قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، قَالَ: فِي سَفْرَةٍ سَافَرْنَاهَا إِلَى تَبُوكَ.

د عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دی، هغه ويلي دي: مونږ وکړو رسول الله ﷺ د ماسپخين او د مازيگر دواړه، او د ماښام او د ماسخوتن دواړه، بغير د خوف او د سفر نه هغه وايي: ويلي دي مالک: زما دا خيال دی چې دا په باران کی وو ويلي دي ابوداود: او روايت کړی دی حماد بن سلمة پشان د هغي د ابو الزبير نه، او روايت کړی دی قرة بن خالد د ابو الزبير نه هغه وايي: په يو سفر کې چې مونږ کړی وو تبوک ته

**تشريح: قوله:** عن عبدالله بن عباس قال صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم الظهر والعصر جميعا والمغرب والعشاء جميعا فى غير خوف و لا سفر، او په بعضې روايتونو کښې دغه شان دی چه، صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم ثمانياً جميعا و سبعا جميعا، ماسپخين او مازيگر چه دواړه يو ځائې کړې نو اتهٔ رکعاته کيږی هغه حضور ﷺ يو ځائې اوکړل او ماښام او ماسخوتن چه دواړه يو ځائې کړې نو اووهٔ رکعاته کيږی هغه هم حضور ﷺ يو ځائې کړل

**جمع فی الحضر:**

دا جمع بين الصلوتين فى السفر نهٔ ده لکه څنگه په روايت کښې د دې تصريح ده بلکه دا جمع فى الحضر ده، نو څکه امام ترمذی دې حديث لره په ابواب السفر کښې نهٔ دې ذکر کړې بلکه د ابواب السفر شروع کيدو نه وړاندې ئې يو مستقل باب ذکر کړې دې، دا واقعه خاص د مدينې منورې ده لکه څنگه چه په وړاندې روايت کښې د دې تصريح ده دغه شان جمع د ائمه ثلاثه په نيز د باران په موقعه باندې جائزه ده **كما تقدم فى اول الباب.**

**قال مالك ارى كان ذلك فى مطر،** امام مالك فرمائی زما خيال دا دې چه داسې حضور ﷺ د باران د وجه نه به کړې وی، خو دا خيال صحيح نهٔ دې څکه چه په راتلونکی روايت کښې راځي چه، من غير خوف و لا مطر، لهذا اوس د دې حديث جواب ډير سخت شو، چنانچه امام ترمذی په کتاب العلل کښې فرمائيلي دی چه زما په کتاب کښې يعنى په جامع ترمذی کښې دوه حديثه داسې دی چه د کومو په ترک يعنى پريخودلو باندې د علماؤ اتفاق دې او هغه خلاف اجماع دی، په دې دواړو کښې يو خو دا حديث دې کوم چه زير بحث دې او دويم حديث د كتاب الحدود دې چه حضور ﷺ د شارب خمر يعنى شراب څکونکی متعلق

(١): صحيح مسلم/المسافرين ٦ (٧٠٥) سنن النسائي/المواقيت ٤٦ (٦٠٢)، (تحفة الأشراف: ٥٦٠٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المواقيت ١٢ (٥٤٣)، سنن الترمذي/الصلاة ١ (١٨٧)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ١ (٤)، مسند احمد (١/٢٢١، ٢٢٣، ٢٨٣، ٣٤٩) (صحيح)

فرمائیلې دی چه په څلورم ځل باندې دې اوو ژلې شي.

د دې دوه حدیثونو خلاف اجماع کیدل د ائمه اربعه او مشهور مذاهبو په اعتبار سره ده ګینې بعضې علماء د دې قائل دی چنانچه وړاندې تیر شوې دی چه، دطائفة من الظاهریه او دابن سیرین وغیره په نیز کله کله داسې کول جائز دی.

خو د حنفیانو دپاره د دې جواب آسان دې چه څنګه د سفر د روایات محمل د دوئ په نیز باندې جمع صوری ده هم داسې هغوی دلته هم وئیلې شي.

[ ١٢١١ ]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "جَمَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِالْمَدِينَةِ مِنْ غَيْرِ خَوْفٍ وَلَا مَطَرٍ"، فَقِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: مَا أَرَادَ إِلَى ذَلِكَ؟ قَالَ: أَرَادَ أَنْ لَا يُحْرِجَ أُمَّتَهُ.

د ابن عباس ﷺ نه روایت دی هغه ویلي دي: رسول الله ﷺ جمع کړو په مابین د ماسپخین او مازیګر کې، او په مابین د ماښام ماسخوتن کې په مدینه کې بغیر د وېرې او باران نه، ابن عباس ته وویل شول: د هغه په دې سره څه اراده وه؟ هغه وویل: اراده یې وه چې خپل امت په مشقت کې وانه چوي.

[ ١٢١٢ ]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ نَافِعٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ وَاقِدٍ، أَنَّ مُؤَذِّنَ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "الصَّلَاةُ"، قَالَ: سِرْ سِرْ حَتَّى إِذَا كَانَ قَبْلَ غُيُوبِ الشَّفَقِ نَزَلَ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ، ثُمَّ انْتَظَرَ حَتَّى غَابَ الشَّفَقُ وَصَلَّى الْعِشَاءَ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا عَجِلَ بِهِ أَمْرٌ صَنَعَ مِثْلَ الَّذِي صَنَعْتُ فَسَارَ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ مَسِيرَةَ ثَلَاثٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ جَابِرٍ، عَنْ نَافِعٍ نَحْوَ هَذَا بِإِسْنَادِهِ.

د نافع او عبد الله بن واقد نه روایت دی، بېشکه مؤذن د ابن عمر وویله: مونځ حاضر دی، هغه وویل: زه زه، تردې شو مخکې د پټوالي د شفق نه خکته شو مونځ یې وکړو د ماښام، بیایې انتظار وکړو تردې چې شفق غائب شو او د ماسخوتن مونځ یې وکړو، بیایې وویل: بېشکه رسول الله ﷺ وو کله چې به کوم کار هغه په جلتۍ کړی وو نو داسې به یې کول لکه څنګه چې ما وکړل، نو تللو په دغه ورځ او شپه کې په اندازه د درېو. ویلي دي ابوداود: روایت کړی دی د دې ابن جابر، د نافع نه، د دې پشان په خپل اسناد سره.

٦. حدثنا محمد بن عبيد..الخ، قوله، حتى اذا كان قبل غيوب الشفق نزل فصلى المغرب ثم انتظر حتى غاب الشفق فصلى العشاء، دا روایت لکه څنګه چه وړاندې تیر شوې دی د جمع صوری په باره کښې صریح دې اود حنفیانو ډیر واضح دلیل دې، ددې نه وړاندې روایت کښې راغې چه، حتى اذا كان عند ذهاب الشفق نزل، ددینه هم زمونږ تائید کیږي.

[ ١٢١٣ ]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنِ ابْنِ جَابِرٍ، بِهَذَا الْمَعْنَى. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْعَلَاءِ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: حَتَّى إِذَا كَانَ عِنْدَ ذَهَابِ الشَّفَقِ نَزَلَ فَجَمَعَ بَيْنَهُمَا.

[1]): صحيح مسلم/المسافرين ٦ (٧٠٥) سنن الترمذي/ الصلاة ١ (١٨٧)، سنن النسائي/المواقيت ٤٦ (٦٠٣)، (تحفة الأشراف: ٥٤٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٥٤) (صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٢٩٠) (صحيح)

[3]): سنن النسائي/ المواقيت ٤٤ (٥٩٦)، (تحفة الأشراف: ٧٧٥٩) (صحيح)

**ترجمه**: د ابن جابر نه روایت دی په دې معنی سره. ویلي دي ابوداود: او روایت کړی دی عبد الله بن العلاء د نافع نه، هغه ویلي دي: تردې چي کله د شفق تلو وخت شو نو خکته شو دواړه یې جمع کړل.

[۱۲۱٤] (¹) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ. ح وحَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ ثَمَانِيًا وَسَبْعًا الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ، وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ"، وَلَمْ يَقُلْ سُلَيْمَانُ، وَمُسَدَّدٌ: بِنَا. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ صَالِحٌ مَوْلَى التَّوْءَمَةِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: فِي غَيْرِ مَطَرٍ.

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی هغه ویلي دي: مونږ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ وکړو په مدینه کې اته رکعاته او اوه رکعاته، د ماسپخین او د مازیګر او د ماښام او د ماسخوتن. سلیمان او مسدد نه دی ویلی (بنا). ویلي دي ابوداود: او نقل کړی دی صالح چي مولی د توامه دی د ابن عباس نه هغه ویلي دي: بغیر د باران نه.

**تشریح**: **قوله**: صلی بنا رسول الله صلى الله عليه وسلم بالمدينة ثمانيا و سبعا، دا دجمع بين الصلوتين في الحضر واله روایت دې په کوم باندې چه کلام وړاندې تیر شو.

[۱۲۱۵] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدٍ الْجَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَابَتْ لَهُ الشَّمْسُ بِمَكَّةَ "فَجَمَعَ بَيْنَهُمَا بِسَرِفٍ".

د جابر رضی الله عنه نه روایت دی، بېشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم نمر غائب شو هغه ته په مکه کې نو جمع یې وکړه د دواړو په مینځ کې په سرف کې.

[۱۲۱٦] (³) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ هِشَامٍ جَارُ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: بَيْنَهُمَا عَشَرَةُ أَمْيَالٍ، يَعْنِي بَيْنَ مَكَّةَ، وَسَرِفٍ.

د هشام بن سعد نه روایت هغه ویلي دي: په مابین د دواړو کې لس میله دي، یعني په مابین د مکه او سرف کې.

[۱۲۱۷] (⁴) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنِ اللَّيْثِ، قَالَ: قَالَ رَبِيعَةُ، يَعْنِي كَتَبَ إِلَيْهِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ، قَالَ: وَأَنَا عِنْدَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ فَسِرْنَا، فَلَمَّا رَأَيْنَاهُ قَدْ أَمْسَى، قُلْنَا: الصَّلَاةُ، غَابَتِ الشَّمْسُ "فَسَارَ حَتَّى غَابَ الشَّفَقُ، وَتَصَوَّبَتِ النُّجُومُ، ثُمَّ إِنَّهُ نَزَلَ فَصَلَّى الصَّلَاتَيْنِ جَمِيعًا، ثُمَّ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَدَّ بِهِ السَّيْرُ صَلَّى صَلَاتِي هَذِهِ" يَقُولُ: يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا بَعْدَ لَيْلٍ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَخِيهِ، عَنْ سَالِمٍ، وَرَوَاهُ ابْنُ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ذُؤَيْبٍ، أَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا مِنَ ابْنِ عُمَرَ كَانَ بَعْدَ غُيُوبِ الشَّفَقِ.

عبد الله بن دینار بیان کړی دی چي ډوب شو نمر او زه د عبد الله بن عمر سره وم، نو مونږ روان شو هرکله چې مونږ ولیدلو چې بېګاه شو، مونږ وویل: مونځ حاضر شو، نو هغه روان

¹): انظر حدیث رقم: ۱۲۱۰، (تحفة الأشراف: ۵۳۷۷) (صحیح)
²): سنن النسائي/المواقيت ٤٤ (٥٩٤)، (تحفة الأشراف: ۲۹۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/ ۳۰۵، ۳۸۰) (ضعیف)
³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۵۰۹) (مقطوع)
⁴): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۱٤۹) (صحیح)

شو تردې چې شفق ډوب شو، او راښکاره شو ستورې، بیا هغه راخکته شو دواړه مونځونه يي وکړه، بیايي ورېيل: ما لیدلی وو رسول الله ﷺ جلتي کوله په هغه باندې تلو نو مونځ به يي کولو پشان د مونځ زما چې دا دی، هغه وايي: جمع کول به يي دواړه وروسته د شپې نه. ویلي دي ابوداود: نقل کړی دی عاصم بن محمد د خپل ورور نه او هغه د سالم نه، او نقل کړی هغې لره ابن ابي نجیح د اسماعیل بن عبد الرحمن بن ذؤیب نه، جمع په مابین د دواړو کې د ابن عمر نه وروسته د ډوبېدو د شفق نه وه

**تشریح: قوله:** فسار حتی غاب الشفق و تصوّبت النجوم، دا هم هغه د ابن عمر رضي الله عنه روایت دې په کوم کښې چه وو چه، ان ابن عمر استصرخ علی صفیة، دې روایت لره مصنف رحمه الله خو خله ذکر کړې دې د دینه وړاندې د دې لفظ په ځائې باندې غاب الشفق نه قبل غیوب الشفق تیر شوې دې، لهذا دلته به هم هغه مراد اغستلې شي، مشهوره ده چه قریب الشيء ته دعین الشيء حکم ورکولې کیږي، تصوبت النجوم، لفظي ترجمه ده کله چه ستوري ښکته راشي او مراد دا دې چه هغه ښکاره شول او اوپرقیدل، د ماښام وخت تقریبا یوه نیمه گهنټه پورې وی او ستوري بعض وختونو کښې گهنټه نیمه روستو پرقیږي، لهذا دا زمونږ خلاف نۀ دې.

قوله، ان الجمع بینهما من ابن عمر کان بعد غیوب الشفق،

## د جمع بین الصلوتین یوه لطیفه توجیه:

دا د اسماعیل بن عبدالرحمٰن راوی مقوله ده،د حضرت اقدس گنگوهي په تقریرونو کښې دی چه کله په کوم روایت کښې دا صراحة هم راشي چه حضور ﷺ د ماښام او ماسخوتن مونځ د غروب شفق نه پس جمع کړې دې(لکه څنگه چه په دې روایت کښې دی) یا دا تصریح راشي چه حضور ﷺ د ماسپخین او مازیگر مونځ لره د مازیگر په وخت کښې جمع فرمائیلې دې نو بیا هم د دېنه جمع حقیقي کیدل نۀ لازمیږي آو که دا راشي چه د ماسپخین او مازیگر لره ئې د مازیگر په وخت کښې ادا فرمائیلې وو(د لفظ د جمع په ځائې باندې لفظ د اداء) نو بیشکه د دې مطلب به جمع حقیقي وی، وجه دا ده چه د جمع بین الفعلین تحقق د فعل ثاني د ابتداء سره وی نۀ د فعل اول د ابتداء نه، لهذا که ماسپخین لره په آخر وخت کښې اوکړی او مازیگر لره د مازیگر په اول وخت کښې شروع کړې شي نو اوگورئ د جمع تحقق خو هم په مازیگر کښې اوشو حال دا دې چه هر مونځ د هغې په خپل وخت کښې ادا کړې شوې دې، لهذا د راوی دا وینا چه حضور ﷺ ماسپخین او مازیگر لره د مازیگر په وخت کښې جمع فرمائیلې وو صحیح ده د حنفیانو خلاف نه ده، سبحان الله! محدث گنگوهي څومره غوره خبره بیان فرمائیلې ده.

[۱۲۱۸](۱)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَابْنُ مَوْهَبٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَزِيغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ إِلَى وَقْتِ الْعَصْرِ، ثُمَّ نَزَلَ فَجَمَعَ بَيْنَهُمَا، فَإِنْ زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ أَنْ يَرْتَحِلَ صَلَّى الظُّهْرَ، ثُمَّ رَكِبَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو دَاوُد:

---

(۱): صحیح البخاري/ تقصیر الصلاة ۱۵ (۱۱۱۱)، ۱۶ (۱۱۱۲)، صحیح مسلم/المسافرین ۵ (۷۰٤)، سنن النسائي/المواقیت ٤۱ (۵۸۷)، (تحفة الأشراف: ۱۵۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۲٤۷، ۲۶۵) (صحیح)

كَانَ مُفَضَّلٌ قَاضِيَ مِصْرَ، وَكَانَ مُجَابَ الدَّعْوَةِ، وَهُوَ ابْنُ فَضَالَةَ.

د انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: رسول الله ﷺ وو چې کله به روانېدو مخکې د زوال د نمر نه وروسته به يې کړو ماسپخين وقت د مازيګر ته، بيا به ښکته شو او جمع به يې کړل دواړه، او که نمر به مائل شوی وو مخکې د روانيدو نه نو د ماسپخين مونځ به يې وکړو، بيا به روان شو. ويلي دي ابوداود: مفضل د مصر قاضي وو، او مستجاب الدعوات وو، هغه ته ابن فضالة ويلی شي.

**تشريح: قوله:** عن انس بن مالك..الخ، د حديث مضمون دا دې چه د حضور ﷺ عادت دا وو چه په کوم سفر کښې به د منزل نه که روانيدل د نمر د زوال نه وړاندې وو نو بيا به حضور ﷺ بغير د مونځ ادا کولو نه روانيدل او وړاندې به لاړل او يو ځائې کښې به کوز شول او ماسپخين مونځ به ئې د مازيګر سره يوځائې کولو (دا خو شو جمع تاخير)

## د جمع تقديم نفي:

او که دروانيدلو نۀ وړاندې به د نمر زوال شوې وو نو صرف د ماسپخين مونځ به ئې کولو او د هغۀ ځائې نه به روانيدل (د مازيګر مونځ به ئې نۀ کولو) په دې حديث کښې د جمع تاخير ثبوت او د جمع تقديم نفی ده، ددې حواله د بحث په شروع کښې تيره شوې ده.

۱۰. حدثنا قتيبة بن سعيد: دا د معاذ بن جبل رضی الله عنه هغه حديث دې په کوم کښې جمع تقديم مذکور ده په دې باندې کلام په تفصيل سره په شروع کښې تير شوې دې.

[۱۲۱۹] ([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي جَابِرُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ عُقَيْلٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: "وَيُؤَخِّرُ الْمَغْرِبَ حَتَّى يَجْمَعَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْعِشَاءِ حِينَ يَغِيبُ الشَّفَقُ".

عقيل نه روايت دی، د دې حديث په اسناد خپل سره، هغه ويلي دي: او وروسته کولو به يې ماښام تردې چې جمع به يې کړو په مابين دهغې او د ماسخوتن کې، کله چې به شفق ډوب شو.

[۱۲۲۰] ([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ عَامِرِ بْنِ وَاثِلَةَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ إِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ أَنْ تَزِيغَ الشَّمْسُ أَخَّرَ الظُّهْرَ حَتَّى يَجْمَعَهَا إِلَى الْعَصْرِ فَيُصَلِّيَهُمَا جَمِيعًا، وَإِذَا ارْتَحَلَ بَعْدَ زَيْغِ الشَّمْسِ صَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيعًا ثُمَّ سَارَ، وَكَانَ إِذَا ارْتَحَلَ قَبْلَ الْمَغْرِبِ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتَّى يُصَلِّيَهَا مَعَ الْعِشَاءِ، وَإِذَا ارْتَحَلَ بَعْدَ الْمَغْرِبِ عَجَّلَ الْعِشَاءَ فَصَلَّاهَا مَعَ الْمَغْرِبِ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَلَمْ يَرْوِ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا قُتَيْبَةُ وَحْدَهُ.

د معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روايت دی: بېشکه نبي ﷺ وو په غزوه د تبوک کې کله چې به روانيدو مخکې د مائل کيدو د نمر نه نو وروسته به يې کړو ماسپخين تردې چې جمع به يې کړو د مازيګر سره، نو دواړه به يې وکړل، او کله چې به روانيدو وروسته د مائل کيدو د نمر نه د ماسپخين او مازيګر دواړه مونځونه به يې وکړل، بيا به روان شو، او وو چې کله به روانيدو مخکې د ماښام نه، نو وروسته به يې کړو تردې چې وبه يې کړو د ماسخوتن سره، او چې کله به روانيدو وروسته د ماښام نه، نو رامخکې به يې کړو ماسخوتن نو وبه

[1]: انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ۱۵۱۵) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۲۷۷ (۵۵۳)، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۲۱)، وقد أخرجه: حم (۲۴۱/۵) (صحيح)

يي کړو د ماښام سره. ويلي دي ابوداود: دا حديث يواځې قتيبه روايت کړی دی.

## بَابُ قَصْرِ قِرَاءَةِ الصَّلَاةِ فِي السَّفَرِ

### باب دی په بيان د لنډوالي د قراءت د مانځه کې په سفر کې

[۱۲۲۱](۱) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ الْبَرَاءِ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ "فَصَلَّى بِنَا الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ، فَقَرَأَ فِي إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ بِالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ".

**ترجمه:** د براء بن عازب رضی الله عنه نه روايت دی، هغه ويلي دي: مونږ ووتلو د رسول الله ﷺ سره په يو سفر کې، مونږ ته يي د ماسخوتن مونځ وکړو، نو ويې لوستلو په يو رکعات کې و التين و الزيتون.

## بَابُ التَّطَوُّعِ فِي السَّفَرِ

### باب دی په بيان د نفلو کې په سفر کې

زده کول پکار دي چه په حالت د سفر کښې د نوافلو مطلقه لوستل په اتفاق سره مستحب دي څوك هم د دې منکر نۀ دې البته رواتب يعنی سنن مؤکده کښې اختلاف دې، جمهور خو د دې د استحباب قائل دی خو بغير د تاکد او اهتمام نه او په صحابه کرامو کښې ابن عمر رضی الله عنهما د دې منکر دی، د حنفيانو په نيز مختلف روايتونه دی اول خو پشان د جمهورو دې يعنی مطلقا استحباب دويم قول مطلقا د عدم استحباب، دريم قول دا دې چه د سير يعنی د سفر په حالت کښې عدم استحباب او د نزول(منزل ته په رسيدلو سره) په صورت کښې استحباب، د حديث روايتونه هم په دې سلسله کښې مختلف دی.

[۱۲۲۲](۲) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِي بُسْرَةَ الْغِفَارِيِّ، عَنْ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: صَحِبْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَفَرًا "فَمَا رَأَيْتُهُ تَرَكَ رَكْعَتَيْنِ إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ قَبْلَ الظُّهْرِ".

د براء بن عازب الانصاري نه روايت دی، هغه ويلي دي: زه ملګری شوی يم د رسو ل الله ﷺ سره په اتلس سفرونو کې، ما هغه نه دی ليدلی چې هغه دوه رکعاته د ماسپخين نه مخکې پريخي دي کله چې به نمر زوال وکړو.

**تشريح: قوله:** عن البراء بن عازب قال صحبت رسول الله صلى الله عليه وسلم ثمانية عشر سفرا فما راءيته ترك ركعتين اذا زاغت الشمس، د حضرت براء رضی الله عنه د دې روايت نه د رواتبو ثبوت کيږی د شافعيه وغيره په نيز باندې قبل الظهر هم رکعتين سنت دی.

**قوله:** صحبت ابن عمر فى طريق قال فصلى بنا ركعتين.

(۱): صحيح البخاري/الأذان ۱۰۰ (۷٦۷)، ۱۰۲ (۷٦۹)، وتفسير التين ۱ (٤۹٥۲)، والتوحيد ٥۲ (۷٥٤٦)، صحيح مسلم/الصلاة ۳٦ (٤٦٤)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۱٥ (۳۱۰)، سنن النسائي/الافتتاح ۷۳ (۱۰۰۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۰ (۸۳٤)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٥ (۲۷)، مسند احمد (٤/۲۸٤، ۲۸٦، ۲۹۱، ۳۰۲، ۳۰۳) (صحيح)

(۲): سنن الترمذي/الصلاة ۲۷٦ (الجمعة ٤۱) (٥٥۰)، (تحفة الأشراف: ۱۹۲٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۲۹۲، ۲۹٥) (ضعيف)

## د باب په متعارض روایتونو کښې تطبیق:

د ابن عمر رضی الله عنهما دا حدیث د براء بن عازب رضی الله عنه د حدیث خلاف دې په دې کښې ښکاره د رواتبو نفی ده او د براء په روایت کښې اثبات مذکور دې بلکه په خپله د ابن عمر رضی الله عنهما د د نفی او اثبات دواړه روایتونه مروی دی، شراح حدیث د دفع د تعارض مختلف شکلونه لیکلي دی(۱) د نفی تعلق د رواتب سره دې او د اثبات تعلق د نوافل مطلقه سره دې،(۲) د نفی تعلق تاکد او اهتمام سره دې نفس فعل سره نۀ دې بغیر د اهتمام نه به ئې کول،(۳) د نفی تعلق د سنن قبلیه سره دې او د ثبوت تعلق د سنن بعدیه سره، د امام بخاری میلان هم دې طرف ته دې(۴) نفی د غالب حال په اعتبار سره ده او اثبات احیانا یعنی کله کله باندې محمول ده؛ اکثر به ئې نۀ کول او کله کله به ئې کول اختاره العلامة العینی.

[۱۲۲۳]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَفْصِ بْنِ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: صَحِبْتُ ابْنَ عُمَرَ فِي طَرِيقٍ، قَالَ: فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ أَقْبَلَ، فَرَأَى نَاسًا قِيَامًا، فَقَالَ: مَا يَصْنَعُ هَؤُلَاءِ؟ قُلْتُ: يُسَبِّحُونَ، قَالَ: لَوْ كُنْتُ مُسَبِّحًا أَتْمَمْتُ صَلَاتِي، يَا ابْنَ أَخِي، إِنِّي صَحِبْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ "فَلَمْ يَزِدْ عَلَى رَكْعَتَيْنِ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ" وَصَحِبْتُ أَبَا بَكْرٍ فَلَمْ يَزِدْ عَلَى رَكْعَتَيْنِ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ، وَصَحِبْتُ عُمَرَ فَلَمْ يَزِدْ عَلَى رَكْعَتَيْنِ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ تَعَالَى، وَصَحِبْتُ عُثْمَانَ فَلَمْ يَزِدْ عَلَى رَكْعَتَيْنِ حَتَّى قَبَضَهُ اللَّهُ تَعَالَى، وَقَدْ قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ سورة الأحزاب آية ۲۱.

حفص بن عاصم بن عمر بن الخطاب روایت کوي د خپل پلار نه، هغه ویلي دي: زه ملګرې شوم د ابن عمر سره په یوه لار کې، هغه ویلي دي: چې مونځ یې وکړو مونږ ته دوه رکعاته، بیا مخامخ شو خلک یې ولیدل ولاړ، هغه وویل: دا خلک څه کوي؟ ما وویل: نفل کوي، هغه وویل: که زه نفل کونکې وم نو ما به پوره مونځ کړې وی، ای وراره! زه ملګرې وم د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په سفر کې، هغه زیادت نه دی کړی په دوه رکعاتو تردې چې الله وفات کړو، او زه ملګرې شوی یم د ابوبکر سره هغه زیادت نه دی کړی په دوه رکعاتو تردې چې الله وفات کړو، او زه ملګرې شوی یم د عمر سره هغه زیادت نه دی کړی په دوه رکعاتو تردې چې الله وفات کړو، او زه ملګرې شوی یم د عثمان سره هغه زیادت نه دی په دوه رکعاتو تردې چې الله وفات کړو، او بېشکه الله تعالی ویلي دي: بېشکه ستاسو لپاره د الله په رسول کې نیکه مشري ده.

قوله، و صحبت عثمان فلم یزد علی رکعتین، په دې کښې اشکال دې څکه چه د حضرت عثمان په باره کښې منقول دی چه هغوئ به په آخره کښې د قصر په ځائې باندې اتمام یعنی پوره والې کولو، لهذا د دې تاویل به دا اوکړې شی چه دا په غالب باندې محمول دې یعنی اکثر زمانې پورې به هغوی قصر کولو څو دلته په روایت کښې حتی قبضه الله موجود دې، لهذا زما په خیال کښې دا تاویل دې اوکړې شی چه د راوی غرض د دې کلام نه قصر او اتمام لره بیانول

(۱): صحیح البخاري/تقصیر الصلاة ۱۱ (۱۱۰۱)، صحیح مسلم/المسافرين ۱ (۶۸۹)، سنن النسائي/تقصیر الصلاة ٤ (۱٤٥۹)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۷۵ (۱۰۷۱)، (تحفة الأشراف: ۶۶۹۳)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۲۷٤ (الجمعة ۳۹) (٥٤٤)، مسند احمد (۲/۲٤، ۵۶)، سنن الدارمي/المناسك ٤۷ (۱۹۱۶) (صحیح)

نۀ دی بلکه فرض مونځ باندې اکتفاء کول مراد دی سنن به ئې نۀ کول، والله تعالی اعلم بالصواب.

## بَابُ التَّطَوُّعِ عَلَى الرَّاحِلَةِ وَالْوِتْرِ

### باب دی په بیان د نفلو او وترو کولو کښې په سورلۍ باندې

نوافل په سورلۍ باندې په ناستې سره په اشارې سره کول مطلقا په عذر سره او بغیر د عذر نه بالاتفاق جائز دی د جمهورو علماؤ او ائمه ثلاثه په نیز د وترو هم دا حکم دې ځکه چه جمهور د وترو د وجوب قائل نۀ دی ځکه د هغوی په نیز باندې وتر د نوافلو په حکم کښې دی نو ځکه مصنف رحمه الله په ترجمة الباب کښې وتر ذکر کړې دی، د حنفیانو په نیز باندې وتر علی الراحله بغیر د عذر نه جائز نۀ دی په دې مسئله کښې صاحبین د امام صاحب سره دی اګر که په عدم وجوب د وترو کښې صاحبین د جمهورو سره دی دا خبره د یاد ساتلو ده.

[۱۲۲۴](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَبِّحُ عَلَى الرَّاحِلَةِ أَيَّ وَجْهٍ تَوَجَّهَ وَيُوتِرُ عَلَيْهَا غَيْرَ أَنَّهُ لَا يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ عَلَيْهَا".

سالم د خپل پلار نه روایت کوی، هغه وائي دې: وو رسول الله ﷺ چې نفل به یې کول په سورلۍ کوم طرف ته چې به یې مخ وو، او وتر به یې کول په هغې، مګر فرض مونځ به یې پرې نه کولو.

**تشریح: قوله:** كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يسبح على الراحلة اىّ وجهٍ توجّه و يؤتر عليها، توجه په اصل کښې تتوجه وو یو د تاء نه تخفیفا حذف کوی دا د واحد مؤنث غائب صیغه ده ضمیر د راحله طرف ته راجع دې.

### د وتر علی الراحله د حدیث جواب:

دا حدیث د حنفیانو خلاف دې امام طحاوی د دې جواب دا ورکړې دې چه د حدیث د راوی یعنی د ابن عمر رضي الله عنه نه د دې خلاف مروی دی د کوم الفاظ چه دا دی. عن ابن عمر رضى الله عنه انه كان يصلى على راحلته و يؤتر بالارض ويزعم ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يفعل كذلك.

دغه شان په مصنف ابن ابی شیبه کښې هم بعضې روایات داسې دی په کومو کښې چه دا دی چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه به د وتر مانځه دپاره د سورلۍ نه نزول فرمائیلو، لهذا دا به وئیلې شي چه دوتر علی الراحله روایات د احکام وتر او دوجوب د وترو نه د وړاندې دی د وترو استحکام او وجوب تحقق دفعة یعنی په یوځل باندې نۀ دې شوې بلکه تدریجًا شوې دې.

### د طحاوی نظر:

امام طحاوی د احنافو د مذهب ترجیح په طریق د نظر داسې ثابته کړې ده چه دلته دوه مسئلې اجماعی دی اول دا چه فرض مونځ بغیر د عذر نه په زمکه باندې په ناسته کول

---

(١): صحيح البخاري/تقصير الصلاة ٧ (١٠٩٧)، صحيح مسلم/المسافرين ٤ (٧٠٠)، سنن النسائي/الصلاة ٢٣ (٤٩١)، والمساجد ٤٦ (٧٤٠)، والقبلة ٢ (٧٤٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٢١٣ (١٦٣١)، (تحفة الأشراف: ٦٩٧٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٢٢٨ (٤٧٢)، سنن النسائي/قيام الليل ٣١ (١٦٨٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٢٧ (١٢٠٠)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ٣ (١٥)، مسند احمد (٢/٥٧، ١٣٨) (صحيح)

ناجائز دی هم دغه شان په سورلئ باندې بغير د عذر نه کول ناجائز دی.
دويمه مسئله دا چه نفل مونځ بغير د عذر نه په زمکه باندې په ناسته کول جائز دی دغه شان په سورلئ باندې هم کول جائز دی، اوس دې دوو اجماعي مسئلو ته وړاندې کيخودلو سره دا نتيجه رااوخي چه قاعده دا ده چه کوم مونځ په زمکه باندې بغير د عذر نه په ناسته کول جائز نۀ دی د هغې په سورلئ باندې کول هم ناجائز دی او د کوم مونځ چه په زمکه باندې په ناسته باندې کول جائز دی د هغې په سورلئ باندې هم بغير د عذر نه کول جائز کيدل پکار دی.

[۱۲۲۵]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا رِبْعِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْجَارُودِ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي الْحَجَّاجِ، حَدَّثَنِي الْجَارُودُ بْنُ أَبِي سَبْرَةَ، حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا سَافَرَ فَأَرَادَ أَنْ يَتَطَوَّعَ اسْتَقْبَلَ بِنَاقَتِهِ الْقِبْلَةَ فَكَبَّرَ، ثُمَّ صَلَّى حَيْثُ وَجَّهَهُ رِكَابُهُ".

حديث بيان کړی دی انس بن مالک، بېشکه رسول الله ﷺ وو چې کله به يې سفر وکړو او اراده د نفلو به يې وکړه نو خپله اوښه به يې قبلې ته مخامخ کړه تکبير به يې وويلو، بيا به يې مونځ کولو سورلۍ چې به کوم ځای ته د ده مخ واړولو.

**تشريح**: **قوله**: ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان اذا سافر فاراد ان يتطوع استقبل بناقته القبلة.د دې حديث شريف نه معلوميږی چه تطوع على الراحله کښې د تکبير تحريمه په وخت استقبال قبله يعنی قبلې ته مخ کول پکار دی د دې نه پس چه کوم طرف ته هم تلل وی د سورلئ مخ هغه طرف ته کړه، په بذل کښې ليکلې دی چه داسې کول د شافعيه په نيز واجب دی او د حنفيانو په نيز صرف مستحب او اولیٰ دی دغه شان په دې کښې دا هم دی که فرض مونځ په سورلئ باندې کوی(للعذر) نو د حنفيانو په نيز دلته هم استقبال عند التحريمه شرط دې.

## د تحريمه په وخت کښې استقبال قبله کښې اختلاف:

د دينه بعد په دې پوهيدل پکار دی چه صلوة على الدابه يعنی په سورلئ باندې مونځ کولو کښې جهت د سفر هم قائم مقام د قبلې دې ابتداء هم او انتهاء هم البته عند التحريمه که استقبال قبله وی نو مستحب ده واجب نۀ ده خواه فرض مونځ وی يا نفل د حنفيانو او ټولو جمهورو هم دا مسلك دې البته د حنابله په يو روايت کښې دی چه عند التحريمه استقبال قبله شرط دې (كما فى زاد المستقنع،ص، ١١) لهذا په بذل وغيره بعضې کتابونو کښې چه کوم د شوافعو مسلك استقبال قبله د شرطيت ليکلې دې هغه محل د نظر دې، هم داسې د حنفيانو په نيز کله چه د مجبورئ وخت کښې فرض مونځ په سورلئ باندې جائز دې نو استقبال قبله عند التحريمه هم ساقطيږی، كما حققه الشامي.

[١]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥١٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ١٠ (١١٠٠)، صحيح مسلم/المسافرين ٤ (٧٠٠)، سنن النسائي/المساجد ٤٦ (٧٤٢)، موطا امام مالك/ قصر الصلاة ٧ (٢٦)، مسند احمد (٢٠٣/٣) (حسن)

[۱۲۲٦](۱)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ، عَنْ أَبِي الْحُبَابِ سَعِيدِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي عَلَى حِمَارٍ وَهُوَ مُتَوَجِّهٌ إِلَى خَيْبَرَ".

د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی، هغه ويلي دي: ما ليدلی دی رسول الله ﷺ چې مونځ يي کولو په خره باندې او د هغه مخ خيبر ته وو.

**تشریح: قوله:** عن عبدالله بن عمر انه قال راءيت رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلى على حمار و هو متوجه الى خيبر، خيبر د مدينې نه د شمال په اړخ باندې دې او مکه د جنوب په اړخ. لهذا په دې صورت کښې استدبار قبله اومونډلې شو کومه چه په سورلئ باندې دمونځ کولو په صورت کښې جائز دې.

**تنبيه:** دا حديث په مسلم کښې هم موجود دې امام نووی ليکی چه په دې حديث باندې دار قطنی نقد کړې دې چه دصلوة على الحمار واله فعل د انس نه ثابت دې د حضور ﷺ نه صلوة على الراحله (مونځ په اوښه) باندې ثابت دې نه صلوة على الحمار (اګرچه د حضور ﷺ نه رکوب على الحمار ثابت دې دا امرآخر دې) هغه وائی چه په دې کښې وهم د عمروبن يحی المازنی نه شوی دې. والله تعالى اعلم.

[۱۲۲۷](۲)حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَاجَةٍ، قَالَ: فَجِئْتُ وَهُوَ "يُصَلِّي عَلَى رَاحِلَتِهِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ، وَالسُّجُودُ أَخْفَضُ مِنَ الرُّكُوعِ".

د جابر رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي زه رسول الله ﷺ ولېږم د يو حاجت دپاره، هغه وايي: زه راغلم او هغه مونځ کولو په خپله سورلی باندې طرف د مشرق ته، او سجده د رکوع نه ښکته وه.

## بَابُ الْفَرِيضَةِ عَلَى الرَّاحِلَةِ مِنْ عُذْرٍ

### باب دی په د فرضي مونځ کې په سورلی د وجې د عذر نه

[۱۲۲۸](۳)حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ الْمُنْذِرِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: هَلْ رُخِّصَ لِلنِّسَاءِ أَنْ يُصَلِّينَ عَلَى الدَّوَابِّ؟ قَالَتْ: لَمْ يُرَخَّصْ لَهُنَّ فِي ذَلِكَ فِي شِدَّةٍ وَلَا رَخَاءٍ. قَالَ مُحَمَّدٌ: هَذَا فِي الْمَكْتُوبَةِ.

د عطاء بن ابي رباح نه روايت دی بېشکه هغه تپوس وکړو د عائشې رضي الله عنها نه، ايا هغه اجازت ورکړی دی ښځو ته، چې مونځ وکړي په دوابو باندې؟ هغې وويل: اجازت يې ورکړی نه دی دوی ته په دغې کې، نه په سختی کې او نه په راحت کې. ويلي دي محمد: دا په فرضي مونځ کې.

(۱): صحيح مسلم/المسافرين ٤ (۷۰۰)، سنن النسائي/الصلاة ۲۳ (٤٩۳)، (تحفة الأشراف: ۷۰۸٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ۷ (۲٥)، مسند احمد (۲/۷، ٤٩، ٥۲، ٥۷، ۷٥، ۸۳، ۱۲۸) (صحيح)

(۲): سنن الترمذي/الصلاة ۱٤۳ (۳٥۱)، (تحفة الأشراف: ۲۷٥۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۳۲، ۳۷٩، ۳۸۸) (صحيح)

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۳٩٤) (صحيح)

تشریح: **قوله**: هل رخص للنساء ان يصلين على الدواب،الخ،

**شرح حدیث:**

د حضرت عائشه ﷞ نه سوال اوکړې شو چه آیا د ښځو دپاره دا جائز ده چه هغوی د سورلئ په حالت کښې په سورلئ باندې فرض مونځ اوکړی، د ښځو تخصیص په سوال کښې شاید د دې دپاره وی چه هغه صنف نازك دی کیدې شی د دوئ دپاره ګنجائش وی، جواب ئې ورکړو چه جائز نۀ دی نۀ په يُسر یعنی په آسانتیا کښې او نۀ په عُسر یعنی په سختئ کښې نۀ په مشقت کښې او نۀ په سهولت کښې او مطلب دا نۀ دې چه نه په عذر کښې او نۀ بغير عذر کښې ځکه چه د مجبورئ او عذر په حالت کښې د سړو او ښځو دواړو دپاره جائز دې.

## بَابُ مَتَى يُتِمُّ الْمُسَافِرُ

### باب دی چې کله به پوره کوي مسافر؟

مسافر به د مانځه اتمام کله کوی؟ کله چه سفر پوره کړی او خپل وطن ته واپس راشی یا دا چه په سفر کښې منزل ته اورسی هلته د اقامت نیت اوکړی.

**د اقامت په موده کښې د ائمه مذاهب:**

اوس دا چه موده د اقامت څۀ ده؟ د حنفیانو په نیز پنځلس ورځې د صحابه کرامو دهغه اثارو په بناء باندې کوم چه د حدیثو په کتابونو ترمذی وغیره کښې مذکور دی دغه شان صاحب هدایه او علامه زیلعی د دې تفصیل لیکلې دې او د ائمه ثلاثه په نیز څلور ورځې دی، كما قال الترمذی فی جامعه.

او د جمهورو دلیل دا دې چه حضور اقدس ﷺ په حجة الوداع کښې مهاجرینو ته فرمائیلې وو چه هغوی د اداء نسك یعنی د قربانی ادا کولو نه پس په مکه مکرمه کښې د دریو ورځو نه زیات قیام او نۀ کړی(ځکه چه مهاجر لره په غیر مُهاجَر کښې قیام جائز نۀ دې) د دینه معلومه شوه چه د دریو ورځو قیام شرعا قیام نۀ دې، د حدیث الفاظ په نسائی شریف کښې په صفحه، ۲۱۲، کښې دا دی چه، یمکث المهاجر بعد قضاء نسکه ثلاثا،

خو قیام هغه معتبر دې کوم چه په نیت او ارادې سره وی او که بغیر د نیت نه هم داسې پاتې شی نو بالاجماع مسافر به وی، و ان اتی علیه سِنونَ، لکه څنګه چه امام ترمذی په دې باندې اجماع نقل کړې ده، زۀ وایم چه د ائمه ثلاثه او جمهورو مسلك خو هم دا دې خو د شافعیه مسلك [1] په شرح اقناع،ص،۱۴۴،ج،۲، کښې ما دغه شان موندلې دې چه دا قول د هغوی په نیز مرجوح دې او راجح قول دا دې چه بغیر د نیت نه به تر اتلسو ورځو پورې مسافر وی او

[1] د دوئ په نیز باندې مزید تفصیل دا دې که د یو سړی سفر د داسې حاجت دپاره وی د کوم په حقله چه دۀ ته یقین دې چه هغه کار په څلورو ورځو کښې نۀ کیږی بلکه د څلورو نه به زیاتیږی نو داسې مسافر به په خپله مقیم شی خواه که نیت اونۀ کړی او که هغه حاجت داسې وی د کوم په حقله چه هره ورځ دا توقع وی چه پوره به شی نو په داسې صورت کښې به تر اتلسو ورځو پورې مسافر وی د دینه پس به بغیر د نیت نه مقیم شی۔

قصر به کوی د دینه پس که پاتې کیږی نو اتمام به کوی اگر که د اقامت نیت اونهٔ کړی او دا دې هم واضحه وی چه د اقامت نیت به په هغهٔ ځائې کښې معتبر وی په کوم ځائې کښې چه د اقامت صلاحیت وی په خلاف د سفر د جهاد نه ځکه چه د دښمن په زمکه کښې د اقامت صلاحیت نشته چنانچه مروی دی چه صحابه کرام په رامهرمز کښې تر نهٔ میاشتو پورې مقیم وو او په مانځه کښې ئې قصر کولو (البیهقی من حدیث انس) دغه شان ابن عمر رضی الله عنه په آذربیجان کښې تر شپږو میاشتو پورې مقیم وو او قصر ئې کولو (المصنف لعبدالرزاق)

[۱۲۲۹] ()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ وَهَذَا لَفْظُهُ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَشَهِدْتُ مَعَهُ الْفَتْحَ، فَأَقَامَ بِمَكَّةَ ثَمَانِيَ عَشْرَةَ لَيْلَةً لَا يُصَلِّي إِلَّا رَكْعَتَيْنِ، وَيَقُولُ: "يَا أَهْلَ الْبَلَدِ، صَلُّوا أَرْبَعًا فَإِنَّا قَوْمٌ سَفْرٌ".

د عمران بن حصین نه روایت دی هغه ویلې دي: ما غزا وکړه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره او زه حاضر شوی یم د هغه سره فتحې ته، په مکه کې اتلس شپې پاتې شو، مونځ یې نه کولو مګر دوه رکعاته، او ویل به یې: ای د ښار والاو! مونځ کوئ څلور بېشکه مسافر قوم یو.

**تشریح: قوله**: عن عمران بن حصین قال غزوت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم،

## د باب د احادیثو تجزیه:

پوهیدل پکار دی چه په دې باب کښې مصنف رحمه الله اولاً د عمران بن حصین حدیث ذکر فرمائیلې دې (صرف په یوطریق سره) د دې نه ئې د ابن عباس رضی الله عنه حدیث په دریو طریقو سره ذکر کړې دې د دې ټولو تعلق د فتح مکې د غزوې سره دې د دې نه پس یو حدیث ئې د حضرت انس رضی الله عنه ذکر فرمائیلې دې د دې تعلق د حجة الوداع د سفر سره دې.

دعمران بن حصین په حدیث کښې موده د اقامت اتلس ورځې مذکورده، اود ابن عباس رضی الله عنه په حدیث کښې موده د اقامت په یو کښې پنځلس ورځې او په دویم کښې اوولس ورځې، هسې خو په دې سلسله کښې درې روایات دی، ۱۷، ۱۸، ۱۹، او مشهور او زیات واضح روایت د ۱۹، نولسو ورځو واله دې، په دې اختلاف کښې توجیه داسې کوی چه چا یوم الدخول اویوم الخروج یعنی د داخلیدلو او وتلو ورځ دواړه مستقل شمار کړې هغوی نورلس ورځې بیان کړی دی او چا چه دې دواړو لره ساقط کړې دی هغوی اوولس ورځې بیان کړې دی او چا چه دواړه یوځائې کړې دی هغوی اتلس ورځې بیان کړې دی، خو دلته د باب په یو حدیث کښې پنځلس ورځې مذکور دی د دې توجیه دا کیدې شی چه شاید راوی دا ګنړلې وی چه په کوم روایت کښې اوولس ورځې راغلې دی هغه یوم الدخول او یوم الخروج لره مستقل شمارکړې دی نو ځکه هغهٔ په دې کښې دوه ورځې کمې کړې او پنځلس پاتې شوې.

[۱]: سنن الترمذي/الصلاة ۲۷٤ (الجمعة ۳۹) (٥٤٥)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸٦۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤۳۰، ٤۳۱، ٤۳۲، ٤٤۰) (ضعیف)

[۱۲۳۰]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَقَامَ سَبْعَ عَشْرَةَ بِمَكَّةَ يَقْصُرُ الصَّلَاةَ". قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: وَمَنْ أَقَامَ سَبْعَ عَشْرَةَ قَصَرَ، وَمَنْ أَقَامَ أَكْثَرَ أَتَمَّ. قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ عَبَّادُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: أَقَامَ تِسْعَ عَشْرَةَ..

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ پاتې شو په مکه کې اولس مونځ يې لنډولو. ويلي دي ابن عباس: څوک چې اولس پاتې کيدو نو قصر به کوي، او څوک چې زيات پاتې کيدو نه پوره به يې کوي. ويلي دي ابوداود: ويلي دي عباد بن منصور د عکرمه نه او هغه د ابن عباس نه، هغه ويلي دي: پاتې شو اولس.

[۱۲۳۱]()حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ عَامَ الْفَتْحِ خَمْسَ عَشْرَةَ يَقْصُرُ الصَّلَاةَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، وَأَحْمَدُ بْنُ خَالِدٍ الْوَهْبِيُّ، وَسَلَمَةُ بْنُ الْفَضْلِ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، لَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ ابْنَ عَبَّاسٍ.

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: پاتې شو رسول الله ﷺ په مکه کې د فتحې په کال پنځلس، قصر د مونځ يې کولو. ويلي دي ابوداود: دا حديث نقل کړی دی عبدة بن سليمان او احمد بن خالد الوهبي او سلمة بن الفضل د ابن اسحاق نه، هغوی پکې ابن عباس نه دی ذکر کړی.

[۱۲۳۲]()حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنِ ابْنِ الْأَصْبَهَانِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَقَامَ بِمَكَّةَ سَبْعَ عَشْرَةَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ".

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ پاتې شو مکه کې اولس شپې مونځ يې کولو دوه رکعاته.

[۱۲۳۳]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ "فَكَانَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ حَتَّى رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ"، فَقُلْنَا: هَلْ أَقَمْتُمْ بِهَا شَيْئًا؟ قَالَ: أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا.

د انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: مونږ ووتلو د رسول الله ﷺ د مديني نه مکې ته، هغه وو چې دوه رکعاته مونځ يې کولو ترڅو چې مونږ واپس شو مدينې ته، مونږ ورته ووييل: ايا تاسو هلته څه مقدار پاتې شوي وئ؟ هغه ووييل: مونږ پاتې شوي وو لس شپې.

[1]: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ۱ (۱۰۸۰)، المغازي ۵۲ (۴۲۹۸)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۷۵ (الجمعة ۴۰) (۵۴۹)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۷۶ (۱۰۷۵)، (تحفة الأشراف: ۶۱۳۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۳/۱) (شاذ)

[2]: سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ۷۶ (۱۰۶۷)، (تحفة الأشراف: ۵۸۴۹) (ضعيف منكر)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۱۴۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۰۲۱، ۳۱۵) (ضعيف منكر)

[4]: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ۱ (۱۰۸۱)، والمغازي ۵۲ (۴۲۹۷)، صحيح مسلم/المسافرين ۱ (۶۹۳)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۷۵ (الجمعة ۴۰) (۵۴۸)، سنن النسائي/تقصير الصلاة ۱ (۱۴۳۷)، ۴ (۱۴۵۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۷۶ (۱۰۷۷)، مسند احمد (۱۸۷/۳، ۱۹۰، ۲۸۲)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۸۰ (۱۵۵۱)، (تحفة الأشراف: ۱۶۵۲) (صحيح)

**تشریح:** **قوله، عن انس بن مالك قال خرجنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم،** دا حدیث د حضرت انس ﷛ د سفر د حجة الوداع سره متعلق دې نو ځکه په دې کښې موده داقامت لس ورځې مذکور دی حضور ﷺ په دې سفر کښې په څلورم ذی الحجه مکې مکرمې ته رسیدلې وو او په څلورمه ذی الحجه په صبائې د مکې مکرمې نه واپسی فرمائیلې وه.

حضور ﷺ د فتح مکې او حجة الوداع دواړو سفرونو کښې د قصر مونځ ادا فرمائیلې وو، حال دا دې چه عند الجمهور موده د اقامت څلور ورځې ده، جواب ظاهر دې هغه دا چه د دوئ قیام بغیر د نیت د اقامت سره وو او که د دښمن په زمکه کښې نیت هم اوکړی نو معتبر به نۀ وی او د حجة الوداع واله روایت جواب خو جمهور دا ورکوی چه د دوئ دا لس ورځې قیام په یو ځائې باندې نۀ وو بلکه په مختلفو ځایونو کښې وو کله حضور ﷺ په مکه کښې وو او کله په منٰی کښې او کله په عرفات او مزدلفه کښې غرض دا چه په یو ځائې باندې حضور ﷺ مسلسل نۀ وو پاتې شوی.

**تنبیه:** مصنف ﷬ په دې باب کښې چه کوم روایات ذکر کړې دی نۀ هغه د جمهورو مستدل دی د مودې د اقامت په سلسله کښې او نۀ د حنفیانو بس په یو لحاظ سره د شوافعو مستدل جوړیدې شی که د اتلسو ورځو نه متجاوز شی نو بیا بغیر د نیت د اقامت نه هم د مقیم په حکم کښې دې، د فریقینو دلائلو طرف ته اشاره د باب په شروع کښې تیره شوې ده.

[۱۲۳٤]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَابْنُ الْمُثَنَّى وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، قَالَ: ابْنُ الْمُثَنَّى، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ "كَانَ إِذَا سَافَرَ سَارَ بَعْدَ مَا تَغْرُبُ الشَّمْسُ حَتَّى تَكَادَ أَنْ تُظْلِمَ، ثُمَّ يَنْزِلُ فَيُصَلِّي الْمَغْرِبَ، ثُمَّ يَدْعُو بِعَشَائِهِ فَيَتَعَشَّى، ثُمَّ يُصَلِّي الْعِشَاءَ، ثُمَّ يَرْتَحِلُ، وَيَقُولُ: هَكَذَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ". قَالَ عُثْمَانُ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَلِيٍّ، سَمِعْتُ أَبَا دَاوُد، يَقُولُ: وَرَوَى أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ حَفْصِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ أَنَسًا "كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا حِينَ يَغِيبُ الشَّفَقُ، وَيَقُولُ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْنَعُ ذَلِكَ" وَرِوَايَةُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلُهُ.

ابن المثنی ویلې دې: ماته خبر راکړی دی عبد الله بن محمد بن عمر بن علي بن ابي طالب او هغه د خپل پلار او هغه د نیکه نه، بېشکه علي ﷛ وو چې کله به یې سفر کولو وروسته د ډوبیدو د نمر نه تردې چې تیاره به نزدې شوه، بیا راخکته شو د ماښام مونځ به یې کولو، بیا به یې خپله د ماښام ډوډی، راوغوښتله هغه به یې وخوره، بیا به یې د ماسخوتن مونځ کولو، بیا به روان شو، او ویل به یې داسې وو رسول الله ﷺ چې کول به یې. ویلې دې عثمان د عبد الله بن محمد بن عمر بن علي نه، ما اوریدلې دې د ابوداود نه، هغه به ویل او روایت کړی دی اسامة بن زید د حفص بن عبید الله یعني ابن انس بن مالک نه، بېشکه

[1]: تفرد به أبوداود، سنن النسائي/المواقيت ٤٤ (٥٩٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٥٠) (صحيح لغيره) وحديث أنس أخرجه: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ١٤ (١١١١، ١١١٢) (مقتصرا علي الظهر والعصر فقط)، صحيح مسلم/المسافرين ٥ (٧٠٤)، سنن النسائي/المواقيت ٤٢ (٥٩٥)، (مقتصرا علي الشق الأول مثل البخاري)، (تحفة الأشراف: ١٥١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٤٧، ٢٦٥) (صحيح)

انس وو چې جمع به يې كوله په مابين د دوارو كې چې كله به شفق ډوب شو، او ويل به يې: وو نبي ﷺ داسې به يې كول او روايت د زهري د انس نه دى او هغه د نبي ﷺ نه نقل كړى دى په مثل د هغې.

## بَابُ إِذَا أَقَامَ بِأَرْضِ الْعَدُوِّ يَقْصُرُ

### باب دى كله چې پاتې شي په ځمكه د دشمن كې نو قصر به كوي

د جمهورو علماؤ په نيز بغير د نيت د اقامت نه نهٔ مقيم كيږي، و ان اتى عليه سنون، امام ترمذى په دې باندې د علماؤ اجماع نقل فرمائيلې ده او د دښمن په زمكه كښې نيت د اقامت معتبر هم نهٔ دې، خو په دې كښې د شوافعو مسلك مونږ وړاندې نقل كړې دې كيدې شي هغه د دښمن د زمكې نه علاوه سره متعلق وى، فليسئل.

[۱۲۳۵]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "أَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَبُوكَ عِشْرِينَ يَوْمًا يَقْصُرُ الصَّلَاةَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: غَيْرُ مَعْمَرٍ لَا يُسْنِدُهُ.

د جابر بن عبد الله نه روايت دى هغه ويلي دي: مقيم شو رسول الله ﷺ په تبوک كې شل ورځې مونځ كې يې قصر كولو. ويلي دي ابوداود: د معمر نه نور يې مرسل كوي مسند كوي يې نه.

## بَابُ صَلَاةِ الْخَوْفِ

### باب د خوف د مونځ احكام او مسائل

«مَنْ رَأَى أَنْ يُصَلِّيَ بِهِمْ وَهُمْ صَفَّانِ فَيُكَبِّرُ بِهِمْ جَمِيعًا، ثُمَّ يَرْكَعُ بِهِمْ جَمِيعًا، ثُمَّ يَسْجُدُ الْإِمَامُ، وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ، وَالْآخَرُونَ قِيَامٌ يَحْرُسُونَهُمْ، فَإِذَا قَامُوا سَجَدَ الْآخَرُونَ الَّذِينَ كَانُوا خَلْفَهُمْ، ثُمَّ تَأَخَّرَ الصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ إِلَى مَقَامِ الْآخَرِينَ، وَتَقَدَّمَ الصَّفُّ الْأَخِيرُ إِلَى مَقَامِهِمْ، ثُمَّ يَرْكَعُ الْإِمَامُ وَيَرْكَعُونَ جَمِيعًا، ثُمَّ يَسْجُدُ وَيَسْجُدُ الصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ وَالْآخَرُونَ يَحْرُسُونَهُمْ، فَإِذَا جَلَسَ الْإِمَامُ وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ سَجَدَ الْآخَرُونَ، ثُمَّ جَلَسُوا جَمِيعًا، ثُمَّ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ جَمِيعًا»، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: «هَذَا قَوْلُ سُفْيَانَ»

هغه څوک چې گڼي چې مونځ به كوي دوى ته چې دوه صفه وي نو تكبير به وكړي ټولو ته، بيا به ركوع وكړي ټولو ته، بيا به سجده وكړي امام او هغه صف چې كوم ورته نژدې وي، او نور به ولاړ وي څوكيدارې به كوي، كله چې هغوى پاڅېږي نو دا نور به سجده وكړي كوم چې وروسته د دوى نه وو، بيا به وروسته شي هغه صف كوم چې نژدې وو هغه ته ځاى د وروستنو ته، او وروستنى صف به مخكې شي ځاى د هغوى ته، بيا به ركوع وكړي امام او ټول به ركوع وكړي، بيا به سجده وكړي او سجده به كوي هغه صف چې نژدې وو هغه ته نور به يې څوكيدارې كوي، كله چې امام كيني او هغه صف چې نژدې وي هغه ته نو دا نور به سجده وكړي، بيا به ټول كيني، بيا به ټولو ته سلام وگرځوي. ويلي دي ابوداود: دا قول د سفيان دى.

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۲۵۸۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۵/۳) (صحيح)

## د مصنف اهتمام:

پوهیدل پکار دی چه مصنف رحمه الله د صلوة الخوف روایات او کیفیات چه په کوم اهتمام سره بیان کړي دی د صحاح سته په مصنفینو کښې چا هم په دومره تفصیل او اهتمام سره نۀ دی بیان کړي اګر که نسائی رحمه الله هم د دې روایاتو لره په ښۀ تفصیل سره بیان کړي دی خو دومره نۀ، مصنف رحمه الله دا صورت اختیار کړې دې چه اولاً هغه په ترجمة الباب کښې په خپلو الفاظو کښې د صلوة الخوف یوه طریقه لیکلې او بیا د باب په ضمن کښې د دې موافق حدیث راوړی او دې لره ثابتوی، چنانچه مصنف رحمه الله د صلوة الخوف دپاره اتۀ بابونه قائم کړي دی په هر ترجمة الباب کښې یو نوې کیفیت د صلوة الخوف ئې بیان کړې دې.

د ائمه اربعه په نیز ټولې طریقې مشروع دی اختلاف صرف په اولویت کښې دې البته په آخره کښې چه کوم دوه بابه دی اووم او اتم هغه د جمهورو د مسلك خلاف دی نو ځکه جمهور هلته تاویل کوی د تاویل بیان چه کله هغه باب راشی هم هلته به راشی، مصنف رحمه الله اګر که بابونه خو اتۀ قائم کړي دی خو په دې کښې صورتونه یولس به راځی یعنی داختلاف رواة په ضمن کښې زما په نیز د دېنه زیات نۀ دې اګر که امام نووی خو دا لیکلې دی چه امام ابوداؤد د دې شپاړس صورتونه ذکر کړې دی.

حضرت شیخ رحمه الله د مؤطا په شرح، اوجز المسالك، کښې د صلوة الخوف په شروع کښې اتۀ بحثونه ذکر فرمائیلې دی او د دې ټولو ته ئې اشاره په حاشیه د لامع کښې فرمائیلې ده په دې کښې څو بحثونه مونږ لره هم دلته بیانول دی، (۱) د صلوة الخوف مشروعیت کله شوې دې، د دې د کال په تعین کښې، (۲) د حضور صلی الله علیه وسلم نه صلوة الخوف په کومو کومو ځایونو کښې او څومره ځله کول ثابت دی، (۳) صلوة الخوف د حضور صلی الله علیه وسلم نه روستو هم مشروع دې او که نۀ، (۴) عین د جنګ په وخت کښې مونځ کوم ته چه، صلوة المسایفه، وائې جائز دې او که نۀ، (۵) صلوة الخوف صرف په سفر کښې مشروع دې یا په حضر کښې هم، (۶) د ویرې د وجه نه د رکعتونو په شمیر کښې څۀ کموالې راځی او که نۀ.

### دصلوة الخوف سره متعلق مباحث سته:

### بحث اول: د صلوة الخوف مشروعیت په کومه موقع باندې او په کوم کال کښې شوې وو؟

په دې کښې ډیر اختلاف دې کوم ته چه په کتلو سره تعجب کیږی چه دهغې تفصیل په اوجز کښې کتلې شئ خو په ابوداؤد کښې په دې سلسله کښې یو روایت دې چه هغې طرف ته ابن حجر رحمه الله هم میلان کړې دې، او زادالمعاد کښې ابن القیم رحمه الله هم دې لره اختیار کړې دې نو ځکه مونږ هم هغې لره دلته لیکو، هغه دا دې چه ابوعیاش الزرقی په روایت کښې تصریح ده چه حضور صلی الله علیه وسلم صلوة الخوف د ټولو نه رومبې په، عسفان، مقام کښې کړې وو او غزوه عسفان په اتفاق سره په شپږم کال د هجرت کښې ده، او په اوجز کښې د واقدی نه نقل کړې دی چه، مقام عسفان کښې د حضور صلی الله علیه وسلم مونځ د عمرة الحدیبیه په موقعه باندې وو، عمره حدیبیه هم بهرحال په شپږم کال د هجرت کښې ده د دینه معلومه شوه چه د دې

مونځ مشروعيت په شپږمه هجرئ کښې شوې دې، دابوعياش د دې روايت مضمون کوم چه په کتاب کښې مذکور دې هغه دا دې چه مونږ د حضور ﷺ سره د عسفان په مقام کښې د ماسپخين مونځ اوکړو او په دې موقع باندې د مشرکينو د لښکر امير خالد بن الوليد وو کله چه صحابه کرام د مانځه نه فارغ شول نو مشرکينو په خپلو کښې اووئيل، لقد اصبنا غرة لو کنا حملنا عليهم و هم في الصلوة، أف! مونږ نه ډير لويه غلطي اوشوه مونږه موقع ورکه کړله څۀ ښۀ به وو چه مونږ په مسلمانانو باندې د مونځ په حالت کښې حمله کړې وې، د ابوداؤد په روايت کښې خو دومره دى، په يو بل روايت کښې دا دى (ذکره في البذل،ص،۲۵۴،ج،۲، و کذا في المشکوة) چه

په دې باندې بعضې مشرکانو اووئيل د خفګان خبره نه ده اوس د دوئ يو بل مونځ راتلونکې دې کوم چه د دوئ په نيز د مال او اولاد نه زيات محبوب دې يعنى د مازيګر مونځ په دې کښې به مونږ په دوئ باندې حمله اوکړو د دې خلقو په مينځ کښې دا خبرې کيدې چه بين الظهر والعصر يعنى د ماسپخين او مازيګر په مينځ کښې آيت القصر په کوم کښې چه صلوة الخوف مذکور دې هغه نازل شو، دشمن چه کند چو مهربان باشد دوست، دشمن اگر قويست مهربان قوى تر است، يعنى دښمن به زمونږ څۀ اوکړى چه ملګرى راباندې مهربانه وى، او که دښمن زمونږ زورآ ور دې نو زمونږ مهربان د هغوى نه زيات زورآ ور دې، چنانچه حضور ﷺ د لښکر دوه حصې کړې او دصلوة الخوف په طريقه ئې د مازيګر مونځ ورکړو.

## په غزوه خندق کښې صلوة الخوف ولې نه وو کړې شوې:

په دې باندې تاسو يوه بله خبره واورئ هغه دا چه د ټولو علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه حضور ﷺ په غزوه خندق کښې صلوة الخوف نۀ وو کړې (نو ځکه په هغې کښې د دوئ څو مونځونه قضاء شول) خو په دې کښې اختلاف دې چه په دې دې غزوه کښې حضور ﷺ صلوة الخوف ولې نۀ وو کړې په دې کښې څو اقوال دى يو دا چه دمشرکينو د قتال د وجه نه حضور ﷺ ته وخت نۀ وو ملاؤ شوې چه مونځ اوکړى او بعضې وائى چه په قتال کښې د مشغوليدو د وجه نه د مونځ خيال ورته رانغلو، يو قول دا هم دې چه تر دغه وخته پورې دا مونځ نۀ وو مشروع شوې، د ابوداؤد په پورته ذکر شوې روايت کښې هم د دې آخرى قول تائيد کيږى ځکه چه په دې باندې اتفاق دې چه غزوه عسفان د خندق نه پس ده او حال دا دې چه د دې مونځ مشروعيت هم په غزوه عسفان کښې شوې وو

## د يو تاريخى مسئلې حل:

يوه بله تاريخى مسئله واورئ هغه دا چه په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه حضور ﷺ په غزوه ذات الرقاع کښې صلوة الخوف کړې وو خو په دې کښې د مؤرخينو او محدثينو اختلاف کيږى چه غزوه ذات الرقاع د غزوه خندق نه مقدم ده يا د دې نه روستو ده دواړه رائې ذکر دى،د پورتنى ترتيب او مضمون مقتضى دا ده چه غزوه ذات الرقاع د خندق نه پس پيښه شوې ده ګويا يو تاريخى اختلافى مسئله حل شوه.

**بحث ثاني:** (**د حضور ﷺ نه صلوة الخوف کله او څوځله کول ثابت دی؟**)

په دې کښې هم د علماؤ اختلاف دې په بذل کښې حضرت د مراقی الفلاح نه نقل کړې دی چه حضور ﷺ صلوة الخوف، ۲۴، څلیریشت وارې کړې دې، او په اوجز کښې حضرت شیخ د ابن العربی نه هم دا نقل کړې دی، خو حافظ ابن قیم رحمه الله لیکلې دی چه، عشر مرات، امام نووی فرمائی چه ابن المالکی لیکلی دی چه، ان النبی صلی الله علیه وسلم صلاها فی عشرة مواطن، او علامه زیلعی فرمائی(کما فی الاوجز) بعضې فقهاء فرمائی چه حضور ﷺ صلوة الخوف په لسو ځایونو کښې ادا کړې دې خو هغه قول په کومو باندې چه داصحاب السیر والمغازی استقرار شوې دې هغه دا دې چه حضور ﷺ دا مونځ صرف په څلور مواضعو کښې کړې دې:

۱، ذات الرقاع، ۲، بطن نحل، ۳، عسفان، ۴، ذی قرد،

ابن العربی رحمه الله فرمائی چه د صلوة الخوف کیفیت په ډیرو روایتونو کښې راغلې دې په دې کښې زیات صحیح شپاړس روایتونه دی کوم چه په خپلو کښې مختلف دی او ابن القیم رحمه الله په زاد المعاد کښې فرمائی چه په دې مختلفو کیفیتونو کښې اصل صرف شپږ کیفیات او طریقې دی هغوی فرمائی چه بعضو د دینه زیاتې هم لیکلې دی دې خلقو چه کوم ځائې کښې هم لږ غوندې د رواة اختلاف کتلې دې په کوم کیفیت کښې هغې لره ئې مستقل صورت گرځولې دې چه حضور ﷺ داسې هم کړې دې، حال دا دې چه هغه اختلاف د رواة دې، حافظ ابن حجر رحمه الله هم د دې رائې تائید کړې دې او دا وړاندې تیر شوې دی چه په سنن ابوداؤد کښې د دې یولس صورتونه مذکور دی.

**بحث ثالث:** (**ایا صلوة الخوف د حضور ﷺ نه پس هم مشروع دې؟**)

صلوة الخوف د جمهورو علماؤ او ائمه اربعه په نیز د حضور ﷺ د وفات نه پسې هم مشروع دې، ابویوسف فی روایة او ابن علیه، مزنی، دا حضرات فرمائی چه صلوة الخوف دحضور ﷺ پورې خاص وو، لقوله تعالی، و اذا کنت فیهم فاقمت لهم الصلوة، خو د جمهورو په نیز د حضور ﷺ نه روستو هم جائز دې ځکه چه د صحابه کرامو نه د حضور ﷺ نه روستو کول ثابت دی او د آیت نه چه د حضور ﷺ پورې کوم تخصیص معلومیږی د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه، اذا کنت، سره چه کوم تخصیص په پوهه کښې راځی هغه د حضور ﷺ د وجود په اعتبار سره نهٔ دې ترڅو پورې چه تاسو په دنیا کښې موجود ئې تر هغه وخته پورې دا مونځ کولې شی بلکه د حکم د بیانولو په لحاظ سره دې او مطلب دا دې چه ترڅو پورې حضور ﷺ موجود دې نو خپل امت ته دې د صلوة الخوف طریقه په خپله کولو سره اوښائی یعنی تعلیم قولی باندې دې اکتفاء مهٔ کوئ، خو د دې نه باوجود زمونږ فقهاء لیکلی چه صلوة الخوف په خپل مخصوص کیفیت سره تر هغه وخت اولی دې چه کله خلق په یو امام پسې د مونځ کولو دپاره اصرار کوی لکه څنگه چه حضور ﷺ پسې ټولو صحابه کرامو غوښتل چه د چا زړهٔ مات نهٔ شی، او که داسې صورت نهٔ وی نو بیا اولی او غوره دا ده چه دوه جدا جدا امامان یو یو جماعت لره یو بل پسې پوره پوره مونځ ورکړی.

**بحث رابع:**

**(خاص د قتال په حالت کښې صلوة المسايفه جائز دي که نه؟)**

په حاشيه د لامع کښې ليکلي دی چه صلوة المسايفه د حنفيانو په نيز باندې جائز نۀ دې، صاحب هدايه رحمه الله فرمائی چه که عين د جنګ په وخت کښې مونځ جائز وې نو بيا به د حضور ﷺ په غزوه خندق کښې مونځونه نۀ قضاء کيدل، (۱)، او د جمهور او ائمه ثلاثه په نيز باندې جائز دې، ماشيًا و راكبًا مع الكرّ والفرّ، په خلاف د حنفيه نه چه د دوئ په نيز مع المسايفه يا مع المشی مونځ باطل دې او د بعضې علماؤ خو مذهب دا دې چه، التحام الحرب يعنی په سخت جنګ کښې که په څه شان سره د مونځ کولو باندې قدرت نۀ وی نو صرف تسبيح او تحميد، تهليل او تكبير باندې اكتفاء كول جائز دی دغه وخت دا تسبيحات د مونځ قائم مقام کيږی، امام بخاری رحمه الله هم دې مسئلې لره، باب الصلوة عند مناهضة الحصون و لقاء العدو، کښې بيان کړې ده او د هغې خلقو ترديد ئې کړې دې څوک چه دا وائی چه په داسې موقع باندې تکبير او تسبيح کافی کيدې شی.

**بحث خامس:**

**(ايا صلوة الخوف صرف په سفر کښې مشروع دې؟)**

دجمهور او دوئ سره دائمه اربعه په نيز صلوة الخوف په حضر کښې هم مشروع دې سفر پورې خاص نۀ دې، امام نووی د امام مالك مذهب عدم الجواز فی الحضر نقل کړې دې، خو دا خلاف تحقيق دې، البته دابن الماجشون المالکی په نيز سفر پورې خاص دې

**بحث سادس:**

**(د خوف په وجه د رکعاتو په تعداد کښې هم څه کمی راځی او که نه؟)**

د جمهورو علماء، ائمه اربعه په نيز د ويرې د وجه د رکعاتونو په شمير کښې څۀ کمې نۀ کيږی، دبعضې علماء لکه ابن عباس، حسن بصری، طاؤس، اسحٰق بن راهويه په نيز د سخت جنګ په صورت کښې د دوو رکعاتو په ځائې په يو باندې هم اكتفاء كول جائز دی، او يو قول خو دا دې چه که په مونځ باندې قدرت نۀ وی نو صرف تسبيح او تحميد او تكبير هم د مونځ قائم مقال کيږی، (کما تقدم)

اوس د دې تمهيدی امورو نه پس تاسو د اصل مقصود په حقله واورئ هغه دا چه په ائمه اربعه کښې د کوم امام په نيز کومه طريقه د صلوة الخوف غوره او راجح ده دا وراندې تير شوې دی چه د صحيح روايتونو نه د صلوة الخوف شپاږس صورتونه ثابت دی او د جمهورو په نيز په دې ټولو طريقو سره صلوة الخوف ادا كول جائز دی البته ترجيح کښې اختلاف دې، بعضې علماء خو داسې هم دې کوم چه د ترجيح هم قائل نۀ دی چنانچه اسحٰق بن راهويه هم د دوئ نه دې، امام ترمذی رحمه الله په جامع ترمذی کښې د دوئ مقوله نقل کړې ده چه، و رای اسحق بن راهويه انّ كلّ ما روی عن النبی صلی الله عليه وسلم فی صلوة الخوف فهو

---

(۱) په دې کښې يو قول دا دې چه دغه وخته پورې صلوة الخوف مشروع شوې وی (کما سبق)۔

جائز و هذا علی قدر الخوف و لسنا نختار حدیث سهل بن ابی حثمه علی غیره من الروایات،

## صلوة الخوف کښې د ائمه مختارات:

د حنفیانو په نیز غوره دا ده چه د لښکر امیر لره پکار دی چه د لښکر دوه ډلې جوړې کړی یو د دښمن په مقابله کښې اودریږی او یوه د جماعت د امام پسې امام دې دوئ ته یو رکعت اوکړی یو رکعت کولو نه پس دې دا ډله د دښمن مقابله له لاړه شی او کومه ډله چه د دښمن په مقابله کښې ده هغه دې دلته امام پسې راشی امام دې دوئ ته هم یو رکعت اوکړی د امام خو چونکه دوه رکعت اوشول نو ځکه هغه دې خپل مونځ ځانله پوره کړی او سلام دې اوګرځوی او دا دویمه ډله کومې چه د امام سره یوه رکعت کړې دې د دښمن مقابله له لاړه شی د دینه پس دې اوله ډله خپل پاتې یو رکعت هم په دغه ځائې یا په کوم ځائې کښې چه د جماعت مونځ شوې وو هلته دې لاړ شی اودې کړی او سلام دې اوګرځوی بیا د دینه پس دې دویمه ډله هم خپل پاتې رکعت دغه شان اوکړی او مونځ دې پوره کړی.

په دې کیفیت کښې مشی فی حال الصلوة یعنی د مانځه په حالت کښې تلل کول خو لازمیږی خو تقدم علی الامام یعنی په امام باندې وړاندې کیدل نۀ لازمیږی کوم چه د جمهورو په کیفیت کښې موندلې کیږی.

د ائمه ثلاثه په نیز غوره صورت دا دې چه کله اولنۍ ډله امام سره یو رکعت اوکړی نو هغه دې هم دغه وخت خپل دویم رکعت ځانله اوکړی او سلام دې اوګرځوی او د دښمن مقابلې ته دې لاړ شی او بیا دې دویمه ډله راشی او امام سره دې یو رکعت اوکړی او دا ډله دې دغه وخت خپل دویم رکعت هم اوکړی، اوس دا چه امام د دویم رکعت کولو نه پس د دې دویمې ډلې په سلام ګرځولو کښې انتظار اوکړی چه دواړه یو ځائې سلام اوګرځوی یا انتظار دې نۀ کوی بلکه امام دې ځانله سلام اوګرځوی، دا مختلف فیه ده، امام شافعی او احمد فرمائی چه انتظار دې اوکړی او کله چه دویمه ډله د دویم رکعت نه فارغ شی نو دواړه دې یوځائې سلام اوګرځوی، امام مالك هم ړومبې د دې قائل وو روستو هغوی د دینه رجوع اوکړه اووئی فرمائیل چه انتظار دې نۀ کوی، د شافعیه او حنابله استدلال د یزید بن رومان روایت سره دې او د مالکیه استدلال د قاسم بن محمد په روایت سره دې دا دواړه روایتونه وړاندې د کتاب په دریم باب کښې راروان دی.

پوهیدل پکار دی چه پوره ذکر شوې د صلوة الخوف صورت کوم چه ائمه ثلاثه اختیار کړې دې دې لره مالکیه او حنابله خو مطلقا اختیاروی او حضرت امام شافعی دې کیفیت لره هغه وخت اختیاروی کله چه دښمن د قبلې په اړخ کښې نۀ وی او که دښمن د قبلې په جانب کښې وو نو دغه وخت د دوئ په نیز یو دویم صورت غوره دې او هغه دا چه امام دې د ټول لښکر دوه صفونه جوړ کړی او دواړو ته یوځائې مونځ شروع کړی قیام او رکوع دې دواړه صفونه د امام سره اوکړی د دینه پس امام او ړومبې صف واله دې خو سجدې ته لاړ شی او دویم صف واله دې هم په قومه کښې ولاړ وی د دښمن د حفاظت دپاره (ځکه چه دښمن د قبلې په جانب کښې دې) کله چه امام او ړومبی صف واله د سجدو نه فارغ شی او اودریږی

نو بیا دې دویم صف واله سجدې ته لاړ شي او د دواړو سجدو نه دې فارغ شي او اودیدریږي اوس د هر یو صف واله یو یو رکعت پوره شو، د دینه پس د صفونو ترتیب به بدل کړې شي ړومبی صف واله به روستو راشي او وروستونی صف واله به وړاندې لاړ شي او دویم رکعت به حسب سابق پوره کړي او ټول به یوځائې سلام اوګرځوي.
مصنف د ټولو نه ړومبې چه کوم باب قائم کړې دې په هغې کښې د صلوة الخوف هم دا صورت بیان کړې دې.

**فائده**: ائمه ثلاثه چه د مونځ کوم کیفیت اختیار کړې دې هغه د سهل بن ابی حثمه په حدیث کښې مذکور دې او امام شافعي د دښمن په جانب د قبلې کیدو په صورت کښې چه کوم صورت اختیار کړې دې هغه د ابوعیاش زرقی په حدیث کښې ذکر دې، او حنفیانو چه کوم کیفیت اختیار کړې دې هغه وړاندې د کتاب د صلوة الخوف په بابونو کښې په شپږم باب کښې راروان دې د کوم په شروع کښې چه دی، و صلی عبدالرحمٰن بن سمرة هکذا.

**فائده ثانیه**: پوهیدل پکار دی چه د جمهورو په طریق کښې د هرې دوو ډلو په رکعتینو کښې موالاة دې یعنی هره ډله به د امام سره یو رکعت کوی او هغه وخت به خپل دویم رکعت اوکړي او خپل مونځ به پوره کړي، په دې کیفیت کښې په رکعتینو کښې دتسلسل او موالاة د وجه نه مشی فی الصلوة نهٔ لازمیږي، او د حنفیانو واله شکل کښې د یوې ډلې په رکعتینو کښې هم موالاة نشته دې بلکه دا دی چه هره ډله به د امام سره صرف یو رکعت اوکړي او لاړه به شي او بیا د دینه پس به ترتیب وار دواړه ډلې یو بل پسې خپل دویم رکعت اوکړي.

[۱۲۳۶]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ أَبِي عَيَّاشٍ الزُّرَقِيِّ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعُسْفَانَ، وَعَلَى الْمُشْرِكِينَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ، فَصَلَّيْنَا الظُّهْرَ، فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ: لَقَدْ أَصَبْنَا غِرَّةً، لَقَدْ أَصَبْنَا غَفْلَةً، لَوْ كُنَّا حَمَلْنَا عَلَيْهِمْ وَهُمْ فِي الصَّلَاةِ، فَنَزَلَتْ آيَةُ الْقَصْرِ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، فَلَمَّا حَضَرَتِ الْعَصْرُ" قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ، وَالْمُشْرِكُونَ أَمَامَهُ فَصَفَّ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفٌّ، وَصَفَّ بَعْدَ ذَلِكَ الصَّفِّ صَفٌّ آخَرُ، فَرَكَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَكَعُوا جَمِيعًا، ثُمَّ سَجَدَ وَسَجَدَ الصَّفُّ الَّذِينَ يَلُونَهُ، وَقَامَ الْآخَرُونَ يَحْرُسُونَهُمْ، فَلَمَّا صَلَّى هَؤُلَاءِ السَّجْدَتَيْنِ وَقَامُوا سَجَدَ الْآخَرُونَ الَّذِينَ كَانُوا خَلْفَهُمْ، ثُمَّ تَأَخَّرَ الصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ إِلَى مَقَامِ الْآخَرِينَ، وَتَقَدَّمَ الصَّفُّ الْأَخِيرُ إِلَى مَقَامِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ، ثُمَّ رَكَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَكَعُوا جَمِيعًا ثُمَّ سَجَدَ وَسَجَدَ الصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ وَقَامَ الْآخَرُونَ يَحْرُسُونَهُمْ، فَلَمَّا جَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالصَّفُّ الَّذِي يَلِيهِ سَجَدَ الْآخَرُونَ، ثُمَّ جَلَسُوا جَمِيعًا، فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ جَمِيعًا، فَصَلَّاهَا بِعُسْفَانَ، وَصَلَّاهَا يَوْمَ بَنِي سُلَيْمٍ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَى أَيُّوبُ، وَهِشَامٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، هَذَا الْمَعْنَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ دَاوُدُ بْنُ حُصَيْنٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَكَذَلِكَ عَبْدُ الْمَلِكِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، وَكَذَلِكَ قَتَادَةُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ حِطَّانَ، عَنْ أَبِي مُوسَى فِعْلَهُ، وَكَذَلِكَ عِكْرِمَةُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَلِكَ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ.

[1]: سنن النسائي/صلاة الخوف (۱۵۵۰، ۱۵۵۱)، (تحفة الأشراف: ۳۷۸۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۹/۴، ۶۰) (صحيح)

ابو عیاش الزرقي وايي: مونږ وو د رسول الله ﷺ سره په عسفان کې، او د مشرکانو مشر خالد بن الولید وو، نو مونږ مونځ وکړو د ماسپخین، نو مشرکانو وویل: بېشکه ورسیدو چل ته، بېشکه مونږ ورسیدو غفلت ته، که چېرې مونږ حمله وکړه په دوی باندې په مانځه کې، نو نازل شو ایت د قصر په مابین د ماسپخین او مازیګر کې، هرکله چې مازیګر راغی، نو ودریدلو رسول الله ﷺ مخامخ قبلې ته او مشرکین د هغه مخکې ته وو، نو صف جوړ کړو وروسته د رسول الله نه یو صف، او د دغې صف نه وروسته بل صف جوړ کړو، نو رکوع وکړه رسول الله ﷺ، ټولو رکوع وکړه، بیا سجده وکړه هغه صف چې هغه نزدې وو، او نور ولاړ وو پېره یې کوله د دوی، هرکله چې دوی دوه سجدې وکړې نو ودریدل، نو سجده وکړه نورو هغو چې وروسته د دوی نه وو، بیا وروسته شو هغه صف چې هغه ته نزدې وو ځای د نورو ته، او مخکې شو وروستنی صف ځای د اولني صف ته، بیا رکوع وکړه رسول الله ﷺ رکوع وکړه ټولو، بیا سجده وکړه هغه او سجده وکړه هغه صف چې کوم ورته نزدې وو او ودریدل نور چې څوکیداري یې کوله د دوی، هرکله چې کېناستلو رسول الله ﷺ او هغه صف چې ورته نزدې وو، سجده وکړه نورو، بیا ټولو کېناستل او سلام یې وګرځولو ټولو ته، دا مونځ یې په عسفان کې وکړو په ورځ د بني سلیم. د دې روایت داود بن حصین کړی دی د عکرمه نه او هغه د ابن عباس نه، همدارنګه نقل کړی دی عبد المطلب د عطاء نه او هغه د جابر نه، همدارنګه قتادة د حسن او هغه د حطان نه او هغه د ابو موسی نه فعل د هغه، همدارګه عکرمة بن خالد د مجاهد نه او هغه د نبي ﷺ نه، همدانګه هشام بن عروة د خپل پلار نه او هغه د نبي ﷺ نه، او دا قول د ثوري دی.

**قوله**: حدثنا سعید بن منصور، دا د صلوة الخوف د ړومبی باب حدیث دې او دا د ابوعیاش زرقی هغه حدیث دې کوم لره چه امام شافعی هغه وخت اختیار کړې دې کله چه دښمن په جانب د قبلې وی د کوم تفصیل چه د باب په شروع کښې تیر شوې دې د ابوعیاش نوم امام ترمذی فرمائی چه زید بن صامت دې دا انصاری صحابی دې.

**قوله**: کنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم بعسفان، عسفان د مکې او مدینې په لاره کښې د مکه مکرمې سره نزدې د یو ځائې نوم دې، په بعضې روایاتو کښې ضجنان لفظ راځی دواړه صحیح دی، ضجنان هم د یو ځائې نوم دې دا غزوه د دې دواړو ځایونو په مینځ کښې شوې وه، یا داسې اووایه لکه څنګه چه په بعضې روایاتو کښې دی چه د مسلمانانو د لښکر مقام عسفان کښې او د مشرکینو په ضجنان کښې وو.

غزوه عسفان د بنولحیان سره په جمادی الاولی شپږم کال د هجری کښې شوې وه خو په دې کښې د جنګ نوبت نۀ وو راغلې بلکه د دښمن سره لیدل هم نۀ وو شوی.

**قوله**: و صلاها یوم بنی سلیم، یعنی غزوه بنو سلیم، د یوم لفظ استعمال د حرب یعنی جنګ په معنی کښې عرب خلق کوی، ما یو ځل د خپل عالی شان استاذالادیب الاریب مولانا اسعدالله صاحب نه اوریدلې وو، ایام العرب حروبها، دې غزوې ته غزوه بحران هم وائی.

## يو اشکال او د هغې جواب:

دلته يو اشکال دې هغه دا چه يوم بنی سليم په دريم کال د هجرت کښې پيښه شوې وه د جنګ بدر او جنګ احد په مينځ کښې تر دغه وخته پورې خو صلوة الخوف مشروع شوې نه وو ځکه چه د دې مشروعيت لکه څنګه چه پورته تير شوې دی په غزوه عسفان کښې شوې وو کومه چه په شپږم کال د هجرت کښې شوې وه، حضرت رحمه الله په بذل کښې ليکلې دی چه اصحاب السير د دې غزوې په بيان کښې د صلوة الخوف ذکر نۀ دې کړې والله تعالی اعلم صاحب منهل د دې جواب ورکړې دې چه کيدې شي دا غزوه دوه ځلې پيښه شوې وی يو ځل په دريم کال د هجرت کښې لکه څنګه چه مشهوره ده او دويم ځل د غزوه عسفان نه روستو په رومبی ځل کښې په دې کښې صلوة الخوف نۀ وی شوې او په دويم ځل کښې شوې وی نو ځکه په دې روايت کښې د کولو تصريح ده.

## بَابُ مَنْ قَالَ يَقُومُ صَفٌّ مَعَ الْإِمَامِ وَصَفٌّ وِجَاهَ الْعَدُوِّ

### باب دی په بيان د هغه چا کې چې وايي: ودريږي به يو صف د امام سره او بل صف مخامخ دشمن ته

يَقُومُ صَفٌّ مَعَ الْإِمَامِ وَصَفٌّ وِجَاهَ الْعَدُوِّ «فَيُصَلِّي بِالَّذِينَ يَلُونَهُ رَكْعَةً، ثُمَّ يَقُومُ قَائِمًا، حَتَّى يُصَلِّيَ الَّذِينَ مَعَهُ رَكْعَةً أُخْرَى، ثُمَّ يَنْصَرِفُونَ فَيَصُفُّونَ، وِجَاهَ الْعَدُوِّ وَتَجِيءُ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى فَيُصَلِّي بِهِمْ رَكْعَةً، وَيَثْبُتُ جَالِسًا، فَيُتِمُّونَ لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً أُخْرَى، ثُمَّ يُسَلِّمُ بِهِمْ جَمِيعًا»

**(دويم صورت)** ودريږي به يو صف د امام سره او بل صف مخامخ دشمن ته. مونځ به کوي هغو ته چې امام ته نزدې وي يو رکعت. بيا به ولاړ وي، تردې چې مونځ وکړي هغه کسان چې د هغه سره يې مونځ کړی دی بل رکعات، بيا به ځي ودريږي په صف کې مخامخ دشمن ته، او راځي به هغه بله ډله مونځ به کوي هغوی ته يو رکعات، او ثابت به پاتې کيږي په ناسته، نو پوره کوي به خپل ځانله بل رکعات، بيابه سلام اړوي ټول په يو ځائې.

دا د صلوة الخوف دويم باب دې په دې کښې مصنف رحمه الله د صلوة الخوف چه کوم صورت ذکر کړې دې هغه تقريبا هم هغه دې کوم چه ائمه ثلاثه اختيار کړې دې معمولی غوندې فرق دې چه امام د رومبۍ ډلې سره يو رکعت اوکړو د دينه پس دې ډلې خپل دويم رکعت ځانله اوکړو لکه څنګه چه د جمهورو په نيز وی خو تراوسه دې ډلې سلام نۀ دې ګرځولې بغير د سلام نه لاړل(په خلاف د جمهورو نه چه د دوئ په نيز د سلام نه پس ځي) د دينه پس به دويمې ډلې يو رکعت د امام سره اوکړو او دويم رکعت ئې ځانله اوکړو بيا امام سلام دې دواړو ډلو سره اوګرځولو.

[۱۲۳۷]()حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى بِأَصْحَابِهِ فِي خَوْفٍ فَجَعَلَهُمْ

[1]: صحيح البخاري/المغازي ۳۲ (۴۱۳۱)، صحيح مسلم/المسافرين ۵۷ (۸۴۱و۸۴۲)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۸۱ (الجمعة ۴۶) (۵۶۶)، سنن النسائي/صلاة الخوف (۱۵۳۷)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۵۱ (۱۲۵۹)، (تحفة الأشراف: ۴۶۴۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ۱ (۲)، مسند احمد (۴۴۸/۳)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۸۵ (۱۵۶۳) (صحيح)

خَلْفَهُ صَفَّيْنِ، فَصَلَّى بِالَّذِينَ يَلُونَهُ رَكْعَةً، ثُمَّ قَامَ فَلَمْ يَزَلْ قَائِمًا حَتَّى صَلَّى الَّذِينَ خَلْفَهُمْ رَكْعَةً، ثُمَّ تَقَدَّمُوا وَتَأَخَّرَ الَّذِينَ كَانُوا قُدَّامَهُمْ فَصَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَةً، ثُمَّ قَعَدَ حَتَّى صَلَّى الَّذِينَ تَخَلَّفُوا رَكْعَةً، ثُمَّ سَلَّمَ".

د سهل بن ابي حثمه نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ مونځ يې وکړو خپلو ملګرو ته په خوف کې، ويې ګرځول د خپل ځان نه وروسته دوه صفه، کوم کسان چې ورته نزدې وو هغوی ته يې يو رکعات وکړو، بيا ودريدو ولاړ وو، تردې چې مونځ وکړو هغو کسانو چې د ده نه وروسته وو يو رکعاته، بيا رامخکې شول، او وروسته شول هغه کسان چې د هغوی نه مخکې وو، هغوی ته نبي ﷺ يو رکعات وکړو، بيا کېناستلو تردې چې يو رکعات مونځ وکړو هغه خلقو چې وروسته وو، بيايې سلام وګرځولو.

**تشريح: قوله:** حدثنا عبيدالله بن معاذ..الخ، قوله، فجعلهم خلفه صفين.

## د حديث د ترجمة الباب سره په مطابقت کښې ګړانوالی او د دې حل:

دا تعبير واضح نۀ دې خو غلط هم نۀ دی د دې تشريح دغه شان کيدې شي چه امام يوې ډلې له خو خپل شاته کړی او دويمې ډلې له د دښمن په مقابله کښې خو چونکه دښمن بظاهره د امام شاه طرف(د قبلې په مقابل کښې) وو نو ځکه هغه دويمه ډله هم په دې لحاظ سره امام پسې شوله.

حتى صلى الذين خلفهم ركعة، يعنی د امام اولې ډلې ته يو رکعت اوکړی او اودريږی تر دې چه دې ډلې خپل دويم رکعت اوکړو.

د الذين مصداق ړومبئ ډله ده او په خلفهم کښې د هم مصداق دويمه ډله ده که دلته د خلفهم په ځائې باندې خلفه وې نو ډيره واضحه خبره به وه ځکه چه ړومبئ ډله په واقع کښې هم د امام پسې ده نۀ دويمې ډلې پسې، حضرت په بذل کښې ليکلې دی چه په تفسير ابن جرير طبری کښې هم دا روايت دې چه په دې کښې هم خلفه دې باقی خلفهم لکه څنګه چه دلته په کتاب کښې دی د کوم مطلب چه دا شو چه ړومبئ ډله کومه چه دويمې ډلې پسې ده،(په ظاهر کښې دا صحيح نۀ ده لهذا تاويل ته حاجت لري) تاويل دا کيدې شي چه دا ځائې د جنګ ځائې دې په دې خو پوهه شه چه کومه ډله د دښمن په مقابله کښې ولاړه ده هم هغه مخکښې کيدنکې او مقدم ده او کومه ډله چه د دښمن په ځائې امام سره دۀ پسې ولاړه ده هغه ګويا مؤخر ده(يعنی ددښمن نه) غالبًا هم دې لحاظ سره په دې روايت کښې ړومبئ ډله د دويمې ډلې پسې ګرځولې شوې ده، و هذا التوجيه خاطری ابوعذره، فظهرت المطابقة بين الحديث والترجمة فلله الحمد والمنة، حضرت سهارنپوری ته هم په بذل المجهود کښې دې ځائې له په حل کولو کښې دشواری او ګرانوالئ پورته کړې دې، حديث الباب او ترجمة الباب کښې د مطابقة دا مسئله هم په دې کتابونو کښې اهميت لری خصوصا په صحيح بخاری او سنن صغری للنسائی کښې.

**قوله:** ثم تقدموا، ړومبئ ډله دې خپل دواړه رکعتونه اوکړی(د سلام نه ړومبې) او د دښمن طرف ته لاړله اوګورئ! دلته د دښمن په مقابله کښې تلونکو ته تقدم وئيلې شوې دې حال دا دې چه دښمن وړاندې يعنی د قبلې په جانب نۀ دې نو ځکه زمونږ د ذکر شوې توجيه تائيد

کیږی بنه پوهه شه.

و تاخر الذین کانوا قدامهم، او دویمه ډله کومه چه د رومبئ ډله نه مقدم وه امام پسې راغلله.

**قوله:** قال ابوداؤد اما روایة یحیی بن سعید،الخ، دا عبارت دلته زیاتی دي د بذل په نسخې کښې دې او په بعضې نسخو کښې نشته دې د دې اصل محل د راتلونکی باب آخر دې هلته به هم راشی.

## باب مَنْ قَالَ إِذَا صَلَّى رَكْعَةً وَثَبَتَ قَائِمًا أَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً...الخ

**باب: دهغه خلقو دلیل چه هغوی وائی چه امام دې یو رکعت اوکړی نو اودریږی به، او هغوی (مقتدیان) به خپل دویم رکعت پوره کړی...الخ**

| إِذَا صَلَّى رَكْعَةً وَثَبَتَ قَائِمًا أَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً ثُمَّ سَلَّمُوا ثُمَّ انْصَرَفُوا فَكَانُوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ وَاخْتُلِفَ فِي السَّلَامِ |
|---|

(**دریم صورت**) امام دې یو رکعت اوکړی نو اودریږی به، او هغوی (مقتدیان) به خپل دویم رکعت پوره کړی بیا دې سلام واړوی بیا به دوی واپس د دشمن مخې ته لاړشی، په تیرشوی صورت کښې صرف په سلام کښې اختلاف دې.

## توضیح الباب:

یعنی امام چه کله رومبې ډلې ته رکعت اوکړی او اودریده نو دې ډلې خپل دویم رکعت هم دغه وخت اوکړو او سلام ئې اوګرځولو.

## د ائمه ثلاثه اختیار کړي شوي صورت:

دا دریم باب دې په دې ترجمه کښې او مخکښنئ ترجمه کښې صرف هم دا فرق دې یعنی د سلام ګرځولو او نه ګرځولو، په رومبئ ترجمه کښې دا وو چه رومبئ ډله دې دواړه رکعتونه اوکړی او بغیر د سلام ګرځولو نه لاړله او دلته دی چه هغوی هم سلام اوګرځولو دا بعینه هغه صورت دې کوم لره چه ائمه ثلاثه اختیار کړي دې، امام مالك او احمد مطلقا او امام شافعی د دښمن د غیر قبله کیدو په طرف کښې.

| [۱۲۳۸] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَمَّنْ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ صَلَاةَ الْخَوْفِ، أَنَّ طَائِفَةً صَفَّتْ مَعَهُ وَطَائِفَةً وِجَاهَ الْعَدُوِّ "فَصَلَّى بِالَّتِي مَعَهُ رَكْعَةً، ثُمَّ ثَبَتَ قَائِمًا، وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ، ثُمَّ انْصَرَفُوا وَصَفُّوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ، وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى فَصَلَّى بِهِمُ الرَّكْعَةَ الَّتِي بَقِيَتْ مِنْ صَلَاتِهِ، ثُمَّ ثَبَتَ جَالِسًا، وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ، ثُمَّ سَلَّمَ بِهِمْ". قَالَ مَالِكٌ: وَحَدِيثُ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ أَحَبُّ مَا سَمِعْتُ إِلَيَّ. |
|---|

صالح بن خوات روایت کوي د هغه چانه چې هغه مونځ کړی دی د رسول الله ﷺ سره د خوف په ورځ د ذات الرقاع کې، بېشکه یوې ډلې صف جوړ کړو د هغه سره، او بله ډله مخامخ د دښمن وه، نو مونځ یې وکړو هغې ته چې د هغه سره وه یو رکعات، بیا ولاړ پاتې

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٦٤٥) (صحیح)

شو، او پوره یې کړو ځانله، بیا لاړل، او صف کې ودریدل مخامخ دشمن ته، او راغله هغه بله ډله، نو مونځ یې وکړو دوی ته هغه رکعات چې پاتې وو د هغه د مونځ نه، بیا کښناستلو او هغه پوره کړو ځانله، بیایې سلام وګرځولو ټولو ته. مالک ویلي دي: او حدیث د یزید بن روان ډیر غوره دی په هغې کې چې ما اوریدلي دي.

حدثنا القعنبی عن مالك عن یزید بن رومان عن صالح بن خوات عمن صلی، الخ، صالح بن خوات روایت کوی د هغې صحابه کرامو نه کومو چه د حضور ﷺ سره مونځ کړې دې، د دینه مراد یا خو سهل بن ابی حثمه دې کما یظهر من روایة البخاری، یا د صالح پلار خوات بن جبیر دې کما جزم به النووی.

## (د ذات الرقاع وجه تسمیه)

یوم ذات الرقاع، د دې غزوه نوم ذات الرقاع یا خو د دې د وجه نه دې چه په دې کښې د مسلمانانو سره سورلئ ډیرې کمې وې اکثر به پیدل وو د پیدل تللو د وجه نه(غریزو لاړو کښې) پښې زخمي شولې نو ځکه صحابه کرامو به په پښو باندې ټکړې، یعنی د کپړو پټئ تړلې وو، یا دې دپاره ورته وائی چه هلته یو غر وو د مختلفو رنګونو کانړو واله لکه څنګه چه دمختلف رنګونو پټئ وی، یا ځکه چه د مسلمانانو په جهنډو کښې هم د مختلفو رنګونو پټئ وی.

قوله، ثم انصرف، ای بعد السلام و هذا هو الفرق بین الترجمتین کما اوضحته قبل ذلك، ثم ثبت جالسًا، دا د یزید بن رومان روایت دې په کوم کښې چه د امام د دویمې ډلې دپاره د انتظار کول ذکر دی، و قد سبق تفصیله، قال مالك و حدیث یزید بن رومان احبُّ ما سمعت الیَّ، امام مالك فرمائی چه د یزید بن رومان حدیث په دې ټولو احادیثو کښې کوم چه ما د خپلو استاذانونه اوریدلې دی زما په نیز ډیر خوښ دې، خو مونږ په شروع کښې دا وئیلی دی چه روستو امام مالك د دې قول نه رجوع کړې او دقاسم بن محمد روایت لره ئې اختیار کړې دې کوم چه د دینه روستو متصلا راروان دې.

[۱۲۳۹] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ الْأَنْصَارِيِّ، أَنَّ سَهْلَ بْنَ أَبِي حَثْمَةَ الْأَنْصَارِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّ صَلَاةَ الْخَوْفِ: أَنْ يَقُومَ الْإِمَامُ، وَطَائِفَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ، وَطَائِفَةٌ مُوَاجِهَةُ الْعَدُوِّ، فَيَرْكَعُ الْإِمَامُ رَكْعَةً وَيَسْجُدُ بِالَّذِينَ مَعَهُ، ثُمَّ يَقُومُ، فَإِذَا اسْتَوَى قَائِمًا ثَبَتَ قَائِمًا وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمُ الرَّكْعَةَ الْبَاقِيَةَ، ثُمَّ سَلَّمُوا وَانْصَرَفُوا وَالْإِمَامُ قَائِمٌ، فَكَانُوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ، ثُمَّ يُقْبِلُ الْآخَرُونَ الَّذِينَ لَمْ يُصَلُّوا فَيُكَبِّرُونَ وَرَاءَ الْإِمَامِ فَيَرْكَعُ بِهِمْ وَيَسْجُدُ بِهِمْ، ثُمَّ يُسَلِّمُ فَيَقُومُونَ فَيَرْكَعُونَ لِأَنْفُسِهِمُ الرَّكْعَةَ الْبَاقِيَةَ، ثُمَّ يُسَلِّمُونَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَأَمَّا: رِوَايَةُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ، نَحْوَ رِوَايَةِ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ، إِلَّا أَنَّهُ خَالَفَهُ فِي السَّلَامِ، وَرِوَايَةُ عُبَيْدِ اللَّهِ، نَحْوَ رِوَايَةِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، قَالَ: وَيَثْبُتُ قَائِمًا.

سهل بن ابي حثمه حدیث بیان کړی دی، بېشکه د خوف مونځ چې ودریږي امام او ډله د ملګرو د هغه نه، او بله ډله مخامخ دشمن ته، وکړي امام یو رکعات، او سجده وکړي هغه کسانو ته چې د هغه سره دي، بیا ودریږي کله چې برابر شي په ولاړه، ولاړ به اوسي، او

(۱): انظر حدیث رقم: (۱۲۳۷)، (تحفة الأشراف: ٤٦٤٥) (صحیح)

پوره کړي د خپلو ځانونو لپاره هغه پاتي رکعات، بیا به سلام وګرځوي، او لاړ به شي او امام به ولاړ وي، شي به مخامخ دشمن ته، بیا به نور راشي هغه کسان چې مونځ یي نه دی کړی نو تکبیر وایي وروسته د امام نه، نو رکوع به کوي هغوی ته او سجده به کوي هغوی ته، بیا به سلام وګرځوي نو ودریږي به نو ځانله به هغه باقي رکعات وکړي، بیا به سلام وګرځوي. ویلي دي ابوداود: هر چې روایت د یحیی بن سعید دی د قاسم نه پشان د روایت د یزید بن روان دی، مګر هغه ورپکې مخالفت کړی دی په سلام کې. او روایت د عبید الله پشان د روایت د یحیی بن سعید دی، هغه ویلي دي: او اوسي به ولاړ.

حدثنا القعنبی عن مالك عن یحیی بن سعید عن القاسم بن محمد،الخ، دا هغه د قاسم روایت دي، قال ابوداؤد و اما روایة یحیٰی بن سعید عن القاسم نحو روایة یزید بن رومان الا انّه خالفه فی السلام، د دې تفصیل وړاندې تیر شوې دې.

## بَابُ مَنْ قَالَ يُكَبِّرُونَ جَمِيعًا وَإِنْ كَانُوا مُسْتَدْبِرِي الْقِبْلَةِ

**باب: دهغه خلقو دلیل چه هغوی وائی چه ټول خلق دې یو ځای یو تکبیر (تحریمه) اووائی اګرچه قبلې ته ئې شا وی**

| يُكَبِّرُونَ جَمِيعًا «وَإِنْ كَانُوا مُسْتَدْبِرِي الْقِبْلَةِ، ثُمَّ يُصَلِّي بِمَنْ مَعَهُ رَكْعَةً، ثُمَّ يَأْتُونَ مَصَافَّ أَصْحَابِهِمْ، وَيَجِيءُ الْآخَرُونَ فَيَرْكَعُونَ لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً، ثُمَّ يُصَلِّي بِهِمْ رَكْعَةً، ثُمَّ تُقْبِلُ الطَّائِفَةُ الَّتِي كَانَتْ مُقَابِلَ الْعَدُوِّ، فَيُصَلُّونَ لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً، وَالْإِمَامُ قَاعِدٌ، ثُمَّ يُسَلِّمُ بِهِمْ كُلِّهِمْ جَمِيعًا» |
|---|

**(څلورم صورت)**: تکبیر به وایي ټول، اګر که هغوی شا کونکي وي قبلې ته، بیا به مونځ کوي هغه چاته چې د هغه سره دي یو رکعات، بیا به راځي ځای د صف د ملګرو خپلو ته، او راځي به هغه نور نو اوبه کړي ځانله یو رکعات، بیا به مونځ کوي هغوی ته یو رکعات، بیا به مخکې شي هغه ډله چې دشمن ته مخامخ وه، نو ځانله به یو رکعات مونځ وکړي، او امام به ناست وي، بیا به ټولو ته سلام وګرځوي.

دا څلورم باب دې په دې کښې چه کوم کیفیت مذکور دې هغه دا دې چه امام به د ټول لښکر دوه حصې کړی یوه د دښمن په مقابله کښې او یوه به خپل ځان پسې شاته اودروی(لکه څنګه چه په عامه توګه باندې په صلوة الخوف کښې کیږی) بیا دوه ډلې به د امام سره تکبیر تحریمه کښې شرکت اوکړی او د مانځه نیت به اوتړی اګر که هغه دویمه ډله کومه چه د دښمن په مقابله کښې ده مستدبر قبله یعنی قبلې ته ئې شاه هم وی(د دې باوجود به د مانځه نیت تړی) بیا امام به اولې ډلې ته کومه چه دهٔ پسې شاته ولاړه ده یو رکعت اوکړی او دا ډله به یو رکعت کولو نه پس د دښمن طرف ته وړاندې لاړه شی او هغه ډله کومه چه د دښمن په مقابله کښې د مانځه نیت تړلی ولاړه ده دلته به امام پسې شاته راشی او روميې به ځانله بغیر د امام نه رکوع او سجدې کولو نه پس اودریږی.

اوس امام به دوئ ته دویم رکعت اوکړی(د امام او د دویمې ډلې دواړه رکعته پوره شول) د دینه پس به اوله ډله د دښمن د طرف نه دلته امام پسې شاته راشی او خپل دویم رکعت به ځانله اوکړی دومره چه امام او دویمه ډله به د دوئ انتظار کوی کله چه د دې ډلې دا رکعت

پوره شي نو امام او دا دواړه ډلې به ټول يو ځائې سلام اوګرځوي.
د مونځ په دې کيفيت کښې د اولې ډلې په رکعتينو کښې موالاة(تسلسل) نشته دې بخلاف د دويمې ډلې نه چه د هغې په رکعتينو کښې موالاة شته ځکه چه د دويمې ډلې دويم رکعت ړومبې شو او د اولې ډلې روستو خو د مانځه نه فارغيدل او سلام د ټولو يوځائ اوشو.

[ ۱۲۴۰ ](١)حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمُقْرِءُ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ، وَابْنُ لَهِيعَةَ، قَالَا: أَخْبَرَنَا أَبُو الْأَسْوَدِ، أَنَّهُ سَمِعَ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ يُحَدِّثُ، عَنْ مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ، أَنَّهُ سَأَلَ أَبَا هُرَيْرَةَ: هَلْ صَلَّيْتَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْخَوْفِ؟ قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: نَعَمْ، قَالَ مَرْوَانُ: مَتَى؟ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: عَامَ غَزْوَةِ نَجْدٍ، "قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى صَلَاةِ الْعَصْرِ فَقَامَتْ مَعَهُ طَائِفَةٌ وَطَائِفَةٌ أُخْرَى مُقَابِلَ الْعَدُوِّ وَظُهُورُهُمْ إِلَى الْقِبْلَةِ، فَكَبَّرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَبَّرُوا جَمِيعًا الَّذِينَ مَعَهُ وَالَّذِينَ مُقَابِلِي الْعَدُوِّ، ثُمَّ رَكَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَةً وَاحِدَةً وَرَكَعَتِ الطَّائِفَةُ الَّتِي مَعَهُ، ثُمَّ سَجَدَ فَسَجَدَتِ الطَّائِفَةُ الَّتِي تَلِيهِ وَالْآخَرُونَ قِيَامٌ مُقَابِلِي الْعَدُوِّ، ثُمَّ قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَامَتِ الطَّائِفَةُ الَّتِي مَعَهُ فَذَهَبُوا إِلَى الْعَدُوِّ فَقَابَلُوهُمْ وَأَقْبَلَتِ الطَّائِفَةُ الَّتِي كَانَتْ مُقَابِلِي الْعَدُوِّ، فَرَكَعُوا وَسَجَدُوا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ كَمَا هُوَ، ثُمَّ قَامُوا فَرَكَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَةً أُخْرَى وَرَكَعُوا مَعَهُ، وَسَجَدَ وَسَجَدُوا مَعَهُ، ثُمَّ أَقْبَلَتِ الطَّائِفَةُ الَّتِي كَانَتْ مُقَابِلِي الْعَدُوِّ فَرَكَعُوا وَسَجَدُوا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ وَمَنْ كَانَ مَعَهُ، ثُمَّ كَانَ السَّلَامُ، فَسَلَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَلَّمُوا جَمِيعًا، فَكَانَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَانِ، وَلِكُلِّ رَجُلٍ مِنَ الطَّائِفَتَيْنِ رَكْعَةٌ رَكْعَةٌ".

مروان بن الحکم د ابو هريره رضي الله عنه نه تپوس وکړو، ايا تا د رسول الله ﷺ سره د خوف مونځ کړې دې؟ ابو هريره رضي الله عنه ووئيل: آو، مروان ووئيل: کله؟ ابو هريره رضي الله عنه ووئيل: په کال د غزوة نجد، رسول الله ﷺ د مازيګر مونځ ته پاڅيدلو، نو د هغه سره يوه ډله ودريده، او بله ډله دشمن ته مخامخ، او شاګانې يې قبلې ته وې، رسول الله ﷺ تکبير وکړو، نو ټولو تکبير وکړو، هغه کسانو چې د هغه سره وو مخامخ دشمن ته، بيا وکړو رسول الله ﷺ يو رکعات، او وکړو هغه ډلې چې د هغه سره وه، بيايې سجده وکړه نو سجده وکړه هغه ډلې چې هغه ته نزدې وه، او نور ولاړ وو مخامخ دشمن ته، بيا پاڅيدلو رسول الله ﷺ او پاڅيدله هغه ډله چې د هغه سره وه نو لاړل دشمن ته، نو مخامخ شول د هغوی سره، او راغله هغه ډله چې دشمن ته مخامخ وه نو هغوی رکوع او سجده وکړه، او رسول الله ﷺ هم هغسې ولاړ وو، بيا پاڅيدل نو رسول الله ﷺ يو بل رکعات وکړو، او هغوی د هغه سره رکوع وکړه، او هغه سجده وکړه هغوی هم ورسره سجده وکړه، بيا راغله هغه ډله چې دشمن ته مخامخ وه، نو رکوع او سجده يې وکړه او رسول الله ﷺ ناست وو، او هغه څوک چې د هغه سره وو، بيا سلام وو، نو سلام وګرځولو رسول الله ﷺ نو ټولو سلام وګرځولو، نو د رسول الله ﷺ دوه رکعاته شول، او د هر سړي لپاره د دواړو ډلو نه يو، يو، رکعات شو.

**قوله:** عام غزوة نجد، د دينه مراد غزوه ذات الرقاع ده لکه څنګه چه په راتلونکې روايت

(١): سنن النسائي/الخوف ١٨(١٥٤٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٢٠) (صحيح)

کښې د دې تصريح ده دا غزوه په اووم کال د هجرت کښې پيښه شوې وه.

قوله، فذهبوا الى العدو، اولې ډلې يو رکعت اوکړو او د دښمن طرف ته لاړله، و اقبلت الطائفة التى كانت مقابلى العدو فركعوا و سجدوا، دويمې ډلې واله امام پسې راغلل او ځانله ئې خپله رکوع او سجدې اوکړې، و رسول الله صلى الله عليه وسلم قائم، حضور ﷺ دومره ولاړ وو ترڅو چه ددې دويمې ډلې ړومبې رکعت پوره شو، فركع رسول الله صلى الله عليه وسلم ركعة اخرى و ركعوا، نو حضور ﷺ او د دې دويمې ډلې دويم رکعت اوکړ (اوس د حضور ﷺ او د دې دويمې ډلې دواړه رکعتونه پوره شول) ثم اقبلت الطائفة التى،الخ، بيا اوله ډله کومې چه د امام سره يو رکعت کړې وو او تلې وه هغه راغلله او هغې خپل دويم رکعت اوکړو، اوګورئ! د دينه معلومه شوه چه د دې دويمې ډلې دويم رکعت د اولې ډلې نه ړومبې شو (كما هو مذكور فى ترجمة الباب)

فسلم رسول الله صلى الله عليه وسلم و سلموا جميعًا، بيا امام او دواړو ډلو يوځائې سلام اوګرځولو، ماشاء الله حديث شريف د ترجمة الباب سره بالكل مطابق دې.

[۱۲۴۱](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَمُحَمَّدِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى نَجْدٍ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِذَاتِ الرِّقَاعِ مِنْ نَخْلٍ لَقِيَ جَمْعًا مِنْ غَطَفَانَ "فَذَكَرَ مَعْنَاهُ وَلَفْظُهُ" عَلَى غَيْرِ لَفْظِ حَيْوَةَ، وَقَالَ فِيهِ: "حِينَ رَكَعَ بِمَنْ مَعَهُ وَسَجَدَ، قَالَ: فَلَمَّا قَامُوا مَشَوُا الْقَهْقَرَى إِلَى مَصَافِّ أَصْحَابِهِمْ، وَلَمْ يَذْكُرِ اسْتِدْبَارَ الْقِبْلَةِ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، هغه وېلي دي: مونږ د رسول الله ﷺ سره نجد ته ووتلو، تردې چې مونږ ذات الرقاع ته ورسيدو د هغه کجورو نه، مخامخ شو د يو ټولګي سره د غطفان نه. ذکريې کړه معنی د هغې، او لفظ د هغې بدل دی د لفظ د حيوة نه، هغه وېلي دي په هغې کې: کله چې هغه رکوع وکړه سره د هغه کسانو چې د هغه سره وو او سجده يې وکړه، هغه ووېل: هرکله چې پاڅيدل نو لاړل په شا ځای د صف د ملګرو خپلو ته، او ذکر د استدبار د قبلې يې نه دی کړی.

حدثنا محمد بن عمرو الرازیؒ، دا دمخکښنې حديث دويم طريق دې، په اولنې حديث کښې چه کوم ابوالاسود راغلې وو د هغهٔ نوم محمد بن الاسود دې کوم چه دلته په سند کښې ذکر دې هلته د هغهٔ شاګرد حيوة بن شريح وو او دلته محمد بن اسحاق، دحيوة او محمد بن اسحاق په روايتونو کښې چه کوم فرق دې مصنف هغې ته بيانول غواړې، قال فلما قاموا مشوا القهقرى، يعنى اولنۍ ډله چه کله د امام سره يو رکعت اوکړو او تلل نو هغه قهقرى(يعنى په شاه باندې) لاړل دې دپاره چه استقبال قبله باقى پاتې شى استدبار او نهٔ شى په ړومبى روايت کښې، فذهبوا الى العدو، ذکر وو او دلته د قهقرى قيد دې.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤١٦٤) (صحيح)

[۱۲۴۲]()وَأَمَّا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعْدٍ فَحَدَّثَنَا،قَالَ: حَدَّثَنِي عَمِّي،حَدَّثَنَا أَبِي،عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ،حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنَّ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْهُ بِهٰذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَتْ: "كَبَّرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَبَّرَتِ الطَّائِفَةُ الَّذِينَ صَفُّوا مَعَهُ، ثُمَّ رَكَعَ فَرَكَعُوا، ثُمَّ سَجَدَ فَسَجَدُوا، ثُمَّ رَفَعَ فَرَفَعُوا، ثُمَّ مَكَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا، ثُمَّ سَجَدُوا لِأَنْفُسِهِمُ الثَّانِيَةَ، ثُمَّ قَامُوا فَنَكَصُوا عَلَى أَعْقَابِهِمْ يَمْشُونَ الْقَهْقَرَى حَتَّى قَامُوا مِنْ وَرَائِهِمْ، وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى فَقَامُوا فَكَبَّرُوا، ثُمَّ رَكَعُوا لِأَنْفُسِهِمْ، ثُمَّ سَجَدَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَجَدُوا مَعَهُ، ثُمَّ قَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَجَدُوا لِأَنْفُسِهِمُ الثَّانِيَةَ، ثُمَّ قَامَتِ الطَّائِفَتَانِ جَمِيعًا فَصَلَّوْا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَكَعَ فَرَكَعُوا، ثُمَّ سَجَدَ فَسَجَدُوا جَمِيعًا، ثُمَّ عَادَ فَسَجَدَ الثَّانِيَةَ وَسَجَدُوا مَعَهُ سَرِيعًا كَأَسْرَعِ الْإِسْرَاعِ جَاهِدًا لَا يَأْلُونَ سِرَاعًا، ثُمَّ سَلَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَلَّمُوا، فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ شَارَكَهُ النَّاسُ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا".

عروة بن الزبير ته عائشي رضي الله عنها دا قصه بيان کړي ده، هغې ويلي دي: تکبير وويلو رسول الله ﷺ او تکبير وويلو هغې طائفي چې صف يي برابر کړی وو د هغه سره، بيايي رکوع وکړه نو هغوی هم رکوع وکړه، بيايي سجده وکړه هغوی هم سجده وکړه، بيا اوچت شو نو هغوی هم اوچت شول، بيا وخت تېر کړو رسول الله ﷺ په ناسته، بيا سجده هغوی ځانله دويمه، بيا پاځيدل نو په پوندو باندې شاته لاړل، تردې چې ودريدل وروسته د هغوی نه، او راغله او هغه بله ډله، ودريدل او تکبير يي وويله بيايي رکوع وکړه ځانله بيا سجده وکړه رسول الله ﷺ، نو هغوی سجده وکړه د هغه سره، بيا ودريدلو رسول الله ﷺ او سجده يي وکړه ځانله دويمه، بيا دواړه ډلې ودريدلې، مونځ وکړو هغوی د رسول الله ﷺ سره، نو هغه رکوع وکړه هغوی هم رکوع وکړه، بيايي سجده وکړه هغوی هم سجده وکړه ټولو، بيا راواپس شو دويمه سجده يي وکړه، او هغوی سجده وکړه د هغه سره په جلتئ سره ډيره جلتي او کوشش کونکی وو، تقصيريي نه کولو جلتئ سره، بيا سلام وګرځولو رسول الله ﷺ او سلام وګرځولو هغوی، رسول الله ﷺ ودريدلو، او خلق ورسره ټول مانځه کې شريک شوي وو.

قال ابوداؤد و اما عبيدالله بن سعدٍ فحدثنا، دا د حديث الباب دريم طريق دې د مصنف مقصود د رواة اختلاف لره بيانول دی چه په غزوه ذات الرقاع کښې حضور ﷺ چه کوم صلوة الخوف ادا کړې وو د هغې د کيفيت بيان کښې د رواة اختلاف دې، په دې دريم طريق کښې چه دصلوة الخوف کوم کيفيت ذکر دې هغه د ترجمة الباب خلاف دې خو چونکه د مصنف مقصود صرف د رواة اختلاف لره بيانول دی نو ځکه د عدم مطابقت بين الحديث والترجمة اشکال به صحيح نهٔ وی.

### د صلوة الخوف يو (زياتی ضمنی) صورت:

په هر حال په دې کښې چه کوم صورت ذکر دې هغه دا دې چه په شروع کښې امام د اولې ډلې ته يو رکعت اوکړو په کوم کښې چه قيام او رکوع او ړومبئ سجده اوکړه او يو سجده

---

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٥/٦) (حسن)

کولو نه پس امام اودریدلو او ډلې ځانله دویمه سجده اوکړه یو رکعت کولو نه پس دا ډله د دښمن طرف ته قهقری یعنی په شاه شاه لاړله او دویمه ډله امام پسې راغلله او تکبیر تحریمه ئې اووئیله او قیام او رکوع ئې اوکړه او رومبئ سجده ئې د امام سره اوکړه او د امام دا دویمه سجده وه امام صاحب خو اودریدلو او دې ډلې خپله دویمه سجده اوکړله د سجدې نه پس دا هم اودریدله(اوس د امام او د دواړو ډلو یو یو رکعت وشو) اوس دویم رکعت امام او دواړه ډلو یوځائې زر زر اوکړو او په جلتئ سره کولو کښې ئې هیڅ کسر پرینئ خودلو(ځکه چه پوره لښکر په مانځه کښې مشغول شوې دې د دښمن د طرف نه د حملې ویره وه) مونځ پوره کیدو نه پس ټولو د امام سره سلام اوګرځولو.

په دې روایت کښې د دې خبرې تصریح نشته دې چه د دویم رکعت په وخت کښې دویمه ډله امام پسې شاته راغلې وه یا نۀ وه راغلې بلکه هم دهغلته نه ئې په مانځه کښې شرکت اوکړو، والله تعالی اعلم، څلورم باب پوره شو.

## بَاب مَنْ قَالَ يُصَلِّي بِكُلِّ طَائِفَةٍ رَكْعَةً ثُمَّ يُسَلِّمُ فَيَقُومُ كُلُّ صَفٍّ فَيُصَلُّونَ لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً

**(پنځم صورت) باب د دهغه خلقو دلیل چه هغوی وائی چه امام به هر ټولګی ته یو رکعت کوی بیا به سلام واړوی بیا دې د هر صف خلق اودریږی او خپل یو یو رکعت دې پوره کړی**

دا پنځم باب دې د دې حاصل دا دې چه اوله ډله د امام سره یو رکعت اوکړی او لاړه شی او دویمه ډله راشی او امام دې ته هم یو رکعت اوکړی(د امام خو چونکه دواړه رکعتونه پوره شول ځکه) هغه به سلام اوګرځوی او اوله او دویمه ډله دواړه به یوځائې خپل دویم رکعت اوکړی او سلام به اوګرځوی.

د دې ترجمة الباب او حدیث الباب دواړو نه په ظاهر کښې(نه صراحة) هم دا معلومیږی چه دویم رکعت به هره ډله علی التوالی یعنی په یو وخت کښې کوی او د دینه پس چه کوم شپږم باب راځی په هغې کښې چه کوم صورت ذکر دې هغه هم دا دې.

**په پنځم او شپږم باب کښې فرق:**

فرق صرف دومره دې چه په راتلونکې ترجمه کښې او د دې حدیث په ترجمه کښې د دې خبرې تصریح ده چه د امام د سلام ګرځولو نه پس به دویم رکعت هره دواړې ډلې به علی التعاقب (یو بل پسې) کوی او که اول باب لره هم په علی التعاقب باندې محمول کړې شی نو بیا په بین الترجمتین کښې دا فرق کیدې شی چه د اولې ترجمه نه به مراد دا دې چه دویمه ډله به خپل دویم رکعت هم هلته امام پسې پوره کړی او اوله ډله به په خپل ځائې کښې دښمن ته نزدې اوکړی پخلاف د دویمې ترجمې نه چه په هغې کښې د دې خبرې تصریح ده چه دویمه ډله او اوله ډله دواړو خپل دویم رکعت امام پسې شاته به اوکړو..

[۱۲۴۳]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى بِإِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ رَكْعَةً وَالطَّائِفَةُ الْأُخْرَى مُوَاجِهَةُ الْعَدُوِّ، ثُمَّ انْصَرَفُوا فَقَامُوا فِي مَقَامِ أُولَئِكَ، وَجَاءَ أُولَئِكَ فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَةً أُخْرَى، ثُمَّ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ، ثُمَّ قَامَ هَؤُلَاءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ، وَقَامَ هَؤُلَاءِ فَقَضَوْا رَكْعَتَهُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ نَافِعٌ، وَخَالِدُ بْنُ مَعْدَانَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَلِكَ قَوْلُ مَسْرُوقٍ، وَيُوسُفَ بْنِ مِهْرَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَكَذَلِكَ رَوَى يُونُسُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي مُوسَى، أَنَّهُ فَعَلَهُ.

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی، بېشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ وکړو یو د دوو ډلو ته یو رکعت، او بله ډله دشمن ته مخامخ وه، بیا لاړل، ودریدل په ځای د هغو کې، او هغوی راغلل مونځ یې وکړو هغوی ته بل رکعت، بیایې سلام وګرځول هغوی ته، بیا دا کسان پاڅیدل د خپل رکعات قضایې راوړه، او پاڅیدل هغه کسان قضایې راوړه د خپل رکعات. ویلې دي ابوداود: همدارنګه نافع او خالد بن معدان د ابن عمر نه روایت کړی دی، او هغه د نبي صلی الله علیه وسلم نه، او همداسې قول د مسروق او د یوسف بن مهران دی د ابن عباس نه، او همدارنګه روایت کړی دی یونس د حسن نه او هغه د ابو موسی نه بېشکه هغه دا کړی دی.

**حدیث الباب(حدیث ابن عمر) د چا مستدل دې:**

په دې پنځم باب کښې مصنف د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حدیث(کوم چه متفق علیه دې بخاری او مسلم د دې تخریج کړې دې) ذکر فرمائیلې دې په دې کیفیت کښې د اولې ډلې په رکعتینو کښې موالاة نشته دې(بلکه هغې خپل یو رکعت اوکړو او لاړل) لکه څنګه چه احناف وائی خو د دویمې ډلې په رکعتینو کښې موالاة شته دې او دا څیز د حنفیانو خلاف او د جمهورو موافق دې پس دا حدیث من وجه د حنفیه او من وجه د جمهورو موافق دې خو حافظ په فتح الباری کښې لیکلې دی چه په حدیث د بن عمر رضی الله عنهما کښې چه کوم کیفیت ذکر دې هغې لره حنفیانو اختیار کړې دې بلکه علامه زیلعی هم دا لیکلې دی، او حضرت شیخ هم په اوجز کښې هم دا نقل کړې دی، د ډیر وخت خبره ده چه بنده ته ډیر تردد کیدلو چه دې لره د حنفیه موافق څنګه ګرځولې شی خو آخر دې چه بنده په فتح القدیر کښې اوکتل د هغې نه ډیر تشفی اوشوله هغوی دا لیکلې دی چه، هذا الحدیث یدل علی بعض المدعیٰ، او بیا وړاندې دا ئې هم لیکلې چه د حنفیانو ټوله مدعی د فلانکی حدیث نه ثابتیږی ما د الله شکر ادا کړو چه تردد ختم شو بلکه دا اووایه چه د تردد تائید اوشو او په عرف الشذی کښې شاه صاحب یوه بل لار اختیار کړې ده هغه فرمائی چه د حنفیه په نیز دصلوة الخوف دوه کیفیتونه دی یو هغه کوم لره چه احنافو په خپلو کتابونو کښې لیکلې دې او دویم هغې دې کوم لره چه شراحو لیکلې دې، بیا د دینه پس بنده اصل فتح الباری طرف ته رجوع اوکړله په هغې کښې حافظ صاحب فرمائی چه علامه رافعی لیکلې دی چه د ابن عمر رضی الله عنهما په دې حدیث کښې صلوة الخوف دغه شان ذکر دې او بیعنه هم هغه شکل ئې لیکلې دې

---

[1]): صحیح البخاري/الخوف ۱ (۹۴۲)، المغازي ۳۱ (۴۱۳۳)، صحیح مسلم/المسافرین ۵۷ (۸۳۹)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۸۱ (الجمعة ۴۶) (۵۶۴)، سنن النسائي/الخوف ۱۸ (۱۵۳۹)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۵۱ (۱۲۵۸)، (تحفة الأشراف: ۶۹۳۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۷/۲) (صحیح)

کوم چه د حنفیانو په نیز راجع دې په دې باندې حافظ اشکال کړې دې چه حدیث د ابن عمر رضي الله عنه کښې په هیڅ طریق کښې هم ما ته د صلوة الخوف داسې کیفیت ملاؤ نۀ شو بیا سمدستي حافظ په دې سطر یعني کربنه کښې لیکي چه، و بهذه الکیفیة اخذ الحنفیة، د بنده په خیال کښې دا راځي چه د حافظ په کلام کښې هذه اشاره مذکوره کیفیت ته نۀ ده کومه چه په حدیث د ابن عمر رضي الله عنه کښې ده بلکه هغه کیفیت ته ده کومې لره چه حافظ د رافعي نه نقل کړې دې او هغه واقعي د حنفیه واله صورت دې کوم لره چه د احناف فقهاء لیکي په دې صورت کښې دحافظ (۱) خبره په خپل ځائې باندې به صحیح شي او د دې وینا ضرورت به نۀ وي چه د حنفیانو په نیز د صلوة الخوف دوه صورتونه دي یو هغه کوم چه په کتاب کښې ذکر دې او یو هغه کوم چه د حدیث په شروحو کښې ذکر دې. والله سبحانه و تعالی اعلم

## بَابُ مَنْ قَالَ يُصَلِّي بِكُلِّ طَائِفَةٍ رَكْعَةً ثُمَّ يُسَلِّمُ

### باب دی په بیان د هغه چا کې چې هغه وئیلي دي: هرې ډلې ته به یو رکعات کوي، بیا به سلام ګرځوي

| يُصَلِّي بِكُلِّ طَائِفَةٍ رَكْعَةً، ثُمَّ يُسَلِّمُ فَيَقُومُ الَّذِينَ خَلْفَهُ فَيُصَلُّونَ رَكْعَةً، ثُمَّ يَجِيءُ الْآخَرُونَ إِلَى مَقَامِ هَؤُلَاءِ فَيُصَلُّونَ رَكْعَةً |
|---|

(**شپږم صورت**) هرې ډلې ته به یو رکعات کوي، بیا به سلام ګرځوي ددې نه پس کوم خلق چه ددوی نه شاته دی هغوی دې اودریږي او یو رکعت دې اوکړي، بیا دې روستني ددوی ځائې ته راشي او یو رکعت مونځ دې اوکړي.

دا شپږم باب دې په دې باندې کلام په مخکښني باب کښې تیر شوې دی، په دې باب کښې مصنف رحمه الله د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حدیث ذکر کړې دې او په تیر شوی باب کښې ئې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه حدیث ذکر کړې وو دواړه حدیثونه په دې خبره باندې متفق دی چه د اولې ډلې په رکعتینو کښې موالاة نشته دې او د دویمې ډلې په رکعتینو کښې موالاة شته دې

| [۱۲۴۴] (۲) حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ، حَدَّثَنَا خُصَيْفٌ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْخَوْفِ، فَقَامُوا صَفَّيْنِ صَفٌّ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَصَفٌّ مُسْتَقْبِلَ الْعَدُوِّ، فَصَلَّى بِهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَةً، ثُمَّ جَاءَ الْآخَرُونَ فَقَامُوا مَقَامَهُمْ وَاسْتَقْبَلَ هَؤُلَاءِ الْعَدُوَّ، فَصَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَةً، ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ هَؤُلَاءِ فَصَلَّوْا لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً، ثُمَّ سَلَّمُوا، ثُمَّ ذَهَبُوا فَقَامُوا مَقَامَ أُولَئِكَ مُسْتَقْبِلِي الْعَدُوِّ وَرَجَعَ أُولَئِكَ إِلَى مَقَامِهِمْ فَصَلَّوْا لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً، ثُمَّ سَلَّمُوا". |
|---|

د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی. هغه ویلي دي مونږ وکړو مونځ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم د خوف، هغوی ودریدل وروسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه. او بل صف دشمن ته مخامخ وو. نو

(۱) د حافظ د کلام توجیه خو په ځۀ طریقې سره اوشي خو امام نووی کوم چه د حافظ نه متقدم دې هغه هم په شرح د مسلم کښې هم دا لیکي چه دې صورت لره حنفیانو اختیار کړې دې معلومه نۀ ده چه د خبره د کوم ځائې نه شوې ده چه حنفیانو دې لره اختیار کړې دې، والله تعالی اعلم ۱۲-

(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۶۰۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۳۷۵، ۳۷۶، ۴۰۹) (ضعیف)

مونځ وکړو دوی ته رسول الله ﷺ يو رکعات، بيا راغلل هغه نور ودريدل په ځای د هغوی، او مخامخ لاړل دوی دشمن ته، مونځ وکړو دوی ته پيغمبر ﷺ يو رکعات، بيايي سلام وګرځولو، نو دوی پاڅيدل مونځ يې وکړو ځانله يو رکعات، بيا سلام واړولو هغوی، بيا لاړل نو ودريدل په ځای د هغو مخامخ دشمن ته، او راواپس شول هغوی ځای د دوی ته مونځ يې وکړو ځانله يو رکعات، بيايي سلام واړولو.

[۱۲۴۵](1)حَدَّثَنَا تَمِيمُ بْنُ الْمُنْتَصِرِ، أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ يَعْنِي ابْنَ يُوسُفَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ خُصَيْفٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "فَكَبَّرَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَبَّرَ الصَّفَّانِ جَمِيعًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ بِهَذَا الْمَعْنَى، عَنْ خُصَيْفٍ، وَصَلَّى عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَمُرَةَ "هَكَذَا، إِلَّا أَنَّ الطَّائِفَةَ الَّتِي صَلَّى بِهِمْ رَكْعَةً، ثُمَّ سَلَّمَ مَضَوْا إِلَى مَقَامِ أَصْحَابِهِمْ، وَجَاءَ هَؤُلَاءِ فَصَلَّوْا لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً، ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى مَقَامِ أُولَئِكَ فَصَلَّوْا لِأَنْفُسِهِمْ رَكْعَةً". قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ حَبِيبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، أَنَّهُمْ غَزَوْا مَعَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ كَابُلَ فَصَلَّى بِنَا صَلَاةَ الْخَوْفِ.

د خُصيف نه روايت دی د هغي په اسناد او معنی سره، هغه ويلي دي: تکبير وويلو د الله نبي ﷺ، او دواړو صفونو هم تکبير وويلو. ويلي دي ابوداود: نقل کړی دی ثوري په دې معنی سره د خُصيف نه، او مونځ وکړو عبد الرحمن بن سمرة داسې مګر هغه ډله چې مونځ يې وکړو هغوی ته يو رکعات. بيا سلم وګرځولو هغه لاړل هغوی ځای د ملګرو خپلو ته، او راغلل دوی مونځ وکړو ځانله يو رکعات، واپس شول ځای د هغو کسانو ته، نو ځانله يې يو رکعات وکړو. ويلي دي ابوداود: مونږ ته په دې سره مسلم بن ابراهيم بيان کړی دی، مونږ ته عبد الصمد بن حبيب حديث بيان کړی دی، هغه وايي: ماته خبر راکړی دی زما پلار، چې هغوی غزوه کړې وه د عبد الرحمن بن سمرة سره د کابل، مونځ يې وکړو مونږ ته د خوف.

قوله، و صلی عبدالرحمن بن سمرة هکذا الا ان الطائفة التی صلی بهم رکعة،الخ،

## د حنفيانو داختيار کړی صورت کښې دليل:

د عبدالرحمن بن سمره دا حديث او په دې کښې چه کوم کيفيت ذکر دې هغه بيعنه هم هغه کيفيت دې کوم چه د حنفيانو مختار دې لکه څنګه چه د باب په شروع کښې دتمهيدی مضامينو د لاندې تير شوې دی.

**قوله:** قال ابوداؤد حدثنا بذلك،الخ، مصنف اولاً د عبدالرحمن واقعه تعليقا يعنی بغير د سند نه ذکر فرمائيلې وه او د دينه پس د هغې سند دې متن سره يوځائې کوی څکه چه،بذلك، لفظ ئې زيات کړې دې، بلاسند متن ذکر کولو ته په اصطلاح کښې تعليق وائی او سند ذکر کولو ته وصل وائی نو دا د هغه تعليق وصل شو.

د صلوة الخوف دکيفيت په حقله د حنفيه يو دليل خو د عبدالرحمن بن سمره حديث موقوف شو او دويم دليل د دوئ د ابن عباس رضي الله عنهما اثر دې يعنی د ابن عباس رضي الله عنهما هغه موقوف حديث کوم لره چه امام محمد په کتاب الآثار کښې د امام اعظم په سند سره روايت فرمائيلې دې (ذکره ابن الهمام فی فتح القدير)

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۶۰۷) (ضعيف)

# بَابُ مَنْ قَالَ يُصَلِّي بِكُلِّ طَائِفَةٍ رَكْعَةً وَلَا يَقْضُونَ

## باب دی په بیان د هغه چاکې چې ویلي یي دي: هرې ډلې ته به یو رکعات کوي او قضاء به نه راوړي

[۱۲۴۶](۱)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي الْأَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ زَهْدَمٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ بِطَبَرِسْتَانَ، فَقَامَ، فَقَالَ: أَيُّكُمْ صَلَّى مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْخَوْفِ؟ فَقَالَ حُذَيْفَةُ: أَنَا، فَصَلَّى بِهَؤُلَاءِ رَكْعَةً وَبِهَؤُلَاءِ رَكْعَةً وَلَمْ يَقْضُوا. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَمُجَاهِدٌ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ شَقِيقٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَيَزِيدُ الْفَقِيرُ، وَأَبُو مُوسَى. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَجُلٌ مِنَ التَّابِعِينَ لَيْسَ بِالْأَشْعَرِيِّ جَمِيعًا، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَدْ قَالَ بَعْضُهُمْ فِي حَدِيثِ يَزِيدَ الْفَقِيرِ: "إِنَّهُمْ قَضَوْا رَكْعَةً أُخْرَى"، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ سِمَاكٌ الْحَنَفِيُّ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فَكَانَتْ لِلْقَوْمِ رَكْعَةً رَكْعَةً وَلِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ".

(**اووم صورت**) د ثعلبه بن زهدم نه روایت دی هغه ویلي دي مونږ وو د سعید بن العاص سره په طبرستان کې، نو هغه ودریدلو، ویې ویل: په تاسو کې کوم د رسول الله ﷺ سره د خوف مونځ کړی دی؟ نو حذیفه وویل: ما، مونځ یې وکړې دې کسانو ته یو رکعات، او هغو کسانو ته یو رکعات، او هغوی قضایي رانه وړه. ویلي دي ابوداود: همدا رنګه روایت کړی دی عبید الله بن عبد الله او مجاهد د ابن عباس نه او هغه د نبي ﷺ نه. او عبد الله بن شقیق د ابو هریره نه او هغه د نبي ﷺ نه، او یزید الفقیر او ابو موسی. ویلي دي ابوداود: یو سړي د تابعینو نه چې اشعري نه دی، ټولو د جابر نه او هغه د نبي ﷺ نه، او بعضو ویلي دي: د شعبه نه روایت دی په حدیث د یزید الفقیر کې: هغوی د بل رکعات قضایي راوړه، او همدارنګه روایت کړی دی سماک الحنفي د ابن عمر نه او هغه د نبي ﷺ نه، او همدارنګه روایت کړی دی زید بن ثابت د نبي ﷺ نه هغه ویلي دي: نو شو د قوم لپاره یو یو رکعات، او د نبي ﷺ لپاره دوه رکعاته.

[۱۲۴۷](۲)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَخْنَسِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "فَرَضَ اللَّهُ تَعَالَى الصَّلَاةَ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْحَضَرِ أَرْبَعًا، وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ، وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً".

د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی هغه ویلي دي: فرض کړی دی الله تعالی مونځ په ژبه د نبي ستاسو په حضر کې څلور رکعاته، او په سفر کې دوه رکعاته، او په خوف کې یو رکعات.

تشریح: دا اووم باب دې په کوم کښې دا دی چه امام به په دواړو ډلو کښې هرې ډلې ته یو یو رکعت اوکړی او بس په دې باندې به اکتفاء اوکړې شی هغه ډله دې خانله دویم رکعت نه کوی، په ائمه اربعه کښې د دې هیڅوک هم قائل نهٔ دی، ابن عباس، حذیفه، اسحق بن

(۱): سنن النسائي /صلاة الخوف (۱۵۳۰)، (تحفة الأشراف: ۳۳۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۵/۵، ۳۹۹) (ضعيف)

(۲): صحيح مسلم /المسافرين ۱ (۶۸۷)، سنن النسائي /الصلاة ۳ (۴۵۷)، وتقصير الصلاة ۱ (۲۵۴، ۳۵۵)، والخوف ۱ (۱۵۳۳)، سنن ابن ماجه /إقامة الصلاة ۷۳ (۱۰۶۸)، (تحفة الأشراف: ۶۳۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۳۷/۱، ۲۴۳) (صحيح)

راهویه، سفیان ثوری وغیره بعضي علماء د دې قائل دی، دا مسئله د ټولو نه وړاندې د تمهیدی مضامینو په ضمن کښې تیره شوې ده د امام احمد هم یو روایت د دې د جواز بعضې شراحو لیکلي دي امام ترمذی د امام احمد نه نقل کړې دی چه د صلوة الخوف په حقله چه څومره روایتونه راغلي دی ټول صحیح دی هیڅ یو غیر صحیح روایت زما په علم کښې نشته.

بهرحال د یو رکعت واله روایات صحیح او ثابت دی خو د جمهورو د طرف نه د دې تاؤیل دا کولې شی چه مراد دا دې چه امام سره یو رکعت هره ډلې اوکړو او د، لا یقضون، واله چه کوم روایت دې د هغې مطلب دا اخلی چه روستو یعنی ویره لرې کیدلو نه پس د صلواة الخوف قضاء نشته دې یوځل ئې چه کوم اوکړو هغه صحیح شو، صاحب منهل لیکی چه دا جوابونه غیرظاهر دی او د هغهٔ خلقو مذهب قوی معلومیږی کوم چه دا وائی چه په ویرې کښې یو رکعت هم جائز دې.

## بَابُ مَنْ قَالَ يُصَلِّي بِكُلِّ طَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ

**(اتم صورت) باب دی په بیان د هغه چا کښې چې وايي: مونځ به کوي هرې ډلې ته دوه رکعاته**

دا اتم باب دې په کوم کښې چه دا دی چه امام به هرې ډلې ته پوره مونځ کوی، دا د شوافعو او بعضې علماؤ په نیز جائز دې کوم چه د صلوة المفترض خلف المتنفل لره جائز وائی د جمهورو او ائمه ثلاثه په نیز ناجائز دې، حنفیه وغیره د دې جواب دا ورکوی چه کیدې شی دا د هغهٔ وخت خبره وی، حين كانت الفريضة تصلى مرتين، یعنی دا د هغهٔ زمانې خبره به وی کله چه فرض مونځ به مکرر کول جائز وو روستو دا منسوخ شو، یو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه د جمهورو په نیز صلوة الخوف د سفر سره خاص نهٔ دې بلکه په حضر کښې هم جائز دې لکه څنګه چه په ابتدائی بحثونو کښې تیر شوې دی، کیدې شی دا واقعه د حضر وی نو څکه حضور ﷺ هرې ډلې ته دوه دوه رکعته اوکړل او دوه دوه رکعته هغوی په خپله اوکړل خو دلته دا یو اشکال به وی چه بیا حضور ﷺ په رکعتینو باندې سلام ولې اوګرځولو؟ و يمكن ان يجاب عنه انه خاص به، او دا هم وئیلې شی چه دا واقعه خو هم د سفر ده خو حضور ﷺ اتمام اختیار فرمائیلې وو او صحابه کرامو قصر اختیار کړې وو، والله تعالی اعلم.

[١٢٤٨] (١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْأَشْعَثُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: "صَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خَوْفٍ الظُّهْرَ، فَصَفَّ بَعْضُهُمْ خَلْفَهُ، وَبَعْضُهُمْ بِإِزَاءِ الْعَدُوِّ، فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ فَانْطَلَقَ الَّذِينَ صَلَّوْا مَعَهُ فَوَقَفُوا مَوْقِفَ أَصْحَابِهِمْ، ثُمَّ جَاءَ أُولَئِكَ فَصَلَّوْا خَلْفَهُ فَصَلَّى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعًا وَلِأَصْحَابِهِ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ". وَبِذَلِكَ كَانَ يُفْتِي الْحَسَنُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ فِي الْمَغْرِبِ يَكُونُ لِلْإِمَامِ سِتُّ رَكَعَاتٍ وَلِلْقَوْمِ ثَلَاثٌ ثَلَاثٌ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَلِكَ قَالَ سُلَيْمَانُ الْيَشْكُرِيُّ: عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

(١): سنن النسائي/الخوف١٨ (١٥٥٢)، (تحفة الأشراف: ١١٦٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٩، ٤٩) (صحيح)

د ابو بکرة نه روایت دی هغه ویلي دي: مونځ وکړو نبي ﷺ په خوف د ماسپخین کې، نو صف جوړ کړو بعضو وروسته د هغه نه، او بعضو مخامخ دشمن ته، نو مونځ یي وکړو هغوی ته دوه رکعاته، بیايي سلام وګرځولو، نو لاړل هغه کسان چې د هغه سره یي مونځ وکړو، نو ودریدل په ځای د ملګرو د هغوی، بیا راغلل هغه کسان نو مونځ وکړو هغوی وروسته د هغه نه، مونځ یي وکړو هغوی ته دوه رکعاته، بیايي سلام وګرځولو، د رسول الله ﷺ څلور رکعاته شول، او د ملګرو د هغه دوه دوه رکعاته شول او په همدې به حسن فتوی ورکوله ویلي دي ابوداود: او همدارنګه به وي په ماښام کې، د امام به شپږ رکعاته شي او د قوم به درې درې ویلي دي ابوداود: همدارنګه روایت کړی دی یحیی بن ابي کثیر د ابو سلمة نه او هغه د جابر نه، او هغه د نبي ﷺ نه، او همدارنګه سلیمان الیشکري ویلي دي: د جابر رضی الله عنه نه او هغه د نبي ﷺ نه

**تشریح: قوله:** قال ابوداؤد و کذلك فی المغرب یکون للامام ست رکعات، مصنف په طریقې د قیاس سره فرمائی چه په دې اخری باب کښې د صلوة الخوف چه کومه طریقه ذکر ده چه امام به هرې ډلې ته پوره مونځ کوی داسې به د ماښام په مانځه کښې کولې شی نو د امام به شپږ رکعتونه شی او د قوم به درې

صاحب منهل لیکلي دی چه صرف قیاس نۀ دې بلکه په دارقطنی او حاکم کښې په یو مرفوع روایت کښې هم دغه شان ذکر دی چه د هغې راوی ابوبکره دې او حافظ چه کوم دا لیکلي دی چه د صلوة الخوف په روایتونو کښې د ماښام د مانځه څۀ کیفیت په کوم حدیث کښې نۀ دې راغلې نو د حافظ دا خبره مسلم یعنی صحیح نۀ ده او دا هم کیدې شی چه د حافظ صاحب مراد دا وی چه د ماښام د رکعتونو د تجزي په باره کښې کوم روایت ثابت نۀ دې (منهل) خو اکثر علماء چونکه د صلوة المفترض خلف المتنفل قائل نۀ دی نو ځکه د دوئ په نیز دلته به د ماښام د دریو رکعتونو تجزیه وی او هغه دا چه د حنفیه او مالکیه په نیز امام به اولې ډلې ته دوه رکعتونه اوکړی او دویمې ډلې ته به یو رکعت او د امام شافعی او احمد په نیز غوره هم دا ده خو جائز دا هم ده چه د دې عکس اوکړې شی اولې ډلې ته یو رکعت او دویمې ډلې ته دوه رکعته اوکړي

تر دې ځائې پورې د صلوة الخوف ابواب پوره شو، د دېنه پس مې زړۀ غواړی چه احد الصحیحن یعنی صحیح مسلم کښې د صلوة الخوف په حقله چه کوم روایتونه ذکر دی د هغې نشاندهی دلته اوکړې شی دې دپاره چه موجب بصیرت شی حضرت امام بخاری د صلوة الخوف روایتونه یوځائې نۀ دی ذکر کړې بعضې روایتونه ئې په کتاب الصلوة او بعضې ئې په کتاب المغازی کښې ذکر فرمائیلې دی

په اصل کښې د امام نووی کلام د بنده د نظر نه تیر شو هغه زما ډیر خوښ شو په دې باندې مې دا خیال پیدا شو چه د دې تخلیص اوکړې شی هغۀ فرمائی چه امام مسلم د صلوة الخوف سره متعلق څلور روایتونه ذکر فرمائیلې دی

(۱) حدیث د ابن عمر رضی الله عنه د دینه پس هغوی په دې حدیث کښې د صلوة الخوف چه کوم

صورت ذکر کړې دې هغهٔ ئې بیان کړو (چه دهغې د نقل کولو مونږ ته ضرورت نشته) زمونږ په نیز په سنن ابوداؤد کښې دا حدیث په پنځم باب کښې ذکر دې امام نووی فرمائی چه دې کیفیت لره امام اوزاعی او أشهب مالکی اختیار کړې دې.
(۲) هغهٔ فرمائی چه دویم حدیث د سهل بن ابی حثمه دې د کوم کیفیت چه دا دې، الخ، زهٔ وایم چه زمونږ په نیز دا حدیث په دویم او دریم باب کښې ذکر دې، امام نووی فرمائی چه دې کیفیت لره امام شافعی او ابوثور وغیره اختیار کړې دې، (۳) حدیث د جابر رضی الله عنه د کوم کیفیت چه دا دې، الخ، زمونږ په نیز دا کیفیت د باب په اول کښې د ابوعیاش زرقی په حدیث سره مروی دې، امام نووی فرمائی چه دې کیفیت لره امام شافعی، ابن ابی لیلی، ابویوسف اختیار کړې دې کله چه دښمن د قبلې په جهت کښې وی، (۴) حدیث د جابر رضی الله عنه په کوم کښې چه ذکر شوې کیفیت دا دې چه حضور ﷺ هرې ډلې ته دوه دوه رکعته کړې دی، زمونږ په نیز دا صورت د په اتم باب کښې د ابوبکره په حدیث سره مروی دې، خپله امام نووی هم دا لیکلی دی چه دا کیفیت په سنن ابوداؤد کښې د ابوبکره په حدیث سره مروی دې هغه فرمائی چه په امامانو کښې امام شافعی د دې قائل دې او د حسن بصری نه هم دا منقول دی، د دینه پس هغوی څهٔ نور روایتونه ذکر کړې دی په کومو کښې چه حدیث د ابن مسعود لره ئې هم ذکر کړې دې کوم چه په شپږم باب کښې تیر شوې دې هغه فرمائی چه، وبهذا اخذ ابوحنیفة.

## باب صَلَاةِ الطَّالِبِ

### باب دې په بیان د مونځ د طلبونکي کې

داسې اوګنړئ چه دا د صلوة الخوف تکمله ده مصنف په ترجمة الباب کښې صرف یو جزء ذکر فرمائیلې دې، د طالب مقابل مطلوب دې نو څکه امام بخاری رحمه الله ترجمه قائمه اوفرمائیله، باب صلوة الطالب والمطلوب راکبًا و ایماءً د حدیث الباب د مضمون نه وړاندې یوه اختلافی فقهي مسئله واورئ، طالب هغه مجاهد سړې دې کوم چه د دښمن په تعاقب کښې وی او هغهٔ پسې په منډه وی او مطلوب د دې برعکس هغه مسلمان سړې دې کوم چه خپل ځان بچ کولو دپاره په منډه وی او یو کافر د دهٔ په تعاقب کښې وی.

**د ائمه مذاهب:**

د مطلوب په باره کښې خو اتفاق دې (د دهٔ د مجبوره کیدو د وجه نه) چه هغه راکبا او ایماء یعنی په سورلئ او په اشارې سره مونځ کولې شی باقی ماشیا یعنی په روانه روانه کولې شی او که نهٔ، دشافعیه او حنابله په نیز ماشیا هم کولې شی بخلاف د حنفیانو چه د دوئ په نیز مسئله مصرح ده ماشیا جائز نهٔ دې د رکوب په صورت کښې خو چونکه سیر یعنی تلل فعل د دابه یعنی د سورلئ کار دې نو څکه ګنجائش شته او په مشی یعنی دتللو په صورت کښې سیر خپله فعل د مصلی دې هغه جائز نهٔ دې، حضرت شیخ د بخاری په تراجمو کښې لیکلی دی چه د امام بخاری میلان هم د حنفیانو مسلك طرف ته معلومیږی.
د طالب په باره کښې اختلاف دې د حنفیانو په نیز خو د دهٔ مونځ راکبًا مطلقا جائز نهٔ دې د

شافعیه او مالکیه په نیز د طالب مونځ په یو قید سره جائز دې او هغه قید د مالکیه په نیز د ویره د دښمن د فوت کیدلو ده او د شافعیه په نیز ویره د انقطاع عن الرفقاء ده که طالب د سورلئ نه خکښته راکوز شي مونځ کوی نو د خپلو ملګرو نه د جدا کیدو ویره ده او احتمال شته ددې چه دښمن دهٔ ته راواپس شي اودا طالب په خپله مطلوب جوړ شي.

[۱۲۴۹]()حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرٍ، عَنِ ابْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُنَيْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى خَالِدِ بْنِ سُفْيَانَ الْهُذَلِيِّ وَكَانَ نَحْوَ عُرَنَةَ، وَعَرَفَاتٍ، فَقَالَ: "اذْهَبْ فَاقْتُلْهُ"، قَالَ: فَرَأَيْتُهُ وَحَضَرَتْ صَلَاةُ الْعَصْرِ، فَقُلْتُ: إِنِّي لَأَخَافُ أَنْ يَكُونَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ مَا إِنْ أُؤَخِّرِ الصَّلَاةَ، فَانْطَلَقْتُ أَمْشِي وَأَنَا أُصَلِّي أُومِئُ إِيمَاءً نَحْوَهُ، فَلَمَّا دَنَوْتُ مِنْهُ، قَالَ لِي: مَنْ أَنْتَ؟ قُلْتُ: رَجُلٌ مِنَ الْعَرَبِ بَلَغَنِي أَنَّكَ تَجْمَعُ لِهَذَا الرَّجُلِ فَجِئْتُكَ فِي ذَاكَ، قَالَ: إِنِّي لَفِي ذَاكَ، فَمَشَيْتُ مَعَهُ سَاعَةً حَتَّى إِذَا أَمْكَنَنِي عَلَوْتُهُ بِسَيْفِي حَتَّى بَرَدَ.

ابن عبد الله بن انیس د خپل پلار نه روایت کوي، هغه وېلي دي: رسول الله ﷺ زه ولېږم خالد بن سفیان الهذلي ته، او هغه وو په طرف عُرنة او عرفات، هغه وفرمایل: لاړه شه! هغه قتل کړه. هغه وایي چې ما هغه ولیدلو او مونځ د مازیګر حاضر شوی وو، ما وویل: زه ویریدم که مونځ وروسته کړم نو زما او د هغه په مینځ کې به عسر حائل شي، زه شروع شوم چې روان وم او ما مونځ کولو په اشارې کولو سره، هرکله چې زه نزدې شوم هغه ته، ماته یې وویل: ته څوک یې؟ ما وویل: زه یو سړی یم د عربو نه، ماته دا خبره رارسېدلې ده چې ته خلق جمع کوې په مقابله د دې سړي کې، نو زه تاته د دغې باره کې راغلی یم، هغه وویل: زه په همدغې کې مصروف یم، زه د هغه سره یو ساعت روان وم، تردې چې قادر شوم په هغه ما پرې توره اوچته کړه تردې چې مړ شو.

حدثنا ابومعمر عبدالله بن عمرو الخ، قوله، عن عبدالله بن انیس عن ابیه قال بعثنی رسول الله صلی الله علیه وسلم الی خالد بن سفیان الهُذلی، الخ،

## شرح حدیث:

د عبدالله بن انیس نه د دوئ ځوئې د چا نوم چه عبدالله دې (هسې خو د دهٔ څو ځامن دی په کومو کښې چه د یو نوم عبدالله دې) روایت کوی چه حضور ﷺ ما ته دا حکم فرمائیلې دې چه تهٔ یو کافر اووژنه راشه د چا نوم چه خالد بن سفیان دې کوم به چه تاته میدان عرفات سره نزدې ملاوشي (دا ډیر اوږد سفر وو د مدینې نه ترعرفات پورې) هغه وائی چه زهٔ د دې کار دپاره د مدینې نه روان شوم تر دې چه عرفات ته نزدې اورسیدلم، او کوم ځائې چه حضور ﷺ فرمائیلې وو هغه ما په هغهٔ ځائې کښې اوموندلو دغه وخت د مازیګر د مونځ وخت شوې وو نو ما سوچه اوکړو که زهٔ دې کافر طرف ته د مانځه نه وراندې متوجه شوم نو کیدې شي دهٔ سره دمشغولیدو د وجه نه په مانځه کښې روستوالې راشی، د روایت الفاظ دی چه، فقلت انی لاخاف ان یکون بینی و بینه ما ان أؤخر الصلوة، لفظی ترجمه دا ده چه ما په زړهٔ کښې اووئیل چه زهٔ ویره کوم د دې خبرې چه اوموندلې شی زما او د دې کافر په مینځ

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۱۴۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۹۶۷۳) (حسن)

کښې داسې ځيز چه(د څۀ د وجه نه) مونځ روستو کړم، لفظ د أنْ دلته زائد دې.
څکه ما د مانځه نيت اوتړلو او هغه کافر طرف ته روان شوم او په اشارې سره مې مونځ کولو(هغۀ ته تر رسيدلو پورې زما مونځ هم پوره شوې وو) کله چه زۀ دغه کافر ته نژدې اورسيدلم نو هغۀ زما نه سوال اوکړو تۀ څوك ئې؟ ما اووئيل زۀ يو عرب يم (لکه څنګه چه تۀ هم عرب ئې لهذا ستا رور او همدرد يم) ما دۀ ته د راتلو مقصد بيان کړو چه زۀ دې دپاره راغلې يم ما ته دا معلومه شوې ده چه تۀ دې سړی (د رسول الله ﷺ) دپاره د خلقو (جنګولو دپاره) جمع کوئې زه په هغې کښې ستا د مدد دپاره راغلې يم هغۀ اووئيل، انی لفی ذالك، بيشکه زۀ هم په دې کار کښې اخته يم ما لږ وخته پورې دۀ سره دغه شان خبرې اترې کولې تر دې چه کله(زما د طرف نه مطمئن شو او پوهه شو چه دا هم خپل سړې دې) هغۀ ما ته د حملې کولو موقع راکړه زۀ په هغۀ باندې په خپله توره باندې غالب شولم او هغه يخ شو.

**ما استفيد من الحديث:**

کافر ته داسې خبره جوړول او دهوکه کښې اچولو سره وژل په اجماع سره جائز دی په حديث کښې د کعب بن الاشرف يهودی د وژلو قصه مشهوره ده چنانچه محمد بن مسلمه ﷺ د حضور ﷺ د صريح اجازت نه پس دۀ لره هم داسې په دهوکه کښې اچولې او وژلې وو، قصه د ابوداؤد په کتاب الجهاد کښې به راشی او په بخاری کښې خو زيات تفصيل دې ډيره خونده وره واقعه ده.

د عبدالله بن انيس واله حديث لره امام بيهقی په دلائل النبوة کښې هم ذکر کړې دې په هغې کښې دې چه دغه صحابی د هغه کافر سر خپل ځان سره دمکې نه مدينې راوړلو او حضور ﷺ ته ئې وړاندې کيخودلو په دې کښې دا هم دی چه حضور ﷺ دې صحابی لره د لرې نه راتلونکې اوليدلو او اونې فرمائيل چه، افلح الوجه(دا سړې په مقصد کښې کامياب شو) په دې باندې دې صحابی سمدستی اووئيل چه، افلح وجهك يا رسول الله، چه أصل کاميابی خو ستاسو دپاره ده ای د الله رسول ﷺ د دينه پس حضور ﷺ دۀ لره خپل ځان سره خپل کور ته بوتلو او دوئ له ئې يوه عصا(همسا) ورکړه چه دا واخله او ځان سره ئې کيږده او په دې عصا سره به ما سره په جنت کښې ملاويږې چنانچه هغوی د مرګ نه وړاندې دا وصيت اوفرمائيلو چه ما سره دې په قبر کښې دا عصا دفن کړې شی چنانچه د دوئ په وصيت باندې عمل اوکړې شو دا واقعه په څلورم کال د هجرت کښې پيښه شوې وه او په دې سفر کښې د دې صحابی اتلس ورځې لګيدلې وې (منهل) د دې واقعې د وجه نه د عبدالله بن انيس لقب صاحب المخصره شو، رضی الله تعالی عنه و عن سائر الصحابة و رضی عنا بوسليتهم.

**حديث الباب د جمهور خلاف دې:**

د دې حديث نه معلومه شوه چه د طالب دپاره هم صلوة راکبًا بلکه ماشيا جائز دې کوم چه د شافعيه او مالکيه په نيز اګر که يو قيد سره جائز دې خو بظاهر هغه قيد دلته مفقود دې او د حنفيه او حنابله په نيز خو جائز نۀ دې البته د مطلوب دپاره جائز دې عند الجمهور راکبا و ماشيا دواړه شان او د حنفيه په نيز صرف راکبًا، غرض دا چه حديث د حنفيانو او د نورو

ائمه هم خلاف دي، د دې جواب دا کیدې شي چه دا مسئله د مسائل خلافیه نه ده د فرض مونځ سره د دې تعلق دې د دې دپاره چه د کوم مضبوط دلیل ضرورت دې هغه دلته نشته دې ځکه چه دا د صحابی فعل دې او معلومه نۀ ده چه حضور ﷺ ته د دې خبر شوې وو او که نۀ، او که اومنلې شي چه ظاهره دا ده چه خبر شوې وو نو دا هم کیدې شي چه دا د دې صحابی خصوصیت وی، هغوی په دې شان سره دا مونځ د حضور ﷺ د فرمان پوره کولو دپاره کړې وی د کوم دپاره چه دوئ په خصوصي توګه باندې مکلف جوړ کړې شوې وو، او د حضور ﷺ د اجازت یا د سکوت نه پس په جواز کښې څۀ تامل کیدې شي غرض دا چه د خصوصیت د محل احتمال دلته ښکاره دې، هذا ما عندی والله تعالی اعلم، او کیدې شي دا د هغۀ زماني واقعه وی کله چه په مانځه کښې عمل کثیر جائز وو، فلیسل.

# کتاب التطوع

## نوافلو او سنتونو احکام و مسائل

## بَابُ التَّطَوُّعِ وَرَكَعَاتِ السُّنَّةِ

### باب دې په بیان د تفریع د بابونو د نفلو کې او په رکعاتونو د سنتو کې

دا لوې ستیشن راغلو، په کتاب الصلوة کښې ړومبې مصنف د عام مونځونو احکام بیان کړل، د دینه پس د مخصوص مونځونو بیان شروع شو، جمعه، عیدین، استسقاء، کسوف بیا ابواب السفر او د دې په آخره کښې صلواة الخوف.

اوس د دې ځائې نه د نوافل او سنن بیانوی د دې په ضمن کښې وتر او تراویح لره هم بیان فرمائیلې دی د جمهورو په نیز صلوة الوتر چونکه سنت دی نو ځکه هغې لره هم د دې په ضمن کښې واخستلو.

د دینه پس زده کول پکار دی چه تطوع، سنت، نفل، مندوب، مستحب، دا ټول الفاظ قریب المعنی دی یعنی هغه عبادت د کوم چه په شریعت کښې ترغیب راغلې دې او ترک ئې هم جائز دې، هسې خو د سنت اطلاق عموما په سنت مؤکده باندې کیږی او د نفل، مندوب، مستحب وغیره په سنت غیر مؤکده باندې او د تطوع لفظ عام دې هغه دواړو لره شامل دې لهذا ترجمة الباب کښې عطف الخاص علی العام کیږی.

دغه شان دا هم زده کول پکار دی چه د سنن او نوافلو په مشروعیت کښې علماؤ دا حکمت لیکلې دې بلکه د ابوداؤد په یو حدیث کښې د دې تصریح ده چه فرض مونځونو کښې که څۀ نقص واقع شوې وی نو د هغې تلافی به اوشی دغه شان دفرض مونځونو اهمیت او د دې استعداد پیدا کولو دپاره په دې شان چه په شروع کښې نفس لره په نفلو کښې مشغول اوساتلې شی چه فرض مونځ کوم چه اصل دې د هغې تر شروع کولو پورې انقطاع عن الغیر راشی او بیا فرض مونځ په پوره توجه سره او نشاط سره اوکړې شی، د تهجد د مانځه نه وړاندې په شروع کښې چه کوم دوه لنډ رکعتونه کوم چه په حدیث کښې راغی د دې مصلحت هم دا ښودلې شوې دې چه په شروع کښې دوه رکعتونه لنډ اوکړې شی دې دپاره چه ستتیا او د خوب اثر لرې شی.

### د رواتبو په باره کښې د مالکیه اختلاف:

دا هم زده کول پکار دی چه د جمهور علماء د فرض مونځونو دپاره د رواتبو) سنن مؤکده(قائل دی اګر که په تعداد کښې اختلاف دې خو مالکیه په دې کښې د جمهورو سره نۀ دی هغوی فرمائی چه د مانځه بس دوه قسمه دی، محدود او غیر محدود، محدود یعنی فرض مونځونه کوم چه متعین دی په کومو کښې چه څۀ کمې یا زیاتې نۀ شی کیدې او غیر محدود یعنی نفل مونځونه په کومو کښې چه څۀ توقیت او تحدید یعنی څۀ وخت او حد نشته دې سړی لره اختیار دې چه څومره غواړی هغومره دې اوکړی خو صاحب د منهل (د ابوداؤد شارح چه مالکی دې) هغه لیکی چه بیا هم بهتره داده چه کوم تعداد په احادیثو کښې راغلې دې هغه دې اوکړی یعنی، اربع قبل الظهر و اربع بعدها، اربع قبل العصر و ست بعد المغرب، البته صرف د صبا د سنتو په باره کښې د دوئ یو قول دا دې چه هغه سنت دی او دویم قول دا دې چه هغه رغیبیه دی د رغیبه رتبه د دوئ په نیز باندې د سنت نه کمه ده او د نفلو نه زیاته ده، د دینه پس زده کړئ چه د رواتبو د تعداد په حقله اختلاف دې د شافعیه او حنابله په نیز لس رکعاتونه دی او د حنفیه په نیز دولس، فرق د ماسپخین د وړاندېنی سنتو کښې دی، زمونږ په نیز باندې څلور رکعاته دی او د هغوی په نیز باندې دوه رکعاته دی.

[۱۲۵۰](¹)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، حَدَّثَنِي النُّعْمَانُ بْنُ سَالِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَوْسٍ، عَنْ عَنْبَسَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا بُنِيَ لَهُ بِهِنَّ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ".

د ام حبیبة نه روایت دی هغې ویلي دي: ویلي دي نبي ﷺ: چا چې مونځ وکړو په شپه او ورځ کې دولس رکعاته نفل د هغه دپاره په دې سره یو کور په جنت کې جوړ شي.

قوله، عن ام حبیبة قالت قال النبی صلی الله علیه وسلم من صلی فی یوم، الخ، او د نسائی شریف په روایت کښې دی چه، من ثابر علی سنتی عشر رکعة، دا د باب ړومبې حدیث دې حضرت ام حبیبه د حضور ﷺ ارشاد نقل کوی چه کم سړی روزانه دولس رکعاته نفل کوی نو د هغۀ دپاره په جنت کښې یو محل جوړولې شی، ثابرۀ د مثابرة نه دې د کوم معنی چه مواظبة او همیشوالې دې، په دې حدیث کښې د رواتبو تعداد دولس ذکر دې د دېنه پس په دویم حدیث کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها حدیث دې په هغې کښې هم قبل الظهر څلور رکعاته دی خو دریم حدیث د ابن عمر رضی الله عنه چه وړاندې راروان دې په هغې کښې قبل الظهر رکعتین دی لکه څنګه چه شافعیه وغیره وائی، کیدې شی کله حضور ﷺ په رکعتینو باندې اکتفاء کړې وی یا دا چه په جومات کښې دوه رکعاته کما قال ابن عمر او په کور کښې څلور رکعاته کما فی حدیث عائشه، حضرت عائشه رضی الله عنها د کور حالت بیانوی او ابن عمر رضی الله عنه د جومات، نو کیدې شی چه د جومات واله روایت د تحیة المسجد وی،

¹): صحیح مسلم/المسافرین ۱۵ (۷۲۸)، سنن النسائي/قیام اللیل ۵۷ (۱۸۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸٦۰)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۱۹۳ (٤۱۵)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۰۰ (۱۱٤۱)، مسند احمد (٦/٤۲٦، ۳۲۷)، سنن الدارمي/الصلاة ۱٤٤ (۱٤۷۸) (صحیح)

[۱۲۵۱]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ. ح حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، الْمَعْنَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ التَّطَوُّعِ، فَقَالَتْ: "كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الظُّهْرِ أَرْبَعًا فِي بَيْتِي، ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ، ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، وَكَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ، ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، وَكَانَ يُصَلِّي بِهِمُ الْعِشَاءَ، ثُمَّ يَدْخُلُ بَيْتِي فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، وَكَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ فِيهِنَّ الْوِتْرُ، وَكَانَ يُصَلِّي لَيْلًا طَوِيلًا قَائِمًا وَلَيْلًا طَوِيلًا جَالِسًا، فَإِذَا قَرَأَ وَهُوَ قَائِمٌ رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَائِمٌ، وَإِذَا قَرَأَ وَهُوَ قَاعِدٌ رَكَعَ وَسَجَدَ وَهُوَ قَاعِدٌ، وَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ صَلَاةَ الْفَجْرِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د عبد الله بن شقيق نه روايت دی هغه ويلي دي: ما تپوس وکړو د عائشي رضي الله عنها نه د مانځه د رسول الله ﷺ د نفلي، هغې ووېل: هغه به مونځ کولو مخکي د ماسپخين نه څلور رکعاته زما په کور کي، بيا به وتلو مونځ به يي کولو خلقو ته، بيا به راتلو زما کور ته دوه رکعاته به يي کول، او وو چي خلقو ته به يي مونځ کولو د ماښام، بيا راتلو زما کور ته دوه رکعاته به يي کول، او وو چي ماسخوتن مونځ يي کولو هغوی ته، بيا راتلو زما کور ته نو دوه رکعاته به يي کول، او وو چي مونځ يي کولو دشپي نهه رکعاته په هغي کي به وتر هم وو، او وو چي مونځ به يي کولو اوږده شپه په ولاړه، او اوږده شپه په ناسته، کله چي به يي قراءت کولو او ولاړ به نو رکوع او سجده به يي هم په ولاړه کوله، او چي کله به يي قراءت کولو او هغه به ناست وو، نو رکوع او سجده به يي وکړه او هغه به ناست وو، او وو چي کله به صباح وختلو دوه رکعاته مونځ به يي کولو، بيا وتلو خلقو ته به يي د سحر مونځ کولو.

## شرح حديث:

**قوله:** و كان يصلى ليلاً طويلاً قائما و ليلا طويلا جالسا. يعني حضور ﷺ به د شپي په يوه حصه کښي تر ډير وختته پوري مونځ په ولاړه باندې کولو او په يوه حصه کښي به تر ډيره وختته پورې په ناسته باندې کولو يعنی هم په يوه شپه کښي به څۀ نفلونه په ولاړه باندې او څۀ په ناسته باندې کول، او بعضې شراحو دا معنی ليکلې ده چه حضور ﷺ به د شپې ډير اوږده اوږده رکعاتونه کول په بعضې شپو کښي به په ولاړه باندې او په بعضې شپو کښي په په ناسته باندې کول، او دريمه معنی دا ليکلې ده چه حضور ﷺ به د په کثرت سره مونځ کولو او په کثرت سره به ئې قيام او قعود کولو، د بنده په نيز باندې رومبې مطلب زيات راجح دې بلکه متعين دې ځکه چه متبادر معنی هم هغه ده او هم دې لره صاحب منهل ليکلې ده.

فاذا قرا و هو قائم ركع و سجد و هو قائم..الخ، وړاندې دا معلومه شوې ده چه حضور ﷺ به د تهجد مونځ قائما او قاعدا دواړه شانه کولو په دې باندې وړاندې فرمائی چه که حضور ﷺ به مونځ په ولاړه شروع کړو نو رکوع او سجدې به هم قائما کولې يعنی داسې به نۀ وه چه د مونځ شروع خو به ئې قائما کوله او بيا به به رکوع ته تللو نه مخکښې کيناستل او

[1]): صحيح مسلم/المسافرين ۱۶ (۷۳۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۶۳ (۳۷۵)، ۴۱۰ (۴۳۶)، سنن النسائي/قيام الليل ۱۸ (۱۶۴۷، ۱۶۴۸)، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۰۷)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۴۰ (۱۲۲۸)، مسند احمد (۶/۳۰، ۲۱۶) (صحيح)

رکوع به ئې په ناسته کوله، بيا وړاندې فرمائی که مونځ به ئې په ناسته شروع کړلو نو رکوع او سجدې به ئې هم دغه شان کولې داسې نۀ وه چه مونځ خو به ئې شروع کړې وو په ناسته باندې او بيا رکوع ته تللو نه وړاندې به اودريدل او په ولاړه باندې به رکوع ته تلل، دا خو شو د دې جملې مطلب.

## د تعارض بين الحديثين جواب:

خو علماء ليکلي دی چه داسې کول ثابت دی چه مونځ ئې شروع کړې وی قاعدا او بيا رکوع او سجدې ئې قائما کړې وی، لکه څنګه چه د ابواب التشهد نه وړاندې په باب فی الصلوة القاعد کښې د حضرت عائشه ﷺ يو حديث تير شوې دې د کوم مضمون چه دا دې چه حضور ﷺ به هميشه د تهجد مونځ په ولاړه باندې کولو تر دې چه په دوئ باندې بوډاولي راغلو نو بيا ئې په ناسته باندې کولو او اکثر به ئې قراءت په ناسته باندې کولو بيا چه کله به ديرش څلويښت آتيونه پاتې شول نو اودريدل او هغه به ئې پوره کول او بيا به رکوع ته تلل، د دې مشهور جواب دا دې چه دا په اختلاف د اوقاتو او زمانو باندې محمول دې د يوې زمانې حال هغه دې کوم لره چه دلته بيانوی او کومې زمانې حال هغه دې کوم چه په تير شوی باب کښې تير شول، نۀ به ئې هميشه داسې کول او نۀ هميشه هغسې، د دې يو جواب بل هم کيدې شي کوم چه د حضرت ګنګوهی په تقرير کښې دې هغه دا چه دلته کومه نفی کوی چه رکوع ته تللو نه وړاندې به حضور ﷺ نۀ اودريدل يعنی د قراءت پوره کولو نه پس بلکه که د رکوع نه وړاندې اودريدل منظور وې نو دې دپاره به ئې څۀ آيتونه ايسارول او د اودريدلو نه پس به ئې هغه لوستل نو بيا به رکوع ته تلل نو نفی د اودريدلو نه سمدستی رکوع ته د تللو کړې ده، فلا تعارض بين الروايتين.

(**مسئله**) که مونځ په ناسته باندې شروع کړې شی او بيا دې لره په ولاړه باندې پوره کړې شی نو په دې کښې د جمهورو په نيز هيڅ کراهيت نشته ځکه چه په دې کښې انتقال من الادنی الی الاعلی دې خو د بعضو په نيز باندې مکروه دې او د دې عکس يعنی قائما شروع کړی او بيا قاعدا ئې پوره کړی نو که داسې د عذر د وجه نه وی نو بيا خو هيڅ باک نشته دې او که بغير د عذر نه وی نو عند الجمهور په دې کښې هيڅ حرج نشته دې خو دامام ابوحنيفه په نيز جائز مع الكراهيت دې او د صاحبينو او اشهب من المالكيه په نيز جائز نۀ دې(منهل)

[۱۲۵۲]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الظُّهْرِ رَكْعَتَيْنِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ، وَبَعْدَ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ فِي بَيْتِهِ، وَبَعْدَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ رَكْعَتَيْنِ، وَكَانَ لَا يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ حَتَّى يَنْصَرِفَ فَيُصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ ".

د عبد الله بن عمر ﷺ نه روايت دی بېشکه رسول الله ﷺ وو چې مونځ يې کولو مخکې د ماسپخين نه دوه رکعاته، او وروسته د هغې نه دوه رکعاته، او وروسته د ماښام نه دوه رکعاته په خپل کور کې، او وروسته د ماسخوتن نه دوه رکعاته، او وو چې مونځ يې نه

[1]): صحيح البخاري/الجمعة ۳۹ (۹۳۷)، صحيح مسلم/الجمعة ۱۸ (۸۸۲)، سنن النسائي/الجمعة ٤٢ (۱٤۲۸)، (تحفة الأشراف: ۸۳٤۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ۲۳ (٦۹)، مسند احمد (۳٤/۲) (صحيح)

کولو وروسته د جمعې نه تردې چې راوبه ګرځیدلو نو دوه رکعاته به یې کول.

[۱۲۵۳]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ لَا يَدَعُ أَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ، وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْغَدَاةِ".

د عائشې رضی الله عنها نه روایت دی ببشکه نبي ﷺ وو چې نه یې پرېښودل څلور رکعاته مخکې د ماسپښین نه او دوه رکعاته مخکې د سحر نه.

## بَابُ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ

### باب دی په بیان د دوه رکعاتونو د سحر کې

[۱۲۵۴]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي عَطَاءٌ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمْ يَكُنْ عَلَى شَيْءٍ مِنَ النَّوَافِلِ أَشَدَّ مُعَاهَدَةً مِنْهُ عَلَى الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الصُّبْحِ".

د عائشې رضی الله عنها نه روایت دی هغې ویلي دي: ببشکه رسول الله ﷺ نه وو په هېڅ شي د نوافلو باندې ډیر اهتمام کونکی د ده نه په دوه رکعاتونو د باندې مخکې د صباح نه.

قوله، عن عائشة..لم يكن على شيء من النوافل اشد معاهدة منه على الركعتين قبل الصبح، حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه حضور ﷺ به د هیڅ یو نفلو دومره اهتمام نۀ کولو څومره چه به ئې د صبا د سنتو کولو، د معاهده معنی د محافظت او ساتنې ده، یعنی اهتمام او رعایت، صاحب منهل فرمائی چه په دې حدیث کښې په مالکیه باندې رد دې خکه چه هغوی دې دوو رکعاتونو ته رغیبه وائی، یعنی صرف د رغبت یو څیز کوم چه زیات اهم نۀ وی د کوم مرتبه چه د سنت نه کمه وی او د بعضې علماؤ په نیز لکه حسن بصری هغوی د دې دوو رکعاتونو د وجوب قائل دی.

## بَابٌ فِي تَخْفِيفِهِمَا

### باب دی په تخفیف د دواړو باندې

[۱۲۵۵]([3])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخَفِّفُ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الْفَجْرِ حَتَّى إِنِّي لَأَقُولُ: هَلْ قَرَأَ فِيهِمَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ؟".

د عائشې رضی الله عنها نه روایت دی، هغې ویلي دي: وو نبي ﷺ چې تخفیف یې کولو په دوه رکعاتونو کې مخکې د مانځه د صباح نه، تردې چې ما به ویل ایا سورة الفاتحه یې پکې ولوستله.

[1]: صحيح البخاري/التهجد ٣٤ (١١٨٢)، سنن النسائي/قيام الليل ٤٧ (١٧٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٣، ٦٣، ١٤٨) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/صلاة الليل ٢٧ (١١٦٩)، صحيح مسلم/المسافرين ١٤(٧٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٣، ٥٤، ١٧٠) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/التهجد ٢٨ (١١٧١)، صحيح مسلم/المسافرين ١٤ (٧٢٤)، سنن النسائي/الافتتاح ٤٠ (٩٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٩١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٠، ٤٩، ١٠٠، ١٦٥، ١٨٣، ١٨٦، ٢٣٥) (صحيح)

عن عائشة رضی الله عنها قالت.... حتی انی لاقول هل قراء فیهما بام القرآن، د صبا په سنتو کښې د قراءت تخفیف د حضور اقدس ﷺ نه ثابت دې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه دوئ به دا سنت دومره مختصر او لنډ ادا کول چه ما به په خپل زړه کښې وئیل چه معلومه نۀ ده چه حضور ﷺ په دې کښې سورة فاتحه لوستلې هم ده او که نۀ یعنی د سورت یوځائې کول خو پریږده چه په سوره فاتحې کښې تردد فرمائی.

د دینه وجه نه د علماؤ په دې کښې اختلاف اوشو چه په دې مونځ کښې قراءت شته او که نۀ، ابوبکر بن الاصم، ابن علیه، بعضې ظاهریه په دې کښې مطلقا دقراءت قائل نۀ دې او امام مالک او بعضې شافعیه صرف د سوره فاتحې قائل دی،(عینی) جمهور علماء د فاتحې او ضم سورت دواړو قائل دی چنانچه د حضرت عائشه رضي الله عنها د حدیث نه پس مصنف د ګنړو صحابه کرامو په روایاتو سره دا ثابته کړې ده چه په دې مانځه کښې د نورو مونځونو پشان فاتحه سره د ضم د سورة سره ده، د ابوهریره رضي الله عنه په روایت کښې راځی چه حضور ﷺ به په دې دوو رکعاتونو کښې سوره کافرون او قل هو الله احد لوستلو او د ابن عباس او ابوهریره رضي الله عنهما په یو بل حدیث کښې راځی چه حضور ﷺ به په ړومبی رکعت کښې قولوا امنا بالله و ما انزل الینا و ما انزل الی ابراهیم، الایة و نحن له مسلمون، پورې او په دویم رکعت کښې به ئې، امنا بالله و اشهد بانا مسلمون، ربنا امنا بما انزلنا واتبعنا الرسول فاکتبنا مع الشاهدین،

د دې احادیثو نه دوه خبرې ثابتې شولې اول دا چه په دې مانځه کښې پوره قراءت یعنی فاتحه سره د ضم سورت سره مشروع ده، دویمه خبره دا چه قراءت مختصر دې لکه څنګه چه په ترجمة الباب کښې ذکر دی د دې روایتونو نه علاوه مصنف په دې باب کښې دوه حدیثونه نور هم ذکر کړې دی کوم چه په ظاهره کښې د ترجمة الباب مطابق نۀ دی، یو حدیث د حضرت بلال رضي الله عنه دې د کوم په آخره کښې چه د حضور ﷺ دا ارشاد دې چه، لو اصبحت اکثر مما اصبحت لرکعتهما و احسنتهما و اجملتهما، چه څومره ناوخته نن د صبا مونځ اوشو که د دینه ډیر ناوخته شوې وې نو هم به ما دا دوه رکعته سنت کول او په ښۀ شان به مې کول.

[۱۲۵٦] (¹) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ كَيْسَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ".

د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی، بیشکه نبي ﷺ ولوستلو په دوه رکعاتونو د صباح کې، قل یا ایها الکافرون او قل هو الله احد.

[۱۲۵۷] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنِي أَبُو زِيَادَةَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ زِيَادَةَ الْكِنْدِيُّ، عَنْ بِلَالٍ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُؤْذِنَهُ بِصَلَاةِ الْغَدَاةِ، فَشَغَلَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا بِلَالًا بِأَمْرٍ سَأَلَتْهُ عَنْهُ حَتَّى فَضَحَهُ الصُّبْحُ فَأَصْبَحَ جِدًّا، قَالَ: فَقَامَ بِلَالٌ فَآذَنَهُ بِالصَّلَاةِ وَتَابَعَ أَذَانَهُ، فَلَمْ يَخْرُجْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا خَرَجَ صَلَّى بِالنَّاسِ، وَأَخْبَرَهُ أَنَّ عَائِشَةَ شَغَلَتْهُ بِأَمْرٍ سَأَلَتْهُ عَنْهُ

(¹): صحیح مسلم/المسافرین ۱۴ (۷۲٦)، سنن النسائي/الافتتاح ۳۹ (۹۴٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۰۲ (۱۱۴۸)، (تحفة الأشراف: ۱۳۴۳۸) (صحیح)

(²): تفرد به أبوداوده (تحفة الأشراف: ۲۰۴۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴/٦) (صحیح)

حَتَّى أَصْبَحَ جِدًّا، وَأَنَّهُ أَبْطَأَ عَلَيْهِ بِالْخُرُوجِ، فَقَالَ: "إِنِّي كُنْتُ رَكَعْتُ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ"، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّكَ أَصْبَحْتَ جِدًّا، قَالَ: "لَوْ أَصْبَحْتُ أَكْثَرَ مِمَّا أَصْبَحْتُ لَرَكَعْتُهُمَا وَأَحْسَنْتُهُمَا وَأَجْمَلْتُهُمَا".

د بلال نه روايت دی، هغه ورته حديث بيان کړی دی، بېشکه هغه راغی رسول الله ﷺ ته چې خبر ورته ورکړي په سحر په مونځ باندې، نو مشغوله کړو عائشې ؓ بلال لره په يو کار باندې چې د هغې تپوس يې ترې وکړو، ښکاره کړو هغه لره صباح، نو ښه صباح شو، هغه وايي: ودريدلو بلال، خبريي ورته ورکړو په مانځه، او تابع شو د اذان رسول الله ﷺ ونه وتلو، هرکله چې ووتلو نو مونځ يې وکړو خلقو ته، او خبر يې کړو هغه چې بېشکه عائشې مشغوله د هغې نه، تردې چې صباح شو، او په راوتلو کې ورروسته شو، هغه وويل: بېشکه ما دوه رکعاته د سحر وکړل. هغه وويل: ای د الله رسوله! بېشکه تا ډير صباح کړو، هغه وويل: که چيري ما د دې نه زيات هم صباح کړی وی نو مابه کړي وی، او ښائسته به مې کړي وی.

## د حديث مضمون:

د پوره حديث مضمون دا دې چه حضرت بلال ؓ فرمائی چه د يو ځل واقعه ده چه د هميشه معمول مطابق زهٔ حضور ﷺ ته د صبا د مانځه خبر ورکولو دپاره د حضرت عائشه ؓ حجرې ته ورارسيدلم نو حضرت عائشه ؓ زما نه يو سوال اوکړو او په دې سوال او جواب کښې ډير وخت تير شو صبا ډير روښانه شو ،فقام بلال فاذنه بالصلوة و تابع اذانه، بلال ؓ فرمائی چه د حضرت عائشه ؓ د دې سوال او جواب نه فارغيدلو نه پس زهٔ حضور ﷺ ته ورنزدې شوم او دوئ ته مې د مانځه خبر ورکړو او پرله پسې مې اطلاع ورکوله څهٔ وخت پس حضور ﷺ د دننه نه بهر تشريف راوړلو او مونځ ئې ورکړو او د مانځه نه پس ما حضور ﷺ ته پوره صورت حال بيان کړو چه مور بی بی زهٔ په خبرو کښې اخته کړمه د څهٔ د وجه نه چه ما په اطلاع ورکولو کښې ناوخته کړو، و انه ابطاء عليه بالخروج، يعنی تاسو د دې باوجود په بهر راتلو کښې نور هم روستوالې اوکړو د دې څهٔ وجه ده؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه ما سنت کول هغوی عرض اوکړو يا رسول الله ډير ناوخته شوې وو (يعنی په داسې وخت کښې به مو سنت پريخودلې وې) په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائيل کوم چه پورته ذکر شول چه، لواصبحت اکثر مما اصبحت،الخ،

## مناسبة الحديث بالترجمة

د دې حديث د ترجمة الباب سره په ظاهره کښې هيڅ مناسبت نشته د غه شان د دې نه پس چه د ابوهريره ؓ کوم مرفوع حديث دې چه، لا تدعوهما و ان طردتکم الخيل، د دې هم په ظاهره کښې د ترجمې سره مناسبت نشته دې، د بنده په نيز د دې جواب دا کيدې شی چه په ترجمة الباب کښې صراحة خو اگر که تخفيف فی القراءت مذکور دې خو تخفيف فی القراءة نفس قراءت لره مستلزم دې، لهذا دا به اووئيلې شی چه د مصنف غرض دواړو لره شامل دې، د نفس قراءت اثبات او دويم په دې کښې تخفيف. اوس د ټولو روايتونو د ترجمې سره مناسبت اوشو، د دې حديثونو تعلق د نفس قراءت سره دې، په دې شان چه د دې حديثونو نه د دې سنتونو ډير اهميت معلوميږی او دا چه دې ته احسن او اجمل طريقې سره

ادا کړې شي نو کله چه په عام سنتو کښې قراءت شته دې نو په دې کښې به ولې نۀ وی دغه شان بغیر د قراءت نه حسن او جمال ښکنګه پیدا کیدې شی او زمونږ استاذ محترم مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله د بلال رضی الله عنه د حدیث مناسبت په خپل مخصوص ادیبانه ظریفانه انداز کښې داسې ثابت کړې دې چه په دې حدیث کښې، احسنتهما و اجملتهما، لره د جمال نه وانغستلې شی بلکه د اجمال نه واغستلې شي، ای آتیهما علی وجه الاجمال،د اجمال نه تخفیف مستفاد کیږی.

**فائده**: حضرت امام طحاوی په شرح معانی الآثار کښې د صبا په سنتو کښې قراءت ثابتولو دپاره یو مستقل باب قائم کړې دې او دهغهٔ خلقو تردید ئې کړې دې کوم چه په دې کښې د قراءت قائل نۀ دی بیا په دې باندې زیاتی په دې سنتو کښې د تخفیف په ځائې باندې د طول قراءت لره په دې شان سره ثابت کړې دی چه د دې احادیثونه د دې سنتو اشرف التطوع کیدل معلومیږی، دغه شان حضور صلی الله علیه وسلم فرمائیلې دی چه، افضل الصلوة طول القیام، چه په مونځونو کښې د ټولو نه غوره مونځ هغه دې په کوم کښې چه تطویل دقراءة وی هغوی فرمائی چه کله دا سنت اشرف التطوع دی او د ټولو نه اشرف رکن په مانځه کښې طول قیام او تطویل دقراءة دې نو دا مونځ خود تطویل دقراءة د ټولو نوافلو نه زیات مستحق دې، امام طحاوی ډیر تفصیل سره دا مضمون لیکلې دې او خپله مدعی ثابتولو دپاره بعض آثار او د آکابرو معمولات ئې جمع کړې دی.

[۱۲۵۸](1)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ الْمَدَنِيَّ، عَنْ ابْنِ زَيْدٍ، عَنْ ابْنِ سَيْلَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَدَعُوهُمَا وَإِنْ طَرَدَتْكُمُ الْخَيْلُ".

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلې دې: رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلې دې: تاسو دا دواړه مه پریږدئ، اګر که شړې تاسو لره اسونه.

**تشریح**: **قوله**: عن ابی هریرة قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا تدعوهما و ان طردتکم الخیل، لا تدعوا د ودع یدع ودعاً نه د نهی صیغه ده.

## شرح حدیث:

یعنی مۀ پریږدئ تاسو دې دوو رکعاتونو لره اګر که تاسو لره ستاسو لښکر(په جهاد کښې تلونکی) ورتیله کوی چه زر زر ځئ، یعنی څومره چه هم د جلتئ وخت وی بیا دې هم دې لره پرې نۀ خودلې شی، خیل خو اس ته وائی خو دلته د د دې اطلاق د اس په سور باندې کیږی، دلته ترینه مراد په اس باندې سوارهٔ قافله ده، د حدیث دویمه معنی دا هم بیان کړې شوې ده چه د خیل نه مراد خیل عدو یعنی د دښمن اس دې یعنی اګر که د دښمن لښکر تاسو لره تیله کوی یعنی ستاسو او د هغوی یو بل لره په شاه کول یعنی دهکا کول وی بیا هم دې سنتو لره مۀ پریږدئ.

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵٤۸۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/٤۰۵) (ضعیف)

[١٢٥٩]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ حَكِيمٍ، أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ كَثِيرًا مِمَّا كَانَ يَقْرَأُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ بِ آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا سورة البقرة آية ١٣٦ هَذِهِ الْآيَةَ، قَالَ: هَذِهِ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى، وَفِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ بِ آمَنَّا بِاللَّهِ وَاشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ سورة آل عمران آية ٥٢".

د عبد الله بن عباس نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ چي به زیات لوستلو په دوه رکعاتونو د فجر کي هغه (آمنا بالله و اما أنزل الينا) دا ایت، هغه وایي: دا اولنی رکعات دی، او په دویم رکعات کي به یې (آمنا بالله و اشهد بأنا مسلمون) لوستلو.

[١٢٦٠]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عُمَرَ يَعْنِي ابْنَ مُوسَى، عَنْ أَبِي الْغَيْثِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَقْرَأُ فِي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ قُلْ آمَنَّا بِاللَّهِ وَمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا سورة آل عمران آية ٨٤ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى، وَفِي الرَّكْعَةِ الْأُخْرَى بِهَذِهِ الْآيَةِ رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُولَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ سورة آل عمران آية ٥٣ أَوْ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ بِالْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَا تُسْأَلُ عَنْ أَصْحَابِ الْجَحِيمِ سورة البقرة آية ١١٩". شَكَّ الدَّرَاوَرْدِيُّ.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی، بېشکه هغه اوریدلي دي د نبي ﷺ نه چي لوستلو یې په دوه رکعاتونو د فجر کي (قل آمنا بالله و ما أُنزل علینا) په اولني رکعات کي، او په دویم رکعات کي دا ایت (ربنا آمنا بما انزلتَ و اتبعنَا الرسول فاکتبنَا مع الشاهدین) او (انا ارسلناک بالحق بشیرًا و نذیرًا و لا تُسألُ عن اصحابِ الجحیم) شک کړی دی دراوردی.

حدثنا محمد بن الصباح بن سفیان نا عبدالعزیز بن محمد،الخ، قوله، یقراء فی رکعتی الفجر قل اٰمنا بالله و ما انزل علینا فی الرکعة الاولیٰ، په ړومبی رکعت کښې به حضور ﷺ دا آیت قل اٰمنا بالله الخ، او په دویم رکعت کښې ربنا اٰمنا بما انزلت،الخ، لوستلو.

## په روایت کښې د راوی وهم او د هغې اصلاح:

په دې کښې اشکال دې هغه دا چه قُل آمنا بالله و ما انزل علینا، دا آیت روستو په دریمه سپاره کښې د سورة آل عمران په آخره کښې دې او ربّنا آمنا دا مقدم دې د دریمې سپارې په مینځ کښې دې او دا خلاف ترتیب دې قراءة منکوسه دې لکه څنګه چه څوک په ړومبی رکعت کښې قل هو الله احد اولولی او په دویم رکعت کښې تبّت یدا اولولی، جواب دا دې چه په دې روایت کښې محمد بن الصباح دې کوم چه ضعیف راوی دې دهٔ نه وهم شوې دې او د و ما انزل علینا په ځائې ئې و ما انزل الینا کیدل پکار وو لکه څنګه چه د دېنه په وړاندې حدیث کښې تیر شوې دی، او دا آیت یعنی و ما انزل الینا په اوله سپاره کښې د سوره بقره په آخره کښې دې دواړه آیتونه د یو بل سره یوشان دی نو دې دپاره غلطی شوې ده په دې دواړو آیتونو کښې یو فرق خو د الینا او علینا دې او دویم دا دې چه د ړومبې سپارې په آخر

[1]: صحيح مسلم/المسافرين ١٤(٧٢٧)، سنن النسائي/الافتتاح ٣٨ (٩٤٥)، (تحفة الأشراف: ٥٦٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٠، ٢٣١) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٩٢٦) (حسن)

کښې چه کوم ایت دې د هغې په شروع کښې قولوا دې او د دویم ایت په شروع کښې قل د مفرد صیغه ده، دا حدیث په سنن بیهقی کښې هم دې په طریق د سعید بن منصور عن عبدالعزیز په هغې کښې دا غلطی نشته دې بلکه د تیر شوی حدیث مطابق دې.

د دینه پس زده کول پکار دی چه دلته د ابوداؤد په روایت کښې خو دا دی چه د صبا د سنتو په دویم رکعت کښې آمنا بالله واشهد بانا مسلمون ربنا آمنا بما انزلت، الخ، لوستل او د مسلم شریف په یو روایت کښې دی چه په دویم رکعت کښې به حضور ﷺ قل یاهل الکتاب تعالوا الی کلمة سواء بیننا و بینکم الی اخر الایة، لوستلو لهذا د سنتو په اتباع کښې کله سوره کافرون او اخلاص او کله دا دواړه آیتونه د سوره بقره او سوره آل عمران واله لوستل پکار دی. والله الموفق.

احادیثو لره په ډیر غور او اهتمام سره د عمل په نیت کښې لوستل پکار دی په دې سره په علم کښې برکت او په زړهٔ کښې نورانیت راځی.

## بَابُ الِاضْطِجَاعِ بَعْدَهَا

### باب دی په باندې د تکیا کې په اړخ وروسته د هغې نه

[۱۲٦۱]()[1]حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو كَامِلٍ وَعُبَيْدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمُ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الصُّبْحِ فَلْيَضْطَجِعْ عَلَى يَمِينِهِ"، فَقَالَ لَهُ مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ: أَمَا يُجْزِئُ أَحَدَنَا مَمْشَاهُ إِلَى الْمَسْجِدِ حَتَّى يَضْطَجِعَ عَلَى يَمِينِهِ؟ قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ: "لَا"، قَالَ: فَبَلَغَ ذَلِكَ ابْنَ عُمَرَ، فَقَالَ: أَكْثَرَ أَبُو هُرَيْرَةَ عَلَى نَفْسِهِ، قَالَ: فَقِيلَ لِابْنِ عُمَرَ: هَلْ تُنْكِرُ شَيْئًا مِمَّا يَقُولُ؟ قَالَ: لَا، وَلَكِنَّهُ اجْتَرَأَ وَجَبُنَّا، قَالَ: فَبَلَغَ ذَلِكَ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: فَمَا ذَنْبِي إِنْ كُنْتُ حَفِظْتُ وَنَسُوا؟.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي، رسول الله ﷺ ویلي دي: کله چې مونځ کوي یو کس ستاسو نه دوه رکعاته مخکې د صباح نه، نو تکیا دې شي په ښي اړخ باندې. هغه ته مروان وویل: ایا نه کافي کیږي د کس دپاره زمونږ نه تلل د هغه مسجد ته تردې چې تکیا کوي په ښي اړخ باندې، عبید الله په خپل حدیث کې ویل دي: هغه وایي: نه، هغه وویل: نو دا ابن عمر ته ورسیده، هغه وویل: ابو هریره په خپل ځان باندې زیاته کړه، هغه وویل: ابن عمر ته وویل شو: ایا ته د څه شي نه انکار کوي د هغې نه چې دوی یې وایي؟ هغه وویل: نه، لیکن هغه جرات وکړو او مونږ بزدلي شو، هغه وایي: نو ورسیده دغه ابو هریره ته، هغه وویل: زما څه ګناه ده چې ماته حفظ دی او دوی نه هېر شوی دی.

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا صلی احدکم الرکعتین قبل الصبح فلیضطجع علی یمینه، د صبا د سنتو نه پس او د فرض مونځ نه وړاندې لږ غوندې وخت دپاره څملاستل د حضور ﷺ د فعل نه په صحیح بخاری کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها په حدیث سره ثابت دی دلته په کتاب کښې د باب پورته ذکر شوې حدیث د کوم راوی چه

[1]: سنن الترمذي/الصلاة ۱۹۵ (٤۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۲٤۳۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤۱٥/۲) (صحیح)

حضرت ابوهریره ﷺ دې دا حدیث قولي دې په دې کښې دحضور ﷺ امر ذکر دې چه داسې کول پکار دی، دا حدیث د سنن روایت دې،د مسند احمد ،ابوداؤد ، ترمذی چه دا حدیث قولي ضعیف دې د دې په سند کښې یو راوی عبدالواحد بن زیاد دې کوم چه متکلم فیه دې دغه شان په دې حدیث کښې اضطراب هم دې دبعضې طرقو په لحاظ سره دا حدیث قولي نۀ دې بلکه فعلي دې د امام بیهقي رائې ده چه د دې فعلي کیدل محفوظ دی.

دغه شان د بخاری شریف حدیث د حضرت عائشه ﷺ اګر که سنداً قوی دې خو په دې کښې د محل اضطجاع په لحاظ سره اضطراب دې چنانچه دلته د باب په دویم حدیث د حضرت عائشه ﷺ دی چه په دې کښې اضطجاع قبل سنة الفجر منقول دی او د قاضی عیاض په نیز هم دا راجح ده هغوی د اضطجاع بعد سنة الفجر واله روایت مرجوح ګرځولې دې او د اضطجاع قبل السنة د استحباب هیڅوك قائل نۀ دی.

دا خو په دې مسئله باندې په روایتی حیثیت سره کلام شواوس په فقهی حیثیت سره هم زده کړئ هغه دا چه اضطجاع بعد سنة الفجر مسئله معرکة الاراء ده په دې کښې ډیر اختلاف دې بعضې په دې کښې ډیر مفرط او بعضې مُفرِّط او بعضې معتدل دی، یو جماعت په کوم کښې چه ابن حزم ظاهری هم دې هغوی په دې کښې ډیر دافراط نه کار اغستې دې او دې ضجعه لره واجب بلکه د صبا د مونځ د صحت دپاره ئې شرط ګرځولې دې او بعضو په دې کښې د تفریط نه کار اغستې دې او دې لره ئې مکروه ګرځولې دې خکه چه د حضرت ابن عمر ﷺ په دې باندې عمل نۀ وو بله هغوی به د دېنه خلق منع کول او فرمائیل به ئې چه، ایُّ فصل افضل من السلام، یعنی دا ملاسته خو دې دپاره ده چه فرض د سنتو سره خلط یعنی یوځائې نۀ شی هغوی فرمائی چه کله سنت اوکړې او سلام اوګرځوی او د دېنه پس فرض مونځ شروع کړی نو آیا دا سلام د فصل یعنی جدااوالې دپاره پوره نۀ دې، دغه شان ابن مسعود ﷺ دې فعل ته دابّه سره تشبیه ورکړې ده چه د خاروو پشان ولې څملئ د ابراهیم نخعی نه منقول دی چه، انها ضجعة الشیطان.

د ائمه اربعه مذاهب په دې کښې دا دی (۱) د حضرت امام شافعی په نیز دا اضعجاع مستحب ده اګر که په جومات کښې ولې نۀ وی،(۲) امام مالك فرمائی چه مباح دې که د ثواب او فضیلت نیت نۀ وی ګینی مکروه دې،(۳) و عن احمد روایتان الاستحباب و عدمه،(۴) حنفیه وائی چه نۀ مکروه ده او نۀ مستحب،د حضور ﷺ نه دا ضرور ثابت دی خو په کور کښې نۀ په جومات کښې او د استراحت یعنی آرام دپاره. نۀد تشریع او ترغیب دپاره، او ابن العربی فرمائی چه، یستحب لمن قام باللیل للاستراحة،

قوله، فقال له مروان بن الحکم اما یجزئ احدنا ممشاه الی المسجد.. قال لا، مروان بن الحکم ابوهریره ﷺ ته اووئیل چه د صبا سنت په کور کښې کول او جومات ته تلل دا فصل بین الفرض والنفل دپاره پوره نۀ دې هغوی اوفرمائیل چه پوره نۀ دې، فبلغ ذلك ابن عمر فقال اکثر ابوهریرة علی نفسه، کله چه دا سوال او جواب حضرت ابن عمر ﷺ ته اورسیدلو نو هغوی واوریدلو او اوئې فرمائیل چه د ابوهریره ﷺ په دومره ډیر کثرت سره روایت کول

دا په خپل ځان باندې زیاتې کول دی یعنی په دې کښې د هغوی نقصان دې ځکه چه په ډیر روایت کولو کښې د خطاء قوی احتمال وې هیره وغیره د سړی سره لګیدلې ده. فقیل لابن عمر هل تنکر شیئا..الخ، آیا ته د ابوهریره رضي الله عنه روایت کړې شوی یو حدیث(په تعین سره) انکار کولې شې چه فلانکې روایت د دوئ غلط دې هغوی جواب ورکړو چه مطلب دا نۀ دې چه هغوی د خپل ځان نۀ غلط او صحیح حدیثونه بیانوی بلکه زما مقصد دا دې چه هغه د حدیثونو په بیانولو کښې جَری یعنی زړور دې او مونږ ویره کونکې یو(اوس الله ښۀ پوهیږی چه د هغوی نه په کوم ځائې کښې بې احتیاطی شوې او کوم ځائې کښې نۀ ده شوې) فبلغ ذلك اباهريرة، ابوهریره رضي الله عنه ته دا خبرې اترې اورسیدلې نو هغوی اوریدلو سره اوفرمائیل چه خلق حدیثونه یاد نۀ ساتی او زۀ کوشش کوم چه یاد ئې اوساتم(نو ځکه په کثرت سره روایت هم کوم) په دې کښې زما څۀ قصور دې؟ حضرت ابوهریره رضي الله عنه په کثرت روایت کښې مشهور دې صحابه کرامو کښې دا خبره مشهوره وه او بعضې صحابه کرامو به په دوئ باندې اعتراض هم کولو لکه څنګه چه په دې روایت کښې هم دی د صحابه کرامو په اعتراض باندې به د دوئ ناخوښی هم کیدله او دوئ به فرمائیل چه تاسو خلقو نه حدیثونه یادول نۀ کیږی نو په ما باندې اعتراض کوئ بیا یو صحابی ئې مخاطب کړو کوم چه په مجلس کښې موجود وو وئې فرمائیل چه تا د ماسخوتن مونځ د حضور صلی الله علیه وسلم سره کړې دې؟ هغوی اوفرمائیل آو کړې مې دې ابوهریره رضي الله عنه تپوس اوکړو ښۀ اوښایه چه حضور صلی الله علیه وسلم په دې کښې کوم کوم سورتونه لوستلې وو هغۀ اونۀ خودلې شو نو ابوهریره رضي الله عنه اوفرمائیل بس! او وئې فرمائیل الحمدالله ما ته یادی زۀ خودلې شم، او بیا ئې هغه دواړه سورتونه اوخودل. ([1])

[١٢٦٢]([2])حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَكِيمٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَضَى صَلَاتَهُ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ نَظَرَ، فَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِي، وَإِنْ كُنْتُ نَائِمَةً أَيْقَظَنِي، وَصَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ، ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ فَيُؤْذِنَهُ بِصَلَاةِ الصُّبْحِ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ يَخْرُجُ إِلَى الصَّلَاةِ".

د عائشې رضي الله عنها نه روایت دی هغې ویلې دي: وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله به یې مونځ پوره کړو په اخیر د شپه کې نو کتل به یې، که زه به بیداره وم نو ماسره به یې خبرې کولې، او که زه به اوده وم نو رابیداره به یې کړم، او دوه رکعاته مونځ به یې وکړو، بیا به تکیا شو تردې چې مؤذن به ورته راغی، خبر به یې ورته ورکولو په مونځ د صباح، نو دوه رکعاته به یې وکړل سپک، بیا وتلو مانځه ته.

---

[1] ، چنانچه د بخاری په صفحه،١٦٣، باندې دی، قال ابوهريرة رضي الله عنه يقول الناس اكثر ابوهريرة فلقيت رجلا فقلت بم قراء رسول الله صلي الله عليه وسلم البارحة في العتمة فقال لا ادري فقلت الم تشهدها قال بلي قلت لكن انا ادري قراء سورة كذا و كذا)۔

[2] ): صحيح البخاري/التهجد ٢٤ (١١٦١)، ٢٥ (١١٦٢)، ٢٦ (١١٦٨)، صحيح مسلم/المسافرين ١٧ (٧٤٣)، سنن الترمذي/الصلاة ١٩٧ (٤١٨)، (تحفة الأشراف: ١٧٧١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٥)، وانظر ما يأتي برقم (١٣٣٥) (صحيح)

[۱۲٦۳]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زِيَادِ بْنِ سَعْدٍ، عَمَّنْ حَدَّثَهُ ابْنُ أَبِي عَتَّابٍ أَوْ، غَيْرُهُ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، فَإِنْ كُنْتُ نَائِمَةً اضْطَجَعَ وَإِنْ كُنْتُ مُسْتَيْقِظَةً حَدَّثَنِي".

د ابو سلمة نه روايت دی هغه ويلي دي: ويلي دي عائشي: وو نبي ﷺ چې کله به يي مونځ وکړو دصباح، که زه به اوده ومه نو تکيا به شو، اوکه زه به ويخه ومه نو ماسره به يي خبري کولي.

[۱۲٦٤]()حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، وَزِيَادُ بْنُ يَحْيَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ حَمَّادٍ، عَنْ أَبِي مَكِينٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْفُضَيْلِ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ "فَكَانَ لَا يَمُرُّ بِرَجُلٍ إِلَّا نَادَاهُ بِالصَّلَاةِ أَوْ حَرَّكَهُ بِرِجْلِهِ". قَالَ زِيَادٌ: قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو الْفُضَيْلِ.

د ابو مکين نه روايت دی، هغه وايي مونږ ته ابو الفضيل حديث بيان کړی دی چې يو سړی دی د انصارو نه، هغه روايت کوي د مسلم بن ابي بکرة او هغه يي د خپل پلار نه کوي، هغه وايي: زه وتللم د رسول الله ﷺ سره د سحر مانځه ته، هغه وو چې نه به تيريدلو په هيڅ سړي باندې مګر د مانځه اواز به يي ورته کولو، او يا به يي په خپه وخوزولو. زياد ويلي دي: مونږ ته حديث بيان کړی دی ابو الفضيل

حدثنا عباس العنبری، الخ، خرجت مع النبی صلی الله علیه وسلم لصلوة الصبح فکان لا یمر برجل الا ناداه بالصلوة او حرّکه برجله، ابوبکره صحابی د چا نوم چه نضيع بن الحارث دی فرمائی چه زهٔ د حضور ﷺ سره د صبا د مانځه دپاره روان ووم نو په لاره کښې څوک چه به هم (ملاست) وو نو حضور ﷺ به هغوی ته آواز کولو يا د هغهٔ پښې به ئې خوزولې (دې دپاره چه راويخ شی) د دې حديث د ترجمة الباب سره دا مناسبت کيدې شی چه شايد دا خلق کوم چه به حضور ﷺ راويخول هم هغه خلق وو کوم چه به د صبا د سنتو نه پس اودهٔ کيدل.

## بَابُ إِذَا أَدْرَكَ الْإِمَامَ وَلَمْ يُصَلِّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ

**باب دی، کله چې امام بيامومي او دوه رکعاته د سحر يې نه وي کړي**

که د صبا مونځ اودريږی او چا تر دغه وخته پورې سنة الفجر نهٔ وی کړې نو دهٔ لره څهٔ کول پکار دی؟

### مذاهب ائمه:

مسئله اختلافی ده په بذل کښې د شوکانی نه په دې کښې نهٔ قولونه ليکلې دی خو زما معمول خو اکثر د ائمه اربعه مذاهب بيانولو دې، امام شافعی او امام احمد، اسحاق په نيز په دې وخت کښې سنت کول مطلقا مکروه دی او امام مالک فرمائی چه دوو شرطونو سره کولې شی اول د جومات نه بهر دويم دا چه د فرض دواړه رکعاتونو د جماعت سره موندلې شی که يو رکعت هم فوت کيدو نو بيا نهٔ دې جائز، د حنفيانو په نيز هم دوه شرطونه دی يو دا چه خارج مسجد اوکړی يا کم نه کم د جماعت د صف سره يوځائې نهٔ وی په مينځ کښې

[۱]: صحیح مسلم/المسافرين ۱۷ (۷٤۳)، وفيه «زياده بن سعد عن ابن أبي عتاب» بلا شك (تحفة الأشراف: ۱۷۷۰۷، ۱۷۷۳۲) (صحيح لغيره)

[۲]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۰۳) (ضعيف)

کوم څیز حائل او پرده وی او دویم دا چه د دواړو رکعاتونو د فوت کیدو ویره نهٔ وی که صرف یو رکعت فوت کیږی نو بیا هم کولې شی، په دې کښې یو مذهب د ظاهریه هم دې هغه دا که کوم سړې د صبا سنت یا نو بل سنت یا نفل کوی او په دې دوران کښې په جومات کښې د جماعت مونځ اودریږی نو د دې سړی نفل مونځ سمدستی باطلیږی تر دې پورې که د دهٔ مونځ پوره شوې وی او صرف سلام ګرځول پاتې وی او دلته جماعت اودریدلو نو بیا ئې هم مونځ فاسدیږی بلکه داسې سړی لره پکار دی چه دغه مونځ لره هم داسې پریږدی او د جماعت مونځ سره شامل شی.

[۱۲۶۵](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَرْجِسَ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الصُّبْحَ، فَصَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ، ثُمَّ دَخَلَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: "يَا فُلَانُ، أَيَّتُهُمَا صَلَاتُكَ الَّتِي صَلَّيْتَ وَحْدَكَ، أَوِ الَّتِي صَلَّيْتَ مَعَنَا؟".

د عبد الله بن سرجس نه روایت دی هغه ویلي دي: راغی یو سړی رسول الله ﷺ ته چې مونځ يې کولو د سحر، نو دوه رکعاته مونځ يې وکړو، بيا داخل شو د رسول الله ﷺ سره، هرکله چې فارغ شو، هغه وفرمايل: ای فلانی ستا کوم يو مونځ دی؟ هغه چې تا ځانله وکړو که نه هغه چې د مونږ سره دې وکړو.

**تشريح: قوله:** جاء رجل و النبى صلى الله عليه وسلم يصلى الصبح فصلى الركعتين ثم دخل مع النبى صلى الله عليه وسلم فى الصلوة،الخ، د حديث مضمون واضح دې وړاندې په حديث کښې دی چه حضور ﷺ د دې سړی نه پښتنه اوکړه چه ستا په نيز په دې دواړو مونځونو کښې کوم يو مونځ معتبر دې کوم چه دې ځانله اوکړو يا هغه کوم چه دې مونځ سره اوکړو. مطلب دا دې چه د جماعت مونځ اودريدلو نه پس سنت يا نفل مونځ خو نهٔ کيږی، لهذا اوس وړاندې صرف فرض مونځ پاتې شونو اوس په دې دواړو مونځونو کښې کوم چه تا کړې دې ستا په نيز کوم يو قابل اعتبار دې؟ يا دا مطلب دې چه تهٔ دلته د کوم مونځ دپاره راغلې وی فرض مونځ دپاره يا د سنتو دپاره، که سنت کول مقصود وو نو د هغې دپاره کور غوره وو او که فرض مونځ کول مقصود وو نو په هغې کښې دې ولې روستوالې اوکړو، راتلو سره په جماعت کښې ولې شريک نهٔ شوې.

[۱۲۶۶](۲) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ وَرْقَاءَ. ح حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ. ح حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ. ح حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا زَكَرِيَّا بْنُ إِسْحَاقَ كُلُّهُمْ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

---

(۱): صحيح مسلم/المسافرين ۹ (۷۱۲)، سنن النسائي/الإمامة ۶۱ (۸۶۹)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۰۳ (۱۱۵۲)، (تحفة الأشراف: ۵۳۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸۲/۵) (صحيح)

(۲): صحيح مسلم/المسافرين ۹ (۷۱۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۹۶ (۴۲۱)، سنن النسائي/الإمامة ۶۰ (۸۶۶)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۰۳ (۱۱۵۱)، (تحفة الأشراف: ۱۴۲۲۸)، وقد أخرج: مسند احمد (۲/۳۳۱، ۳۵۲، ۴۵۵، ۵۱۷، ۵۳۱)، دي/الصلاة ۱۴۹ (۱۴۹۱، ۱۴۸۸) (صحيح)

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا صَلَاةَ إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ".

د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: چې رسول الله ﷺ ويلي دي: کله چې مونځ ودرېږي نو نور مونځ نشته مګر فرض

**قوله**: عن ابی هريرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله عليه وسلم اذا اقيمت الصلوة فلا صلوة الا المکتوبة،

په دې حقله خو مذاهب اوس تير شول د حنفيانو او مالکيه په نيز د دې مطلب دا دې چه په کوم ځائې کښې د جماعت مونځ کيږی هغه ځائې کښې سوا د فرض مونځ نه بل کوم مونځ نهٔ دې کول پکار دې دپاره دا فرض کړه که کوم سړې په خپل کور کښې سنت کوی لکه څنګه چه غوره هم دا ده او حال دا دې چه په جومات کښې د جماعت مونځ اودريدلو نوآيا د دې سړی مونځ به صحيح نهٔ وی؟ په اجماع سره صحيح او جائز دې، پس معلومه شوه چه د حديث مطلب هغه دې کوم چه مونږ بيان کړو. والله تعالی اعلم

## بَابُ مَنْ فَاتَتْهُ مَتَى يَقْضِيهَا

### باب دی د هغه چا نه چې فوت شي کله به يې کوي

که يو سړی د صبا سنت قبل الفرض اونهٔ کړې شول نو بيا به ئې کله کوئ؟ عطآء، طاؤس او په امامانو کښې د امام شافعی په نيز دفرض مونځ نه پس د نمر ختلو نه وړاندې کولې شی خو امام ترمذی د امام شافعی او احمد دواړو مذهب دا ليکلې دې چه د نمر ختلو نه پس دې اوکړی خو شوکانی د حافظ عراقی نه نقل کړې دی چه د امام شافعی صحيح قول دا دې چه د فرض مونځ نه پس د نمر ختلو نه وړاندې کولې شی، دويم مذهب د ائمه ثلاثه حنفيه، حنابله، مالکيه دې د دوئ په نيز د نمر ختلو نه وړاندې کول مکروه دی.

### (ايا د سنتو قضار شته؟)

دلته يوه مسئله بله ده او هغه دا چه د سنتو قضا شته هم او که نهٔ، شافعيه او حنابله د دې قائل دی دحنفيه او مالکيه په نيز د سنتو د مونځ قضاء نشته دې البته د صبا د سنتو قضا فی الجمله شته ، امام ابوحنيفه او ابويوسف خو داسې فرمائی چه د سنتو قضاء تبعا للفرض شته الی الزوال، بالاستقلال نشته چنانچه د ليلة التعريس په واقعه کښې حضور ﷺ د سنتو قضاء د فرض مونځ سره فرمائيلې وه، او د امام محمد په نيز د دې قضاء انفرادا هم مستحب ده، امام مالك فرمائی چه. اِنْ اَحَبَّ. که زړهٔ ئې غواړی نو قضاء دې اوکړی اختياردې.

[۱۲۶۷] (۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: رَأَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُصَلِّي بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلَاةُ الصُّبْحِ رَكْعَتَانِ"، فَقَالَ الرَّجُلُ: إِنِّي لَمْ أَكُنْ صَلَّيْتُ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا فَصَلَّيْتُهُمَا الْآنَ، "فَسَكَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

(۱): سنن الترمذي/الصلاة ۱۹۷ (۴۲۲)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۱۰۴ (۱۱۵۴)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۴۷/۵) (صحيح)

د قیس بن عمرو نه روایت دی، هغه وایي: رسول الله ﷺ یو سړی ولیدو چې مونځ یي کولو وروسته د دوه رکعاتو نه، رسول الله ﷺ ورته وویل: مونځ د صباح دوه رکعاته دی، هغه سړي وویل: ما هغه دوه رکعاته نه وو کړي کوم چې د دې دواړو نه مخکې وو، ما اوس وکړل، نو رسول الله ﷺ چپ شو.

**تشریح: قوله**: حدثنا عثمان بن ابی شیبة نا ابن نمیر عن سعد بن سعید حدثنی محمد بن ابراهیم عن قیس ابن عمرو قال رای رسول الله صلی الله علیه وسلم.الخ، دا سعد بن سعید دیحیی بن سعید انصاری مشهور امام الجرح والتعدیل رور دي(ترمذی،ص، ۵۷) د حدیث مضمون خو واضح دي چه یو سړي د حضور ﷺ د وړاندې د صبا دمونځ نه پس دوه رکعاته اوکړل نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه د صبا مونځ(فرض) خو صرف دوه رکعاته دی هغهٔ عرض اوکړو چه ما د فرضو نه وړاندې کوم سنت دی هغهٔ نهٔ وو کړی د دې نه پس حدیث کښې دی چه، فسکت رسول الله صلی الله علیه وسلم.

مجوزین حضرات(شافعیه وغیره) په دې حدیث سره استدلال کوی، مانعین(ائمه ثلاثه) د دې څو جوابونه ورکړې دی(۱) دا حدیث منقطع دې کما قال الترمذی ځکه چه دمحمد بن ابراهیم سماع د قیس بن عمرو نه ثابته نهٔ ده،(۲) کله چه په دې وخت کښې د تطوع یعنی د نفلو نهی د نورو صحیح احادیثو سره ثابته ده نو په داسې صورت کښې د حضور ﷺ سکوت په تقریر باندې دلالت نهٔ کوی،(۳) کیدې شی دا واقعه د منع نه د وړاندې وی(۴) صحیح دا ده چه دا حدیث مرسل دې، کما قال الترمذی، دغه شان وړاندې امام ابوداؤد هم دا خبره فرمائیلې ده(۵) د ابوداؤد په دې روایت کښې خو دا دی چه حضور ﷺ په دې باندې سکوت فرمائیلې وو خو د ترمذی شریف په روایت کښې د دې په ځائې دا دی چه، فلا اذا، د کوم چه دوه مطلبه کیدې شی یو خو دا چه بیا هم نهٔ دی ادا کول پکار، دویم دا چه اوس نهٔ یعنی که دا خبره ده(چه سنت دې نهٔ وو کړې) نو بیا به ما نهٔ وې منع کړې.

[۱۲۶۸](۱)حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى الْبَلْخِيُّ، قَالَ: قَالَ سُفْيَانُ: كَانَ عَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ يُحَدِّثُ بِهَذَا الْحَدِيثِ عَنْ سَعْدِ بْنِ سَعِيدٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَى عَبْدُ رَبِّهِ، وَيَحْيَى ابْنَا سَعِيدٍ هَذَا الْحَدِيثَ مُرْسَلًا، أَنَّ جَدَّهُمْ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ.

سفیان ویلي دي، وو عطاء بن ابی رباح چې دا حدیث یي بیانولو د سعد بن سعید نه. ویلي دي ابوداود: او روایت کړی دی عبد ربه او یحیی چې دواړه ځامن د سعید دي دا حدیث مرسل، بېشکه نیکه د دوی مونځ کړی دی د رسول الله ﷺ په دې قصې سره.

**تشریح: قوله**: قال ابوداؤد روی عبد ربه و یحیٰ ابنا سعید هذا الحدیث مرسلاً، د دې حدیث په سند کښې چه کوم اختلاف او اضطراب دې مصنف هغې لره بیانوی، پورته په سند کښې سعد بن ابی سعید راغلې وو هغوی دې حدیث سره مسندا ذکر کړې وو(بذکر السند الی الصحابی) او د سعد بن سعید باقی دوه ورونړه عبد ربه او یحیٰ دې دواړو دې لره مرسلا ذکر کړې دې

(۱): انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۰۲) (صحیح)

یعنی سند کښې صحابی (قیس بن عمرو) ئې نهٔ دې ذکر کړې. دا پورته راغلې وو چه امام ترمذی هم دې حدیث لره مرسل فرمائیلې دې. إنّ جدّهم زیدًا.

## د نسخو اختلاف او د صحیح نسخې تعیین

په ډیر نسخو کښې داسې دی زیداً خو دا غلط دې د یحيي بن سعید د نیکهٔ نوم زید نهٔ دې بلکه قیس دې لکه څنګه چه پورته په سند کښې ذکر دی خو صحیح او معتمد نسخو کښې په دې ځائې کښې نهٔ لفظ د زید ذکر دې او نهٔ لفظ د قیس بلکه داسې دی چه، ان جدهم صلی مع النبی صلی الله علیه وسلم. او که وی هم نو د زیدا په ځائې قیسا کیدل پکار دی ځکه چه د یحيي بن سعید په مسلمان نیکونو کښې زید نومې کوم سړې نشته دې

**تنبیه**: که څوک دا اووائی چه مصنف دې حدیث لره مرسلا ښائی حال دا دې چه دلته په سند کښې د یحيي بن سعید د نیکهٔ ذکر دې کوم چه صحابی دې بیا دا حدیث مرسل څنګه شو؟ جواب د دې ظاهر دې چه دلته د صحابی ذکر په رجال سند کښې نشته دې سند خود. ان جدهم، نه وړاندې پوره شوې دې. د ان جدهم، نه خود حدیث متن شروع کیږی

# بَابُ الْأَرْبَعِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَبَعْدَهَا

### باب دی په بیان د څلورو رکعاتو کې مخکې د ماسپخین نه او وروسته د هغې نه

[۱۲۶۹] (¹) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، عَنِ النُّعْمَانِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ عَنْبَسَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، قَالَ: قَالَتْ أُمُّ حَبِيبَةَ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَافَظَ عَلَى أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ وَأَرْبَعٍ بَعْدَهَا حَرُمَ عَلَى النَّارِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْعَلَاءُ بْنُ الْحَارِثِ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى، عَنْ مَكْحُولٍ بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ.

ام حبیبه ویلې دي چې د نبي ﷺ بي بي ده، چې رسول الله ﷺ ویلې دي چا چې حفاظت وکړو په څلورو رکعاتو باندې د ماسپخین نه مخکې، او څلور وروسته د هغې نه، نو حرام به شي په اور. ویلې دي ابوداود نقل کړی دی علاء بن الحارث او سلیمان بن موسی د مکحول نه په د هغې په اسناد سره پشان د هغې

**تشریح**: **قوله**: قالت ام حبیبة زوج النبی صلی الله علیه وسلم من حافظ علی اربع رکعات قبل الظهر و اربع بعدها حرّم علی النار. په دې حدیث کښې. من حافظ. فرمائیلې شوې دی، من صلی، ئې نهٔ دی فرمائیلې د دینه معلومه شوه چه دا فضیلت صرف په یو ځل کولو سره نهٔ حاصلیږی بلکه په محافظة او مداومت سره به وی

### (تطبیق بین الروایتین)

په ګڼړو مشهورو روایتونو کښې بعد الظهر رکعتین راځی او په دې روایت کښې، اربع رکعات، ذکر دی لهذا دا به وئیلې شی چه په دې کښې دوه رکعاته خو مؤکد دی او دوه رکعاته غیر مؤکد دی، دلته یوه رائې بله ده کومه چه وړاندې راځی

(¹): سنن النسائي/قيام الليل ٥٧ (١٨١٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٦٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٢٠١ (٤٢٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٠٨ (١١٦٠)، مسند احمد (٣٢٦/٦) (صحيح)

## شرح حديث:

په دې حديث کښې، حُرّم على النار، چه دا سرې په اور باندې حراميږي، په دې کښې څو احتمالات دي يو دا چه د دينه مراد مطلقا عدم دخول فی النار دې او دا خبره د الله تعالى د رحمت نه څۀ لرې نۀ ده چه په دې سنتو باندې د اهتمام په وجه سره بالکل دهغه بخښنه اوفرمائي، يا دا چه که په جهنم کښې د خپلو ګناهونو د وجه نه داخل هم شي نو اور به د دۀ ټول بدن لره نۀ سوزوی کم نه کم د سجدو ځايونه به ئې محفوظ وی،(کما فی رواية) يا دا اووئيلې شي چه د خلود فی النار نفی ده، دنفس دخول نه په دې باندې دا اشکال کيږی چه دا خبره خو د هر مسلمان په حق کښې ده، جواب دا دې چه په دې کښې اشاره او زيرې دې د خاتمه بالخير(او دا خبره د هر مسلمان په حق کښې ثابته نۀ ده)

[۱۲۷۰](¹)حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: سَمِعْتُ عُبَيْدَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ ابْنِ مِنْجَابٍ، عَنْ قَرْثَعٍ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ لَيْسَ فِيهِنَّ تَسْلِيمٌ تُفْتَحُ لَهُنَّ أَبْوَابُ السَّمَاءِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: بَلَغَنِي عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْقَطَّانِ، قَالَ: لَوْ حَدَّثْتُ عَنْ عُبَيْدَةَ بِشَيْءٍ لَحَدَّثْتُ عَنْهُ بِهَذَا الْحَدِيثِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: عُبَيْدَةُ ضَعِيفٌ. قَالَ أَبُو دَاوُد: ابْنُ مِنْجَابٍ هُوَ سَهْمٌ.

د ابو ايوب نه روايت دی هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه هغه ويلي دي: څلور مخکې د ماسپخين نه په هغې کې سلام نشته، کولاوولی شي هغې ته دروازې د اسمانونو. ويلي دي ابوداود: ماته رارسيدلی د يحيى بن سعيد القطان نه هغه ويلي دي: که ما د عبيده نه څه شي نقل کولی نو دا حديث به مې ترې نقل کړی وی. ويلي دي ابوداود: عبيدة ضعيف دی، ويلي دي ابوداود: ابن منجاب هغه سهم دی.

**تشريح: قوله:** عن ابی ايوب عن النبی صلی الله عليه وسلم قال اربع قبل الظهر ليس فيهن تسليم تفتح لهن ابواب السماء، د ابوايوب نوم خالد بن زيد انصاری دې د دې حديث نه معلومه شوه چه د ماسپخين نه وړاندې کوم څلور رکعاته سنت دی هغه په يو سلام سره پکار دی لکه څنګه چه د حنفيانو مسلك دې او د شافعيه او حنابله په نيز اول خو قبل الظهر هم دوه رکعته دی دويم دا چه د دوئ په نيز تسليم علی الرکعتين اولیٰ دې، صلوة الليل والنهار مثنی مثنی، حديث ته د نظر کولو د وجه نه دا حديث وړاندې راروان دې دې مونځ دپاره د آسمان دروازې پرانستلې کيږی دې دپاره چه دا سنت مونځونه آسمان ته اورسی، اليه يصعد الکلم الطيب والعمل الصالح يرفعه

### د صلوة الزوال ثبوت او فضيلت:

او د بعضې شراحو رائې دا ده چه په دې حديث کښې د ماسپخين د وړاندينی سنتو ذکر نشته دې بلکه هغه مونځ دې کوم ته چه سنة الزوال يا صلوة الزوال وائی د کومو چه په خاص توګه باندې صوفيه قائل دی بلکه محدثين هم چنانچه امام ترمذی په صفحه ۴۳، کښې د دې دپاره مستقل باب تړلې دې، باب ما جاء فی الصلوة عند الزوال، او په دې کښې

¹): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٠٥ (١١٥٧)، سنن الترمذي/ الشمائل (٢٩٣، ٢٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ٣٤٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٦/٥، ٤١٧، ٤٢٠) (ضعيف)

هغوی د عبد الله بن السائب حدیث ذکر کړې دې ، ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یصلی اربعا بعد ان تزول الشمس قبل الظهر و قال انها ساعة تفتح فیها ابواب السماء و أُحِبُ ان یصعد لی فیها عمل صالح و فی الباب عن علی و ابی ایوب و هذا حدیث حسنٌ غریبٌ، د ابوایوب حدیث د کوم چه امام ترمذی حواله ورکوی هم هغه دې کوم چه په ابوداؤد کښې روان دې، په تحفة الاحوذی کښې حافظ عراقی فرمائی چه دا څلور رکعاته د ماسپخین د سنتو نه علاوه دی د دې نوم سنة الزوال دې.

قال ابوداؤد بلغنی عن یحیی بن سعید انه قال لو حدثت عن عبیدة بشيء،الخ. یحیی بن سعید فرمائی که ما د عبیدة بن مُعتّب نه حدیث اغستلې نو دا حدیث به مې ضرور اغستې وې، خو چونکه هغه ضعیف دې نو ځکه ئې نهٔ اخلم، اوس دا چه دا حدیث ضرور ولې اخلی؟ کیدې شی چه وجه دا وی چه د دې حدیث مضمون د هغوی ډیر خوښ شوې وی، ځکه چه چه په دې کښې ډیر اوچت فضیلت ذکر دې.

## بَابُ الصَّلَاةِ قَبْلَ الْعَصْرِ

### باب دی په بیان د مونځ کې مخکې د مازیګر نه

په دې باب کښې مصنف دوه حدیثونه ذکر کړې دی یو قولی او دویم فعلی قولی کښې د مازیګر نه وړاندې څلور رکعاته ذکر دی او په حدیث فعلی کښې دلته په ابوداؤد کښې خو دوه رکعاته ذکر دی خو په ترمذی شریف کښې څلور رکعاته ذکر دی، نو دې دپاره زمونږ فقهاؤ لیکلې دی چه دمازیګرنه وړاندې اختیار دې د دوو او څلورو رکعاتوپه مینځ کښې

[۱۲۷۱](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِهْرَانَ الْقُرَشِيُّ، حَدَّثَنِي جَدِّي أَبُو الْمُثَنَّى،عَنْ ابْنِ عُمَرَ،قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رَحِمَ اللَّهُ امْرَأً صَلَّى قَبْلَ الْعَصْرِ أَرْبَعًا".

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلې دي، رسول الله ﷺ ویلې دي الله دې رحم وکړي په هغه سړي باندې چې مونځ وکړي مخکې د مازیګر نه څلور رکعاته.

**تشریح: قوله:** رحم الله امراء صلی قبل العصر اربعًا، دا جمله خبریه هم کیدې شی او دعائیه هم، یعنی یا خو حضور ﷺ خبر ورکوی چه داسې دې وی او یا دعاء ورکوی چه الله تعالی دې رحم اوکړی په داسې سړی باندې، خلق بزرګانو ته د دعاء دپاره درخواستونه کوی ګرځی د حضور ﷺ د دعاء نه اوچته دعاء د چا کیدې شی د دې د حاصلولو دپاره کوشش کول پکار دی، والله الموفق.

[۱۲۷۲](۲)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ عَلَيْهِ السَّلَام،أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ".

عاصم بن ضمرة روایت کوي د علي نه، بېشکه نبي ﷺ وو چې مونځ یې کولو مخکې د مازیګر نه دوه رکعاته.

(۱): سنن الترمذي/الصلاة ۲۰۲ (۴۳۰)، (تحفة الأشراف: ۷۴۵۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۱۷) (حسن)

(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۴۰) (حسن) (لكن بلفظ: «أربع ركعات» كما عند الترمذي في الصلاة ۲۰۲)

## بَابُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ

### باب دی په بیان د مونځ کې وروسته د مازیګر نه

**د اوقات منهیه ابتداء:**

په دې پوهه شه چه د دې ځایونه د اوقات منهیه بیان شروع کیږي، امام ابوداؤد خو په دې سلسله کښې صرف هم دوه بابه قائم کړی دی او امام نسائی په دې موضوع باندې ډیر زیات ابواب قائم کړې دی، دې بابونو لره چه څنګه د دې د پوهیدلو حق دې په دې باندې موقوف دی چه په اوقات منهیه کښې دصحابه کرامو او تابعینو کوم اختلاف دې هغه په ذهن کښې وی ګینی سخت اختلاف پیښیدې شی ځکه چه په روایاتو کښې ډیر سخت اختلاف دې هم د دې وجه نه د علماؤ مذاهب هم په دې کښې مختلف دی زمونږ حضرت شیخ رحمه الله د صحیح بخاری په تراجمو کښې به اکثر فرمائیل چه د امام بخاری غرض معلومول د امامانو مذاهب په ښهٔ شان سره پیژندلو باندې موقوف دې لهذا ړومبې دا اختلافات واورئ!

دبعضې صحابه او ابن حزم ظاهری په نیز په دې ټولو وختونو کښې مونځ جائز دې د یو وخت استثناء نشته دې هغوی وائی چه نهی منسوخ ده. لحدیث جبیر بن مطعم لا تمنعوا احداً طاف بهذا البیت و صلی آیة ساعةٍ شاء من لیل او نهار، و لقوله علیه السلام من ادرك رکعة من الصبح قبل ان تطلع الشمس، الخ. دویم مذهب دا دې چه یو جماعت د صحابه کرامو او تابعینو لکه ابن عمر، عائشه، عطاء، طاؤس، ابن المنذر مسلك دا دې چه په کومو احادیثو کښې د بعد الصبح او بعد العصر د مونځ ممانعت دې د هغې نه د وخت استیعاب یعنی ګیرول مقصود نهٔ دی بلکه عین د نمر ختلو او پریوتلو خاص دغه وخت کښې کول ممنوع دی ځکه چه دغه وخت کښې د نمر عبادت کونکی د نمر عبادت کوی چنانچه حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه، وهم عمر رضی الله عنه انما نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الصلوة ان یتحراها طلوع الشمس او غروبها، یعنی عمر رضی الله عنه چه خلق د بعدالعصر او بعدالفجر د مونځ کولو نه مطلقا منع کوی دا غلطه ده ځکه چه د دې ممانعت د دې وجه نه دې چه د نمر ختلو او نمر پریوتلو قصد اوکړی او په دې دوو وختونو کښې مونځ کوی، دا حضرات داسې وائی چه په احادیثو کښې مطلق بعد الفجر او بعد العصر کوم راغلې دې هغه په دې خیال سره دې چه داسې نهٔ وی چه کوم سړې د مازیګر نه پس مونځ اوکړی او په دې کښې تمادی او اوږدوالې اوکړی او هغه مونځ تر طلوع او غروب پورې اورسی نو دا ظاهری عموم او اطلاق د قطع په ذریعې دطور دې او په یو روایت کښې د ابن عمر رضی الله عنه نه دادی چه د صبا د مانځه نه روستو خو تر نمر ختلو پورې تطوع مکروه دی(د دې باب د دریم حدیث د وجه نه) او بعدالعصر تطوع الی الاصفرار جائز دې، د دې نه پس ممنوع دې(د دې باب د ړومبی حدیث د وجه نه)، خو دحضرت ابن عمر او ابن عباس رضی الله عنهما او نور ډیر صحابه کرام او تابعین او داکثرو امامانو په نیز نهی عن الصلوة بعدالصبح او بعد العصر عام ده طلوع او غروب پورې خاص نهٔ ده.

## (د ائمه مذاهب)

دا اختلافات خو د صحابه کرامو او تابعینو په مینځ کښې دی اوس تاسو د امامانو مذاهبو باندې هم ځان پوهه کړئ! (١) د امام مالك په نیز اوقات د نهی صرف څلور دی، عین طلوع، عین غروب، بعدالفجر، بعدالعصر، وقت الاستواء یعنی نصف النهار د دوئ په نیز په دې وختونو کښې شامل نۀ دې پخلاف د باقی امامانو چه د هغوی په نیز اوقات منهیه پنځه دی، وقت الاستواء هم په دې کښې داخل دې دغه شان د جمهورو په نیز منع د نوافلو نه ده د قضاء نۀ نۀ ده(و كذا النذر الا عند المالكية) خواه هغه قضاء د فرائضو وی یا د سنن مؤکده وی (١) او په ائمه ثلاثه کښې شافعیه دا فرمائی چه نوافل په دوه قسمه دی، ذات السبب او غیر ذات السبب کوم نوافل چه د ذات السبب دی د دوئ په نیز دې لره هم په اوقات منهیه کښې کولې شی البته د دویم قسم کول منع دی

او د حنفیانو په نیز اوقات منهیه په دوه قسمه دی اول طلوع او غروب، او نصف النهار او دویم بعدالفجر او بعدالعصر، په قسم اول کښې خو عدم الجواز مطلقا دې نه په دې کښې قضاء مونځ جائز دې او نۀ نوافل(الا عصر يومه عند الغروب) او په قسم ثانی کښې نوافل ممنوع دی قضاء جائز ده. (٢)

[١٢٧٣](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ، وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَزْهَرَ، وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ، أَرْسَلُوهُ إِلَى عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: اقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلَامَ مِنَّا جَمِيعًا وَسَلْهَا عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ، وَقُلْ: إِنَّا أُخْبِرْنَا أَنَّكِ تُصَلِّينَهُمَا، وَقَدْ بَلَغَنَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْهُمَا". فَدَخَلْتُ عَلَيْهَا فَبَلَّغْتُهَا مَا أَرْسَلُونِي بِهِ، فَقَالَتْ: سَلْ أُمَّ سَلَمَةَ، فَخَرَجْتُ إِلَيْهِمْ فَأَخْبَرْتُهُمْ بِقَوْلِهَا، فَرَدُّونِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ بِمِثْلِ مَا أَرْسَلُونِي بِهِ إِلَى عَائِشَةَ، فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْهُمَا ثُمَّ رَأَيْتُهُ يُصَلِّيهِمَا، أَمَّا حِينَ صَلَّاهُمَا فَإِنَّهُ صَلَّى الْعَصْرَ، ثُمَّ دَخَلَ وَعِنْدِي نِسْوَةٌ مِنْ بَنِي حَرَامٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَصَلَّاهُمَا، فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ الْجَارِيَةَ، فَقُلْتُ: قُومِي بِجَنْبِهِ، فَقُولِي لَهُ: تَقُولُ أُمُّ سَلَمَةَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَسْمَعُكَ تَنْهَى عَنْ هَاتَيْنِ الرَّكْعَتَيْنِ وَأَرَاكَ تُصَلِّيهِمَا، فَإِنْ أَشَارَ بِيَدِهِ فَاسْتَأْخِرِي عَنْهُ، قَالَتْ: فَفَعَلَتِ الْجَارِيَةُ، فَأَشَارَ بِيَدِهِ، فَاسْتَأْخَرَتْ عَنْهُ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ: "يَا بِنْتَ أَبِي أُمَيَّةَ، سَأَلْتِ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ، إِنَّهُ أَتَانِي نَاسٌ مِنْ عَبْدِ الْقَيْسِ بِالْإِسْلَامِ مِنْ قَوْمِهِمْ فَشَغَلُونِي عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ بَعْدَ الظُّهْرِ فَهُمَا هَاتَانِ".

---

(١) خکه چه دا وراندې تیر شوې دی چه د شافعیه او حنابله په نیز د رواتبو قضاء مستحب ده، د شافعیه په نیز خو په ټولو اوقات منهیه کښې جائز ده او د حنابله په نیز په اوقات منهیه کښې بعدالعصر خو جائز ده لکه څنګه چه په مغنی کښې د دې تصریح ده د دینه علاوه په باقی اوقات منهیه کښې جائز نۀ ده.

(٢) و اما صلوة الجنازة و سجدة التلاوة ففيه تفصيل عندنا معروف و عند الشافعي تجوز في الاوقات الخمسة و عند مالك و احمد يجوز بعدالعصرين و لا يجوز في الاوقات الباقية و هي عند احمد ثلاثة و عند مالك اثنان فان وقت الاستواء عنده ليس من الاوقات المنهية) ١٢_

(٣): صحيح البخاري/السهو ٨ (١٢٣٣)، المغازي ٦٩ (٤٣٧٠)، صحيح مسلم/المسافرين ٥٤ (٨٣٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٧١، ١٨٢٠٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي/المواقيت ٣٥ (٥٨٠)، مسند احمد (٣٠٩/٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤٣ (١٤٧٦) (صحيح)

د کریب نه روایت دی چې مولی د ابن عباس دی، بېشکه عبد الله بن عباس او عبد الرحمن بن ازهر او مسور بن مخرمة هغه ولېږلو عائشې د نبي ﷺ بي بي ته، هغوی ووېل: زمونږ د طرف نه پرې سلام وایه! او تپوس وکړه د هغې نه په د دوه رکعاتو کې وروسته د مازیګر نه، او ورته ووایه: مونږ ته خبر راکړی شوی دی چې یې کوې، او مونږ ته دا خبره رارسیدلې ده چې رسول الله ﷺ به د دېنه منع کوله، زه ورغلم هغې ته ما ورته هغه څه ورسول په کوم شي یې چې زه لېږلی وم، هغې ووېل: تپوس وکړه د ام سلمة نه، زه ووتلم هغوی ته ما ورته خبر ورکړو د هغې په قول، زه یې ام سلمة ته ولېږلم پشان د هغې چې زه یې عائشې ته لېږلی وم، ام سلمة ووېل: ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې د دې دواړو نه یې منع کوله، بیا ما ولیدلو چې کول یې دواړه، هر چې هغه وو چې هغه کول بېشکه هغه د مازیګر کولو، بیا داخل شو او ماسره ښځې وې د بني حرام د انصارو نه، نو ویې کړل، نو ما ورته یوه جینۍ ورولېږله، ما ووېل: د هغه په خوا کې ودرېږه، ورته ووایه! ام سلمه وایې: ای د الله رسوله! زه د تا نه اورم چې د دې دوه رکعاتو نه منع کوې، او زه تا وینم چې ته یې کوې، که اشاره یې وکړه په لاس باندې نو راوروسته شه ترې، هغې ووېل: جینۍ همدغسې وکړل، هغه اشاره وکړه په خپل لاس باندې، نو وروسته شوه د هغه نه، هرکله چې فارغ شو ویې وېل: ای د ابو امیة لورې! تا تپوس وکړو د دوه رکعاتو نه وروسته د مازیګر نه، بېشکه ماته راغلي څه خلق د عبد القیس نه په اسلام سره د خپل قوم نه، نو زه یې مشغول کړم د هغه دوه رکعاتو نه کوم چې د ماسپخین نه وروسته دي، هغه دواړه دا دي.

## مضمون حدیث:

**قوله**: ارسلوه الی عائشة زوج النبی صلی الله علیه وسلم: کریب کوم چه د ابن عباس رضي الله عنهما آزاد کړې شوې دې دوئ لره حضرت ابن عباس رضي الله عنهما وغیره د حضرت عائشه رضي الله عنها په خدمت کښې اولیږلو چه لاړ شه او هغوی ته عرض اوکړه چه مونږ ته دا خبره رارسیدلې ده چه تاسو بعدالعصر دوه رکعاته کوی حال دا دې چه مونږ ته دا خبره معلومه شوې ده چه حضور ﷺ د بعدالعصر نفل نه منع فرمائیلې ده(حضرت عائشه رضي الله عنها د سوال د اول جزء طرف ته خو التفات اونهٔ کړو او دجزء ثانی په حقله ئې اوفرمائیل) چه د ام سلمه رضي الله عنها نه معلومه کړئ دې خلقو کریب لره بیا ام سلمه رضي الله عنها ته اولیږلو، الی آخر القصة په کومې کښې چه دا دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه دې وخت(بعدالعصر) ما چه کوم دوه رکعاته کړې دی هغه نفل مونځ نهٔ وو بلکه د ماسپخین روستنی دوه رکعاته سنت وو کوم چه ما په خپل وخت کښې اونهٔ کړې شول د کومو وجه چه دا اوشوله؟ اتانی ناس عن عبدالقیس بالاسلام، او په بعضې روایاتو کښې دا دی چه ما ته د قلائص صدقه(د صدقې اوښان) راغلي وو د هغې په انتظام کښې مشغول کیدو د وجه نه د ماسپخین سنت ما اونهٔ کړې شول، کیدې شی دواړه خبرې پیښې شوې وی د صدقې اوښان هم او د عبدالقیس وفد هم کوم چه د اسلام راوړلو په غرض سره راغلي وو.

**المسائل الثابتة بالحديث:**

د دې حديث نه معلومه شوله چه د مازيګر نه پس نفل مونځ کول منع دی او حضور ﷺ چه کوم کړې وو هغه مطلق نفل نهٔ وو بلکه د ماسپخين دسنتو قضاء وه، دويمه دا خبره معلومه شوله چه د رواتبو قضاء شته دې چنانچه دشافعيه او حنابله مسلك هم دا دې چه د دې قضاء مستحب ده، د حنفيه او مالکيه په نيز د رواتبو قضاء نشته دې علاوه د صبا د سنت نه، د طحاوی په روايت کښې يو زيادت دې هغه دا چه ام سلمه ﷞ د حضور ﷺ نه سوال اوکړو ، افنقضيها اذا فاتتا قال لا، که زمونږ نه سنت مونځ فوت شی نو آيا مونږ به هم د دې قضاء راګرځوو حضور ﷺ اوفرمائيل چه نهٔ. نو معلومه شوه چه دا د حضور ﷺ خصوصيت دې او د خصوصيت يو دليل دا هم دې چه حضرت عائشه ﷞ فرمائی چه د دينه پس بيا حضور ﷺ به دې دوو رکعتونو لره بعدالعصر مدام کول، دغه شان وړاندې په، باب مايؤمر به من القصد فی الصلوة، کښې راغلی چه، و کان اذا عمل عملا اثبته، دغه شان هم دې باب کښې وړاندې راځی چه، کان عمله ديمة، په دې حديث سره شافعيه استدلال کړې چه د رواتبو قضاء په اوقات مکروه کښې کولې شی دغه شان د نوافلو ذات السبب هم، د دې جواب جمهورو دا ورکړې دې چه دا هم د حضور ﷺ خصوصيت دې لکه څرنګه چه د سنتو قضاء د حضور ﷺ خصوصيت دې.

## بَابُ مَنْ رَخَّصَ فِيهِمَا إِذَا كَانَتِ الشَّمْسُ مُرْتَفِعَةً

**باب دی په بيان د هغه چا کښې چې اجازت يې ورکړی دی**
**په دې دواړو کښې کله چې نمر اوچت وي**

[۱۲۷٤]([1]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ وَهْبِ بْنِ الْأَجْدَعِ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعَصْرِ إِلَّا وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ".

د علي ﷛ نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ منع کړي ده د مونځ نه وروسته د مازيګر نه، مګر دا چې نمر اوچت وي.

عن علی ان النبی صلی الله عليه وسلم نهی عن الصلوة بعد العصر الا والشمس مرتفعة.

دا حديث د هغه جماعت دليل دې څوك چه دا وائی چه، نهی عن الصلوة بعدالصبح و بعد العصر کښې مطلق روستوالې مراد نهٔ دې بلکه بعديت منفصله يعنی طلوع او د غروب وخت مراد دې لکه څنګه چه وړاندې معلومه شوې ده چه جمهور صحابه او ائمه اربعه خو دې رائې سره متفق نهٔ دی د نورو احاديثو د عموم او اطلاق د وجه نه لهذا د دوئ په نيز دا حديث مؤول دې.

**د حديث الباب محمل عند الفقهاء:**

ائمه د فقه د خپل خپل مسلك مطابق تاويل کړې دې شافعيه دې لره محمول کړې دې په هغه نوافلو باندې کوم چه ذات السبب وی چه داسې نوافل د دوئ په نيز د اصفرار الشمس

[1]: سنن النسائي/المواقيت ۳٦(٥٧٤)، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۱۰)، وقد أخرجه: (۱/۸۰، ۸۱) (صحيح)

پورې جائز دی، او حنفیه محمول کړې دې په بعضې مخصوصو مونځونو باندې مثلاً قضاء المکتوبة او صلوة الجنازه (کما فی بعض تقاریر المحدث الکنکوهی) که څوك سوال اوکړی چه د تخصیص منشاء څهٔ ده؟ جواب ظاهر دې چه د اختلاف روایات په وخت دفع د تعارض دپاره، او د حضرت سهارنپوری په بذل المجهود کښې د دې تاویل دا فرمائیلې دې چه، نهی عن الصلوة، کښې د صلوة نه مراد نفل نهٔ دی بلکه د مازیګر فرض مونځ او د بعدالعصر نه مراد بعد دخول وقت العصر دې مطلب دا شو چه د مازیګر په مانځه کښې تاخیر نهٔ دی کول پکار تر ارتفاع شمس پورې کول پکار دی. (۱)

[۱۲۷۵](۲)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِي إِثْرِ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ رَكْعَتَيْنِ إِلَّا الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ".

د علي رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي رسول الله ﷺ وو چي د هر فرض مونځ نه وروسته به یې دوه رکعاته کول، مګر د سحر او د مازیګر نه وروسته نه.

[۱۲۷۶](۳)حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: شَهِدَ عِنْدِي رِجَالٌ مَرْضِيُّونَ فِيهِمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَأَرْضَاهُمْ عِنْدِي عُمَرُ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا صَلَاةَ بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، وَلَا صَلَاةَ بَعْدَ صَلَاةِ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ".

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي ماته داسي سړي راغلل چي ښه خلق وو، په هغوی کي عمر بن الخطاب هم وو، - او په ټول کي ماته خوښ عمر وو. بېشکه د الله نبي ﷺ ویلي دي نشته دی مونځ وروسته د مونځ د سحر تردې چي نمر راوخېژي او نشته دی مونځ وروسته د مازیګر نه تردې چي نمر ډوب شي.

قوله، لا صلوة بعد الصلوة الصبح، هم دغه شان د دېنه په وړاندې حدیث کښې دی، حتی تصلی الصبح، د دېنه بظاهر معلومیږی چه د تطوع ممانعت د طلوع فجر پورې متعلق نهٔ دې بلکه د دې تعلق د صبا د مونځ سره دې هم دا مذهب د حسن بصری دې چه د طلوع فجر نه پس هم د صبا د مانځه نه وړاندې نفل جائز دی (۴) او د امام مالك په نیز هم دا حکم دې د هغه چا دپاره چه د هغهٔ نه صلوة اللیل فوت شی لهذا دا روایت د جمهورو خلاف شو خو چونکه په

---

(۱) خو بنده ته په دې تاویل باندې انشراح نشته دې خکه که څوك سړې تر ارتفاع شمس پورې د مازیګر مونځ اونهٔ کړی نو دې به د مونځ نه څهٔ منع کولې شی بلکه هغه سړې به دغه وخت هم مامور من الله تعالي دې د فرض د ادا کولو.

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۳۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۴/۱) (ضعيف)

(۳): صحيح البخاري/المواقيت ۳۰ (۵۸۱)، صحيح مسلم/المسافرين ۵۱ (۸۲۶)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۰ (۱۸۳)، سنن النسائي/المواقيت ۳۲ (۵۶۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۴۷ (۱۲۵۰)، (تحفة الأشراف: ۱۰۴۹۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸/۱، ۲۰، ۲۱، ۳۹)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۴۲ (۱۴۷۳) (صحيح)

(۴) امام ترمذی فرمانی چه د علماؤ په دې باندې اجماع ده چه د طلوع فجر نه پس تطوع یعنې نفل جائز نهٔ دی، حافظ ابن حجر په دې باندې اشکال کړې دې چه اجماع نقل کول صحیح نهٔ ده خکه چه په دې کښې د بعضې علماؤ اختلاف دې (۱۲).

بعضې نورو روایاتو کښې د طلوع لفظ راغلې دې نو ځکه جمهورو هم دې لره اختیار کړې دې چنانچه په مسند احمد کښې دی چه، حتی تطلع الشمس

[۱۲۷۷] (1) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ أَبِي سَلَّامٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ السُّلَمِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّ اللَّيْلِ أَسْمَعُ؟ قَالَ: "جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرُ فَصَلِّ مَا شِئْتَ فَإِنَّ الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ مَكْتُوبَةٌ حَتَّى تُصَلِّيَ الصُّبْحَ، ثُمَّ أَقْصِرْ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَتَرْتَفِعَ قِيسَ رُمْحٍ أَوْ رُمْحَيْنِ فَإِنَّهَا تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ وَتُصَلِّي لَهَا الْكُفَّارُ، ثُمَّ صَلِّ مَا شِئْتَ فَإِنَّ الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ مَكْتُوبَةٌ حَتَّى يَعْدِلَ الرُّمْحُ ظِلَّهُ، ثُمَّ أَقْصِرْ فَإِنَّ جَهَنَّمَ تُسْجَرُ وَتُفْتَحُ أَبْوَابُهَا، فَإِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ فَصَلِّ مَا شِئْتَ فَإِنَّ الصَّلَاةَ مَشْهُودَةٌ حَتَّى تُصَلِّيَ الْعَصْرَ، ثُمَّ أَقْصِرْ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَإِنَّهَا تَغْرُبُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ وَيُصَلِّي لَهَا الْكُفَّارُ". وَقَصَّ حَدِيثًا طَوِيلًا، قَالَ الْعَبَّاسُ: هَكَذَا حَدَّثَنِي أَبُو سَلَّامٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، إِلَّا أَنْ أُخْطِئَ شَيْئًا لَا أُرِيدُهُ، فَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ.

د عمرو بن عبسة السلمي نه روایت دی هغه ویلي دي ما وویل ای د الله رسوله د شپې کومه حصه ډېره د قبولتیا والا ده؟ هغه وفرمایل: اخیرنی حصه. مونځ پکې وکړه څومره چې دې خوښه وي، ځکه د دغه وخت مونځ ته ملائکې حاضرېږي او لیکلی شي. تردې چې د سحر مونځ وکړې، بیا بند شه تردې چې نمر راوخېژي، او اوچت شي په اندازه د غشي باندې، ځکه دا راخیژي په مینځ د دوه ښکرونو د شیطان کې. او دی ته کفار مونځ کوي. بیا مونځ کوه څومره چې ستا خوښه وي، بېشکه مونځ ته ملائکې حاضرېږي او لیکلی شي، تردې چې غشی د خپل سورې سره برابر شي، بیا بند شه، بېشکه جهنم ګرمولی شي. او کولاوولی شي دروازې د هغې، کله چې نمر مائل شي. نو مونځ کوه څومره چې دې خوښه وي، ترمازیګر د مانځه پورې، بیا بند شه تردې چې نمر ډوب شي. ځکه دا ډوبېږي په دوه ښکرونو د شیطان کې، اوهغې ته کفار مونځ کوي اواوږدحدیث یې بیان کړو. عباس ویلي دي دارنګه ماته ابو سلام د ابو امامة نه حدیث بیان کړی دی. مګر دا چې زه پکې خطا کېږم لږ شان، هغه زما اراده نه ده، زه د الله نه بخښنه غواړم او هغه ته توبه اوکاږم

**تشریح: قوله:** فانها تطلع بین قرنی شیطان، د دې تشریح په رومبی جلد کښې په مواقیت الصلوٰة کښې تیره شوې ده.

**قوله:** حتی یعدل الرُّمح ظلّهٗ، تر دې پورې چه نیزه د خپل سورې برابر شي.

## شرح حدیث

د دینه بظاهره مطلب دا راوځی چه د یو مثل وخت شی خو ظاهره ده چه دا مراد نهٔ دي بلکه دلته خو نصف النهار کوم ته چه استواء وائی مراد دي، د صحیح مسلم د روایت الفاظ ډیر ښکاره او واضح دې چه، حتی یستقل الظل بالرمح. د استقلال معنی ده پورته ختل یعنی د نیزې سورې په نیز باندې اوخیژی یعنی په زمکه باندې او نهٔ غورزیږی، دا د حجاز او مکه، مدینه په اعتبار سره دې چه هلته د سخت اوړی په زمانه کښې د څیزونو اصلی

(1): سنن الترمذي/الدعوات ۱۱۹ (۳۵۷۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۵۸)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ۵۲ (۸۳۲)، سنن النسائي/المواقيت ۳۹ (۵۸۵)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۸۲ (۱۳٦٤)، مسند احمد (۱۱۱/٤، ۱۱٤) (صحيح) دود. قوله: «جوف الليل»

سورې د نصف النهار په وخت بالکل نهٔ وی بلکه د زوال نه پس سورې په زمکه باندې پریوتل شروع شی، د ابوداؤد د دې روایت مطلب به هم هغه مطلب اغستلې شی کوم چه د مسلم د روایت دې

په حدیث کښې د رمح تخصیص بالذکر دې دپاره دې چه د عربو دخلقو عادت وو چه کله به هغوی د وخت د پیژندلو اراده کوله نو خپلې نیزې به ئې په زمکه باندې خښې کړې او بیا به ئې د هغې سورې ته کتل، په واقع کښې د دې څه تخصیص نشته دې بلکه د هر ولاړ او نیغ څیز په ذریعې سره د سورې مقدار او اندازه معلومولې شی

[۱۲۷۸](۱)حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا قُدَامَةُ بْنُ مُوسَى، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِي عَلْقَمَةَ، عَنْ يَسَارٍ مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: رَآنِي ابْنُ عُمَرَ وَأَنَا أُصَلِّي بَعْدَ طُلُوعِ الْفَجْرِ، فَقَالَ: يَا يَسَارُ، إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَلَيْنَا وَنَحْنُ نُصَلِّي هَذِهِ الصَّلَاةَ، فَقَالَ: "لِيُبَلِّغْ شَاهِدُكُمْ غَائِبَكُمْ لَا تُصَلُّوا بَعْدَ الْفَجْرِ إِلَّا سَجْدَتَيْنِ".

د یسار نه روایت دی چې مولی د ابن عمر دی، هغه ویلي دي: زه ابن عمر ولیدلم او ما مونځ کولو وروسته د ختلو د فجر نه، هغه وویل: ای یسار! بیشکه رسول الله ﷺ راووتلو مونږ ته او مونږ مونځ کولو دا مونځ، هغه وویل: ودرې روسوي حاضر ستاسو غائب ته، تاسو مونځ مه کوئ وروسته د فجر نه مګر دوه رکعاته

**تشریح: قوله:** لا تصلوا بعدالفجر الا سجدتین،

## د حدیث تفسیر:

د دې صحیح او معنی مراده لکه څنګه چه امام ترمذی بیان کړې ده چه، **لا تصلوا بعد طلوع الفجر الا رکعتین،** یعنی د فجر نه مراد طلوع فجر دې او د سجدتین نه مراد رکعتین دی او د رکعتین نه مراد د صبا دوه سنته دی، دلته درې احتماله عقلا نور دی کوم چه مراد نهٔ دی بلکه هغه معانی بعضې استاذانو د طلباؤ د تشحیذ اذهان په توګه باندې کړې دی(۱) **لا تصلوا بعد طلوع الفجر الا سجدتین،** (سجدتین لره په حقیقی معنی باندې محمول کړې شی) (۲) **لا تصلوا بعد صلوة الفجر الا سجدتین،** (سجدتین په حقیقی معنی(۳) **لا تصلوا بعد صلوة الفجر الا رکعتین**(د سجدتین نه مراد رکعتین شی، ذکرت هذه المعانی الاربعة فی الکوکب الدری

[۱۲۷۹](۲)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْأَسْوَدِ، وَمَسْرُوقٍ، قَالَا: نَشْهَدُ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: "مَا مِنْ يَوْمٍ يَأْتِي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا صَلَّى بَعْدَ الْعَصْرِ رَكْعَتَيْنِ".

د اسود او مسروق نه روایت دی، دواړو ویلي دي: مونږ ګواهي کوو په عائشې باندې چې

---

[1] ): سنن الترمذي/الصلاة ١٩٤ (٤١٩)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٨(٢٣٥)، (تحفة الأشراف: ٨٥٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣، ٥٧، ١٠٤) (صحيح)

[2] ): صحيح البخاري/المواقيت ٣٣ (٥٩٣)، والحج ٧٤ (١٦٣٣)، صحيح مسلم/المسافرين ٥٤ (٨٣٥)، سنن النسائي/المواقيت ٣٥ (٥٧٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٦، ١٦٠٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١٣٤، ١٧٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤٣ (١٤٧٤) (صحيح)

هغې ویلې دي: نشته دی هېڅ یوه ورځ چه په رسول الله ﷺ باندې مگر هغه به دوه رکعاته مونځ کولو وروسته د مازیگر نه.

[۱۲۸۰] (¹) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا عَمِّي، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ ذَكْوَانَ مَوْلَى عَائِشَةَ، أَنَّهَا حَدَّثَتْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْعَصْرِ، وَيَنْهَى عَنْهَا، وَيُوَاصِلُ وَيَنْهَى عَنِ الْوِصَالِ".

د ذکوان نه روایت دی چې مولی د عائشې دی، هغې ورته حدیث بیان کړې دی، بېشکه رسول الله ﷺ وو چې مونځ کولو وروسته د مازیگر نه. او منع یې کوله د هغې نه. او وصال یې کولو په روژو کې، او منع یې کوله د وصال نه.

قوله، کان یصلی بعدالعصر و ینهی عنها، معلومه شوه چه د مازیگر نه پس مونځ د حضور ﷺ خصوصیت دې او منع د امت په حق کښې ده.

## باب الصَّلَاةِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ

### باب دی په بیان د مونځ کې مخکې د ماښام نه

### د رکعتین قبل المغرب په روایتی حیثیت سره ثبوت:

د رکعتین قبل المغرب یعنی د ماښام نه وړاندې دوه رکعاته کولو مسئله هم موجب د خلجان یعنی د تردد او فکر ده د بخاری او مسلم وغیره په احادیث صحیحه کښې د ماښام نه وړاندې دوه رکعاته کولو امر راغلې دې خو د دې باوجود نهٔ د حضور ﷺ نه په مشهور روایاتو کښې د دې کول ثابت دی او نهٔ د اکابر صحابه کرامو نه بلکه حضرت ابن عمر رضی الله عنه خو لکه څنګه چه وړاندې په کتاب کښې راروان دی ښکاره انکار فرمائیلې دې چه ما د حضور ﷺ په زمانه کښې د ماښام نه وړاندې دوه رکعاته کولو باندې هیڅوک نهٔ دی لیدلی، البته په صحیح د ابن حبان کښې او په سنن سعید ابن منصور کښې د عبدالله بن مغفل نه روایت دې چه دوی د ماښام نه وړاندې دوه رکعاته کړې دی دغه شان په دې باب کښې د حضرت انس رضی الله عنه روایت دې چه ما د حضور ﷺ په زمانه کښې قبل المغرب رکعتین کړې وو په دې باندې شاګرد ترینه تپوس اوکړو چه آیا حضور ﷺ تهٔ په مونځ کولو باندې لیدلې وې وئې فرمائیل آو لیدې ئې ووم خو دوئ مونږ ته نهٔ د دې امر فرمائیلې وو او نهٔ ئې نهی فرمائیلې وه، دغه شان د متفق علیه(بخاری او مسلم) روایت دې چه حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه کله به د ماښام آذان شروع شو نو، قام ناس من اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم یبتدرون السواری، نو په صحابه کرامو کښې به څهٔ خلق د ستنو طرف ته جلتی کوله دې دپاره چه د مونځ اودریدلو نه وړاندې دوه رکعاته اوکړی، د روایت د سیاق نه دا معلومیږی چه اکابر او مشاهیر صحابه کرامو به داسې نهٔ کول لکه څنګه چه د ناس د لفظ نه واضحه ده، او زما په ذهن کښې دا راځی چه هغه به داسې کسان وو لکه څنګه چه به یو بل روایت کښې راځی، فخرج سرعان الناس یقولون قصرت الصلوة قصرت الصلوة، دغه

(¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۶۰۷۹) (ضعیف)

شان په کوم روایت کښې چه د دې امر راغلې دې هلته دوئ دا ارشاد، لمن شاء، هم فرمائیلې دې چه د چا زړهٔ غواړی، د ثواب او فضیلت ذکر او د ترغیب کوم اړخ ئې نهٔ دې اختیار کړې نو معلومه شوه چه دا دوه رکعاته صرف مرخص فیه دی یعنی په دې کښې رخصت ورکړې شوې دې مندوب او مرغوب فیه نهٔ دی.
ما ته یادیږی چه په بعضې حواشی کښې ما لیدلې وو چه د رکعتین قبل المغرب کوم امر چه په بعضې روایتونو کښې راغلې دې هغه څه مستقل حکم نهٔ دې بلکه د دې تعلق د نهی عن الصلوة بعدالعصر سره دې او مقصد د حضور ﷺ دا دې چه د مازیګر نه پس چه د تطوع کومه نهی ده هغه په غروب باندې ختمیږی البته د غروب نه پس که څوك نفل کول غواړی نو کولې شی خپل شوق پوره کولې شی(اګر که خلاف اولیٰ ده).

## د دې مونځ په حقله د فقهاء اقوال:

احقر وائی هم دا وجه ده چه په ائمه اربعه کښې څوك هم د دې د استحباب قائل نهٔ دی لکه څنګه چه د فقه د فروعې کتابونو نه معلومیږی(کما فی هامش الکوکب الدری) اګر که امام ترمذی د امام احمد نه د دې استحباب نقل کړې دې خو حضرت شیخ په حاشیه د کوکب کښې لکې چه د حنابله د کتابونو نه صرف اباحت معلومیږی استحباب نهٔ.

[۱۲۸۱](١)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ الْحُسَيْنِ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلُّوا قَبْلَ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ"، ثُمَّ قَالَ: "صَلُّوا قَبْلَ الْمَغْرِبِ رَكْعَتَيْنِ لِمَنْ شَاءَ" خَشْيَةَ أَنْ يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً.

د عبد الله بن المزني نه روایت دی هغه ویلي دي، رسول الله ﷺ فرمایلي دي: مونځ وکړئ مخکې د ماښام نه دوه رکعاته. بیایې وویل مونځ وکړئ مخکې د ماښام نه دوه رکعاته د چا چې خوښه وي، د وجې د ویرې نه چې خلق یې سنت مستمره ونه ګرځوي.

[۱۲۸۲](٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ الْبَزَّازُ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ، عَنْ الْمُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: صَلَّيْتُ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسٍ: أَرَآكُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: "نَعَمْ رَآنَا" فَلَمْ يَأْمُرْنَا وَلَمْ يَنْهَنَا".

د انس بن مالک نه روایت دی هغه ویلي دي ما دوه رکعاته مونځ وکړو مخکې د ماښام نه په زمانه د رسول الله ﷺ کې، هغه وایي ما وویل انس ته ایا تاسو رسول الله ﷺ ولیدلئ؟ هغه وویل آو، هغه مونږ ولیدلو مونږ ته یې امر ونه کړو او مونږ یې منع هم نه کړو.

[۱۲۸۳](٣)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ،

---

(١): صحيح البخاري/التهجد ٣٥ (١١٨٣)، والاعتصام ٢٧ (٧٣٦٨)، (تحفة الأشراف: ٩٦٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٥٥) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/المسافرين ٥٥ (٨٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٦) (صحيح)

(٣): صحيح البخاري/الأذان ١٤ (٦٢٤)، ١٦ (٦٢٧)، صحيح مسلم/المسافرين ٥٦ (٨٣٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٢ (١٨٥)، سنن النسائي/الأذان ٣٩ (٦٨٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١٠ (١١٦٢)، (تحفة الأشراف: ٩٦٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٦/٤، ٥٤/٥، ٥٦، ٥٧)، سنن الدارمي/الصلاة ١٤٥ (١٤٨٠) (صحيح)

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ، بَيْنَ كُلِّ أَذَانَيْنِ صَلَاةٌ لِمَنْ شَاءَ".

د عبد الله بن مغفل نه روایت دی هغه ویلي دي چي رسول الله ﷺ ویلي دي په مابین د هر دوه اذانونو کي مونځ دی، په مابین د هر دوه اذانونو کي مونځ دی د چا چي خوښه وي.

د حنفیانو په نیز په دې کښي دوه قوله دي صاحب درمختار وغیره خو د کراهیت قول اختیار کړې دې او په بذل المجهود کښي د حضرت سهارنپوري میلان هم دې طرف ته دې او شیخ ابن الهمام اباحت لره ترجیح ورکړې ده او دا چه د کراهیت هیڅ وجه نشته دې د حضرت اقدس گنگوهی رائې هم د اباحت ده په دې شرط چه تکبیر اولی ترینه فوت نهٔ شي[1]

او بعضي صحابه کرام او تابعین د کومو نومونه چه صاحب منهل دا لیکلي دي، عبدالرحمن بن عوف، ابی بن کعب، انس، جابر. عبدالرحمٰن بن ابی لیلی ﷺ. حسن بصری، اسحاق رحمهما الله. د دې رکعتینو د استحباب قائل دي، امام نووی په شرح د مسلم کښې په صفحه ۲۷۸، کښي د دې رکعتینو هم د استحباب ترجمه قائمه کړې ده. وړاندې هغوی فرمائی چه په دې کښې زمونږ د اصحابو دوه قوله دي اشهر القولین دا دې چه مستحب نهٔ دي، او اصح القولین عند المحققین دا دې چه مستحب دي، او لیکلي ئې دي چه په سلفو کښې هم د دې دوه جماعتونه دي کوم جماعت چه د عدم استحباب قائل دې په هغوی کښې د خلفاء راشدینو نومونه ئې لیکلي دي، دامام مالك او اکثرو فقهاؤ ئې هم دا مسلك لیکلې دې خو په خپله د امام نووی رائې د استحباب ده.

عن عبدالله بن مغفل قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم بين كل آذانين صلوة. الخ. په دې کښې تغلیب دې مراد آذان او اقامت دې تغلیباً ئې آذانین اوفرمائیل لکه څنګه چه وائی شمسین، قمرین وغیره، دا حدیث متفق علیه دې دامام بخاری او مسلم دواړو د دې تخریج کړې دې کوم علماء چه په مابنام کښې د آذان او اقامت په مینځ کښې د نفلو قائل دي د هغوی خو دا حدیث دلیل دې او په خپل عموم باندې دې او کوم علماء چه د دې قائل نهٔ دي هغوی وائی چه حضور ﷺ داسې تغلیباً فرمائیلي دي[2] یا للاکثر حکم الکل. په طور باندې او دویم جواب هغوی دا ورکوئ چه په مسند بزار ،بیهقی، دار قطنی کښې دالا المغرب استثناء ذکر ده. خو دا د استثناء واله روایت ضعیف دې، حیا بن عبید الله په دې استثناء سره متفرد دې. او یا به دا اووئیلې شي چه دا حدیث په پنځونو مونځونو کښې د څلورو په حق کښې خو په استحباب او ترغیب باندې محمول ده او د مابنام د مانځه په حق کښې په جواز باندې محمول دې ځکه چه جواز خو په هر حال کښې هم په مابنام کښې دې. والله تعالی اعلم

---

[1] په کوکب کښې دغه شان دی خو په لامع الدراري کښې حضرت د دې رکعتینو استحباب لره منلي دې او دا چه د حضور ﷺ نه د دې ثبوت فعلاً خو نشته دې خو قولاً او تقریراً شته دې او د حضرت په یو تقریر کښې د دې تصریح ده چه که کوم سړې په جلتئ سره دا دوه رکعاته کولې شي نو مستحب ده(حاشیه لامع) په کوکب کښې دا هم لیکلي دي چه عدم رویة، د عدم وجود دلیل نهٔ دې، دا د ابن عمر ﷺ حدیث طرف ته اشاره ده(۱۲)۔

[2] نو گویا په دې حدیث کښې دوه تغلیبه دي یو من حیث اللفظ و التعبیر او دویم من حیث الحکم (۱۲)

[١٢٨٤]()حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي شُعَيْبٍ، عَنْ طَاوُسٍ، قَالَ: سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ، فَقَالَ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهِمَا، وَرَخَّصَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْت يَحْيَى بْنَ مَعِينٍ يَقُولُ هُوَ شُعَيْبٌ يَعْنِي وَهِمَ شُعْبَةُ فِي اسْمِهِ.

د طاوس نه روایت دی، هغه ویلي دي. تپوس وشو د ابن عمر نه د هغه دوه رکعاتونو چې د ماښام نه مخکې دي، هغه وویل: ما یو کس هم د رسول الله ﷺ په زمانه کې نه دی لیدلی چې دا دواړه یې کول، او اجازت یې ورکړی دی په دوه رکعاتونو کې وروسته د مازیګر نه. ویلي دي ابوداود: ما اوریدلي دي د یحیی بن معین نه هغه ویل: هغه شعیب ـ یعني ـ وهم کړی شعبه په نوم د هغه کې.

**تشریح: قوله**: سئل ابن عمر عن الرکعتین قبل المغرب فقال مارأیت احداً علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم یصلیها، الخ، د حضرت ګنګوهي په نیز چونکه رکعتین قبل المغرب جائز بلکه مستحب دی (کما تقدم) نو ځکه حضرت فرمائی چه عدم رویة عدم وجود لره مستلزم نهٔ دې او دا قاعده ده چه مثبت اولیٰ دې د نافی نه(الکوکب)

**المثبت اولی من النافی قاعده مطلق نهٔ ده بلکه مقید ده:**

خو شیخ ابن الهمام فرمائی چه دا قاعده کلیه نهٔ ده چنانچه په کوم ځائي کښې چه نفی، من جنس ما یعرف بدلیله، وی هلته هغه نفی د اثباب برابر وی ځکه چه اثبات لره په نفی باندې ترجیح د دې دپاره ده چه مثبت سره زیادت د علم دې پخلاف د نفی نه چه هغه کله بغیر د دلیل نه د ظاهر حال په اعتبار سره هم کولې شی، خو کومه نفی چه دما یعرف بدلیله د قبیلې نه وی هغه صرف د ظاهر حال په اعتبار سره نهٔ وی هلته د نافی سره دلیل هم وی او د ابن عمر رضی الله عنه دا خبره چه مونږ هیڅوك هم په رکعیتن کولو باندې نهٔ وو لیدلی ګویا دوئ خپله مشاهده بیانوی لهذا دا خبره بغیر د دلیل نه نهٔ ده ۱.هـ د ابن الهمام مقصد صرف په قاعده اصولیه باندې خبردارې ورکول دی ګینی دا وړاندې تیر شوې دی چه هغوی د دې رکعتینو د اباحت قائل دی.

# بَابُ صَلَاةِ الضُّحَى

## باب دی په بیان د مونځ د ځاخت کې

**لغوی تحقیق:**

بعضې وائی چه دا اضافت په حذف د مضاف سره دې، ای صلوة وقت الضحیٰ، خو ظاهره دا ده چه دا اضافت په معنی د فی دې، ای صلوة فی الضحیٰ، لکه څنګه چه، صلوة اللیل، ای صلوة فی اللیل.

ضحیٰ د ضحوة جمع ده لکه څنګه چه قریٰ د قریة. ضحی د یو مخصوص وخت نوم دې یعنی د نمر د پورته کیدلو وخت. د دې وخت نه واخلې تر الی قبیل نصف النهار، خو د دې

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧١٠٤) (ضعيف)

مونځ غوره وخت د ربع النهار نه پس دي كما في الدر المختار وغيره.
بعضې علماؤ دا ليكلي دي چه تر ربع النهار پورې د ضحوه صغرى وخت دې او د ربع النهار نه تر نصف النهار پورې دې ته ضحوة كبرى وئيلې كيږي.

## د صلوة الضحى په حقله د رواياتو اختلاف:

د دينه پس دا زده كړئ چه د صلوة الضحى په سلسله كښې د احاديثو په رواياتو كښې ډير اختلاف دې نفيا هم او اثباتا هم، لكه څنګه د باب روايتونو ته كتلو نه په اندازه اوشى، د صلوة الضحى روايات په صحاح سته كښې موجود دى او ټولو مصنفينو د دې دپاره بابونه قائم كړې دى، امام بخارى هم د دې متعلق ګڼړ بابونه قائم كړې دى البته امام نسائى د دې دپاره څه باب نۀ دې قائم كړې اګر چه روايات په نسائى كښې هم موجود دى.
عبدالرحمٰن بن ابى ليلى فرمائى چه ما ته هيڅ يو صحابي دا نۀ دى بيان كړى چه حضور ﷺ به صلوة الضحى كول سواء د ام هانئ نه چه هغوى اوفرمائيل چه حضور ﷺ د فتح مكې په ورځ د دې اتۀ ركعاته كړې وو دغه شان حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه ما حضور ﷺ په صلوة الضحى كولو باندې نۀ دې ليدلې البته زۀ ئې په خپله كوم، دا دواړه روايتونه په صحيح بخارى كښې دى، په صحيح مسلم كښې دى چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه حضور ﷺ به د صلوة الضحى څلور ركعاته كول، و يزيد ماشاء الله، وړاندې په يو روايت كښې راغې چه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه سوال اوكړې شو چه آيا حضور ﷺ به صلوة الضحى كول، قالت لا الا ان يّجي من مغيبه، يعنى كه حضور ﷺ به د ضحى يعنى ساختى په وخت كښې د خپل كوم سفر نه واپس تشريف راوړلو نو بيا به ئې كول، دا روايت په صحيح مسلم كښې هم دې دا يو څو روايتونه د نمونې په توګه باندې ليكلې شوې دى.

## د رواياتو د اختلاف توجيهات:

علماؤ د دې اختلاف مختلف توجيهات فرمائيلې دى:
(۱) د اثبات تعلق د نفس صلوة سره دې او د نفى تعلق د دوام سره دې.
(۲) د نفى تعلق د وجود سره نۀ دې بلكه د رؤية سره دې چه ما نۀ دې ليدلې
(۳) د نفى تعلق د اظهار سره دې يعنى حضور ﷺ به صلوة الضحى على وجه الشهرة و الاعلان نۀ كول.
امام خطابى فرمائى چه د صلوة الضحى ثبوت د حضور ﷺ نه په تواتر سره ثابت دې د دې انكار لكه څنګه چه دبعضې علماؤ نه منقول دې صحيح نۀ دې بلكه د نفى روايتونه مؤول دى، چنانچه دلته په سنن ابوداؤد كښې په ګڼرو رواياتو كښې د دې ترغيب او فضيلت موجود دې، د صحيح بخارى په صفحه،۱۵۷، كښې دى چه ابوهريره رضي الله عنه فرمائى، اوصانى خليلى صلى الله عليه وسلم بثلاث لا ادعهن حتى اموت صوم ثلاثة ايام من كل شهر و صلوة الضحى و نوم على وتر، ابن جريرطبرى هم د دې رواياتو حد د تواتر ته رسيدل ليكلې دى، كما فى هامش اللامع،ص، ۵۲ج۲، ، حافظ ابن حجر فرمائى چه حاكم د صلوة الضحى د اثبات په حقله چه كوم روايات راغلې دى هغې لره په يو مستقل جزء كښې جمع كړې دى او د دې رواة لره

ئې تر شلو صحابه کرامو پورې رسولې دي.

## په صلوة الضحی کښې د فقهاء اقوال

حافظ فرمائی چه ابن قیم په دې کښې د علماؤ شپږ اقوال ذکر کړې دی، حضرت شیخ لیکلي دی چه ائمه اربعه د دې په استحباب باندې متفق دی، خو په تاکد او عدم تاکد یعنی په مؤکد او غیر مؤکد کښې اختلاف دې، د امام شافعي او مالك په نیز مستحب علی التاکد دی، د حنفیانو په نیز مستحب دی خو بلا تاکد، د امام احمد په نیز مستحب دی بغیر د دوام او مواظبة نه یعنی کله کله مستحب دی، د ابن عمر رضی الله عنه په نیز باندې بدعت دې. و قیل لا یشرع الا بسبب(کله چه څۀ خاص واقعه یا نوې خبرې راپیښه شی لکه څنګه چه حضور صلی الله علیه وسلم د فتح مکې په ورځ باندې کړې وو)

## د صلوة الاشراق تحقیق

د دې نه پس زده کړئ چه عام طور باندې فقهاء او محدثین صرف صلوة الضحی ذکر کوی هم د دې باب تړې صلوة الاشراق نۀ ذکر کوی د مشایخ سلوك او صوفیاء کرامو په نیز دا دوه مونځونه دی یو صلوة الاشراق کوم چه د نمر پورته کیدو نه تر ربع نهار پورې کولې شی او دویم صلوة الضحی د کوم چه غوره وخت د ربع النهار نه تر نصف النهار نزدې پورې دې.په احیاء العلوم او د دې په شرح کښې د دې دواړو مونځونو تصریح موجوده ده چه د حضور صلی الله علیه وسلم نه دواړه مونځونه کول ثابت دی او د دې اصل او دلیل د حضرت علی رضی الله عنه هغه مرفوع حدیث دې کوم چه دجامع ترمذی په شمائل ترمذی او نسائی کښې موجود دې، کان رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا کانت الشمس من ههنا کهیئتها من ههنا عند العصر صلی رکعتین و اذا کانت الشمس من ههنا کهیئتها من ههنا عند الظهر صلی اربع رکعات، یعنی چه کله به نمر د صبا په وخت کښې د مشرق په اړخ کښې دومره پورته شو لکه څومره چه د مازیګر په وخت کښې د مغرب په اړخ کښې وی نو دغه وخت به دوئ دوه رکعاته کول(دا خو شو د اشراق مونځ) او کله به چه نمر د مشرق په اړخ کښې دومره پورته شو لکه څومره چه د مغرب په اړخ کښې د ماسپخین په وخت کښې وی نو دغه وخت به حضور صلی الله علیه وسلم څلور رکعاته کول(دا شو صلوة الضحی یعنی د ساختی مونځ)

حضرت شیخ خو هم دا فرمائی چه د محدثینو په نیز دا دوه جدا مونځونه نۀ دی، د صوفیاء په نیز دی خو په لمعات شرح د مشکوة کښې شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله په دې باندې بحث فرمائیلي دې هغه لیکی چه د خلقو په مینځ کښې دا خو دوه مونځونه متعارف دی یو د نمر د نیزې یا دوه نیزو په اندازه پورته کیدلو په وخت کوم ته چه صلوة الاشراق وائی او دویم مونځ په ربع النهار کښې کوی کوم ته چه صلوة الضحی وائی اکثرو احادیثو کښې په دې دواړو مونځونو باندې هم د صلوة الضحی اطلاق کړې شوې دې او په بعضې احادیثو کښې په دې باندې د صلوة الاشراق اطلاق هم شوې دې کوم لره چه علامه سیوطی رحمه الله په. جمع الجوامع. کښې د طبرانی په حواله سره روایت کړې دې چه حضور صلی الله علیه وسلم ام هانی ته د دې حدیث نه پس(ابن آدم اضمن لی رکعتین اول النهار اکفك اخره)اوفرمائیل، یا ام هانی

هذه صلوة الاشراق، او شیخ علی متقی خو د، جمع الجوامع، په ترتیب (کنز العمال) کښې د صلوة الاشراق په عنوان سره یو مستقل باب منعقد کړې دې. خو بیا وړاندې صاحب لمعات خپله رائې داسې لیکي چه في الواقع دا مستقل دوه مونځونه نهٔ دي بلکه صحیح صورت حال دا دې چه حضور ﷺ کله دا مونځ په دې وخت (اول النهار) کښې کړې دې او کله په هغه وخت (ربع النهار) کښې کړې وو نو ځکه بعضې خلقو دا اوګڼړله چه دا دوه جدا جدا مونځونه دي، انتهى کلامه.[1] د دینه بظاهر دا ملعومیږي چه د حضرت علی متقی صاحب د کنز العمال په نیز دا دوه مونځونه دي اګر که حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوی لره دې سره اتفاق نشته دې، یصبح علی کل سلامی من ابن آدم، (و في رواية من احدكم) صدقة، الخ،

[۱۲۸۵](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبَّادٍ. ح حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ الْمَعْنَى، عَنْ وَاصِلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُقَيْلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنَ ابْنِ آدَمَ صَدَقَةٌ تَسْلِيمُهُ عَلَى مَنْ لَقِيَ صَدَقَةٌ، وَأَمْرُهُ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ، وَنَهْيُهُ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ، وَإِمَاطَتُهُ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ صَدَقَةٌ، وَبُضْعَةُ أَهْلِهِ صَدَقَةٌ، وَيُجْزِءُ مِنْ ذَلِكَ كُلِّهِ رَكْعَتَانِ مِنَ الضُّحَى". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ عَبَّادٍ أَتَمُّ، وَلَمْ يَذْكُرْ مُسَدَّدٌ الْأَمْرَ وَالنَّهْيَ، زَادَ فِي حَدِيثِهِ، وَقَالَ: كَذَا وَكَذَا، وَزَادَ ابْنُ مَنِيعٍ فِي حَدِيثِهِ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَحَدُنَا يَقْضِي شَهْوَتَهُ وَتَكُونُ لَهُ صَدَقَةٌ؟ قَالَ: "أَرَأَيْتَ لَوْ وَضَعَهَا فِي غَيْرِ حِلِّهَا أَلَمْ يَكُنْ يَأْثَمُ؟".

د ابوذر رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: صباح کوي په هر یو اندام د ابن ادم باندې صدقه، سلام د هغه په هغه چا چې دا ورسره مخامخ شي صدقه ده، او امر د هغه په نیکۍ باندې صدقه ده، او نهي د هغه د منکر نه صدقه ده، او ضرري شی د لارې نه لرې کول صدقه ده، او کوروالی د هغه د خپل اهل سره صدقه ده، او کافي کېږي د دې ټولو نه دوه رکعاته د څاښت په وخت کې. ویلي دي ابوداود: او حدیث عباد اتم دی، او مسدد امر نه دی ذکر کړی، او نهي. هغه زیادت کړی دی په خپل حدیث کې: او هغه ویلي دي داسې، او زیادت کړی دی ابن منیع په خپل حدیث کې: هغوی وویل: ای د الله رسوله! یو کس زمونږ نه خپل شهوت پوره کوي او د هغه دپاره دې صدقه وي، هغه وفرمایل: ایا تاته پته ده که چېرې هغه کېښوده هغه په حرامو کې ایا نه ګناهګار بېږي

## شرح حدیث

صدقةٌ په ترکیب کښې د یصبح اسم دې او جار مجرور سره د خپل متعلق نه د دې خبر دې، ای یصبح الصدقة واجبة علی کل سلامیٰ، سلامی د سلامیة جمع ده، سلامیة په معنی د انمله، (د ګوتې بند) یعنی روزانه په تاسو کښې په هر یو سرې باندې د دهٔ د جوړونو او بندونو د طرف نه صدقه واجبیږي، مطلب دا دې چه د سړی په بدن کښې لکه څنګه چه مشهوره ده دري سوه شپیتهٔ جوړونه دی او روزانه هر سړی د ټولو اعضاؤ او جوړونو د

[1] احقر په لمعات کښې دا مضمون د حضرت شیخ د وصال نه پس لیدلې وو، که د شیخ په ژوند کښې مې لیدلې وې نو په دې به مې خبرې کړې وې یقینا ډیر په محظوظ شوې شو، یغفر الله لنا و له، دا مضمون په الفیض السمائي کښې هم لیکلې شوې دې۔

[2]: صحیح مسلم/المسافرین ۱۳ (۷۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۶۷/۵، ۱۶۸) (صحیح)

سلامتيا سره صبا کوی پس د دې لوئې نعمت په شکر کښې په هر بنده باندې د دهٔ د اعضاؤ د طرف نه روزانه صدقه واجبيږي، اوس دلته دا سوال کيږي چه په هر سړي کښې دومره طاقت کوم خائې دې چه روزانه دې درې سوه شپيتهٔ صدقې اوکړي، نو د دې دپاره حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلو چه، تسليمه علی من لقی صدقة و امره بالمعروف صدقة،الخ، غرض هره نيکی صدقه ده او د څاښتې وخت دوه رکعاته مونځ د دې ټولو صدقو دپاره کافی دې(د دې قائم مقام دې) ځکه چه مقصد خو د هر اندام او د جوړ د طرف نه د الله تعالی په دهٔ باندې چه کوم حق واجب دې د هغې ادا کول دی، او مونځ کښې چونکه د بدن هر اندام او جوړ د الله تعالی په اطاعت کښې متحرك کيږي نو ځکه د ټولو اندامونو د طرف نه واجب حق کيږي

[۱۲۸٦] (¹) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ وَاصِلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُقَيْلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ الدُّؤَلِيِّ، قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنْ أَحَدِكُمْ فِي كُلِّ يَوْمٍ صَدَقَةٌ، فَلَهُ بِكُلِّ صَلَاةٍ صَدَقَةٌ، وَصِيَامٍ صَدَقَةٌ، وَحَجٍّ صَدَقَةٌ، وَتَسْبِيحٍ صَدَقَةٌ، وَتَكْبِيرٍ صَدَقَةٌ، وَتَحْمِيدٍ صَدَقَةٌ، فَعَدَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ هَذِهِ الْأَعْمَالِ الصَّالِحَةِ، ثُمَّ قَالَ: "يُجْزِءُ أَحَدَكُمْ مِنْ ذَلِكَ رَكْعَتَا الضُّحَى".

د ابو الاسود الدؤلي نه روايت دی هغه ويلي دي يو ځل مونږ وو د ابوذر سره، هغه وويل صباح کوي په هر يو اندام د يو کس ستاسو نه صدقه، د هغه دپاره په هر مانځه باندې صدقه ده، او په روژه باندې صدقه ده، او په حج باندې صدقه ده، او په تسبيح باندې صدقه ده، او په تکبير ويلو باندې صدقه ده، او په تحميد ويلو باندې صدقه ده، رسول الله ﷺ داسې اعمال نيک اعمال وشمارل، بيايې وويل کافي کيږي د يو کس نه ستاسو دپاره دوه رکعاته د څاښت.

[۱۲۸۷] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ زَبَّانَ بْنِ فَائِدٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَعَدَ فِي مُصَلَّاهُ حِينَ يَنْصَرِفُ مِنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ حَتَّى يُسَبِّحَ رَكْعَتَيِ الضُّحَى لَا يَقُولُ إِلَّا خَيْرًا، غُفِرَ لَهُ خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَتْ أَكْثَرَ مِنْ زَبَدِ الْبَحْرِ".

سهل بن معاذ بن انس الجهني د خپل پلار نه روايت کوي، بېشکه رسول الله ﷺ ويلي دي هغه څوک چې خپل د مانځه په ځای کې کيني کله چې د سحر مونځ وکړي تردې چې دوه رکعاته د څاښت مونځ وکړي، وينا نه کوي مګر د خير، نو هغه ته به بخښنه وشي د هغه د ګناهونو، اګر که وي زيات د زګ د درياب نه.

[۱۲۸۸] (³) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صَلَاةٌ فِي إِثْرِ صَلَاةٍ لَا لَغْوَ بَيْنَهُمَا كِتَابٌ فِي عِلِّيِّينَ".

د ابو امامة رضی الله عنه نه روايت دی بېشکه رسول الله ﷺ ويلي دي مونځ وروسته د مانځه نه چې لغوه پکې نه وي، ليکلی شي په عليين کې

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٩٢٨) (صحيح)
²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٢٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٩/٣) (ضعيف)
³): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٩٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٣/٥) (حسن)

عن ابی امامة ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال صلوة فی اثر صلوة لا لغو بینهما کتاب فی علیین، دیو مونځ نه پس دبل مونځ (که نفل نه پس فرض وی یا د دې برعکس) په دې شان سره کول چه د دې دواړو په مینځ کښې هغه مونځ کونکې څه لغوه او بې فائدې خبرې یا کار او نه کړی نو دا مقبول ترین عمل دې، کتاب په معنی د مکتوب او علیین د هغه رجسټر نوم دې په کوم کښې چه د ابرار یعنې نیکانو خلقو نیک عمل لیکلې کیږی، او بعضې دا وائی چه دا د یو ځائې نوم دې په اووم آسمان باندې د عرش د لاندې، دلغو نه مراد نامناسب قول یا فعل په کوم کښې چه ثواب او فائده نهٔ وی (منهل)

## مناسبة الحدیث بالترجمة:

د دې حدیث د باب سره مناسبت داسې دې چه دا مختصر دې او مطول حدیث په مسند احمد کښې دې، په هغې کښې، دسبحة الضحیٰ، ذکر دې (بذل) احقر وائی چه دا حدیث په دې سند سره په سنن ابوداؤد کښې د ابواب الجماعة د لاندې په، باب ماجاء فی فضل المشی الی الصلوة، کښې تیر شوې دې په هغې کښې، دتسبیح الضحیٰ، لفظ ذکر دې.

د دې حدیث شریف نه ملعومه شوه چه دفضول کار او لغوه خبرې اثر د انسان په نیک عمل باندې پریوځی، او د نیک عمل په قبلیدلو کښې دا ځیزونه بندیز ثابتیږی، لهذا د لغوه خبرو نه په ځان ساتلو سره د نیک عمل حفاظت کول پکار دی. والله الموفق.

[۱۲۸۹] (۱) حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ أَبِي شَجَرَةَ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ هَمَّارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "يَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: يَا ابْنَ آدَمَ، لَا تُعْجِزْنِي مِنْ أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ فِي أَوَّلِ نَهَارِكَ أَكْفِكَ آخِرَهُ".

د ابو امامة رضی الله عنه نه روایت دی بېشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي: مونځ وروسته د مانځه نه چې لغوه پکې نه وي، لیکلی شي په علیین کې.

## (تعارف د راوی)

قوله، عن نعیم بن همّار قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول قال الله عزوجل ابن آدم لا تعجزنی من اربع رکعات فی اول نهارك اکفك آخره، نعیم بن همار صحابی دې او د دوئ په نوم کښې اختلاف دې بعضې وائی چه نعیم بن همار و قیل نعیم بن خمّار و قیل ابن هبّار، و قیل ابن همام والصیح ابن همّار، (کذا قاله الترمذی) ترجمه دا ده، اې ابن آدم تهٔ مهٔ فوت کوه زما نه څلور رکعاتو لره په خپل اول د ورځې کښې زهٔ به ستا کفایت اوکړم ستا په ضرورتونو او حاجتونو کښې تر آخر د ورځې پورې، کله چه د کوم سړی نه څهٔ کار نهٔ شی کیدلې او ترینه فوت شی نو هغه وخت وئیلې کیږی، اعجزه الامر، یعنی د دهٔ نه دا کار فوت شو (۲)

په دې حدیث کښې چه د کومو څلور رکعاتو ذکر دې د دینه د صبا سنت او فرض هم مراد اغستلې شی او د څاښتې څلور رکعات هم، مصنف دویمه معنی مراد اغستې ده.

(۱): تفرد به ابوداود، سنن النسائي/الکبری الصلاة ٦٠ (٤٦٦، ٤٦٧)، (تحفة الأشراف: ١١٦٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٦/٥، ٢٨٧)، سنن الدارمي/الصلاة ١٥٠ (١٤٩٢) (صحیح)

(۲) دې سړی لره فلانکی کار عاجزه کړلو او هغه کار د دهٔ په قابو کښې رانغلو بلکه ترینه فوت شولو،

[١٢٩٠] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي عِيَاضُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ "صَلَّى سُبْحَةَ الضُّحَى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ يُسَلِّمُ مِنْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى يَوْمَ الْفَتْحِ سُبْحَةَ الضُّحَى" فَذَكَرَ مِثْلَهُ. قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: إِنَّ أُمَّ هَانِئٍ، قَالَتْ: "دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَذْكُرْ سُبْحَةَ الضُّحَى بِمَعْنَاهُ".

د ام هانئ بنت ابي طالب نه روايت دى، ببشکه رسول الله ﷺ د فتحي مکه په ورځ وبي کړو نفل د ثاخت اته رکعاته، سلام به يي اړولو په هر دوه رکعاتو. ويلي دي احمد بن صالح: ببشکه رسول الله ﷺ د فتحي په ورځ د ثاخت مونځ وکړو. ذکر يي کړو پشان د هغي، ويلي دي ابن السرح: ببشکه ام هانئ ويلي دي: داخل شو په ما باندې رسول الله ﷺ او ذکر يي نه کړو نفل د ثاخت، په معنى د هغي سره.

[١٢٩١] (٢) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: مَا أَخْبَرَنَا أَحَدٌ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الضُّحَى غَيْرُ أُمِّ هَانِئٍ، فَإِنَّهَا ذَكَرَتْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ "اغْتَسَلَ فِي بَيْتِهَا وَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ فَلَمْ يَرَهُ أَحَدٌ صَلَّاهُنَّ بَعْدُ".

د ابن ابي ليلى نه روايت دى، هغه ويلي دي: مونږ ته هيڅا خبر نه دى راکړى چي هغه نبي ﷺ ليدلى دى او د ثاخت مونځ يي کړى دى بغير د ام هانئ نه، هغي ذکر کړى دى چي نبي ﷺ د فتح مکه په ورځ غسل وکړو د هغي په کور کي، او اته رکعاته مونځ يي وکړو، بيا هيڅا نه دى ليدلى چي هغه يي کړي دي وروسته.

[١٢٩٢] (٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ "هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحَى؟ فَقَالَتْ: لَا، إِلَّا أَنْ يَجِيءَ مِنْ مَغِيبِهِ، قُلْتُ: هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرِنُ بَيْنَ السُّورَتَيْنِ؟ قَالَتْ: مِنَ الْمُفَصَّلِ".

د عبد الله بن شقيق نه روايت دى هغه ويلي دي، ما تپوس وکړو د عائشي رضي الله عنها نه ايا وو رسول الله ﷺ چي د ثاخت مونځ يي کولو، هغي وويل نه، مګر دا چي د غائب به وو او رابه غلو. ما وويل: ايا رسول الله ﷺ به دوه سورتونه يو ځاى کول، هغي وويل د مفصلو نه به يي يو ځاى کول.

**تشريح: قوله**: فقالت لا الا ان يجئ من مغيبه، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه حضور ﷺ به د ځاښت مونځ نۀ کولو مګر دا که د خپل يو سفر نه به (د ځاښت په وخت کښې) واپس شو، په دې باندې کلام ددې باب په شروع کښې تير شوې دې، دا د هغه خلقو دليل دې کوم چه

(١): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٢ (١٣٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٠١٠) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/تقصير الصلاة ١٢ (١١٠٣)، والتهجد ٣١ (١١٧٦)، والجزية ٩ (٣١٧١)، والمغازي ٥٠ (٤٢٩٢)، والأدب ٩٤ (٦١٥١)، صحيح مسلم/المسافرين ١٣ (٣٣٦)، سنن الترمذي/الصلاة ١٥ (٤٧٤)، سنن النسائي/الطهارة ١٤٣ (٢٢٦)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٠٧)، وقد أخرجه: الحيض ١٦ (٣٣٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨٧ (١٣٢٣)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ٨ (٢٨)، مسند احمد (٣٤١/٦، ٣٤٢، ٣٤٣، ٤٢٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١٥١ (١٤٩٣) (صحيح)

(٣): صحيح مسلم/المسافرين ١٣ (٧١٧)، سنن النسائي/الصيام ١٩ (٢١٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٢١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧١/٦، ٢٠٤، ٢١٨) (صحيح)

وائي چه د څاښت مونځ بغير د څه سبب نه مشروع نهٔ دي، د دې سلسلې متعارض روايتونو کښې تطبيق او توجيه د باب په شروع کښې تيره شوې ده.

قوله هل كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يَقْرِنُ معا بين السور قالت من المفصل، قَرَنَ، يقرنُ د باب ضرب يضرب او نصر ينصر دواړو نه دې يعنى آيا حضور ﷺ به په نفل مونځ کښې دوه دوه سورتونه يوځائې لوستل، وئى فرمائيل او په مفصل سورتونو کښې به ئې داسې کول، د مفصل کوم دوه دوه سورتونه به چه حضور ﷺ د تهجد په مانځه کښې يوځآئې لوستل د هغې تفصيل وړاندې په کتاب کښې په، باب تحزيب القران، کښې راروان دې د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه په حديث کښې کوم لره چه په، حديث النظائر، سره هم تعبير کولې شي.

[۱۲۹۳]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "مَا سَبَّحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبْحَةَ الضُّحَى قَطُّ وَإِنِّي لَأُسَبِّحُهَا، وَإِنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَدَعُ الْعَمَلَ وَهُوَ يُحِبُّ أَنْ يَعْمَلَ بِهِ خَشْيَةَ أَنْ يَعْمَلَ بِهِ النَّاسُ فَيُفْرَضَ عَلَيْهِمْ".

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دى چې د پيغمبر ﷺ بي بي ده، بېشکه هغې ويلي دي: رسول الله ﷺ نه دي کړي نفل د څاښت هېڅکله، او بېشکه زه يې کوم، او بېشکه وو رسول الله ﷺ پرېخودلو به يې يو کار، او د هغه به خوښه وه چې ويې کړي د وجې د وېرې نه چې خلق به پرې عمل شروع کړي، نو فرض به شي پرې.

قوله انها قالت ما سبّح رسول الله صلى الله عليه وسلم سبحة الضحى قط و انى لاسبحها، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى چه حضور ﷺ صلوة الضحى بالكل نهٔ وو کړى خو زه ئې کوم، د دې حديث حواله او توجيه د باب په شروع کښې راغلې ده، مثلا دا چه د دوام نفى ده، كما قال البيهقى، يا د رؤيت نفى ده چه ما نهٔ دې ليدلې، ځکه چه د څاښتې په وخت کښې به حضور ﷺ عام طور باندې نهٔ وو يا خو به په سفر کښې وو يا به دغه وخت حضور ﷺ په جومات کښې وو.

## د حضرت عائشه رضي الله عنها په حيرت کښ د اچونکي عمل اهتمام:

دلته حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى، چه زهٔ په خپله دا مونځ کوم، د مؤطا امام مالك په يو روايت کښې دى هغه فرمائى چه، لو نُشرلى ابواىَ ما تركتهما، که ما ته بالفرض څوك راشي او دا اووائى چه ستا مور او پلار دواړه ژوندى شول او بيا دنيا ته راغلل(هغوى سره د ملاويدلو دپاره لاړه شه) نو دغه وخت هم زهٔ دا مونځ نهٔ شم پرېخودلې، الله اكبر! د دې حضرات صحابه کرامو او صحابيات په نيز د آخرت د تيارئ په اعمالو کښې څومره قدرې اهتمام وو، او په واقع کښې د آخرت مسئله ده هم د دې قابله چه د دې دومره اهتمام اوکړې شى هلته ژوند په نهٔ ختميدونکې کروړونو کالونه تيريدو باندې هم دختميدو نوم نهٔ اخلى، هلته هر يو څيز که راحت وى او که مصيبت هميشه دپاره دې، زمونږ اسلاف او اکابر هم الحمد الله تعالى د صحابه کرامو رضي الله عنهم نمونه وو، اللهم احشرنا معهم وارزقنا اتباع هديهم.

(): صحيح البخاري/التهجد ٥ (١١٢٨)، صحيح مسلم/المسافرين ١٣ (٧١٨)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٩٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/قصر الصلاة ٨(٢٩)، مسند احمد (٦/٨٥، ٨٦، ١٦٧، ١٦٩، ٢٢٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١٥٢ (١٤٩) (صحيح)

[۱۲۹۴]() حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، قَالَا: حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ، قَالَ: قُلْتُ لِجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ: أَكُنْتَ تُجَالِسُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: نَعَمْ كَثِيرًا" فَكَانَ لَا يَقُومُ مِنْ مُصَلَّاهُ الَّذِي صَلَّى فِيهِ الْغَدَاةَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، فَإِذَا طَلَعَتْ قَامَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

حدیث بیان کړی دی سماک، هغه وایي ما وویل جابر بن سمرة ته: ایا ته وي چې د رسول الله ﷺ سره به کېناستلې؟ هغه وویل آو ډېر، وو به هغه چې نه به پاڅیدلو د خپل د مانځه د هغه ځای نه چې د سحر مونځ به یې پکې کړی وو تردې چې نمر به راوختلو، کله چې به راوختلو نو پاڅیدلو به.

**تشریح**: **قوله**: حتی تطلع الشمس فاذا طلعت قام، یعنی الی الصلوٰة، دا د څاښت مونځ شو، یا دا مراد دې چه، قام وانصرف الی البیت، په دې صورت کښې د حدیث به د ترجمة الباب سره مناسبت نهٔ وی.

## باب في صلاة النهار

### باب دی په بیان د مونځ د ورځ کې

وړاندې یو بل باب راغې د دې مقابل، باب صلوة اللیل مثنی مثنی، په دې ړومبی باب کښې چه مصنف کوم حدیث راوړې دې په دې کښې د صلوة اللیل او نهار د دواړو مونځونو ذکر دې، صلوة اللیل والنهار مثنی مثنی، او راتلونکی باب په حدیث کښې صرف د اللیل ذکر دې، صلوة اللیل مثنی مثنی.

[۱۲۹۵]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْبَارِقِيِّ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "صَلَاةُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى".

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی، هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه هغه ویلي دي: مونځ د شپې او د ورځې دوه دوه دی.

**په حدیث الباب کښې د، النهار، د زیادت تحقیق:**

دا حدیث په اصل کښې د ابن عمر رضی الله عنه نه مروی دې، عن علی بن عبدالله البارقی عن ابن عمر رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال صلوة اللیل و النهار مثنیٰ مثنیٰ، د ابن عمر رضی الله عنه نه دې حدیث لره روایت کونکی ګڼړ رواة دی، علی بن عبدالله البارقی، نافع، طاؤس، عمرو بن دینار وغیره، په دې راویانو کښې صرف علی بن عبدالله البارقی په دې حدیث کښې د نهار زیادت ذکرکړې دې، کوم چه دلته مصنف په دې باب کښې راوړې دې، د البارقی نه علاوه د نورو راویانو روایت ئې په راتلونکی باب کښې راوړې دی(په کوم کښې چه د، والنهار، زیادت نشته دې) امام ترمذی هم داسې کړې دی چه دوه جدا جدا بابونه ئې قائم کړې دی، په یو باب کښې ئې د عدم زیادت واله حدیث راوړې دې او هغې ته ئې، حسن

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٥٢ (٦٧٠)، والفضائل ١٧ (٢٣٢٢)، سنن النسائي/السهو ٩٩ (١٣٥٩، ١٣٥٨)، (تحفة الأشراف: ٢١٥٥)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٢٩٥ (٥٨٥)، مسند احمد (٩١/٥، ٩٧، ١٠٠، ١٠١، ١٠٥، ١٠٧) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ٣٠١ (٥٩٧)، سنن النسائي/قيام الليل ٢٤ (١٦٦٧)، سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ١٧٢ (١٣٢٢)، (تحفة الأشراف: ٧٣٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦/٢، ٥١)، سنن الدارمي/ الصلاة ١٥٥ (١٥٠٠) (صحيح)

صحیح، فرمائیلي دي او په دویم باب کښې ئې د زیادت واله روایت راوړې دي او دا ئې غیر صحیح ګرځولي دي، اګر که هغوی دا هم فرمائیلي دی چه د علی بن عبد الله البارقی متابعت عبد الله العمری کړې دي خو چونکه د امام ترمذی په نیز عمری ضعیف دي نو ځکه ئې د هغهٔ د متابعت اعتبار اونه کړو، د امام ترمذی په شان امام نسائی هم د، والنهار، زیادت لره خطاء ګرځولي دي او امام بخاري او مسلم دا حدیث صرف د عمرو بن دینار او نافع په طریق سره اغستي دي، یعنی په کوم کښې چه د، والنهار، زیادت نشته دې، هسې خو اګر که امام بخاری د، نهار، زیادت واله روایت لره په صحیح بخاری کښې نهٔ دې اغستې خو هغوی د یو سوال په جواب کښې د دې زیادت لره ثابت ګرزولی دې، او دغه شان امام بیهقی هم دې لره صحیح ګرځولي دې او فرمائیلي دی چه، البارقی، ثقه راوی دې او د ثقه زیادت مقبول دې، په اصل کښې د جمهور علماؤ او شافعیه او حنابله مسلك هم دا دې چه د لیل او نهار دواړو مونځونه مثنیٰ مثنیٰ غوره دي په دې حیثیت سره، نهار، زیادت واله روایت د دوئ د مسلك موافق دې.

## په حدیث سره ثابته مسئله کښې د ائمه مسالك:

دا خو په دې حدیث باندې محدثانه کلام شو، یعنی من حیث السند، اوس فقهی حیثیت سره هم واورئ، د امام شافعی او احمد په نیز نفل مونځ مطلقا خواه که د شپې وی یا د ورځې دوه دوه رکعاته کول غوره دی او دا حدیث د دوئ په نیز په افضلیت باندې محمول دې اګر که د دې نه کم هم جائز دې او زیات هم، چنانچه د دې دواړو امامانو په نیز تنفل برکعة و بثلث و بخمس، په هر شان جائز دی او د حضرت امام مالك رحمه الله په نیز نفل مونځ صرف مثنی مثنی دې د دوئ په نیز نهٔ په دې باندې زیادت جائز دې او نهٔ کمې، ګویا حصر د جانبینو نه دې، او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مثنی مثنی مطلب دا نهٔ دې چه په هر دوو رکعاتو باندې دې سلام اوګرځولې شی بلکه د دې نه مراد شفعا شفعا دې یعنی نفل مونځ شفعًا کیدل پکار دی نهٔ وترا، چنانچه د دوئ په نیز باندې تنفل برکعة یا بثلاث جائز نهٔ دې، هسې د دوئ په نیز باندې په نوافلو کښې افضل مطلقا د ورځې نفل وی یا د شپې څلور څلور رکعاته دی. د دوئ په نیز باندې د ورځې څلور رکعاته ولې غوره دی د دوئ دلیل د ابوایوب رضی الله عنه هغه حدیث دې کوم چه په، باب الاربع قبل الظهر، کښې تیر شوې دې د کوم الفاظ چه دا دی، اربع قبل الظهر لیس فیهن تسلیم تفتح لهن ابواب السماء، او په شپه کښې د څلور رکعاتو غوره کیدو دلیل هغه د حضرت عائشه رضی الله عنها حدیث دې کوم چه متفق علیه دې، امام بخاری او مسلم د دې تخریج کړې دې او وړاندې په متن کښې هم راروان دې، کان رسول الله صلی الله علیه وسلم لا یزید فی رمضان و لا فی غیره علی احدی عشرة رکعة یصلی اربعا فلا تسال عن حسنهن و طولهن ثم یصلی اربعًا، الخ، دغه شان قیاس هم دا غواړی ځکه چه په څلور رکعاتونو کښې د تحریمې د اوږدوالی د وجه نه مشقت زیات دې، والاجر علی قدر النصب، او د صاحبینو مسلك دا دې چه په شپه کښې د دوو دوو رکعاتو کول غوره دی، لحدیث صلوة اللیل مثنی مثنی، او د، نهار، زیادت ضعیف دې، کما تقدم، او د ورځې په

نفلونو کښې څلور څلور غوره دی(د دې دلیل د امام صاحب په مسلك کښې موجود دې) دا د ترجمة الباب او د باب په رومبی حدیث باندې کلام شو.

[١٢٩٦]()حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، حَدَّثَنِي عَبْدُ رَبِّهِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ أَبِي أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْمُطَّلِبِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الصَّلَاةُ مَثْنَى مَثْنَى أَنْ تَشَهَّدَ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ، وَأَنْ تَبَاءَسَ وَتَمَسْكَنَ وَتُقْنِعَ بِيَدَيْكَ، وَتَقُولَ: اللَّهُمَّ اللَّهُمَّ، فَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ ذَلِكَ فَهِيَ خِدَاجٌ". سُئِلَ أَبُو دَاوُدَ عَنْ صَلَاةِ اللَّيْلِ مَثْنَى، قَالَ: إِنْ شِئْتَ مَثْنَى وَإِنْ شِئْتَ أَرْبَعًا.

مطلب د نبي ﷺ نه روایت کوي هغه ویلي دي: مونځ دوه دوه رکعاته دی، تشهد به وی په هر دوه رکعاتونو کې، او ځان به مسکین ښکاره کړې، او ځان به خفه کړې، او لاسونه به اوچت کړې، او داسې به ووایې: ای الله ای الله! څوک چې داسې ونه کړي نو هغه ناقص دی. تپوس وشو د ابوداود نه د مانځه د شپې د دوه رکعاتو، هغه وویل: که ستا خوښه وي دوه کوه او که ستا خوښه وي نو څلور کوه.

حدثنا بن المثنی، الخ، قوله، عن المطلب عن النبی صلی الله علیه وسلم،

**په سند کښې د شعبه نه غلطی:**

په دې سند کښې د شعبه نه په څو نومونو کښې غلطی شوې ده، کما قال الترمذی فی باب التخشع فی الصلوة، ص، ٥٠، لهذا ترمذی طرف ته دې رجوع اوکړې شی، آخری غلطی دا ده چه هغوی دا وئیلې دې، عن عبدالله بن الحارث عن المطلب، حال دا دې چه صحیح دا ده چه، عن ربیعة بن الحارث بن عبدالمطلب عن الفضل بن عباس رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم

**تشریح: قوله**: الصلوة مثنی مثنی، په دې کښې دوه احتماله دی(١) رکعتین رکعتین هر دوو رکعاتونو باندې سلام،(٢) په هر دوو رکعاتونو باندې تشهد په مینځ کښې که سلام اوګرځوی او که او نۀ ګرځوی، په دې صورت کښې وړاندې چه کوم راځی، ان تشهد فی کل رکعتین، دا د ماقبل تفسیر به شی، و هو فی الاصل تتشهد حذفت احدی التائین، و ان تبئاس، ای تظهر البؤس والفاقة، دا چه د خپل حاجت او خپله بدحالی د الله د وړاندې ښکاره کړی، او په یونسخه کښې دی،ان تباءس، د باب تفاعل نه، بحذف احدی التائین، کان فی الاصل، تتباءس،

**قوله**: و تمسکن، فی الاصل تتمسکن ای تظهر المسکنة،

**قوله**: و تُقنع بیدیك، من الاقناع، ای ترفع یدیك للدعاء، یعنی ډیر په خشوع او خضوع سره مونځ اوکړی او دواړه لاسونه د الله د وړاندې خوارة کړی او ډیر په ژړا په د یا الله یا الله آوازونه کول او د الله نه دعاء غوښتل.

١): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٢ (١٣٢٥)، (تحفة الأشراف: ١١٢٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٧/٤) (ضعيف)

# بَابُ صَلَاةِ التَّسْبِيحِ

## باب د صلاة التسبيح

څکه چه په دې مانځه کښې تسبيحات په کثرت سره لوستلې شي نو ځکه د دې مونځ نوم صلوة التسبيح او صلوة التسابيح کيخودلې شو دا ډير دبرکت او فضيلت واله مونځ دې د دې فائدې په خپله په حديث کښې ذکر دی چه په دې کښې لس قسمه ګناهونه معاف کيږی چنانچه په حديث کښې راځي چه، غفر الله لك ذنبك اوّله و آخره قديمه و حديثه خطاءه و عمده صغيره و كبيره سره و علانيته، دامام ترمذی د کلام معلوميږی چه حضرت عبد الله بن المبارك به د دې مونځ اهتمام کولو او د دې فضائل به ئې بيانول، د دې مانځه په طريقو کښې يوه طريقه هغه ده کومه چه هغوی په خپله اختيار کړې ده د کومې بيان به چه وړاندې راشي.

### د صلوة التسبيح دحديث تخريج او تحقيق:

د صلوة التسبيح حديث په صحاح سته کښې ابوداؤد، ترمذی، ابن ماجه کښې دې، په صحيحين کښې نشته دې او په اصحاب السنن کښې امام نسائی د دې تخريج نهٔ دې کړې، د دې نه علاوه دا حديث په صحيح ابن خزيمه، مستدرك حاكم کښې موجود دې، امام بيهقی د دې تصحيح کړې ده او ابن منده خو د دې په تصحيح کښې يو مستقل تصنيف کړې دې، بيهقی فرمائی چه عبدالله بن المبارك به صلوة التسبيح کول او په هره زمانه کښې صلحاء دا د يو بل نه اغستونکی راروان دی، د علماؤ په تعامل او تداول سره حديث مرفوع ته تقويت ملاويږی، دا حديث د ګڼړو صحابه کرامو نه مروی دې، په خپله مصنف دلته د دريو صحابه کرامو نه روايت کړې دې، ابن عباس، عبدالله بن عمر رضي الله عنهما او يو انصاری صحابی بلا تعين د نوم نه،د حافظ مزیّ رائې دا ده چه د انصاری نه مراد جابر بن عبدالله رضي الله عنه دې او د حافظ ابن حجر رائې دا ده چه بظاهر هغه ابو كبشة الانصاری دې.

خو ابن الجوزی رحمه الله د صلوة التسبيح حديث لره په موضوعاتو کښې شمار کړې دې، په دې باندې روستنو علماؤ د دهٔ تعاقب کړې دې ، حافظ ابن حجر او علامه سيوطی وغيره ليکلې دی چه، اساء ابن الجوزی، افرط ابن الجوزی، يعنی ابن الجوزی د ډير مبالغې نه کار اغستې دې او ډير بد ئې کړې دی چه دې لره ئې په موضوعاتو کښې شمار کړې دې، د موسی بن عبدالعزيز راوی د چا د وجه نه چه ابن الجوزی دې حديث ته موضوع وئيلې دې نو اول خو يحيی بن معين او نسائی د دهٔ توثيق کړې دې او دويمه دا چه ابراهيم بن الحكم په صحيح ابن خزيمه کښې د دهٔ متابعت کړې دې، په بذل المجهود کښې د دې امورو تفصيل او حوالې ذکر دی.

[۱۲۹۷] (۱)حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ بِشْرِ بْنِ الْحَكَمِ النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ أَبَانَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِلْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ: "يَا عَبَّاسُ، يَا عَمَّاهُ، أَلَا أُعْطِيكَ، أَلَا أَمْنَحُكَ، أَلَا أَحْبُوكَ، أَلَا أَفْعَلُ بِكَ عَشْرَ خِصَالٍ إِذَا أَنْتَ فَعَلْتَ ذَلِكَ غَفَرَ اللَّهُ لَكَ ذَنْبَكَ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ، قَدِيمَهُ وَحَدِيثَهُ، خَطَأَهُ وَعَمْدَهُ، صَغِيرَهُ وَكَبِيرَهُ، سِرَّهُ وَعَلَانِيَتَهُ، عَشْرَ خِصَالٍ أَنْ تُصَلِّيَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ تَقْرَ

(۱) سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۹۰ (۱۳۸۷)، (تحفة الأشراف: ۶۰۳۸) (صحيح)

فِي كُلِّ رَكْعَةٍ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً، فَإِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي أَوَّلِ رَكْعَةٍ وَأَنْتَ قَائِمٌ، قُلْتَ: سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً، ثُمَّ تَرْكَعُ، فَتَقُولُهَا وَأَنْتَ رَاكِعٌ عَشْرًا، ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ الرُّكُوعِ فَتَقُولُهَا عَشْرًا، ثُمَّ تَهْوِي سَاجِدًا فَتَقُولُهَا وَأَنْتَ سَاجِدٌ عَشْرًا، ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ مِنَ السُّجُودِ فَتَقُولُهَا عَشْرًا، ثُمَّ تَسْجُدُ فَتَقُولُهَا عَشْرًا، ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ فَتَقُولُهَا عَشْرًا، فَذَلِكَ خَمْسٌ وَسَبْعُونَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ، تَفْعَلُ ذَلِكَ فِي أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تُصَلِّيَهَا فِي كُلِّ يَوْمٍ مَرَّةً فَافْعَلْ، فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً، فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً، فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً، فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي عُمُرِكَ مَرَّةً".

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ وویل عباس بن عبد المطلب ته: ای عباس! ای تره! ایا زه تاته درنه کړم ایا زه په تا لس کارونه ونه کړم؟ کله چي ته هغه وکړي نو الله به تاته ستا اولني او اخیرني ګناهونه معاف کړي، مخکني او نوي، د خطایي او د قصد، واړه او غټ، پټ او ښکاره، لس کارونه. دا چي ته مونځ وکړي څلور رکعاته، لولي به په هر رکعات کي فاتحه د کتاب او سورت، کله چي ته فارغ شي د قراءت نه په اولني رکعات کي او ته لا ولاړ یي، ته به وی (سبحان الله و الحمد لله و لا اله الا الله و الله اکبر) پنځلس کرته، بیا به رکوع وکړي، ته به وی دغي لره او ته به په رکوع کي یي لس ځل، بیا به سر اوچت کړي د رکوع نه، ته به وی هغي لره لس ځل، بیا خکته شي سجدي ته، ته به وی هغي لره د سجدي په حالت کي لس ځل، بیا به سر اوچت کړي د سجدي نه ته به وی هغي لره لس ځله، بیا به سجده وکړي ته به وی هغي لره لس ځله، بیا سر اوچت کړي ته به وی هغي لره لس ځله، دا پنځه اویا شو، په هر رکعات کي به دا کوي په څلورو رکعاتونو کي، که ستا طاقت وي چي هره ورځ یي یو ځل وکړي نو ویي کړه، که داسي نه وي نو په هره جمعه کي یي یوځل وکړه، که داسي دي ونه کړل نو په میاشت کي یي یو ځل وکړه، که داسي دي ونه کړل نو په کال کي یي یو ځل وکړه، که داسي دې ونه کړل نه په عمر کي یي یو ځل وکړه.

عن ابن عباس ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال للعباس بن عبدالمطلب يا عباس يا عماه الا اعطيك الا افعل بك عشر خصال، ترجمه، آیا زهٔ تاته لس څیزونه اونهٔ ښایم د دې نه مراد یا خود ګناهونو قسمونه دی کوم چه په متن کښې ذکر دی(او په شروع کښې تیر شوې دی) یا د دې نه مراد لس تسبیحات دی ځکه چه د قیام نه علاوه په باقی ټولو ارکانو د صلوٰة کښې دا تسبیحات لس لس ځله دی.

## د صلوٰة التسبیح کیفیت:

د صلوٰة التسبیح کومه طریقه چه په دې مرفوع حدیث کښې ذکر ده هغه دا دا چه د تکبیر تحریمه او سبحانك اللهم نه پس حسب معمول دقراءت نه فارغ شی نو رکوع ته تللو نه وړاندې پنځلس ځلې دا تسبیحات اولولی، سبحان الله والحمد لله و لا اله الا الله و الله اکبر، (١) بیا دې لس ځل په رکوع کښې دا تسبیحات د رکوع د تسبیحاتو نه پس، بیا دې لس ځل په قومه کښې، بیا دې لس لس ځله په دواړو سجدو کښې، او لس ځله دې په جلسه بین

(١) ما د خپل کور د یو مستوری نه اوریدلي دی چه حضرت مولانا محمد الیاس صاحب رحمه الله به فرمائیل چه د هر پنځو ځلو نه پس دې یو ځل، لاحول و لاقوة الابالله، هم وئیلي شي)۔

السجدتين کښې، او لس ځله دې د دويمې سجدې نه په پورته کيدلو سره(په جلسه استراحت کښې) دا په يو رکعت کښې د تسبيحاتو شمير پنځه اويا شول، او په څلورو رکعاتونو کښې درې سوه ځل شول، او امام ترمذی د حضرت عبدالله بن المبارك نه چه کوم کيفيت د دې مونځ نقل کړې دې په هغې کښې داسې دی چه،د سبحانك اللهم، نه پس د قراءت نه وړاندې پنځلس ځله او بيا رکوع ته د تللو نه وړاندې لس ځله، په دې صورت کښې د قيام په حالت کښې به د پنځلسو ځلو په ځائې باندې پنځه ويشت شول، په دې صورت کښې به د دويمې سجدې نه پس په جلسه د استراحت کښې دا تسبيحات نۀ لوستلې کيږي، لهذا مجموعي شمير به په يو رکعت کښې هم پنځه اويا وی.

[۱۲۹۸]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُفْيَانَ الْأُبُلِّيُّ، حَدَّثَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ أَبُو حَبِيبٍ، حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُونٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، قَالَ: حَدَّثَنِي رَجُلٌ كَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ يَرَوْنَ أَنَّهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ لِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ائْتِنِي غَدًا أَحْبُوكَ وَأُثِيبُكَ وَأُعْطِيكَ" حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ يُعْطِينِي عَطِيَّةً، قَالَ: "إِذَا زَالَ النَّهَارُ، فَقُمْ فَصَلِّ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ"، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ: "ثُمَّ تَرْفَعُ رَأْسَكَ، يَعْنِي مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ، فَاسْتَوِ جَالِسًا وَلَا تَقُمْ حَتَّى تُسَبِّحَ عَشْرًا، وَتَحْمَدَ عَشْرًا، وَتُكَبِّرَ عَشْرًا، وَتُهَلِّلَ عَشْرًا، ثُمَّ تَصْنَعُ ذَلِكَ فِي الْأَرْبَعِ رَكَعَاتٍ"، قَالَ: "فَإِنَّكَ لَوْ كُنْتَ أَعْظَمَ أَهْلِ الْأَرْضِ ذَنْبًا غُفِرَ لَكَ بِذَلِكَ" قُلْتُ: فَإِنْ لَمْ أَسْتَطِعْ أَنْ أُصَلِّيَهَا تِلْكَ السَّاعَةَ؟ قَالَ: "صَلِّهَا مِنَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ خَالُ هِلَالٍ الرَّأْيِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْمُسْتَمِرُّ بْنُ الرَّيَّانِ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو مَوْقُوفًا، وَرَوَاهُ رَوْحُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، وَجَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ النُّكْرِيِّ، عَنْ أَبِي الْجَوْزَاءِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَوْلَهُ، وَقَالَ فِي حَدِيثِ رَوْحٍ: فَقَالَ: حَدِيثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د ابو الجوزاء نه روايت دی هغه وئيلي دي ماته حديث بيان کړی دی يو سړي چې د هغه صحبت وو، د دوی دا خيال دی چې هغه عبد الله بن عمرو وو، هغه وئيلي دي ماته نبي ﷺ ووئيل ماته صبا راشه چې تاته درکړم، ترديې چې ما ګمان وکړو چې هغه به ماته يو عطيه راکوي، هغه ووئيل کله چې نمر زوال وکړو نو پاڅېږه څلور رکعاته وکړه، ذکر يې کړو په شان د هغه. هغه ووئيل بيا به سر اوچت کړې يعني د سجدې دويمې نه، نو برابر شه په ناسته، او ته مه پاڅېږه ترديې چې ته تسبيح ووايې لس ځل، او تحميد ووايې لس ځل، او تکبير ووايې لس ځل، او تهليل ووايې لس ځل، بيا به دغه شان کوې په څلورو رکعاتونو کې، هغه ووئيل که چېرې ته د ځمکې والاو کې غټ ګناهګاريې نو نو هم تاته به بخښنه وشي په دغې سره، ما ووئيل که زما طاقت نه وي چې په دغه وخت کې يې وکړم؟ هغه ووئيل وئې کړه دشپې او د ورځې، ابوداود وئيلي دي حبان بن هلال د هلال الراي ماما دی. وئيلي دي ابوداود: د دې روايت کړی مستمر بن الريان د ابو الجوزاء نه او هغه د عبد الله بن عمر نه د وقف په طريقه، او روايت کړی دی روح بن المسيب او جعفر بن سليمان د عمرو بن مالک النکري نه او هغه د ابو الجوزاء نه او هغه د ابن عباس نه قول د هغه، او وئيلي يې دي په حديث د روح کې، هغه ووئيل دا حديث دی د نبي ﷺ نه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۶۰۶) (حسن صحيح)

[۱۲۹۹]()حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُهَاجِرٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ رُوَيْمٍ، حَدَّثَنِي الْأَنْصَارِيُّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِجَعْفَرٍ: بِهَذَا الْحَدِيثِ، فَذَكَرَ نَحْوَهُمْ، قَالَ فِي السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ مِنَ الرَّكْعَةِ الْأُولَى كَمَا قَالَ فِي حَدِيثِ مَهْدِيِّ بْنِ مَيْمُونٍ.

انصاري حديث بيان كړی دی، بېشكه رسول الله ﷺ وويل جعفر ته، په دي حديث سره. ذكر يي كړو پشان د هغوی. هغه وويل په دويمه سجده كي د اولني ركعات نه لكه څنګه چي هغه ويلي وو په حديث د مهدي بن ميمون كي.

## بَاب رَكْعَتَيِ الْمَغْرِبِ أَيْنَ تُصَلَّيَانِ

### باب دی په بيان د دوه ركعاتونو د ماښام كي چي چېرته به كولی شي؟

د دينه وړاندې د ابواب السهو نه پس متصلا باب التطوع فی البيت تير شوې دې په كوم كښې چه دا حديث دې، اجعلوا فی بيوتكم من صلوتكم و لا تتخذوها قبورا،او يو باب وړاندې هم راروان دې،د باب القنوت فی الصلوات، نه پس متصلا په كوم كښې دا حديث راځی، خير صلوة المرء فی بيته الا المكتوبة.

[۱۳۰۰]()حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي الْأَسْوَدِ، حَدَّثَنِي أَبُو مُطَرِّفٍ مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُوسَى الْفِطْرِيُّ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى مَسْجِدَ بَنِي عَبْدِ الْأَشْهَلِ، فَصَلَّى فِيهِ الْمَغْرِبَ، فَلَمَّا قَضَوْا صَلَاتَهُمْ رَآهُمْ يُسَبِّحُونَ بَعْدَهَا، فَقَالَ: "هَذِهِ صَلَاةُ الْبُيُوتِ".

د كعب بن عجرة نه روايت دی، بېشكه نبي ﷺ راغی مسجد د بني الاشهل ته، د ماښام مونځ يي پكې وكړو، هركله چي هغوی خپل مونځ پوره كړو ويي ليدل هغوی چي نفل مونځ يي كولو وروسته د هغې نه، پس هغه وفرمايل: دا د كورونو مونځ دی.

قوله، هذه صلوة البيوت.ابن ابی ليلی په دې كښې متشدد دې د دوئ په نيز باندې د ماښام روستنی سنت په جومات كښې جائز نۀ دی، او هسې د جمهورو په نيز د ماښام څه تخصيص نشته دې بلكه ټول رواتب او نوافل د شپې وی او كه د ورځې وی دا ټول په كور كښې كول غوره دی، للحديث المذكور، خو كه په كور كښې د دې نه د مشغوليدو ويره وی نو بيا په جومات كښې كور غوره دی و هذا هو مذهب الجمهور والائمة الثلثة.خو امام مالك او سفيان ثوری د شپې او د ورځې د فرق قائل دی د ورځې سنت په جومات كښې او د شپې په كور كښې، ابن رشد د دې فرق حكمت دا بيان كړې دې چه د ورځې په كور كښې د بال بچ سره د اخته كيدو ويره ده.

[۱۳۰۱]()حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجَرْجَرَائِيُّ، حَدَّثَنَا طَلْقُ بْنُ غَنَّامٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي الْمُغِيرَةِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطِيلُ الْقِرَاءَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ حَتَّى يَتَفَرَّقَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ نَصْرٌ الْمُجَدَّرُ، عَنْ يَعْقُوبَ الْقُمِّيِّ وَأَسْنَدَهُ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدَّثَنَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى بْنِ الطَّبَّاعِ، حَدَّثَنَا نَصْرٌ الْمُجَدَّرُ، عَنْ يَعْقُوبَ مِثْلَهُ.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۳۹۴، ۱۵۶۳۶) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ۳۰۷ (الجمعة ۷۱) (۶۰۴)، سنن النسائي/قيام الليل ۱ (۱۶۰۱)، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۰۷) (حسن)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۴۶۸، ۱۸۶۷۷) (ضعيف)

د ابن عباس ﷛ نه روایت دی هغه وئیلي دي وو رسول الله ﷺ چي اوږدولويي قراءت په دوه رکعاتونو کي وروسته د ماښام نه، تردي چي د مسجد والا به جدا شول وئیلي دي ابوداود د دي روایت کړی دی نصر المجدر د یعقوب القُمي نه او مسند کړی يي دی د هغه پشان وئیلي دي ابوداود مونږ ته د هغي بیان کړي دی محمد بن عیسی بن الطباع، هغه وايي مونږ ته حدیث بیان کړی دی نصر المجدر د یعقوب نه په مثل د هغي.

## (تطبیق بین الروایتین)

كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يطيل القراءة فى الركعتين بعدالمغرب، یعني کله کله ګیني حضور ﷺ به اکثر په دي کښي سورة کافرون او اخلاص لوستلو، حتى يتفرق اهل المسجد، دا د هذه صلوٰة البیوت خلاف دي، جواب دا دي چه کیدي شي چه حضور ﷺ داسي د بیان دجواز دپاره یا د بل څه مصلحت دپاره کړي وی یا په څه عذر باندي محمول دي.

قال ابوداؤد راوه نصرٌ المجدَّرُ عن يعقوب القُمي، پورته ذکر شوي حدیث په دویم طریق سره بیانوی چه دا حدیث په دي دویم سند سره هم مروی دي، مُجدَّر، هغه سړی ته وائی د چا په بدن باندي چه د ننکو نښي وی یعني د دانو، واسنده مثله، کوم حدیث چه د کوم صحابی نه مروی وی هغي ته د هغه مسند وئیلي شي.

## شرح السند:

د پورتني حدیث راوی صحابی ابن عباس ﷛ وو، لهذا مطلب دا شو چه څنګه دا ړومبي سند تر ابن عباس ﷛ پوري رسیدلي وو دغه شان دا دویم سند هم تر هغوی پوري رسيږي، نصر مجدر د مصنف استاذ نهٔ دي، لهذا د دي دویم سند ابتداء د نصر نه نهٔ شو، نو څکه مصنف وړاندي د سند ابتداء لره بیانوی، فرمائی، قال آبوداؤد حدثنا محمد بن عیسٰی بن الطباع نا نصر المجدر، معلومه شوه چه په دي دویم سند کښي د مصنف استاد محمد بن عیسی دي هغهٔ دي لره د نصر نه روایت کوی.

پوهیدل پکار دی چه د کوم حدیث متن بلا سند یا ناقص سند سره بیان کړي شی هغي ته تعلیق وائی، بیا د دینه پس کله چه سند پوره شي نو د دینه محدثین حضرات په وصل سره تعبیر کوی، لهذا د مصنف کلام چه، رواه نصر المجدر، نو دا تعلیق دي او وړاندي، حدثنا محمد بن عیسی، دا د دي وصل دي، په ړومبی سند کښي د یعقوب قمی نه روایت کونکی طلق بن غنَّام وو او په دویم سند کښي نصر مجدر دي.

**تنبیه:** بحمد الله تعالى مونږ د کتاب د شروع نه واخله تر اوسه پوري تقریبا د هر حدیث تشریح کونکی راروان یو، اوس اراده دا ده چه د کتاب الصلوٰة تر آخره پوري خو هم دا طریقه جاری اوساتو د دینه پس وړاندي د وخت د کمي د وجه نه بالاستیعاب د سندونو د تشریح اراده نشته دي مګر لږ لږ کوم ځائي کښي چه زیات ضرورت اوګڼړو، والله الموفق

[۱۳۰۲]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ النَّبِيِّ بِمَعْنَاهُ مُرْسَلًا. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ حُمَيْدٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ يَعْقُوبَ، يَقُولُ: كُلُّ شَيْءٍ حَدَّثْتُكُمْ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَهُوَ مُسْنَدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

سعيد بن جبير د نبي ﷺ نه روايت کوي په معنی د هغې سره په طريقې د ارسال سره. ويلي دي ابوداود: ما د محمد بن حميد نه اوريدلي دي چې هغه ويل: ما اوريدلي دي د يعقوب نه هغه ويل: هر شی چې زه يې تاسو ته بيانوم د جعفر بن ابي المغيرة نه او هغه د سعيد بن جبير نه او هغه د نبي ﷺ نه نو هغه به مسند وي ابن عباس نه او هغه به روايت کړی وي د نبي ﷺ نه.

**تشريح**: **قوله**: حدثنا احمد بن يونس الخ، دا د ابن عباس رضي الله عنه د حديث دريم طريق دې، ړومبې دوه طريق د مسند وو او دا طريق مرسل ده په دې کښې د سعيد بن جبير تابعی نه پس صحابی يعنی ابن عباس رضي الله عنه ذکر نۀ دې، خو وړاندې مصنف د يعقوب قمی چه کومه مقوله نقل کړې ده د هغې تقاضا دا ده چه دا دريم طريق هم مرسل نۀ شی بلکه مسند دې وی ځکه چه يعقوب وائی چه کوم يو حديث هم زۀ په دې سند سره بيان کړم ، عن جعفر عن سعيد بن جبير عن النبی صلی الله عليه وسلم، نو د هغې په حقله تاسو دا اوګنړئ چه هغۀ د ابن عباس رضي الله عنه نه مروی دې، صورة اګر که د صحابی د نۀ ذکر کولو د وجه نه هغه مرسل وی خو په واقع کښې به هغه مسند وی.

## بَابُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْعِشَاءِ

### باب دی په بيان د مونځ کې وروسته د ماسخوتن نه

د سنتو او نوافلو بيان خو اکثر تير شوې دې اوس نوبت وو د قيام الليل او د تهجد چنانچه د دېنه روستو د دې باب راځی لهذا وئيلې شی چه دا باب د قيام الليل دپاره تمهيد او د هغې بسم الله ده.

[۱۳۰۳]([2])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ الْعُكْلِيُّ، حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ، حَدَّثَنِي مُقَاتِلُ بْنُ بَشِيرٍ الْعِجْلِيُّ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَ: سَأَلْتُهَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "مَا صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ قَطُّ فَدَخَلَ عَلَيَّ إِلَّا صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ أَوْ سِتَّ رَكَعَاتٍ، وَلَقَدْ مُطِرْنَا مَرَّةً بِاللَّيْلِ فَطَرَحْنَا لَهُ نِطَعًا فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى ثُقْبٍ فِيهِ يَنْبُعُ الْمَاءُ مِنْهُ، وَمَا رَأَيْتُهُ مُتَّقِيًا الْأَرْضَ بِشَيْءٍ مِنْ ثِيَابِهِ قَطُّ".

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی، هغه ويلي دي ما تپوس وکړو د هغه نه په باره د مونځ د رسول الله ﷺ کې، هغې وويل رسول الله ﷺ د ماسخوتن مونځ هيڅکله نه دی کړی دی هيڅکله چې بيا ماته راغلی دی مګر څلور او يا شپږ رکعاته مونځ يې کړی دی، بېشکه يو ځل په

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۴۶۸، ۱۸۶۷۷) (ضعيف)

[2]: تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۴۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۸/۶) (ضعيف)

مونږ دشپې باران وشو، مونږ هغه ته د څرمنې يوه ټوټه واچوله، ګويا چې زه ګورم هغه سوري ته چې اوبه پکې راوتې، او ما هغه نه دی ليدلی چې ځان بچ ساتلو د ځمکې نه په څه شي سره د خپلو جامو نه.

عن عائشة رضي الله عنها قالت ما صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم العشاء قط فدخل علىّ الا صلى اربع ركعات، الخ، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه حضور ﷺ به د ماسخوتن د مانځه نه فارغ شو نو چه کله به هم زما کور ته راتللو نو څلور رکعاته به ئې کول.

و لقد مطرنا مرة بالليل فطرحنا له نطعا فكاني انظر الى ثقب فيه،الخ، يو ځل داسې اوشول چه د ماسخوتن په وخت کښې باران اوشو(د کوم د وجه نه چه زمکه لمده شوه پس مونږ په هغه ځائې باندې) د څرمنې يوه مصلى اوغوړوله په کومې کښې چه يو سورې هم وو د کوم د وجه نه چه به د باران اوبۀ بهرته راوتلې، و ما رايته متقيا الارض بشيء من ثيابه قط، ما نۀ وو ليدلې چه حضور ﷺ لره خپلې جامې د خاروو نه ساتې، فكاني انظر، هغۀ اوبۀ راوتونکې ګويا زۀ اوس هم ګورم، يا خو د دينه مقصود قوت حافظه او يادداشت لره بيانول دی چه دا خبره ماته ډير په ښۀ شان ياده ده يا دا د باب محبت نه دې چه دا تيره واقعه بيانولو په وخت کښې زما د سترګو د وړاندې راغله او د هغې ياد تازه شو، الله تعالى دې مونږ ته د حضور ﷺ محبت او د دوئ داتباع توفيق راکړی، آمين، صاحب منهل د طبرانى په روايت د ابن عباس رضي الله عنه نه مرفوعا نقل کړې دی چه کوم سړی د ماسخوتن نه پس څلور رکعاته نفل اوکړی د کوم په ړومبی دوو رکعاتونو کښې چه سورة کافرون او اخلاص اولولی او په آخری دوو رکعاتونو کښې تنزيل السجده او تبارك الذى بيده الملك اولولی نو د دې ثواب داسې دې لکه څنګه چه د ليلة القدر په شپه کښې وی، زۀ وايم چه تقريبا د دې هم معنى يو روايت موقوفه په سنن نسائى جلد ثانى،ص، ۶۵۹، کښې موجود دې، والله الموفق.

## أَبْوَابُ قِيَامِ اللَّيْلِ

### بابونه د قيام الليل په باره کې

## بَابُ نَسْخِ قِيَامِ اللَّيْلِ وَالتَّيْسِيرِ فِيهِ

### باب دی په بيان د نسخ د قيام الليل کې او اسان والى په هغې کې

په شروع کښې د صلوات خمسه د فرضيت نه وړاندې قيام الليل فرض وو بيا يو کال نه پس منسوخ شو، فرضيت او د دې د نسخ دواړو ذکر په سورة مزمل کښې دې، د سورت په اول کښې فرضيت دې او د سورت په آخره کښې د دې نسخ مذکور ده، د امت په حق کښې خو په نسخ باندې اجماع ده البته عبيده سلمانى وغيره بعضې تابعين د وجوب قائل ؤو، و لو قدر حلبة شاة، يعنى په څومره وخت کښې چه د بيزې پئ لوشلې کيږی، خو دا خلاف شاذ دې څکه د دې اعتبار نۀ دې کړې شوې، دا مضمون د کتاب الصلوة په بالکل شروع کښې په ابتدائى مباحثو کښې تير شوې دې، او د حضور اقدس ﷺ په حق کښې د علماؤ اختلاف دې بعضې د حضور ﷺ په حق کښې هم د نسخ قائل دی او بعضې نۀ دی د

فريقينو استدلال د. و من الليل فتهجد به نافلة لك، نه دي، ځوك چه د نسخ قائل دى هغوى وائى چه په دې آيت كښې د تهجدو د نفلو كيدو تصريح ده او ځوك چه د وجوب قائل دي هغوى وائى چه، نافلة لك، اى فريضة زائدة لك خاصة. يعنى د نفل لغوى معنى مراد ده اصطلاحي معنى مراد نۀ ده.

[۱۳۰۴] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ ابْنُ شَبُّوَيْهِ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ فِي الْمُزَّمِّلِ: قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ۝ نِصْفَهُ سورة المزمل آية ۱-۲ نَسَخَتْهَا الْآيَةُ الَّتِي فِيهَا عَلِمَ أَنْ لَنْ تُحْصُوهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْءَانِ سورة المزمل آية ۲۰ وَنَاشِئَةُ اللَّيْلِ: أَوَّلُهُ، وَكَانَتْ صَلَاتُهُمْ لِأَوَّلِ اللَّيْلِ، يَقُولُ: هُوَ أَجْدَرُ أَنْ تُحْصُوا مَا فَرَضَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ مِنْ قِيَامِ اللَّيْلِ، وَذَلِكَ أَنَّ الْإِنْسَانَ إِذَا نَامَ لَمْ يَدْرِ مَتَى يَسْتَيْقِظُ، وَقَوْلُهُ: وَأَقْوَمُ قِيلًا سورة المزمل آية ۶ هُوَ أَجْدَرُ أَنْ يَفْقَهَ فِي الْقُرْآنِ، وَقَوْلُهُ: إِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيلًا سورة المزمل آية ۷، يَقُولُ: فَرَاغًا طَوِيلًا.

د ابن عباس نه روايت دى هغه په سورة المزمل كې ويلي دي (قم الليل الا قليلا نصفه) هغې ايت منسوخ كړې ده چې په كې (علم ان لن تُحصوها فتاب عليكم فاقرءُوا ما تيسر من القرآن). و ناشئةَ الليل معنى ده اوله حصه د شپې. او وو مونځ د هغوى په اوله حصه دشپې كې هغه وايي: هغه ډير لائق دى چې تاسو وشمارئ هغه چې فرض كړى يې دى په تاسو د قيام الليل نه. او دا ځكه چې كله انسان اوده شي نه پوهېږي چې كله به بيدارېږي، او قوله د هغه: اقومُ قيلًا: دا ډير لائق دى چې پوهه شي په قرآن. او قول د هغه: (ان لک في النهار سبحًا طويلًا) هغه وايي: ډيره وزګارتيا.

**تشريح: قوله:** و ناشئة الليل اوّله، يعنى د شپې په شروع حصه كښې مونځ كول مراد دى، قال تعالى انّ ناشئة الليل هىَ اشد وطاء و اقوم قيلا، يعنى د شپې په اوله حصه كښې مونځ كول زيات غوره دى چه په نسبت ددې چه د شپې په آخره حصه كښې پاسى او اوكړې شى، ځكه چه د اودهٔ كيدو نه پس بيا پاسيدل د سړى په اختيار كښې نهٔ دى، معلومه نۀ ده چه سترګې به ئې اوغړيږى او كه نۀ،د، وطاء، معنى د پيمال كولو ده خو دلته مراد لازمى معنى ده يعنى قابو موندل چه په اوله شپه كښې مونځ كول زيات قابو كيدو واله څيز دې او د، واقوم قيلا، قيل په معنى د قول يعنى تلفظ او اقوم په معنى د صحيح والى يعنى دغه وخت كښې د قرآن تلاوت زيات صفا او صحيح وى (د خوب اثر د نۀ كيدو د وجه نه)

قوله، ان لك فى النهار سبحًا طويلا، يعنى د شپې زمونږ د عبادت دپاره ښهٔ وخت اوباسئ، او د دنياوى كارونو دپاره په ورځې كښې ډير اوزګار وخت دې، (هغه په دې كښې كوئ)

[۱۳۰۵] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ يَعْنِي الْمَرْوَزِيَّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ سِمَاكٍ الْحَنَفِيِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ أَوَّلُ الْمُزَّمِّلِ كَانُوا يَقُومُونَ نَحْوًا مِنْ قِيَامِهِمْ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ حَتَّى نَزَلَ آخِرُهَا، وَكَانَ بَيْنَ أَوَّلِهَا وَآخِرِهَا سَنَةٌ.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٥٤) (حسن)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٦٧٨) (صحيح)

د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: هركله چي نازل شو اول د مزمل، نو دوی به قيام كولو په اندازه د قيام د دوی په مياشت د رمضان كي، تردي چي نازل شو اخير د هغي، او په مابين د اول او د اخير كي يو كال وو

# باب قِيَامِ اللَّيْلِ

## باب دی په بيان د قيام الليل کي

په رومبی باب کښې مصنف د قيام الليل منسوخ کيدل ثابت کړې دی، زما په خيال کښې د دې ترجمې غرض دفع د توهم ده چه دا دې اونهٔ ګنړلې شی چه د تهجدو استحباب هم منسوخ شوې دې نهٔ بلکه وجوب منسوخ شوې دې

**فائده**: آيا د تهجد د مانځه دپاره دا ضروری ده چه هغهٔ دې د اودهٔ کيدو نه روستو وی؟ د علماؤ په دې کښې اختلاف دې بعضې وائی چه کوم مونځ د ماسخوتن نه پس اوکړې شی هم هغه تهجد دی او د بعضو په نيز د خوب نه پس قيد ورسره شته دې، علامه شامی فرمائی چه په احاديثو کښې د صلوة الليل چه کوم ترغيب راغلې دې د هغې نه مراد تهجد دی هغه فرمائی چه په صلوة الليل او تهجد کښې فرق دې، صلوة الليل يا قيام الليل خو هغه مونځ دې کوم چه بعد العشاء وی که بعد النوم وی يا قبل النوم وی، چنانچه د طبرانی د يو روايت مرفوعه په آخر کښې دا دی چه، و ما كان بعد صلوة العشاء فهو من الليل، خو تهجد د هجود نه ماخوذ دې د کوم معنی چه د نوم يعنی د خوب ده او د تهجد معنی ده ازالة الهجود، ای النوم بتكلف، يعنی په تکليف سره خپل خوب زائله كول، لکه څنګه چه لفظ دتأثم دې د کوم معنی چه د تحفظ عن الاثم ده لهذا تهجد به هم هغه مونځ وی کوم چه بعد النوم وی(شامی، ص، ۵۰۶، ج، ۱).

[۱۳۰۶] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ عَلَى قَافِيَةِ رَأْسِ أَحَدِكُمْ إِذَا هُوَ نَامَ ثَلَاثَ عُقَدٍ يَضْرِبُ مَكَانَ كُلِّ عُقْدَةٍ عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيلٌ فَارْقُدْ، فَإِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللَّهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَإِنْ تَوَضَّأَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَإِنْ صَلَّى انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ، فَأَصْبَحَ نَشِيطًا طَيِّبَ النَّفْسِ، وَإِلَّا أَصْبَحَ خَبِيثَ النَّفْسِ كَسْلَانَ".

د ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: غوټه اچوي ښتي د يو كس ستاسو نه، كله چي هغه اوده شي، دري غوټي، وايي د هري غوټي خواته، تاته غته شپه پاتې ده اوده شه، كله چي هغه بيدار شي او د الله ذكر وكري نو يوه غوټه ايله شي، كه اودس وكري نو بله غوټه ايله شي، كه مونځ وكري نو بله غوټه ايله شي، نو صباح كړي خوشحاله، ښه نفس والا، او كه داسي نه وي نو صباح كړي خبيث النفس او ناراسته

**تشريح: قوله**: عن ابی هريرة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله عليه وسلم قال يعقد الشيطن علی قافية رأس أحدكم ثلث عُقدِ،الخ، په دې حديث کښې د تهجد دفضيلت ذكر دې هغه دا چه

(۱): صحيح البخاري/التهجد ۱۲ (۱۱۴۲)، وبدء الخلق ۱۱ (۳۲۶۹)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۲۰)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ۲۸ (۷۷۶)، سنن النسائي/قيام الليل ۵ (۱۶۰۸)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۷۴ (۱۳۲۹)، موطا امام مالك/قصر الصلاة ۲۵ (۹۵)، مسند احمد (۲/۲۴۳، ۲۵۳، ۲۵۹) (صحيح)

حضور ﷺ فرمائی چه کله سړي اوده شي نو شیطان دا حرکت کوی چه د ده د سر په روستنئ حصه کښې درې غوټې اولګوی، په هر غوټه باندې لاس راکاږی او دا لولی چه، علیك لیل طویل. تا ته خو له ډیره شپه پاتې ده(لهذا اوده شه) دا شرح خو په هغه صورت کښې ده کله چه حدیث د دې په ظاهری او حقیقی معنی باندې محمول کړې شی، د دې وجه نه څوك چه ساحران وی نو هغوی غوټې وغیره په تارو باندې لګوی، او د دې مجازی او لازمی معنی هم مراد کیدې شی یعنی بندول. یعنی د هرې غوټې نه مراد یو بندول دی ګویا هغه د دریو څیزونو نه بندول کوی(۱) د الله د ذکر نه(۲) د اودس او طهارت نه(۳)د مانځه نه. اوس د بندولو چه هغه کومه طریقه هم اختیار کړی هغه ته ټولې طریقې او لارې معلومې دی، نو که هغه سړې د شپې د خوب نه رابیدار شی او هغه د الله ذکر وغیره اوکړو نو د دې په برکت سره یوه غوټه پرانستلې شی، د دینه پس که هغه اوس هم اوکړلو نو دویمه غوټه هم پرانستلې شی. والله تعالی اعلم

والا اصبح خبیث النفس کسلان. ګینی(یعنی که دریواړه کارونه ئې اونه کړل) بلکه اوده پاتې شو تر دې چه د سحر مونځ ترینه فوت شو. یا مطلب دا دې چه د تهجد مونځ ترینه فوت شو نو بیا دا سړې په داسې حالت کښې صباکوی چه د ده طبیعت غیر منشرح او سست وی او که دریواړه کارونه ئې نه وی کړی نو دا سستوالې به ئې ډیر زیات وی، او که بعضې ئې اوکړل او بعضې ئې اونه کړل نو هم په دې اعتبار سره به په دې کښې کمې راځی

## یو اشکال او د هغې جواب:

دلته یو اشکال دې هغه دا چه په حدیث کښې خو راځی چه. لا یقولن احدکم خبثت نفسی و لکن لیقل لقست نفسی. دا حدیث په خپله په دې کتاب د سنن ابوداؤد کښې په کتاب الادب کښې راځی. (بذل، ص۲۷۳، ج۵،) د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه منع په خپله د خپل ځان په حقله ددې لفظ دوئیلو نه ده او دلته متکلم دا صفت د بل دپاره بیانوی خو په دې کښې دا اشکال دې چه کوم څیز د خپل ځان دپاره ناخوښ وی نو هغه د نورو دپاره هم ناخوښ کیدل پکار دی. لهذا صحیح جواب دا دې چه دې لفظ لره بغیر د څه محرك او مصلحت نه استعمالول مناسب نه دی، او که د څه مصلحت سره وی لکه څنګه چه تنفیر(نفرت پیدا کول) او تحذیر(ویرول)لکه څنګه چه په دې حدیث کښې دی نو په دې کښې څه باك نشته دې. قاله الحافظ(لامع،ص،۸۵ج،۲) د بنده په خیال کښې د دې یو جواب بل هم کیدې شی کوم چه د حضرت شیخ د تقریر نه ماخوذ دې هغه دا چه منع په کوم مقام باندې شوې ده هغه بل دې هغه خودا دې چه د کوم سړی طبیعت د معدې د خرابتیا د وجه نه یا د زیات خوراك د وجه خراب وی(کوم ته چه د زړه خرابتیا وائی) نو هلته دا لفظ د. خبث. دې نه استعمالوی ځکه چه د خباثت لفظ ډیر سخت او شنیع یعنی بد دې په دې سره د ذهن انتقال د نفس خباثت او د باطن طرف ته کیږی حال دا دې چه هغه مراد نه دې. او دلته په دې حدیث کښې د کومې معنی دپاره چه دا لفظ د خبث استعمال کړې شوې دې د دې مناسب دې ځکه چه د ذکر پریخودلو او د طهارت پریخودلو سره په نفس کښې خباثت

پيدا کيږي، والله تعالى اعلم

[۱۳۰۷]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُمَيْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي قَيْسٍ، يَقُولُ: قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: لَا تَدَعْ قِيَامَ اللَّيْلِ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ لَا يَدَعُهُ، وَكَانَ إِذَا مَرِضَ أَوْ كَسِلَ صَلَّى قَاعِدًا".

د يزيد بن خمير نه روايت دی هغه ويلي دي ما اوريدلي دي د عبد الله بن ابي قيس نه هغه ويل عائشې رضي الله عنها ويلي دي قيام الليل مه پرېږده ببشکه رسول الله ﷺ وو چې نه يې پرېښودل. او کله چې به مريض شو او يا به ناراسته وو نو کولو به يې په ناسته

[۱۳۰۸]([2])حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا ابْنُ عَجْلَانَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رَحِمَ اللَّهُ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ، فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ، رَحِمَ اللَّهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ وَأَيْقَظَتْ زَوْجَهَا، فَإِنْ أَبَى نَضَحَتْ فِي وَجْهِهِ الْمَاءَ".

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي، رسول الله ﷺ ويلي دي الله دې رحم وکړي په سړي باندې چې پاځېږي دشپې او مونځ وکړي او خپله ښځه هم پاځوي، که چېرې انکار وکړي نو د هغه په مخ باندې اوبه واچوي. الله دې رحم وکړي په ښځه باندې چې پاځېږي دشپې او مونځ وکړي. او خپل خاوند رابيدار کړي، که چېرې انکار وکړي، نو واچوي اوبو لره د هغه په مخ

**تشريح: قوله**: فان ابت نضح في وجهها الماء، د دينه معلومه شوه چه د اودهٔ سړی د پاسولو آسانه طريقه دا ده چه په هغهٔ باندې دې اوبهٔ اوشيندلې شي. فان ابى نضحت في وجهه الماء، د دينه حسن معاشرت مستفاد کيږي، د زوجينو په خپل مينځ کښې بې تکلفي اومينه محبت،


[۱۳۰۷]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُمَيْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي قَيْسٍ، يَقُولُ: قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: لَا تَدَعْ قِيَامَ اللَّيْلِ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ لَا يَدَعُهُ، وَكَانَ إِذَا مَرِضَ أَوْ كَسِلَ صَلَّى قَاعِدًا".

د يزيد بن خمير نه روايت دی هغه ويلي دي ما اوريدلي دي د عبد الله بن ابي قيس نه هغه ويل عائشې رضي الله عنها ويلي دي قيام الليل مه پرېږده ببشکه رسول الله ﷺ وو چې نه يې پرېښودل. او کله چې به مريض شو او يا به ناراسته وو نو کولو به يې په ناسته

[۱۳۰۸]([4])حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، حَدَّثَنَا ابْنُ عَجْلَانَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رَحِمَ اللَّهُ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ، فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ، رَحِمَ اللَّهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ وَأَيْقَظَتْ زَوْجَهَا، فَإِنْ أَبَى نَضَحَتْ فِي وَجْهِهِ الْمَاءَ".


[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٢٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٦/٦، ٢٤٩) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/قيام الليل ٥ (١٦١١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٥ (١٣٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٠/٢، ٤٣٦) (حسن صحيح) ويأتي هذا الحديث برقم (١٤٥٠)


[3]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٢٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٦/٦، ٢٤٩) (صحيح)

[4]: سنن النسائي/قيام الليل ٥ (١٦١١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٥ (١٣٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٠/٢، ٤٣٦) (حسن صحيح) ويأتي هذا الحديث برقم (١٤٥٠)

د ابوهریره ﷺ نه روایت دی هغه ویلي دي، رسول الله ﷺ ویلي دي: الله دي رحم وکړي په سړي باندې چې پاڅېږي دشپې او مونځ وکړي او خپله ښځه هم پاڅوي، که چېري انکار وکړي نو د هغه په مخ باندې اوبه واچوي، الله دي رحم وکړي په ښځه باندې چې پاڅېږي دشپې او مونځ وکړي، او خپل خاوند رابیدار کړي، که چېري انکار وکړي، نو واچوي اوبو لره د هغه په مخ.

**تشریح: قوله:** اذا ایقظ الرجل اهله من اللیل فصلیا او صلی رکعتین کتبا فی الذاکرین والذاکرات. د دینه بظاهر معلومیږی چه که یو کس سړې وی یا ښځه د تهجدو اهتمام کوی خواه دوه رکعاته دې وی نو د دې سړی یا ښځې شمیر په. الذاکرین الله کثیرا والذاکرات(اعد الله لهم مغفرة و اجرا عظیما) کښې کیږی، اللهم اجعلنا منهم.

## بَابُ النُّعَاسِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دی په بیان د خوب کې په مانځه کې

[۱۳۱۰] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَرْقُدْ حَتَّى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ، فَإِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا صَلَّى وَهُوَ نَاعِسٌ لَعَلَّهُ يَذْهَبُ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبَّ نَفْسَهُ".

د پیغمبر ﷺ بي بي عائشې نه روایت دی، بېشکه نبي ﷺ ویلي دي: کله چې خوب ورځي یو کس ته ستاسو په مانځه کې نو اوده دې شي تر دې چې د هغه خوب ختم شي، بېشکه یو کس ستاسو نه کله چې مونځ کوي او هغه اوده وي کیدی شي چې هغه استغفار غواړي او ځان ته کنځلې وکړي.

[۱۳۱۱] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنَ اللَّيْلِ فَاسْتَعْجَمَ الْقُرْآنُ عَلَى لِسَانِهِ فَلَمْ يَدْرِ مَا يَقُولُ فَلْيَضْطَجِعْ".

د ابو هریره ﷺ نه روایت دی هغه ویلي دي: رسول الله ﷺ ویلي دي: کله چې کس ستاسو نه پاڅېږي دشپې، اوسخت شي قرآن دهغه په ژبه، نه پوهېږي چې څه وایي هغه، نو ده دي ووهي.

**تشریح: قوله:** فاستعجم القرآن علی لسانه فلم یدرِ ما یقول فلیضطجع. کوم سړې چه قیام اوکړي راو بیا په مونځ کولو کولو کښې په ده باندې پرکالی راشي، او د ده په ژبه باندې د قرآن تلفظ کول ګران شي او دا هم خبر ورنه نه وی چه زه څه لولم نو بیا ده پکار دی چه سملي. کله په طبیعت کښې چستوالې وی نو بیامونځ کول پکار دی. لکه څنګه چه وړاندې راروان دی، لیصلی احدکم نشاط.

---

[۱]: صحیح البخاري/الوضوء ۵۳ (۲۱۲)، صحیح مسلم/المسافرین ۳۱ (۷۸۶)، (تحفة الأشراف: ۱۷۱۴۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۱۴۶ (۳۵۵)، سنن النسائي/الطهارة ۱۱۷ (۱۶۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۸۴ (۱۳۷۰)، موطا امام مالك/صلاة اللیل ۱ (۳)، مسند احمد (۶/۵۶، ۲۰۵)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۰۷(۱۴۲۳) (صحیح)

[۲]: صحیح مسلم/المسافرین ۳۱ (۷۸۷)، (تحفة الأشراف: ۱۴۷۲۱)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۸۴ (۱۳۷۲)، مسند احمد (۲/۲۱۸) (صحیح)

[۱۳۱۲](١)حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، وَهَارُونُ بْنُ عَبَّادٍ الْأَزْدِيُّ، أَنَّ إِسْمَاعِيلَ بْنَ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ وَحَبْلٌ مَمْدُودٌ بَيْنَ سَارِيَتَيْنِ، فَقَالَ: "مَا هَذَا الْحَبْلُ؟" فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَذِهِ حَمْنَةُ بِنْتُ جَحْشٍ تُصَلِّي، فَإِذَا أَعْيَتْ تَعَلَّقَتْ بِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِتُصَلِّ مَا أَطَاقَتْ، فَإِذَا أَعْيَتْ فَلْتَجْلِسْ". قَالَ زِيَادٌ: فَقَالَ: "مَا هَذَا؟" فَقَالُوا: لِزَيْنَبَ تُصَلِّي، فَإِذَا كَسِلَتْ أَوْ فَتَرَتْ أَمْسَكَتْ بِهِ، فَقَالَ: "حُلُّوهُ" فَقَالَ: "لِيُصَلِّ أَحَدُكُمْ نَشَاطَهُ، فَإِذَا كَسِلَ أَوْ فَتَرَ فَلْيَقْعُدْ".

د انس رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي: داخل شو رسول الله ﷺ مسجد ته، او يوه رسۍ اوږده په مابين د دوه ستنو کې، هغه وويل: دا د څه شي رسۍ ده؟ وويل شو ای د الله رسوله! دا حمنة بنت جحش مونځ کوي کله چې ستړې شي نو ځان ورپورې زوړند کړي. رسول الله ﷺ وفرمايل: مونځ دې کوي تر کومه يې چې طاقت وي، کله چې ستړې شي بيا دې کيني، ويلي دي زياد: هغه وفرمايل: دا څه شی دی؟ هغوی وويل: دا د زينب دپاره ده مونځ کوي، کله چې ناراسته شي او يا سسته شي نو دا رسۍ نيسي، هغه وويل: دا ايله کړئ. هغه وفرمايل: مونځ دې کوي يو کس ستاسو نه د چستۍ په حالت کې، کله چې ناراسته شي او ستړی شي نو بيا دې کيني.

## بَابُ مَنْ نَامَ عَنْ حِزْبِهِ

### باب دی په بيان د هغه چا کې چې د خپل ورد نه

[۱۳۱۳](٢)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ. ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ الْمَعْنَى، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ، وَعُبَيْدَ اللَّهِ أَخْبَرَاهُ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَبْدٍ، قَالَ: عَنِ ابْنِ وَهْبٍ بْنِ عَبْدٍ الْقَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ نَامَ عَنْ حِزْبِهِ أَوْ عَنْ شَيْءٍ مِنْهُ فَقَرَأَهُ مَا بَيْنَ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَصَلَاةِ الظُّهْرِ كُتِبَ لَهُ كَأَنَّمَا قَرَأَهُ مِنَ اللَّيْلِ".

وهب ابن عبد القاري ويلي دي، ما اوريدلي دي د عمر بن الخطاب نه هغه به ويل: رسول الله ﷺ ويلي دي: څوک چې د خپل ورد نه اوده شي. او يا د څه شي د هغې نه. نو هغه يې ولوستلو په مينځ د سحر او د ماسپخين مونځ کې، ګويا چې هغه ولوستلو د شپې.

(١): صحيح مسلم/المسافرين ٣٢ (٧٨٤)، سنن النسائي/قيام الليل ١٥ (١٦٤٤)، (تحفة الأشراف: ٩٩٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التهجد ١٨ (١١٥٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨٤ (١٣٧١)، مسند احمد (١٠١/٣، ١٨٤، ٢٠٤، ٢٠٥) (صحيح) دون ذكر حمنة

(٢): صحيح مسلم/المسافرين ١٨ (٧٤٧)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٩١ (الجمعة٥٦) (٥٨١)، سنن النسائي/قيام الليل ٥٦ (١٧٩١، ١٧٩٢، ١٧٩٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٧ (١٣٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٩٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القرآن ٣ (٣)، مسند احمد (٣٢/١، ٥٣)، سنن الدارمي/الصلاة ١٦٧ (١٥١٨) (صحيح)

## بَابُ مَنْ نَوَى الْقِيَامَ فَنَامَ

### باب دی په بیان د هغه چا کښې چې نیت د قیام وکړي او اوده شو

[۱۳۱٤] (١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ رَجُلٍ عِنْدَهُ رَضِيٍّ، أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنِ امْرِئٍ تَكُونُ لَهُ صَلَاةٌ بِلَيْلٍ يَغْلِبُهُ عَلَيْهَا نَوْمٌ إِلَّا كُتِبَ لَهُ أَجْرُ صَلَاتِهِ، وَكَانَ نَوْمُهُ عَلَيْهِ صَدَقَةً".

سعید بن جبیر نه روایت دی، هغه روایت کوي د یو سړي نه چې د هغه په نزد د ښه حال والا دی، بېشکه عاشي ورته خبر ورکړی دی چې بېشکه رسول الله ﷺ ویلي دي: نشته دی هېڅ یو سړی چې د هغه دشپې مونځ وي او خوب وربانديې غالب ش. مګر لیکلی به شي د هغه دپاره اجر د مونځ د هغه، او خوب د ده د هغه دپاره صدقه شوه.

## بَابُ أَيُّ اللَّيْلِ أَفْضَلُ

### باب دی چې کومه حصه دشپې افضل ده؟

د شپې کومه حصه غوره ده(دي دپاره چه هغه حصه کښې راپاسي او عبادت اوکړي شي)

[۱۳۱۵] (٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَعَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الْأَغَرِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى سَمَاءِ الدُّنْيَا حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ، فَيَقُولُ: مَنْ يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ، مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ، مَنْ يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ ويلي دي: راکوزېږي رب زمونږ لوی شان والا هره شپه اسمان د دنيا ته کله چې پاتې شي دريم ثلث وروستنی، نو هغه وايي: څوک مانه دعاء غواړي چې ورله قبوله يې کړم؟ څوک زمانه سوال کوي چې ورېي کړم؟ څوک زمانه بخښنه غواړي چې بخښنه ورته وکړم.

**ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال ينزل ربّنا عزوجل كل ليلة الى سماء الدنيا حين يبقى ثلث الليل الاخر،** دا الاخر د ثلث صفت دې د ليل نۀ دې، يعنى چه کله باقي پاتې دی د شپې آخرې ثلث. د حديث مضمون دا دې چه الله تعالى د شپې په آخرى حصه کښې سماء الدنيا باندې نزول فرمائي او دا اعلان فرمائي چه، شته څوک سړی چه زما نه دعا غواړی او زۀ د هغه دعاء قبوله کړم

### د صفاتو داحاديثو په باره کښې مختلف مذاهب:

دا حديث د صفاتو د احاديثو نه دې د دې تعلق د الله تعالى د صفاتو سره دې خو د متشابهاتو نه دې د دې حقيقي معنى چا ته هم نۀ ده معلومه ځکه چه نزول او صعود يعنى

---

(١): سنن النسائي/قيام الليل ٥٢ (١٧٨٥)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٠٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ صلاة الليل ١ (١)، مسند احمد (٦/٦٣، ٧٢، ١٨٠) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/التهجد ١٤ (١١٤٥)، والدعوات ١٤ (٦٣٢١)، والتوحيد ٣٥ (٧٤٩٤)، صحيح مسلم/المسافرين ٢٤ (٧٥٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٢١٢ (٤٤٦)، والدعوات ٧٩ (٣٤٩٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨٢ (١٣٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٤٦٣، (صحيح)١٥٢٤١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ القرآن ٨ (٣٠)، مسند احمد (٢/٢٦٤، ٢٦٧، ٢٨٣، ٤١٩، ٤٨٧)، سنن الدارمي/الصلاة ١٦٨ (١٥١٩)، ويأتي برقم (٤٧٣٣)

کوزیدل او ختل. او انتقال من مکان الی مکان یعنی د یوځائي نه بل ځائي ته د اجسامو د صفاتو نه دي. او الله تعالی د جسم او د جسم د لوازمو نه منزه دې،هم داسې، ید الله، او الرحمٰن علی العرش استوٰی. فرقه مجسمه او مشبه کوم چه الله تعالی لره جسم ګنړی هغوی خو داسې قسمه احادیثو لره په ظاهر باندې محمولوی(والعیاذ بالله) دا خو سراسر کفر دې، دویمه فرقه معتزله او د خوارجو ده. هغوی خو د دې احادیثو د صحة نه هم انکار کړې دې. اوس پاتې شول اهل سنت والجماعت په دې کښې دوه ډلې دی، متقدمین او متاخرین، متقدمین په کومو کښې چه ائمه اربعه هم داخل دی د تفویض قائل دی د دوئ مسلك دا دې چه د دې احادیثو د حق کیدو اعتقاد دې اوکړې شی او دې سره دا هم ضروری ده چه دې لره په ظاهری معنی باندې محمول نهٔ کړې شی بلکه دا اعتقاد دې اوساتلې شی چه بیشکه نزول د الله تعالی صفت دې خو دا هغه نزول نهٔ دې لکه څنګه چه د اجسامو وی، اوس څنګه دې نو د دې حقیقت او کیفیت معلوم نهٔ دې، د د امام مالك مشهوره واقعه ده چه چا د دوئ نه د، الرحمٰن علی العرش استوٰی. په حقله سوال اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه. الاستواء معلوم و الکیف مجهول والسوال عنه بدعة، اخرجوا هذا المبتدع عن المجلس، او دمتاخرینو مذهب د تاویل دې یعنی د رب د نزول نه مراد نزول د رحمت دې، مثلاً، متاخرینو تاویل لره په تفویض باندې دې دپاره ترجیح ورکړې ده چه د باطلو فرقو رد اوکړې شی او هغوی لره د استدلال موقع ورنهٔ کړې شی.

## باب وَقْتِ قِيَامِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم مِنَ اللَّيْلِ

### باب دی په بیان د وقت د قیام د نبي صلی الله علیه وسلم کې

[۱۳۱۶](١)حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ يَزِيدَ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "إِنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُوقِظُهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ بِاللَّيْلِ فَمَا يَجِيءُ السَّحَرُ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ حِزْبِهِ".

د عائشې رضي الله عنها نه روایت دی هغې ویلي دي: شان دا دی چې وو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې بیداروَلو به الله تعالی د شپې، سحر به لا نه وو راغلی چې هغه به د خپل ورد نه فارغ شوی وو.

قوله، فما یجیء السّحر حتی یفرُغ من حزبه. په دې حدیث کښې حضرت عائشه رضي الله عنها د حضور صلی الله علیه وسلم د رابیداریدلو د وخت څهٔ تعین نهٔ دې فرمائیلې. بلکه دا ئې فرمائیلی دی چه د سحر کیدو نه وړاندې وړاندې به حضور صلی الله علیه وسلم د خپل معمول او وظیفې نه فارغیدلو، سحر وائی، قبیل الصبح، نه یعنی د شپې آخری سدس یعنی د شپې آخرې شپږمه حصه.

[۱۳۱۷](٢)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ. ح وحَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ وَهَذَا حَدِيثُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَشْعَثَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ لَهَا: أَيَّ حِينٍ كَانَ يُصَلِّي؟ قَالَتْ: "كَانَ إِذَا سَمِعَ الصُّرَاخَ قَامَ فَصَلَّى".

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٧٩٢) (حسن)

(٢): صحيح البخاري/التهجد ٧ (١١٣٢)، والرقاق ١٨ (٦٤٦١)، صحيح مسلم/المسافرين ١٧ (٧٤١)، سنن النسائي/قيام الليل ٨ (١٦١٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١١٠، ١٤٧، ٢٠٣، ٢٧٩) (صحيح)

د مسروق نه روایت دی هغه وایي ما تپوس وکړو د عائشي ﷺ نه د مانځه د رسول الله ﷺ، ما هغې ته وويل په کوم وخت کې به يي مونځ کولو؟ هغې وويل هغه وو چې کله به يي اواز واوريدلو نو پاڅيدلو به او مونځ به يي کولو.

**تشریح: قوله**: قالت كان اذا سمع الصُراخ قام فصلى، صراخ يعنى صوت شديد سخت آواز د دېنه د چرګ آواز مراد دې، او په يو روايت کښې دی چه، اذا سمع الصارخ، وائي چه په حجاز کښې چرګ نيمې شپې ته نزدې بانګونه شروع کوی کوم ته چه زمونږ په عرف کښې د چرګ آذان وائي.

[۱۳۱۸] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "مَا أَلْفَاهُ السَّحَرُ عِنْدِي إِلَّا نَائِمًا، تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د عائشي ﷺ نه روایت دی هغې ویلي دي: نه دی موندلی هغه لره سحر زما سره مګر په حالت د آود کې. قصد يي نبي ﷺ دی.

**تشریح: قوله**: ما الفاه السحر عندى الا نائما، نۀ وو موندلي ما حضور ﷺ لره د سحر په وخت کښې کله چه به حضور ﷺ ما سره وو مګر په دې حال کښې چه دوئ به اودۀ وو، يعنى کله چه به حضور ﷺ ما سره شپه تيروله او زما نوبت به وو نو د دوئ معمول دا وو چه د شپې تر آخره پورې (صبا کيدو ته نزدې) د خپلو معمولو نه به فارغ شول نو آرام کولو دپاره به سملاستل، د سحر نه مراد د شپې آخری شپږمه حصه ده (كما تقدم) په منهل کښې ليکلي دی چه د دېنه دا معلومه شوه چه د تهجدو نه فارغ کيدو نه پس د شپې په آخره کښې آرام کول سنت دی ځکه چه د حضور ﷺ معمول وو او هم دا معمول په حديث کښې د حضرت داؤد ﷺ هم راغلي دې چه، كان ينام سدسه، او حضور ﷺ د داؤد ﷺ د دې معمول خوښ فرمائيلې دې چه، احب الصلوة الى الله صلوة داؤد و احب الصيام الى الله صيام داؤد يصوم يوما و يفطر يوما، (اخرجه البخاری) د بعضې شراحو رائې دا ده چه د دې نوم يعنى خوب نه په دې حديث کښې مجازا اضطجاع مراد ده ځکه چه په بل روايت کښې داسې دی ، فان كنت مستيقظة حدثنى و الا اضطجع، خو اضطجاع د خوب منافى کله ده؟ حضور ﷺ په لنډه خبره کړې او اودۀ شوې به وی، بله دا چه دا د اودۀ کيدو معمول به د دوئ د رمضان نه غير وو او په رمضان کښې به د دوئ معمول د تهجدو وغيره نه فارغ کيدو نه پس د پيشمنى خوراک کول وو ، ځکه امام بخاری دوه جدا جدا بابونه تړلې دی، باب من نام عند السحر، و، باب من تسحر فلم ينم حتى صلى الصبح، (من المنهل)

[۱۳۱۹] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الدُّؤَلِيِّ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ ابْنِ أَخِي حُذَيْفَةَ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ صَلَّى".

---

[1]: صحيح البخاري/التهجد ٧ (١١٣٣)، صحيح مسلم/المسافرين ١٧ (٧٤٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٢٦ (١١٩٧)، (تحفة الأشراف: ١٧٧١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٧٠) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٣٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٨٨) (حسن)

د حذیفه رضی الله عنه نه روایت دی هغه ویلي دي: وو نبي ﷺ کله چې به پریشان کړو هغه لره کوم کار نو مونځ به یې کولو.

**تشریح: قوله:** کان النبی صلی الله علیه وسلم اذا حَزَنَهُ امرٌ صلی،ای اذا اصابه امر. یعنی کله به حضور ﷺ ته د کوم غم او فکر خبره پیښه شوه نو مونځ به ئې شروع کړو، او دا هم کیدې شي چه د صلوة نه مراد دعاء وی، او په یو روایت کښې دی چه، حَزَنه د حُزن نه دې، کله چه به دوی لره کوم څیز په غم کښې واچول

| |
|---|
| [۱۳۲۰]()حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الْهِقْلُ بْنُ زِيَادٍ السَّكْسَكِيُّ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَبِيعَةَ بْنَ كَعْبٍ الْأَسْلَمِيَّ، يَقُولُ: كُنْتُ أَبِيتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آتِيهِ بِوَضُوئِهِ وَبِحَاجَتِهِ، فَقَالَ: "سَلْنِي" فَقُلْتُ: مُرَافَقَتَكَ فِي الْجَنَّةِ، قَالَ: "أَوَغَيْرَ ذَلِكَ؟" قُلْتُ: هُوَ ذَاكَ، قَالَ: "فَأَعِنِّي عَلَى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُودِ". |

د ابو سلمة نه روایت دی هغه وایي ما اوریدلي دي د ربیعة بن کعب الاسلمي نه، هغه به ویل: وم زه چې اوده کیدم د نبي ﷺ سره هغه ته به مې د اودس اوبه راوړې او د هغه ضروریات، هغه وویل: وغواړه مانه، ما وویل: ستا ملګرتیا په جنت کې غواړم، ایا بل شی به غیر د دینه؟ ما وویل: هغه هم دا دی، هغه وویل: زما مدد وکړه په خپل باندې په کثرت د سجدو سره.

**تشریح: قوله:** سمعت ربیعة بن کعب الاسلمی یقول کنت ابیت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم اتیه بوضوء و بحاجته فقال سلنی فقلت مرافقتك فی الجنة،الخ، دا صحابی د اهل صفه نه دي فرمائي چه ما به د حضور ﷺ سره شپه تیروله(بظاهر دا د یو سفر واقعه ده ګینې په حضر کښې خو به حضور ﷺ د خپلو ازواجو سره شپه تیروله) ما به د حضور ﷺ دپاره د اودس دپاره اوبهٔ راوړلې او نور خدمت به مې کولو نو په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائل چه اوغواړه څهٔ غواړې ما عرض اوکړلو چه په جنت کښې ستاسو سره قرب او نزدیکت او ملګرتیا، په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائیل د دینه علاوه څهٔ نور اوغواړه، ما عرض اوکړو! حضرت زما مطلوب هم دا دې، فاعنی علی نفسك بكثرة السجود. مطلب دا دې چه مونږ به هم د الله نه دعا غواړو او کوشش به کوو ستا فرمائش پوره کولو دپاره، باقی تهٔ هم مطمئن مهٔ کینهٔ بلکه د خپل نفس مخالفت کوه او په نیکو کارونو رکوع سجدو، مونځونو وغیره عباداتونو کښې لګیا اوسه او په دې شان زما مدد اوکړه دې دپاره چه د دواوو کوشش یوځائې شي نو کار به اوشي، لکه څنګه چه یوحکیم د یو مریض دپاره دوا تجویز کړی چه دې لزه استعمال کړه او دا ورته هم اووائی چه روره صرف په دوا باندې بهروسه مهٔ کوه بلکه زمونږ په دې علاج کښې د پرهیز په ذریعې سره مدد کوه.

---

[۱]: صحیح مسلم/الصلاة ۴۳ (۴۸۹)، سنن الترمذي/الدعوات ۲۶ (۳۴۱۶)، سنن النسائي/التطبیق ۷۹ (۱۱۳۹)، وقیام اللیل ۹ (۱۶۱۹)، سنن ابن ماجه/الدعاء ۱۶ (۳۸۷۹)، (تحفة الأشراف: ۳۴۱۶، ۳۶۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵۷/۴) (صحیح)

[۱۳۲۱]( )حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، فِي هَذِهِ الْآيَةِ: تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ سورة السجدة آية ۱۶، قَالَ: كَانُوا يَتَيَقَّظُونَ مَا بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ يُصَلُّونَ، وَكَانَ الْحَسَنُ يَقُولُ: قِيَامُ اللَّيْلِ.

د انس بن مالک نه روایت دی په دې ایت کې (تتجافی جنوبهم عن المضاجع یدعون ربهم خوفا و طمعا و مما رزقناهم ینفقون) هغه وایي ویخ به پاتې کیدل په مابین د ماښام او ماسخوتن کې، او حسن به ویل قیام اللیل

قوله، تتجافی جنوبهم عن المضاجع، د دوئ اړخونه د خوب د ځایونو نه جدا وی.

## د اية په مصداق کښې څو اقوال

دا کوم خلق دی د دې په مصداق کښې په بذل المجهود کښې د تفسیر طبري نه پنځه اقوال نقل کړې دی. (۱) هغه خلق کوم چه د ماسخوتن د مانځه په انتظار کښې ویښ اوسی، (۲) د ماښام د مانځه په انتظار کښې نۀ اوده کیږی، (۳) کوم چه د ماښام او ماسخوتن په مینځ کښې په مانځه کښې مشغول اوسی، (۴) قیام اللیل یعنی تهجد ته اشاره ده، (۵) کوم خلق چه په ذکر الله سره رطب اللسان اوسی. په آیت شریفه کښې د دې خلقو سره چه کومه وعده ذکر ده هغه دا ده چه، فلا تعلم نفس ما اخفی لهم من قرة اعین. چه د دې خلقو دپاره الله تعالی په آخرت کښې کوم اسباب د راحت او عیش او د سترګو یخوالي تیار کړې دي هغې لره څوك پیژني

[۱۳۲۲]( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، فِي قَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: كَانُوا قَلِيلًا مِنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ سورة الذاريات آية ۱۷، قَالَ: كَانُوا يُصَلُّونَ فِيمَا بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ، زَادَ فِي حَدِيثِ يَحْيَى: وَكَذَلِكَ تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ سورة السجدة آية ۱۶.

د انس رضي الله عنه نه روایت دی د الله په قول کې (کانوا قلیلا من اللیل ما یهجعون) هغه ویلي دي هغوی به مونځ کولو په مابین د ماښام او ماسخوتن کي زیادت یي کړی دی په حدیث د یحیی کي او همدارنګه لري کول به یي اړخونه خپل

# بَابُ افْتِتَاحِ صَلَاةِ اللَّيْلِ بِرَكْعَتَيْنِ

### باب دی په بیان د افتتاح د شپې مونځ کې په دوه رکعاتو سره

یعنی کله چه سړې د تهجد مونځ شروع کړی نو په ابتداء کښې دې دوه رکعاته لنډ اوکړی د دېنه پس دې اوږد مونځ اوکړی

## په شروع کښې دوو رکعاتو لره لنډ کولو کښې مصلحت

په دې کښې دا مصلحت دې چه په نفس باندې یودم بوجهه پرینوځی بلکه لږ لږ دۀ لره د ریاضت او عبادت طرف ته راوړلې شی په اصل کښې د نفس نه په غلولو سره کار اغستل دی، او بعضې شارحینو لیکلې دی چه په حدیث کښې دی چه شیطان د اودۀ سړی په سر

[۱]: تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۲)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/تفسير القرآن ۳۳ (۳۱۹۶) (صحيح)

[۲]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۱۳) (صحيح)

کښې دړې غوټې اوتړي په کومو کښې چه يوه غوټه د ذکر په برکت سره او دويم د اودس او دريمه د مونځ په برکت سره پرانستلې شي (لکه څنګه چه د کتاب په اول کښې تير شوې دی) نو دا دوه رکعاته دې زر لنډ غونډې دې دپاره اوکړی چه هغه آخری غوټه زر پرانستلې شي او د شيطان د مکر نه خلاصې اومومي او بيا د دينه پس په اطمينان سره اوږد مونځ اوکړې شي، حضرت شيخ رحمه الله د بذل په حاشيه کښې ليکلي دی چه تعجب دې چه د احاديثو شراحو هم د حديث نکات او لطائف بيانولو کښې هيڅ کمې نه دې پريخودې فلله درهم

[١٣٢٣]( )حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَيَّانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ مِنَ اللَّيْلِ فَلْيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ويلي دي کله چې پاځيږي يو کس ستاسو نه د شپې، نو مونځ دې وکړي دوه رکعاته سپک

[١٣٢٤]( )حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ خَالِدٍ، عَنْ رَبَاحِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: إِذَا بِمَعْنَاهُ زَادَ، ثُمَّ لِيُطَوِّلْ بَعْدُ مَا شَاءَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَزُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، وَجَمَاعَةٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، أَوْقَفُوهُ عَلَى أَبِي هُرَيْرَةَ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ أَيُّوبُ، وَابْنُ عَوْنٍ أَوْقَفُوهُ عَلَى أَبِي هُرَيْرَةَ، وَرَوَاهُ ابْنُ عَوْنٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، قَالَ: فِيهِمَا تَجَوَّزْ.

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی، هغه ويلي دي کله په معنی د هغې سره، هغه پکې زيادت کړی دی: بيا دې وروسته اوږدوالی وکړي څومره يې چې خوښه وي ابوداود ويلي دي د دې حديث روايت حماد بن سلمة او زهير بن معاوية او يو جماعت د هشام نه هغه د محمد نه کړی دی، دوی موقوف کړی دی په ابو هريره باندې، او همدارنګه نقل کړی دی ايوب او ابن عون دوی موقوف کړی دی په ابو هريره باندې، او روايت کړی دی ابن د محمد نه، هغه وايي: په دې دواړو رکعاتونو کې اختصار دی

## (د لفظ تجوز لغوی تحقيق)

**تشريح: قوله**: قال فيهم تجوز، دا لفظ مصدر هم کيدې شی (تَجَوُّزٌ) يعنې په دې دوو رکعاتونو کښې لنډوالې پکار دې، او د فعل مضارع نه هم کيدې شی، (تجوز) کوم چه په اصل کښې تتجوز وو (لنډوالي کوی نو په دې کښې) او د امر صيغه هم کيدې شی، تجوّز.

[١٣٢٥]( )حَدَّثَنَا ابْنُ حَنْبَلٍ يَعْنِي أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، قَالَ: قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَلِيٍّ الْأَزْدِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ الْخَثْعَمِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "طُولُ الْقِيَامِ".

[1]: تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ١٤٥٧٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ٢٦ (٧٦٨)، مسند احمد (٢/٢٣٢، ٢٧٩، ٣٩٩) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٤٤٥٧٦) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/الزكاة ٤٩ (٢٥٢٧)، والإيمان وشرائعه ١ (٤٩٨٩)، (تحفة الأشراف: ٥٢٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤١٢)، سنن الدارمي/الصلاة ١٣٥ (١٤٦٤)، ويأتي برقم: (١٤٤٩) (صحيح) بلفظ أي الصلاة

د عبد الله بن حبشي الخثعمي نه روایت دی. بېشکه رسول الله ﷺ نه تپوس وشو: چې کوم یو په اعمالو کې افضل دی؟ هغه وویل: اوږد قیام

**تشریح: قوله:** عن عبدالله بن حبشی ان النبی صلی الله علیه وسلم سئل ای الاعمال افضل قال طول القیام، د دې مقابل هغه حدیث دې کوم چه په ابواب الرکوع کښې تیر شوې دې چه، اقرب ما یکون العبد من ربه و هو ساجد، هم په دې دوو حدیثونو باندې د علماؤ هغه مشهور اختلاف متفرع دې چه طول قیام افضل دې یا کثرت سجود، و قد تقدم مفصلا.

## بَابُ صَلَاةِ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى

### باب دی په بیان د مونځ د شپې کې دوه دوه رکعاته

نزدې "باب صلوة النهار" تیر شوې دې هغه اوګورئ!

[۱۳۲٦](1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ اللَّيْلِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلَاةُ اللَّيْلِ مَثْنَى مَثْنَى، فَإِذَا خَشِيَ أَحَدُكُمُ الصُّبْحَ صَلَّى رَكْعَةً وَاحِدَةً تُوتِرُ لَهُ مَا قَدْ صَلَّى".

د عبد الله بن عمر نه روایت دی، بېشکه یو سړي تپوس وکړو د رسول الله ﷺ نه په باره د مونځ د شپې کې، رسول الله ﷺ وفرمایل: د شپې مونځ دوه دوه رکعاته دی، کله چې ویرېږي یو کس ستاسو نه نو یو رکعات دې وکړي، دا به وتر کړي د هغه دپاره هغه چې کړی یې دی.

### د وترو په رکعات ثلاثه کښې د حنفیانو تائید:

یعنی د تهجدو نفلونه دوه دوه رکعاته دی کوی او بیا چه کله د تهجدو وخت ختمیدو ته نزدې شی او د وترو نوبت راشی نو په آخری شفعه(دوو رکعاتو) باندې د سلام ګرځولو نه بغیر دې سره یو رکعت بل یوځائې کړی نو دا یو رکعت به دې تیرې شفعې سره یوځائې شی او وتر به ترینه جوړ کړی، د دینه معلومه شوه چه د وترو رکعاتونه درې دی لکه څنګه چه حنفیان وائی، ددې مفصل بحث به انشاء الله تعالی په باب قیام اللیل کښې راشی.

## بَابٌ فِي رَفْعِ الصَّوْتِ بِالْقِرَاءَةِ فِي صَلَاةِ اللَّيْلِ

### باب دی په اوچتوالي د اواز کې په قراءت باندې د شپې په مونځ کې

[۱۳۲۷](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ الْوَرْكَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَدْرِ مَا يَسْمَعُهُ مَنْ فِي الْحُجْرَةِ وَهُوَ فِي الْبَيْتِ".

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی هغه ویلي دي وو قراءت د نبي ﷺ په اندازه د هغې چې اوریدلو به هغه چا چې په حجره کې به وو، او هغه په کور کې وو

---

(1): صحیح البخاري/الصلاة ۸٤ (٤٧٣)، والوتر ۱ (۹۹۰)، والتهجد ۱۰ (۱۱۳۷)، صحیح مسلم/المسافرین ۲۰(۷٤۹)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۱۰ (٤۳۷)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۷۱ (۱۳۲۰)، سنن النسائي/قيام الليل ۲٦ (۱٦٦۸)، ۳٥ (۱٦۹۳)، تحفة الأشراف: ۷۲۲٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/۲، ۹، ۱۰، ٤۹، ٥٤، ٦٦)، وانظر ایضا رقم: (۱۲۹٥) (صحیح)

(2): سنن الترمذي/الشمائل (۳۲۱)، مسند احمد ۲۷۱/۱، (تحفة الأشراف: ٦۱۷۷) (حسن صحیح)

عن ابن عباس رضی الله عنه قال كانت قراءة النبی صلی الله علیه وسلم علی قدر ما یسمعه من فی الحجرة و هو فی البیت: د دي حدیث دوه تفسیرونه کړې شوي دی.(۱) حجره او بیت د دواړو نه یو مراد دی، او مطلب دا دی چه حضور ﷺ به په تهجدو کښې قراءت دومره اوچت آواز سره فرمائیلو چه هغې لره به هغه سړی اوریدلو کوم چه به په حجره کښې وو، د حجرې نه بهر به آواز نهٔ اوریدلې کیدلو.(۲) د حجرې نه مراد صحن البیت دی یعنی هغه سړی به اوریدلو کوم چه د حجرې په صحن کښې به وو او حضور ﷺ به په حجره کښې مونځ کولو په ړومبی صورت کښې ډیر رو غوندې جهر وو او په دویم صورت کښې به جهر معتدل وو.

[۱۳۲۸]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكَّارِ بْنِ الرَّيَّانِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ زَائِدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ الْوَالِبِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ قَالَ: "كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ يَرْفَعُ طَوْرًا وَيَخْفِضُ طَوْرًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو خَالِدٍ الْوَالِبِيُّ اسْمُهُ هُرْمُزُ.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی، بېشکه هغه ویلي دي: وو قراءت د نبي ﷺ د شپې کله به یې اواز اوچت وو، او کله به خکته وو. ویلي دي ابوداود: ابو خالد الوالبي نوم د هغه هُرمز دی.

[۱۳۲۹]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ح وحَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ إِسْحَاقَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ لَيْلَةً فَإِذَا هُوَ بِأَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُصَلِّي يَخْفِضُ مِنْ صَوْتِهِ، قَالَ: وَمَرَّ بِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَهُوَ يُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَهُ، قَالَ: فَلَمَّا اجْتَمَعَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تُصَلِّي تَخْفِضُ صَوْتَكَ" قَالَ: قَدْ أَسْمَعْتُ مَنْ نَاجَيْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: وَقَالَ لِعُمَرَ: "مَرَرْتُ بِكَ وَأَنْتَ تُصَلِّي رَافِعًا صَوْتَكَ" قَالَ: فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أُوقِظُ الْوَسْنَانَ، وَأَطْرُدُ الشَّيْطَانَ. زَادَ الْحَسَنُ فِي حَدِيثِهِ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا بَكْرٍ ارْفَعْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا"، وَقَالَ لِعُمَرَ: "اخْفِضْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا".

د ابو قتادة نه روایت دی، بېشکه نبي ﷺ راووتلو یوه شپه، هغه ابوبکر سره مخامخ شو مونځ یې کولو او اواز یې خکته وو، هغه وایي او تیر شو په عمر بن الخطاب باندې، او هغه مونځ کولو او اواز یې اوچت وو، هغه وایي هرکله چې دواړه راجمع شول د نبي ﷺ سره، هغه وویل: ای ابو بکر! زه په تا باندې تیر شوم تا مونځ کولو او خپل اواز دې خکته کولو، هغه وویل: ما واورولو هغه چاته چې زما سره منجات وو ای د الله رسوله! او عمر ته یې وویل: زه تېر شوم په تا باندې تا مونځ کولو اواز دې اوچت وو. هغه وایي چې هغه وویل: ای د الله رسوله زه رابیداروم اوده او شړم شیطان. زیادت کړی دی حسن په خپل حدیث کې. نبي ﷺ وویل: ای ابوبکره خپل اواز لږ اوچت کړه، او عمر ته یې وویل: خکته کړه خپل اواز لږ شانته

قوله، ان النبی صلی الله علیه وسلم خرج لیلة فاذا هو بابی بکر یصلی یخفض من صوته، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه به په تهجدو کښې قراءت ډیر رو رو کولو د حضور ﷺ دوئ باندې تیریدل اوشول او دوئ هم داسې واوریدل او تیر شول، دغه شان حضرت عمر رضی الله عنه باندې د

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤۸۸۲) (حسن)
(۲): سنن الترمذي/الصلاة ۲۱۳ (٤٤۷)، (تحفة الأشراف: ۱۸٤٦٥، ۱۲۰۸۸) (صحیح)

دوئ تيريدل اوشول نو هغوی ډير په زوره باندې قراءت کولو نو صبا حسب معمول دا دواړه حضرات د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شول نو حضور ﷺ د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه نه سوال اوکړلو نو هغوی په جواب کښې عرض اوکړو، اسمعتُ من ناجيت يا رسول الله. چه چا سره ما مناجات کول بس هم هغهٔ ته مې اورول(او هغهٔ رو نه رو آواز هم اوري) بيا هم دا سوال ئې د حضرت عمر فاروق نه اوکړو نو هغوی عرض اوکړو. اوقظ الوسنان و اطرد الشيطان. پرکالې کونکو لره بيداروم او شيطان لره شړم، حضور ﷺ د دواړو جواب واوريدلو نو حضرت ابوبکر صديق ته خو ئې اوفرمائيل تهٔ خپل آواز اوچت کړه او حضرت عمر ته ئې اوفرمائيل تهٔ خپل آواز لږ ښکته کړه، د دې حديث نه معلومه شوه چه د قرآن تلاوت د سرا (پټ وئيلو) په مقابله کښې معتدل جهر سره غوره دې،او د دينه په وړاندې روايت کښې د حضرت بلال رضی الله عنه په حقله راځي چه حضور ﷺ دوئ ته اوفرمائيل چه کله تا د دې سورت نه لوستل او کله د هغې نه او کله دې نه هغه سورت نه څهٔ آياتونه د يو سورت او څهٔ آياتونه د دويم سورت، په دې باندې هغوی عرض اوکړو چه د الله کلام ډير مزيدار دې نو د دې دپاره کله په دې آياتونو سره خوند اخلم او کله په هغې سره. فقال النبی صلی الله عليه وسلم کلکم قد اصاب. تاسو ټولو صحيح کړې دې. په دې روايت کښې خو دغه شان دی. صاحب منهل ليکي چه د محمد بن نصر په قيام الليل(تصنيف) کښې دی چه حضور ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه؛ اقراء السورة علی وجهها. يعنی هم يو سورت لره د هغې د قاعدې او طريقې سره لوله څهٔ د دې ځائې نه او څهٔ د هغهٔ ځائې نه داسې مهٔ کوه. ځکه چه دغه شان خلط کولو ته علماء مکروه وائي

[ ١٣٣٠ ](1)حَدَّثَنَا أَبُو حُصَيْنِ بْنُ يَحْيَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، لَمْ يَذْكُرْ: فَقَالَ لِأَبِي بَكْرٍ: ارْفَعْ مِنْ صَوْتِكَ شَيْئًا، وَلِعُمَرَ: اخْفِضْ شَيْئًا، زَادَ: "وَقَدْ سَمِعْتُكَ يَا بِلَالُ وَأَنْتَ تَقْرَأُ مِنْ هَذِهِ السُّورَةِ، وَمِنْ هَذِهِ السُّورَةِ" قَالَ: كَلَامٌ طَيِّبٌ يَجْمَعُ اللَّهُ تَعَالَى بَعْضَهُ إِلَى بَعْضٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّكُمْ قَدْ أَصَابَ".

د ابو هريرة رضی الله عنه نه روايت دی، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه د دې قصې، هغه پکې نه دی ذکر کړی (فقال لأبي بکر: ارفع من صوتک شيئًا، و لعمر: اخفض شيئًا) هغه زيادت کړی دی بېشکه ما واوريدل د تانه ای بلاله او ته لوستلو د دې سورت نه او د هغې سورت نه. هغه وايي ښائسته کلام دی جمع کوي الله تعالی بعضې د دېنه بعضې ته. نبي ﷺ وويل په تاسو کې هر يو مصيب دی

[ ١٣٣١ ](2)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَقَرَأَ فَرَفَعَ صَوْتَهُ بِالْقُرْآنِ، فَلَمَّا أَصْبَحَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَرْحَمُ اللَّهُ فُلَانًا، كَأَيِّنْ مِنْ آيَةٍ أَذْكَرَنِيهَا اللَّيْلَةَ كُنْتُ قَدْ أَسْقَطْتُهَا". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ هَارُونُ النَّحْوِيُّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٠٠٤) (حسن)

(2): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٧٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/فضائل ٢٧ (٥٠٤٢)، والدعوات ١٩ (٦٣٣٥)، صحيح مسلم/المسافرين ٣٣، (فضائل القرآن) (٧٨٨) ويأتي هذا الحديث برقم (٣٩٧٠) (صحيح)

فِي سُورَةِ آلِ عِمْرَانَ فِي الْحُرُوفِ وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ سورة آل عمران آية ١٤٦.

د عائشې ﷞ نه روایت دی. بېشکه یو سړی ودریدلو قراءت یې کولو نو خپل اواز یې اوچت کړو په قرآن باندې. هر کله چې صباح شو رسول الله ﷺ ووېل الله دې په فلاني سړي باندې رحم وکړي په فلاني باندې څومره ایتونه هغه ماته بیګاه رایاد کړل ما هغه ساقط کړي وو ویلي دي ابوداود د دې روایت کړی دی هارون النحوي د حماد بن سلمة نه په سورة آل عمران کې ای هغه ساقط کړی وو په حروفو کې. (وكأي من نبي).

**تشريح: قوله:** عن عائشة رضي الله عنها ان رجلا قام من الليل فقراء فرفع صوته بالقرآن فلما اصبح قال رسول الله صلى الله عليه وسلم يرحم الله فلانا كاين من آية اذكرنيها الليلة كنت اسقطتها.[1] ددې صحابي نوم عبدالله بن یزید انصاري دې دوئ به د شپې په تهجدو کښې تلاوت په زوره سره کولو د کوم آواز چه د حضور ﷺ پورې هم رااورسیدلو. اتفاقاً کوم سورت او آیاتونه چه حضور ﷺ لوستل هم هغه دې صحابي هم لوستل د حضور ﷺ نه څۀ آیاتونه پاتې شول (په هیره سره) د دې صحابي په زروه لوستلو سره حضور ﷺ ته هغه آیاتونه رایاد شول. حضور ﷺ په دې باندې خوشحاله شو نو ځکه حضور ﷺ دې صحابي ته دعاء اوکړله

**قوله:** قال ابوداؤد رواه هارون النحوى عن حماد بن سلمة في سورة آل عمران في الحروف و كاين من نبي،

## د قول ابوداؤد صحيح تشريح او تحقيق

هارون نحوی پورته ذکر شوې حدیث لره په کوم کښې چه د حضور ﷺ دا کلام ذکر دې چه، يرحم الله فلانا كاين من آية،الخ، د سورة آل عمران آیت شریفه، و كاين من نبى قاتل معه ربيون كثير، د لاندې حروف یعنی د اختلاف قراءات په مناسبت سره ذکر کړې دی، زۀ وایم چه على هذا القياس امام ابوداؤد هم دې حدیث سره په خپل سنن کښې په ابواب الحروف والقراءات کښې راوړې دې،

د هارون نحوی او امام ابوداؤد دواړو غرض په دې حدیث سره يو دې يعنى، و كاين من نبى الاية، کښې دا اختلاف ذکر کول دی ګویا د مثال په توګه باندې دې حدیث لره وړاندې کوی چه اوګورئ! په يو قراءت کښې كاءِين هم دې لکه څنګه چه په دې حديث شريف کښې دا لفظ راغلي دې او کیدې شی چه په دې حدیث کښې دا لفظ دواړه شان مروي وی لکه څنګه چه په دې کښې قراتونه دوه دی كائن،په وزن د فاعل، او كاءِين. اول د ابن کثير قراءة دې او دويم په تشديد سره د جمهورو دې. د دې ځائې تشريح حضرت په بذل کښې دغه شان فرمائيلي ده او هم دا صحيح ده. او صاحب عون المعبود د دې شرح بل شان کړې ده کومه چه بظاهر صحيح نۀ ده. زما په نيز دا ځائې مشکل او دقيق دې. انشاء الله تعالى څۀ چه مونږ ليکلي دی هغه صحيح دی

[1] الله تعالى دې په هغه سړي باندې رحم اوفرمائی څۀ آیاتونه داسې وو چه ما نه ساقط شوې وو هغۀ د دې تلاوت، ما ته هغه رایاد کړل.

[۱۳۳۲]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: اعْتَكَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَسَمِعَهُمْ يَجْهَرُونَ بِالْقِرَاءَةِ فَكَشَفَ السِّتْرَ، وَقَالَ: "أَلَا إِنَّ كُلَّكُمْ مُنَاجٍ رَبَّهُ فَلَا يُؤْذِيَنَّ بَعْضُكُمْ بَعْضًا، وَلَا يَرْفَعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ فِي الْقِرَاءَةِ، أَوْ قَالَ: فِي الصَّلَاةِ".

د ابو سعید نه روایت دی هغه ویلي دي: معتکف شو رسول الله ﷺ په مسجد کي، نو هغه د هغوی نه چي جهريي کولو په قراءت سره، نو پرده يي اوچته کړه او ويي ويل: خبر شئ هر په تاسو کي مناجات کونکي دی د خپل رب سره، ضرر دي نه ورکوي بعضي ستاسو نه بعضو نورو ته، او اواز دي نه اوچتوي بعضي ستاسو نه په بعضو باندي په قراءت کي، او یايي وويل په مانځه کي.

[۱۳۳۳]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْجَاهِرُ بِالْقُرْآنِ كَالْجَاهِرِ بِالصَّدَقَةِ، وَالْمُسِرُّ بِالْقُرْآنِ كَالْمُسِرِّ بِالصَّدَقَةِ".

د عقبة بن عامر الجهني نه روایت دی هغه ویلي دي چي رسول الله ﷺ ویلي دي: جهر کونکی په قرآن باندي پشان د جهر کونکي صدقه دی، او پټ لوستونکی د قرآن پشان د پټي صدقي کونکي دی.

**عن عقبة بن عامر الجهني رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم الجاهر بالقرآن كالجاهر بالصدقة والمسر بالقرآن كالمسر بالصدقة.**

## الترجيح بن الجهر بالقراءة والسربها:

حضور ﷺ قراءت بالجهر او قراءت بالسر لره دصدقي سره تشبيه ورکړي ده، نۀ هره صدقه بالجهر غوره ده او نۀ هره صدقه بالسر غوره ده بلکه بعضي صدقات بالسر غوره دی او بعضي بالجهر (اگر که اصل صدقه هم بالسر ده، **كما ورد حتى لا تعلم شماله ما تنفق يمينه**) لهذا قراءة د قرآن لره هم په دي باندي په قياس کولي شي. علماؤ نفلي صدقاتو لره بالسر او واجب صدقاتو لره جهراً ادا کول غوره ليکلي دی، ځکه چه زکواة د اسلام د شعائرو نه دي او شعائر على الاعلان ادا کولي شی، او دويمه خبره دا هم ده چه صرف زکواة ورکولو واله څوك سخی نۀ واني. او نفلي صدقات ورکولو واله سخی گڼړلي شی، ځکه چه په يو ځائي کنبي په جهر کنبي د رياء احتمال دي او په دويم ځائي کنبي نشته دي، هم داسي که قراءت کنبي د رياء احتمال وی يا د چا د ايذاء ويره وی نو سراً غوره دي گيني جهراً غوره دي، ځکه چه د جهر په صورت کنبي د قراءت فائده متعدی ده دي سره نور خلق هم فيضياب کيږی او خپله د قاری په حق کنبي هم فائدي واله دي په دي سره نشاط او ذوق زياتيږی د قرآن پاك طرف ته توجه کنبي اضافه کيږی د خوب اثر لري کيږی، او په پټه باندي لوستلو فضيلت د څۀ عارض د

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٤٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٤/٣) (صحيح)

(): سنن الترمذي/فضائل القرآن ٢٠ (٢٩١٩)، سنن النسائي/قيام الليل ٢٢ (١٦٦٢)، والزكاة ٦٨ (٢٥٦٢)، (تحفة الأشراف: ٩٩٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥١/٤، ١٥٨، ٢٠١) (صحيح)

وجه نه وي. خو امام ترمذی په ص، ۱۱۵، ج، ۲، کښې د دې حديث د لاندې فرمائی چه د دې حديث معنی دا ده چه کوم سړې د قرآن قراءة سرأ کوی هغه افضل دې د هغه سړی نه کوم چه جهراً قراءة کوی. ځکه چه د صدقة السر د اهل علم په نيز د ښکاره صدقې نه غوره ده. ځکه چه په سر يعنی په پټه کښې د عجب ويره نۀ وی په خلاف د ښکاره نه. او په کوکب کښې ليکلې دی چه د امام ترمذی د صدقې نه مراد نفلې صدقه ده. د دې ضابطه دا ده چه هغه سرأ غوره ده د علانيه نه. او د دې په حاشيه کښې د درمنثور نه نقل کړې دی چه ابن عباس ﷺ فرمائی چه نفلې صدقه سرأ دعلانيه نه اويا درجې غوره ده او فرض صدقه علانية پنځويشت چنده د سرأ نه غوره ده او وړاندې ئې ليکلې دی چه. وکذالك جميع الفرائض والنوافل في الاشياء كلها. او هم دغه شان امام نسائی باب تړلې دی. فضل السر على الجهر. په دې باندې علامه سندی ليکی چه د حديث نه خو بظاهر هم دا معلوميږی خو حضور ﷺ حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته فرمائيلې وو چه آواز لږه لږ غوندې پورته کړه او عمر فاروق ﷺ ته ئې فرمائيلې وو چه خپل آواز لږ غوندې ښکته کړه د دينه معلومه شوه چه معتدل جهر غوره دې اوس په دواړو کښې تعارض راغلو. د دې حل يو خو دا دې چه داسې اووئيلې شی چه په حديث الباب کښې د جهر نه مبالغه في الجهر او د سر نه مراد اعتدال دې او يا دا توجيه اوکړې شی چه دا حديث په هغه حالت باندې محمول دې چه د کوم مقتضی سر وی ګينې اعتدال في حد ذاته افضل او غوره دی. والله تعالی اعلم

## بَاب فِي صَلاَةِ اللَّيْلِ

### باب دی په بيان د صلاة الليل کې

د دينه وړاندې مصنف په کلی توګه باندې صلوة الليل يعنی د تهجدو فضيلت او د هغې حکم وغيره امور بيان کړې دی، اوس د دې ځائې نه د مصنف مقصود د قيام الليل په باره کښې د حضور اقدس ﷺ معمول بيانوی د دې نظائر په دې کتاب کښې ډير دی چنانچه په ابواب الوضوء کښې مصنف هم دا کړې دی. اولاً ارکان وضوء يعنی د اودس ارکان او د دې احکام ئې جدا جدا بابونو کښې بيان کړې دی بيا ئې يو جامع باب صفة وضوء النبی ﷺ په عنوان سره قائم کړې دې. هم دغه شان ئې په مواقيت کښې کړې دی اولاً ئې د ټولو مونځونو وختونه جدا جدا بابونو کښې بيان کړې دی بيا ئې په يو باب کښې جمع کړې دی په کوم کښې چه د حضور ﷺ د ټولو مونځونو وختونه مستقلاً جدا جدا بيان کړې دی. دا باب ډير اوږد او عريض دې په دې کښې مصنف تقريباً ديرش حديثونه راوړې دی زما په خيال په ټول کتاب کښې دومره اوږد باب بل کوم نشته دې

په دې کښې چه مصنف کوم روايتونه ذکر کړې دی د هغې تعلق صرف د تهجد د مانځه سره نۀ دې بلکه د تهجد مع الوتر سره دې. په اکثرو روايتونو کښې تهجد مع الوتر ذکر دی. چه دهغې وجه دا ده چه حضور ﷺ او د دوئ اکثر صحابه کرامو به صلوة الوتر بعدالعشاء نۀ کول بلکه د تهجدو نه فارغيدو نه پس په آخره کښې به ئې کول. د حضور ﷺ ارشاد دې چه. اجعلوا أخر صلوتكم بالليل وتراً. نو ځکه راويانو د صلوة الليل په بـ ن

کښې تهجد او وتر دواړه یوځائې ذکر کړې دی، اوس دلته دوه بحثونه دی(۱) د تهجد د رکعاتو شمیر(۲) د وتر د رکعاتونو شمیر

## اول بحث: د تهجد رکعاتونه

زمونږ امام ابوداؤد خو په دې سلسله کښې د شلونه هم زیات مختلف روایتونه ذکر کړې دی په صحاح سته کښې په بل یو کتاب کښې دومره په کثرت سره روایات نشته دې، امام ترمذی حسب عادة ډیره لنډه طریقه اختیار کړې ده، هغوی په دې باره کښې درې بابه قائم کړې دی، په ړومبی باب کښې هغه حدیث په کوم کښې چه د احدی عشر رکعة ذکر مذکور دی او په دویم باب کښې هغه په کوم کښې چه ثلث عشرة رکعة دی او په دریم باب کښې تسع رکعات واله روایت ذکر کړې دې، د دینه پس هغوی اوفرمائیل چه په صلوة اللیل کښې د حضور ﷺ د رکعاتونو شمیر زیات نه زیات دیارس(۱۳) دې یعنی مع الوتر او کم نه کم شمیر ئې نهۀ(۹) رکعاته دی.

حضرت سهارنپوری په بذل کښې فرمائی چه زیاترو روایاتو کښې یولس(۱۱) رکعاته ذکر دی، او په کومو روایتونو کښې چه دیارلس(۱۳) ذکر دی نو په هغې کښې بعضو وختونو کښې هغه دوو رکعاتونو لره شامل کړې شوې دی کوم به چه حضور ﷺ کله کله بعدالوتر په ناسته باندې کول، او د بعضې روایتونو نه معلومیږی چه دا دیارلس(۱۳) رکعاتونه د صبا دوه رکعاته سنت ورسره یوځائې کولو سره دی، زۀ وایم چه په ابوداؤد کښې یو روایت په دې سلسله کښې ډیر جامع او واضح دې کوم چه د حضرت عائشه رضی الله عنها نه مروی دی د هغې الفاظ دا دی د یو سائل په جواب کښې، قالت کان یوتر باربع و ثلث و ست وثلث، و ثمان و ثلث و عشر و ثلث و لم یکن یوتر بانقص من سبع و لا باکثر من ثلث عشر، د دینه معلومه شوه چه کم نه کم رکعاتونه اووۀ(۷) دی او زیات نه زیات دیارلس(۱۳) دی. دغه شان د دې روایت نه دا هم معلومه شوه چه وتر به حضور ﷺ مدام د دریو نه نۀ کم کول نۀ زیات، څکه چه ظاهره ده چه دا مذکوره روایت د یوې شپې سره خو متعلق نۀ دې د مختلفو او ګڼرو شپو حال په دې کښې ذکر دې، د تهجد رکعاتونه خو په دې کښې کم او زیات دی خو د وتر هم درې دی، سبحان الله د احنافو د مذهب واضح او بین دلیل دې

## دویم بحث: د وتر د رکعاتونو شمیر

د پورته ذکر شوې روایت نه معلوم شوې دی اګر که د تهجدو رکعاتونه به د حضور ﷺ کم او زیات کیدل خو د وترو رکعاتونه هم درې به وو، خو په دې هم شك نشته دې چه په ډیرو روایتونو کښې د دې خلاف هم دی، چنانچه په باب ړومبی حدیث کښې دی چه، یصلی من اللیل عشر رکعات و یوتر بسجدة، د دې نه پس په روایت کښې دی چه، یصلی من اللیل احدی عشر رکعة یوتر منها بواحدة، احناف وائی چه د دې مطلب دا دې چه په تیر شوې لسو رکعاتونو کښې آخری شفعې لره به ئې په یو رکعات سره وتر جوړول، کما سبق فی باب صلوة اللیل مثنی مثنی، صلی رکعة واحدة توتر له ما قد صلی، د دې تشریح نه پس دغه شان ټول روایتونه به د هغه روایات مفصله مطابق شی په کومو کښې چه د وترو د دریو رکعاتو

تصریح ده، په اصل کښې د وترو په سلسله کښې روایتونو په دوه قسمه دی،(۱) هغه روایتونه په کومو کښې چه د صلوة اللیل او وترو دواړه یوځائې بیان کړې شوې دی،(۲) هغه روایتونه په کومو کښې چه د وترو رکعاتونو لره راوی د صلوة اللیل نه جدا بیان کړې دی د کوم مثال چه د پورته اول بحث په اخیره کښې تیر شوې دې.

## د وترو په باره کښې دوه مشکل روایتونه او د هغې حل:

مفصل روایتونه تقریبا ټول زمونږ موافق دی سوا د یو یا دوو نه یعنی د دې باب څلورم حدیث په کوم کښې چه دا دی چه، یوتر منها بخمس لا یجلس فی شیء من الخمس حتی یجلس فی الاخرة فیسلم، دا روایت داسې دې چه په دې کښې باوجود د دې نه چه وترو لره ئې د صلوة اللیل نه جدا بیان کړې دی او د وترو ئې پنځهٔ رکعاتونه ذکر کړې دی، والجواب عنه مشکل و مع ذلك اجابوا عنه بجوابین،اول دا چه مصنف وړاندې تللو نه پس په دې روایت باندې کلام کړې دې، اوګورئ بذل المجهود جلد ثانی،ص،۲۹۵، د دې په حاشیه باندې د یوې نسخې نه نقل کړې دی چه امام ابوداؤد د دې حدیث په باره کښې فرمائیلي دی چه په دې کښې د رواتو اختلاف او اضطراب دې، دویم جواب دا دې چه د دې حدیث مطلب دا نهٔ دې چه پنځه رکعاتونو به ئې پرله پسې په یو سلام سره کول بلکه مطلب ئې دا دې چه تراوسه پورې خو به داسې کیدله چه حضور ﷺ به د تهجدو په هر دوو رکعاتونو باندې سلام ګرځولو نه پس ناسته فرمائیله یعنی آرام به ئې کولو(ځکه چه د تهجدو د مونځ رکعاتونه به اوږدهٔ وو ځنګه چه په ترویحو کښې د هر څلورو رکعاتونو نه پس کینې کوم ته چه ترویحه وائی) بیا کله چه به حضور ﷺ د تهجدو نه فارغ شول او صرف وترو مونځ به پاتې شو نو لږ غوندې به د خپل معمول مطابق آرام کولو نه پس وترو دپاره پاسیدل خو دغه وخت به حضور ﷺ صرف د وترو درې رکعاتونو باندې اکتفاء نهٔ کوله بلکه د دې په شروع کښې به ئې د نفلو لنډ غوندې دوو رکعاتونه کول، بیا بهٔ ئې د دې نه پس سمدستی بغیر د جلوس للاستراحة نه درې رکعاته وتر کول، حاصل دا چه دلته د نفس جلوس نفی مراد نهٔ ده بلکه د جلوس للاستراحة الذی یکون بین اشفاع التهجد، په دې تاویل کښې څه بعد یعنی لرېوالې نشته دې او مقام بهرحال د روایاتو د اختلاف د وجه نه نازك اود تاویل محتاج دې

دغه شان یو روایت بل دې هغه هم د خپل ظاهر په لحاظ سره د حنفیانو خلاف دې او هغه هم د دې باب اتم حدیث دې په کوم کښې چه دا دی چه، کان یوتر بثمان رکعات لا یجلس الا فی الثامنة ثم یقوم فیصلی رکعة الاخری لا یجلس الا فی الثامنة و التاسعة و لا یسلم الا فی التاسعة، د دینه معلومیږی چه حضور ﷺ ټول نهٔ رکعاته په یو سلام سره کړې دی دغه شان په هر دوو رکعاتونو باندې ئې قعود او تشهد هم نهٔ دې کړې کوم چه د شیخینو په نیز باندې خو اګر که واجب نهٔ دې خو د امام محمد په نیز واجب دې، بهرحال د دې روایت سیاق بظاهر د حنفیانو د مسلك خلاف دې، والجواب عنه مشکل اللهم الا ان یقال لا یجلس الا فی الثامنة کښې مطلق د جلوس نفی نهٔ ده بلکه د جلوس بدون السلام نفی ده یعنی اتم رکعت نه

وړاندې شپږ رکعاتونو پورې په هر دوو رکعاتو باندې به حضور ﷺ کیناستلو او سلام ئې ګرځولو خو اخری شفعه چه کومه وه په هغې باندې حضور ﷺ رکعتینو باندې جلوس بدون السلام فرمائیلې دې یعنی ناستې نه پس بغیر د سلام نه دریم رکعت دپاره پاسیدل. بیا دریم رکعت پوره کولو نه پس ئې سلام اوګرځولو، په دې حدیث کښې د وترو په دویم رکعت باندې د ثامنه یعنی اتم او په دریم رکعت باندې د نهم یعنی تاسعه اطلاق د مجموعی رکعاتونو په اعتبار سره کړې شوې دې او زمونږ د دې خبرې دلیل چه حضور ﷺ تر شپږم رکعت پورې په هر دوو رکعاتونو باندې سلام ګرځولې دې د دې باب ځلیریشتم۲۴، حدیث دې د کوم الفاظ چه دا دی.

**قوله**: حدثنا عبدالعزیز یحیی الحرانی الخ، کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یصلی ثلث عشرة رکعة برکعتیه قبل الصبح یصلی ستا مثنی مثنی الخ. اوګورئ! په دې روایت کښې تصریح ده چه حضور ﷺ به تر شپږو رکعاتونو پورې دوه دوه رکعاته کول

اوس بحمد الله تعالی و عونه، دا ټول روایات مشکله د وترو په باره کښې کوم چه بظاهر د حنفیاتو د مسلك خلاف ښکاریدل د ټولو حل رااوتلو. اوس پاتې شوه د ائمه ثلاثه د وترو مسئله چه هغوی د وترو په باره کښې څۀ فرمائی؟ نو هغه دا ده چه د امام مالك مسلك مونږ ته نزدې دې د دوئ په نیز باندې د وترو یو رکعت دې خو د دېنه وړاندې یوه شفعه کول نو اوسلام ګرځول واجب دی. په نورو الفاظو کښې دا هم وئیلې شې چه د دوئ په نیز د وترو شمیر هم درې رکعاته دې خو بسلامین، او زمونږ په نیز بسلام واحد. د دوئ په نیز فصل بالسلام واجب دې او زمونږ په نیز وصل واجب دې

## د شوافعو او حنابله په نیز د وتر د ادا کولو طریقې

د امام شافعی او احمد په نیز د وترو په مسئله کښې ډیر وسعت او فراختیا ده د دوئې په نیز ایتار برکعة، ایتار بثلث و بخمس و بسبع و بتسع و باحدی عشرة رکعة، ټول جائز دی خو د یولسو[۱۱] نه زیات جائز نۀ دی بیا د دوئ په نیز د وترو دوه صورتونه دی، موصولا او مفصولا، فصل خو دا دې چه په هر دوو رکعاتو باندې سلام اوګرځولې شی او په آخره کښې یو رکعت ځانله اوکړې شی، او د وصل مطلب دا دې چه د وتر څومره رکعاتونه کول منظور وی، درې یا پنځه یا اووۀ یا نهۀ یا یولس، دا ټول په یو سلام سره اوکړې شی، بیا د دې وصل دوه صورتونه دی. بتشهد واحد یعنی صرف په آخری رکعت کښې قعده او تشهد اوکړې شی او دویم صورت دا دې چه بتشهدین یعنی آخری رکعت او ماقبل آخر دواړو کښې قعده او تشهد اوکړې شی. مثلا که ایتار بتسع کول دی نو په نهم رکعت کوم چه آخری دې په دې کښې قعود او تشهد اولولی او سلام اوګرځوی. یا دغه شان اوکړی چه په اتم او نهم رکعت دواړو کښې قعده اوکړی او سلام صرف په آخره کښې اوګرځوی، دغه شان د دې دواړو په نیز دا هم اختیار دې چه ټول صلوة اللیل د وترو په نیت سره اوکړې شی او دا هم جائز دی چه په شروع کښې څۀ رکعتونه د تهجدو په نیت سره اوکړی او په آخره کښې څۀ رکعاتونه د وترو په نیت سره

ظاهر خبره دا ده چه کله د دوئ په نيز دومره فراختيا ده نو ټول صورتونه په سهولت سره د دوئ په مسلك باندې منطبق كيدې شي. احناف چونكه په اصولو سره ښې نو ځكه بعضې روايات د دوئ د مسلك خلاف پريوځي د كومو حل چه پورته تير شوې دې. دا د وترو بحث د اهم مباحثو نه دې نو ځكه د دې دپاره علماؤ مستقل قلم پورته كړې دې

[۱۳۳۴]([1])حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ حَنْظَلَةَ، عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ عَشْرَ رَكَعَاتٍ، وَيُوتِرُ بِسَجْدَةٍ، وَيَسْجُدُ سَجْدَتَيِ الْفَجْرِ، فَذَلِكَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً".

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي وو رسول الله ﷺ چې دشپې به يې لس ركعاته مونځ كولو، او وتر به يې كول په يو ركعات سره. او كول به يې دوه ركعاته د سحر. دغه ديارلس ركعاته شول

[۱۳۳۵]([2])حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُوتِرُ مِنْهَا بِوَاحِدَةٍ، فَإِذَا فَرَغَ مِنْهَا اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ".

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی، بېشكه رسول الله ﷺ وو چې دشپې مونځ يې كولو لس ركعاته، يو به يې وتر كولو، كله چې به فارغ شو د هغې نه نو په ښي اړخ به يې ډډه ولګوله

[۱۳۳۶]([3])حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَنَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ، وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، وَقَالَ نَصْرٌ: عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، وَالْأَوْزَاعِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فِيمَا بَيْنَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى أَنْ يَنْصَدِعَ الْفَجْرُ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُسَلِّمُ مِنْ كُلِّ ثِنْتَيْنِ، وَيُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ، وَيَمْكُثُ فِي سُجُودِهِ قَدْرَ مَا يَقْرَأُ أَحَدُكُمْ خَمْسِينَ آيَةً قَبْلَ أَنْ يَرْفَعَ رَأْسَهُ، فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ بِالْأُولَى مِنْ صَلَاةِ الْفَجْرِ قَامَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ".

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي وو رسول الله ﷺ چې مونځ يې كولو په مابين د فارغيدلو د هغې كې د ماسخوتن د مانځه نه او په مابين راختلو د فجر كې يوولس ركعاته. سلام به يې ګرځولو په دوه ركعاتونو باندې. او وتر به يې كول په يو سره. او وخت به يې تيرولو په سجده كې په اندازه د دې چې يو كس ستاسو نه پنځوس ايتونه لولي

---

[1]: صحيح البخاري/التهجد ۱۰ (۱۱٤۰)، صحيح مسلم/المسافرين ۱۷ (۷۳۸) سنن النسائي/قيام الليل ۳۳ (۱٦۹۷)، (تحفة الأشراف: ۱۷٤٤۸)، مسند احمد (۱۵۱/٤، ۱۵۸، ۲۰۱) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/المسافرين ۱۷ (۷۳٦)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۱۳ (٤٤۰، ٤٤۱)، (تحفة الأشراف: ۱٦۵۹۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوتر والتهجد ۳ (۱۱۲۳)، سنن النسائي/قيام الليل ۳۵ (۱٦۹۷)، ٤٤ (۱۷۲۷)، سنن ابن ماجه/ إقامة الصلاة ۱۸۱ (۱۳۵۸)، حم (٦/ ۳٤، ۳۵، ۸۳، ۱٤۳، ۱٦۷، ۱٦۸، ۱۸۲، ۲۱۵، ۲۲۸)، سنن الدارمي/الصلاة ۱٦۵ (۱۵۱٤) (صحيح)

[3]: سنن النسائي/ الأذان ٤۱ (٦۸٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۸۱ (۱۳۵۸)، (تحفة الأشراف: ۱٦۵۱۵، ۱٦٦۱۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ۱۵ (٦۲٦)، والوتر ۹۹٤)، والتهجد ۳ (۱۱۲۳)، و ۲۳ (۱۱٦۰)، والدعوات ۵ (٦۳۱۰)، صحيح مسلم/المسافرين ۱۷ (۷۳٦)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۱۲٦ (۱۱۹۸)، مسند احمد (٦/۳٤، ۷٤، ۸۳، ۱٤۳، ۱٦۷، ۲۱۵، ۲٤۸، ۲۵٤)، سنن الدارمي/الصلاة ۱٤۷ (۱٤۸٦)، ۱٦۵ (۱۵۱٤، ۱۵۱۵) (صحيح)

مخکې د پورته کولو د سر نه، کله چې به چوپ شو په اولني سره د مانځه د صباح نه نو پاڅیدلو به دوه رکعاته به یې وکړل سپک، بیایې ډډه ووهله په خپل ښي طرف، تردې چې مؤذن به ورته راغی.

**تشريح: قوله**: حدثنا عبدالرحمٰن بن ابراهيم و نصر بن عاصم،الخ..... و يمكث في سجوده قدر ما يقرأ احدكم خمسين آية، او د دينه پس واله روايت کښې دی چه. ويسجد سجدة قدر ما يقرأ احدكم خمسين آية،

**شرح حديث**:

د دې جملې په شرح کښې دوه قوله دی یو دا چه مراد دا دې چه په صلوٰة الليل کښې به د حضور ﷺ سجدې ډیر اوږدې اوږدې وی، د اجتهاد في الدعاء دپاره كما ورد فاجتهد في الدعاء فقمنٌ ان يستجاب لكم، د مسند احمد په يو روايت کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه حضور ﷺ به په سجدو کښې دا لوستل، سبحنك لا اله الا انت، او په يو روايت کښې دی، اللهم انى اعوذ برضك من سخطك و بمعافاتك من عقوبتك و اعوذبك منك لا احصى ثناء عليك انت كما اثنيت على نفسك.

او د دې دویمه شرحه دا ده چه د دېنه بعدالفراغ من الصلوة، اوږده سجده مراد ده. امام نسائی هم دا دویمه معنی د حدیث اغستې ده، حيث ترجم على الحديث، باب قدر السجدة بعد الوتر، خو سجده شکر او سجده تلاوت نه علاوه، تعبد بالسجدة المنفردة، مختلف فيه ده، د دې په باره کښې جواز او عدم جواز دواړه قوله دی،د فقهې کتابونو ته دې رجوع اوکړې شی او د دې مزید تحقیق دې اوکړې شی([1])

[۱۳۳۷]([2])حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، وَعَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، وَيُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، أَنَّ ابْنَ شِهَابٍ أَخْبَرَهُمْ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "وَيُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ وَيَسْجُدُ سَجْدَةً قَدْرَ مَا يَقْرَأُ أَحَدُكُمْ خَمْسِينَ آيَةً قَبْلَ أَنْ يَرْفَعَ رَأْسَهُ فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ مِنْ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَتَبَيَّنَ لَهُ الْفَجْرُ، وَسَاقَ مَعْنَاهُ" قَالَ: وَبَعْضُهُمْ يَزِيدُ عَلَى بَعْضٍ.

ابن شهاب خبر ورکړی دی دوی ته په خپل اسناد او معنی سره، هغه ویلي دي: او وتر به یې کول په یو رکعات سره، او سجده به یې کوله په اندازه د لوستلو د یو کس ستاسو پنځوس ایتونو لره مخکې د پورته کولو د سر نه، کله چې به مؤذن چوپ د صباح د مانځه نه او سحر به ورته ښکاره شو، او بیانیې کړه معنی د هغې، هغه وایې بعضې پکې زیادت کوي په بعضو باندې.

[1] ) و في الكوكب،ص،٤١٨،ج،١،و لا يجوز المناجاة لعدم الثبوت و ما ورد من الادعية عن النبي صلي الله عليه وسلم في السجدات فانما هي في الصلوتية لا المغفرة)اهـ

[2] ): صحيح مسلم/المسافرين ١٧ (٧٣٦)، سنن النسائي/الأذان ٤١ (٦٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٧٣، ١٦٧٠٤، ١٦٦١٨) (صحيح)

[١٣٣٨]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً يُوتِرُ مِنْهَا بِخَمْسٍ لَا يَجْلِسُ فِي شَيْءٍ مِنَ الْخَمْسِ حَتَّى يَجْلِسَ فِي الْآخِرَةِ فَيُسَلِّمُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ هِشَامٍ نَحْوَهُ.

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي: وو رسول الله ﷺ چي مونځ يي کولو د شپې ديارلس رکعاته، پنځه به پکې وتر وو، نه به کېناستلو په هيڅ شي کې د پنځو نه، تردې چې کېناستلو په اخرني کې، او سلام به يي وګرځولو. ويلي دي ابوداود: نقل کړی دی ابن نمير د هشام نه پشان د هغې.

[١٣٣٩]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِاللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً، ثُمَّ يُصَلِّي إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ بِالصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ".

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي: وو رسول الله ﷺ چي مونځ يي کولو دشپې ديارلس رکعاته، بيايي کول دوه د سحر سپک چې کله به يي اذان واوريدو.

[١٣٤٠]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً كَانَ يُصَلِّي ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ وَيُوتِرُ بِرَكْعَةٍ، ثُمَّ يُصَلِّي، قَالَ مُسْلِمٌ: بَعْدَ الْوِتْرِ، ثُمَّ اتَّفَقَا رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ قَاعِدٌ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ، وَيُصَلِّي بَيْنَ أَذَانِ الْفَجْرِ وَالْإِقَامَةِ رَكْعَتَيْنِ".

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی هغې ويلي دي: بېشکه نبي ﷺ وو چي مونځ يي کولو د شپې ديارلس رکعاته، وو چې اته رکعاته مونځ يي کولو و وتريي کول په يو رکعات سره، بيايي مونځ کولو ـ ويلي دي مسلم: وروسته د وترو نه بيا متفق شوي دي ـ دوه رکعاته، او هغه به ناست وو، کله چې به يي اراده وکړه د رکوع اوچت به شو رکوع به يي وکړه، او مونځ به يي کولو په مابين د اذان د فجر او اقامت کې دوه رکعاته.

[١٣٤١]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَيْفَ كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ؟ فَقَالَتْ: "مَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيْرِهِ عَلَى إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُصَلِّي أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ، ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثًا". قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَتَنَامُ قَبْلَ أَنْ تُوتِرَ؟ قَالَ: "يَا عَائِشَةُ إِنَّ عَيْنَيَّ تَنَامَانِ وَلَا يَنَامُ قَلْبِي".

ابو سلمة بن عبد الرحمن سعيد ته خبر ورکړی دی چې هغه تپوس وکړو د عائشي رضي الله عنها نه، د

---

[1]: تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ١٧٢٩٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ١٧ (٧٣٨)، سنن النسائي/قيام الليل ٣٩ (١٧١٨)، مسند احمد (٦/١٢٣، ١٦١، ٢٠٥) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/التهجد ٢٧ (١١٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٧١٥٠)، وقد أخرجه: سنن النسائي/قيام الليل ٤ (١٦٠٥)، مسند احمد (٦/١٧٧) (صحيح)

[3]: صحيح مسلم/المسافرين ١٧ (٧٣٨)، وانظر ايضا رقم: (١٣٣٨، ١٣٣٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٨١) (صحيح)

[4]: صحيح البخاري/التهجد ١٦(١١٤٧)، والتراويح ١ (٢٠١٣)، والمناقب ٢٤ (٣٥٦٩)، صحيح مسلم/المسافرين ١٧ (٧٣٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٠٩ (٤٣٩)، موطا امام مالك/صلاة الليل ٢(٩)، مسند احمد (٦/٣٦، ٧٣، ١٠٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٧١٩) (صحيح)

رسول الله ﷺ مونځ په رمضان کې څنګه وو؟ هغې وویل رسول الله ﷺ به په رمضان او په غیر د رمضان کې زیات نه کوه په یوولس رکعاتو باندې. څلور رکعاته به یې کول تپوس مه کوه د هغې د حسن او د اوږدوالي. بیا به یې څلور رکعاته کول. نه تپوس مه کوه د هغې د حسن او د اوږدوالي، بیا به یې درې رکعاته کول، عائشې رضی الله عنها وویل ای د الله رسوله! ایا ته اوده کیږې مخکې د وتر کولو نه؟ هغه وویل ای عائشې بېشکه زما سترګې اودې کیږي او زما زړه نه اوده کیږي

قوله، فقالت ما كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يزيد فى رمضان و لا فى غيره على احدى عشرة ركعة.دا حدیث متفق علیه دې امام بخاری او مسلم د دې تخریج کړې دې په دې حدیث سره اهل حدیث او د تقلید منکرین د اتو(۸) رکعاتو تراویحو باندې استدلال کوی، زمونږ مشائخ داسې فرمائی چه د دې تعلق د تهجدو د مانځه سره دې کوم چه ټول کال کولې شی تراویحو پورې کوم چه تر رمضان پورې خاص دی د دې تعلق نشته دې.

**تشریح: قوله**: قالت عائشة فقلت يا رسول الله صلى الله اتنام قبل ان توتر فقال يا عائشة ان عينیّ تنامان و لا ينام قلبى.

## د حدیث په شرح کښې دوه قوله

بعضې شراحو د دې شرح دا کړې ده چه چونکه د حضور اقدس ﷺ معمول دا وو چه د ماسخوتن مونځ به ئې اوکړو نو اوده به شو او د تهجدو نه به چه فارغ شو نو د ټولو په آخره کښې به ئې وتر کول نو چونکه د اوده کیدلو نه پس رابیداریدل یقینی امر نهٔ دې او په دې کښې د وترو د فوت کیدو ویره ده نو ځکه حضرت عائشه رضی الله عنها عرض اوکړو چه تاسو خو د وترو نه وړاندې اودهٔ شئ په دې باندې حضور ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه زما صرف سترګې اودهٔ کیږی زړهٔ بیدار وی(ګویا په دې کښې د فوت کیدو ویره نشته دې) خو په دې باندې اشکال کیږی چه بیا په لیلة التعریس کښې د دوئ مونځ ولې قضاء شو؟ اګر که د دې اشکال جواب ورکولې شی[۱] خو زمونږ حضرت سهارنپوری په بذل کښې دې مطلب لره دې دپاره نهٔ دې اختیار کړې بلکه د دې ئې دویمه شرحه فرمائیلې ده هغه دا چه حضور ﷺ به د تهجدو نه فارغ شو نو د وتر ادا کولو نه وړاندې به لږ غوندې وخت دپاره آرام فرمائیلو او بیا رابیداریدلو نه نه پس بغیر د اودس نوې کولو نه وتر ادا کول. نو په دې باندې حضرت عائشه رضی الله عنها سوال اوکړو چه تاسو د اودهٔ کیدو نه پس بغیر د اودس نه وتر ادا کوئ په دې باندې حضور ﷺ دا جمله ارشاد اوفرمائیله د کومې خلاصه چه دا ده چه د انبیاء علیهم السلام خوب ناقض د اودس نهٔ وی

د احقر خیال دا دې چه شراحو د حضرت عائشه رضی الله عنها د سوال کوم مطلب ګڼړې دې نو دا هغه وخت صحیح ووکه هغوی دا سوال د شپې په اوله برخه کښې کړې وې کله چه حضور ﷺ د

---

[۱] هغه دا چه، انّ عينيّ تنامان الخ، دا د اعم او اغلب په اعتبار سره دې یعنی اکثر به داسې کیدل او کله کله به د دې نه خلاف هم اوشول، یا به دا اووئیلې شی چه د لیلة التعریس واقعه تکوینی ده هلته د الله د طرف نه داسې اوشو په کوم کښې چه ډیر مصلحتونه وو.

ماسخوتن د مانځه نه پس د ارام دپاره ملاست وو حال دا دي چه داسي نه ده بلکه د سیاق د روایت نه خو بظاهر دا معلومیږي چه د حضور ﷺ نه د دوئ دا سوال د دوئ د تهجد و نه فارغ کیدو نه ورستو دې نو د دې دپاره د دې مطلب په صورت کښې دا سوال بې ځایه کیږي او حضرت چه کوم مطلب اغستې دې هغه په دې باندې موقوف دې چه حضور ﷺ به د تهجدو نه فارغیدو نه پس د وتر کولو نه وړاندې آرام کول باقي په دې کښې کوم استبعاد او لرې والي نشته دي ځکه چه صاحب منهل هم دا مطلب اختیار کړې دی

[۱۳۴۲](١)حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، قَالَ: طَلَّقْتُ امْرَأَتِي، فَأَتَيْتُ الْمَدِينَةَ لِأَبِيعَ عَقَارًا كَانَ لِي بِهَا فَأَشْتَرِيَ بِهِ السِّلَاحَ وَأَغْزُو، فَلَقِيتُ نَفَرًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: قَدْ أَرَادَ نَفَرٌ مِنَّا سِتَّةٌ أَنْ يَفْعَلُوا ذَلِكَ فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: "لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ"، فَأَتَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَسَأَلْتُهُ عَنْ وِتْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَدُلُّكَ عَلَى أَعْلَمِ النَّاسِ بِوِتْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأْتِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، فَأَتَيْتُهَا، فَاسْتَتْبَعْتُ حَكِيمَ بْنَ أَفْلَحَ، فَأَبَى، فَنَاشَدْتُهُ، فَانْطَلَقَ مَعِي، فَاسْتَأْذَنَّا عَلَى عَائِشَةَ، فَقَالَتْ: مَنْ هَذَا؟ قَالَ: حَكِيمُ بْنُ أَفْلَحَ، قَالَتْ: وَمَنْ مَعَكَ؟ قَالَ: سَعْدُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَتْ: هِشَامُ بْنُ عَامِرٍ الَّذِي قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ؟ قَالَ: قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَتْ: نِعْمَ الْمَرْءُ كَانَ عَامِرٌ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ، حَدِّثِينِي عَنْ خُلُقِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: أَلَسْتَ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ فَإِنَّ خُلُقَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ الْقُرْآنَ، قَالَ: قُلْتُ: حَدِّثِينِي عَنْ قِيَامِ اللَّيْلِ، قَالَتْ: أَلَسْتَ تَقْرَأُ يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ؟ قَالَ: قُلْتُ: بَلَى، قَالَتْ: فَإِنَّ أَوَّلَ هَذِهِ السُّورَةِ نَزَلَتْ فَقَامَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى انْتَفَخَتْ أَقْدَامُهُمْ، وَحُبِسَ خَاتِمَتُهَا فِي السَّمَاءِ اثْنَيْ عَشَرَ شَهْرًا، ثُمَّ نَزَلَ آخِرُهَا فَصَارَ قِيَامُ اللَّيْلِ تَطَوُّعًا بَعْدَ فَرِيضَةٍ، قَالَ: قُلْتُ: حَدِّثِينِي عَنْ وِتْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: كَانَ يُوتِرُ بِثَمَانِ رَكَعَاتٍ لَا يَجْلِسُ إِلَّا فِي الثَّامِنَةِ، ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي رَكْعَةً أُخْرَى لَا يَجْلِسُ إِلَّا فِي الثَّامِنَةِ وَالتَّاسِعَةِ، وَلَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي التَّاسِعَةِ، ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ، فَتِلْكَ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يَا بُنَيَّ، فَلَمَّا أَسَنَّ وَأَخَذَ اللَّحْمَ أَوْتَرَ بِسَبْعِ رَكَعَاتٍ لَمْ يَجْلِسْ إِلَّا فِي السَّادِسَةِ وَالسَّابِعَةِ، وَلَمْ يُسَلِّمْ إِلَّا فِي السَّابِعَةِ، ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ فَتِلْكَ هِيَ تِسْعُ رَكَعَاتٍ يَا بُنَيَّ، وَلَمْ يَقُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً يُتِمُّهَا إِلَى الصَّبَاحِ، وَلَمْ يَقْرَأِ الْقُرْآنَ فِي لَيْلَةٍ قَطُّ وَلَمْ يَصُمْ شَهْرًا يُتِمُّهُ غَيْرَ رَمَضَانَ، وَكَانَ إِذَا صَلَّى صَلَاةً دَاوَمَ عَلَيْهَا، وَكَانَ إِذَا غَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ مِنَ اللَّيْلِ بِنَوْمٍ صَلَّى مِنَ النَّهَارِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً" قَالَ: فَأَتَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَحَدَّثْتُهُ، فَقَالَ: هَذَا وَاللَّهِ هُوَ الْحَدِيثُ، وَلَوْ كُنْتُ أُكَلِّمُهَا لَأَتَيْتُهَا حَتَّى أُشَافِهَهَا بِهِ مُشَافَهَةً، قَالَ: قُلْتُ: لَوْ عَلِمْتُ أَنَّكَ لَا تُكَلِّمُهَا مَا حَدَّثْتُكَ.

د سعد بن هشام نه روایت دی هغه وایي ما خپله ښځه طلاقه کړه، مدینې ته راغلم هلته زما ځمکه وه د هغې د خرڅولو دپاره، چې سلاح پرې واخلم او غزا وکړم. زه مخامخ شوم څه کسانو سره د ملګرو د نبي ﷺ نه، هغوی وویل زمونږ نه شپږو کسانو همدغه اراده کړې ده چې دغسې وکړي، نو پیغمبر ﷺ منع کړل، او وېي ویل بېشکه تاسو لره د الله په رسول کې ښه مشري ده. زه راغلم ابن عباس ته ما ترینه تپوس وکړو د وترو د نبي ﷺ، نو هغه وویل: زه تاته ښایم ډیره پوهه د خلقو نه په وترو د رسول الله ﷺ باندې، لاړ شه

(١): صحيح مسلم/المسافرين ١٨ (٧٤٦)، سنن النسائي/ قيام الليل ٢ (١٦٠٢)، ١٧ (١٦٤٢)، ١٨ (١٦٥٢)، ٤٢ (١٧٢١)، ٤٣ (١٧٢٥)، سنن الترمذي/الصلاة ٢١٦ (٤٤٥مختصراً)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٢٣ (١١٩١)، (تحفة الأشراف: ١٦١٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٣/٦، ٩٤، ١٠٩، ١٦٣، ١٦٨، ٢٣٨، ٢٥٨) (صحيح)

عائشي ته، زه راغلم هغي ته، ما طلب د ملګرتیا وکړو د حکیم بن افلح نه نو هغه انکار وکړو، ما هغه ته قسم ورکړو نو ماسره لاړلو، مونږ طلب د اجازت وکړو د عائشي نه، هغي وویل دا څوک دی؟ هغه وویل حکیم بن افلح، هغي وویل او تاسره څوک دی؟ هغه وویل سعد بن هشام، هغي وویل هشام بن عامر هغه چي د احد په ورځ وژلی شوی دی؟ هغه وایي ما وویل آو، هغي وویل ډیر ښه سړی وو عامر، هغه وایي ما وویل ای ام المؤمنین! ماته بیان وکړه د اخلاقو د نبي ﷺ، هغي وویل ایا ته قرآن نه لولي؟ بېشکه اخلاق د رسول الله ﷺ قرآن وو، هغه وایي ما وویل ماته بیان وکړه د قیام اللیل نه، هغي وویل ایا ته یا ایها المزمل نه لولي؟ هغه وایي ما وویل ولي نه، هغي وویل بېشکه اول د دي سورت نزل، ودریدل صحابه د رسول الله ﷺ تردي چي خپي یي وپړسیدي، او بنده وه اخیرنۍ حصه په اسمان کي دولس میاشتي، بیا نازل شو اخرنۍ حصه د هغه، نو قیام اللیل نفل شو وروسته د فرضیت نه.

**تشریح: قوله**: عن سعد بن هشام قال طلقت امراتی فاتیت المدینة لابیع عقارًا کان لی بها فاشتری به السلاح.الخ، سعدبن هشام فرمائی چه ما خپلي ښځي لره طلاق ورکړو او بیا مدیني منورې ته راغلم دي دپاره چه هلته زما کومه زمکه ده هغه خرڅه کړم او بیا د دي په ذریعي سره وسله واخلم او په جهاد کښي مشغول شم، دې صحابی د تبتل او د دنیا نه د انقطاع اراده کړې وه او دا ټول هرڅۀ پریخودل او خپل ټول عمر په جهاد کښي لګول دی خو چونکه دا څیز دسنت طریقي نه خلاف دې نوځکه نوروصحابه کرامو دې منع کړو.

**قوله**: قال هشام بن عامر الذی قتل یوم أحدٍ، الذی قتل، د عامر صفت دې کوم چه د سعد بن هشام د حدیث د راوی نیکۀ دې، قالت نعم المرء کان عامرًا، اوئی فرمائیل ستا نیکۀ ابو عامر ډیر ښۀ سړې وو.

**قوله**: و کان اذا صلی صلوة دوام علیها، تردې چه حضور ﷺ یوځل د مازیګر د مانځه نه پس د ماسپخین د سنتو قضاء اوفرمائیله نو هغۀ به ئې هم مدام کول.

**د حدیث مضمون**

**قوله**: و لو کنت أکلّمها لاتبتها حتی أشافها به مشافهة،سعد بن هشام د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه د حضور ﷺ د تهجدو د مانځه په حقله سوال کړې وو، په دې باندې هغوی فرمائیلي وو چه د دې تفصیل چه څومره د حضرت عائشه رضی الله عنها نه معلومیدې شی دومره د بل چا نه نۀ شی کیدې، چنانچه هغوی حکیم بن افلح د ځان سره بوتللو او د هغوی په خدمت کښي حاضر شول، حضرت عائشه رضی الله عنها ورته د دې پوره تفصیل بیان کړلو، سعد بن هشام چه دا تفصیل واوریدلو نو بیا د حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته راغللو او دا تفصیل ئې هغوی ته هم واورولو هغوی قسم اوکړلو او اوئی فرمائیل،هذا والله هو الحدیث،واقعی د دې صحیح تفصیل هم دا دې کوم چه هغوی بیان کړې دې، او ابن عباس رضی الله عنه دا هم اوفرمائیل چه که د حضرت عائشه رضی الله عنها سره زما خبرې اترې وې نو زۀ به ورغلې ووم او دا تفصیل به ما د هغوی نه بالمشافه اوریدلې وو، په دې باندې سعد اوفرمائیل که ما ته د وړاندې نه دا معلومه وې

چه ستاسو د هغوئ سره خبرې اترې نشته دې نو زهٔ به تاته نهٔ وې راغلې او دا تفصيل به مې تاسو ته بالکل نهٔ وو اورولې

**يو اشکال او د هغې جواب:**

دلته دا يو اشکال دې چه هجران مسلم فوق ثلث خو ممنوع دې نو بيا ابن عباس رضی الله عنه داسې ولې اوکړل؟ جواب دا دې چه دا هجران مسلم يعنی ترک تکلم مطلقا ممنوع نهٔ دې بلکه ممنوع اعراض او ترک تکلم عند اللقاء دې، حضرت ابن عباس رضی الله عنه داسې نهٔ وو کړې بلکه دا ئې کړې وو چه د هغوی سره ئې ملاقات نهٔ وو کړې چه د هجران مسلم نوبت راشي. دويم جواب دا دې چه که دا اومنلې شي چه هغوی په وخت د ملاقات کښې ترک تکلم کړې وو نو دا ترک تکلم د هغوی د خپل کوم ذاتي او نفساني غرض د وجه نه نهٔ وو بلکه د امر دين د وجه نه وو، وجه د دې دا ده لکه څنګه چه د مسلم شريف په روايت کښې تصريح ده چه ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه ما حضرت عائشه رضی الله عنها د علي او معاويه رضی الله عنهما په مينځ کښې په نزاع کښې د دخل کولو نه منع کړې وه خو هغوی او نهٔ منل بلکه د حضرت معاويه رضی الله عنه ملګرتيا ئې اوکړله کومه چه د ابن عباس رضی الله عنه په نيز جائز نهٔ وه، او که ترک تکلم د کوم عصيان د وجه نه وی نو جائز ده.

[۱۳۴۳]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، بِإِسْنَادِهِ نَحْوَهُ، قَالَ: "يُصَلِّي ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ لَا يَجْلِسُ فِيهِنَّ إِلَّا عِنْدَ الثَّامِنَةِ فَيَجْلِسُ فَيَذْكُرُ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ، ثُمَّ يَدْعُو، ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا، ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ، ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَةً فَتِلْكَ إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً يَا بُنَيَّ، فَلَمَّا أَسَنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَخَذَ اللَّحْمَ أَوْتَرَ بِسَبْعٍ وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ، بِمَعْنَاهُ إِلَى مُشَافَهَةٍ".

سعيد د قتادة نه روايت کوي په خپل اسناد سره د هغې پشان، هغه وايي مونځ به يې کولو اته رکعاته نه به کېناستلو په هغې کې مګر د اتم رکعات سره، کېناستلو د الله تعالی ذکر به يې وکړو، بيا به يې دعاء وکړه، بيا به يې وګرځولو چې مونږ ته به يې واورولو، بيا به يې دوه رکعاته مونځ وکړو او هغه به ناست وو وروسته د سلام نه، بيا به يې يو رکعات وکړو، دغه يوولس رکعاته دي اې خويه! هرکله چې بوډا شو رسول الله ﷺ او غوښه يې ونيوله، وتر به يې کول اوه رکعاته، دوه رکعاته به يې کول او هغه به ناست وو وروسته د سلام اړولو نه په معنی د هغه حديث سره تر مشافهة پورې

**تشريح: قوله:** حدثنا محمد بن بشار نا يحيى بن سعيد عن قتادة،الخ..... **لا** يجلس فيهن الا عندالثامنة فيجلس فيذكر الله ثم يدعو ثم يسلم، د دې نه وړاندې روايت کښې همام عن قتادة وو او دا سعيد عن قتادة دې

د روايت په وهم باندې خبردارې: د همام روايت کښې دا وو چه ثامنه کښې به ئې جلوس فرمائيلو خو سلام به ئې نهٔ ګرځولو خو په تاسعه يعنی نهم کښې به ئې داسې او په نورو روايتو کښې هم دی خو د سعيد دا روايت د ټولو نه خلاف دې چه حضور ﷺ به په اتم رکعت باندې سلام ګرځولو، ثم يصلی رکعتين و هو جالس ثم يصلی رکعة، دا د دې روايت دويم

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٦١٠٤) (صحيح)

وهم دې او د ټولو روايتونو خلاف دې ځکه چه دوه رکعتونه په ناستې به حضور ﷺ د وترو نه پس کول او دلته قبل الوتر ذکر دي.

[١٣٤٤](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: "يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا" كَمَا قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ.

محمد بن بشر وايي مونږ ته بيان کړی سعيد دا حديث، هغه ويلي دي سلام به يې ګرځولو داسې سلام چې مونږ ته يې اورولو، لکه څنګه چې يحيى ويلي دي.

[١٣٤٥](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ ابْنُ بَشَّارٍ: بِنَحْوِ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "وَيُسَلِّمُ تَسْلِيمَةً يُسْمِعُنَا".

ابن عدي د سعيد نه دا حديث بيان کړی دی، ويلي دي ابن بشار پشان د حديث د يحيى بن سعيد مګر هغه دا يکې ويلي دي سلام به يې ګرځولو يو سلام چې مونږ ته به يې اورولو

[١٣٤٦](٣) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ الدِّرْهَمِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، حَدَّثَنَا زُرَارَةُ بْنُ أَوْفَى، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سُئِلَتْ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ، فَقَالَتْ: "كَانَ يُصَلِّي الْعِشَاءَ فِي جَمَاعَةٍ، ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى أَهْلِهِ فَيَرْكَعُ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، ثُمَّ يَأْوِي إِلَى فِرَاشِهِ وَيَنَامُ وَطَهُورُهُ مُغَطًّى عِنْدَ رَأْسِهِ وَسِوَاكُهُ مَوْضُوعٌ حَتَّى يَبْعَثَهُ اللَّهُ سَاعَتَهُ الَّتِي يَبْعَثُهُ مِنَ اللَّيْلِ فَيَتَسَوَّكُ وَيُسْبِغُ الْوُضُوءَ، ثُمَّ يَقُومُ إِلَى مُصَلَّاهُ فَيُصَلِّي ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ يَقْرَأُ فِيهِنَّ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ وَمَا شَاءَ اللَّهُ وَلَا يَقْعُدُ فِي شَيْءٍ مِنْهَا حَتَّى يَقْعُدَ فِي الثَّامِنَةِ، وَلَا يُسَلِّمُ وَيَقْرَأُ فِي التَّاسِعَةِ، ثُمَّ يَقْعُدُ فَيَدْعُو بِمَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَدْعُوَهُ وَيَسْأَلُهُ وَيَرْغَبُ إِلَيْهِ وَيُسَلِّمُ تَسْلِيمَةً وَاحِدَةً شَدِيدَةً يَكَادُ يُوقِظُ أَهْلَ الْبَيْتِ مِنْ شِدَّةِ تَسْلِيمِهِ، ثُمَّ يَقْرَأُ وَهُوَ قَاعِدٌ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَيَرْكَعُ وَهُوَ قَاعِدٌ، ثُمَّ يَقْرَأُ الثَّانِيَةَ فَيَرْكَعُ وَيَسْجُدُ وَهُوَ قَاعِدٌ، ثُمَّ يَدْعُو مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَدْعُوَ، ثُمَّ يُسَلِّمُ وَيَنْصَرِفُ، فَلَمْ تَزَلْ تِلْكَ صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى بَدَّنَ فَنَقَّصَ مِنَ التِّسْعِ ثِنْتَيْنِ فَجَعَلَهَا إِلَى السِّتِّ وَالسَّبْعِ وَرَكْعَتَيْهِ وَهُوَ قَاعِدٌ حَتَّى قُبِضَ عَلَى ذَلِكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د زرارة بن اوفى نه روايت دى، بېشکه عائشې رضي الله عنها نه تپوس وشو د مانځه د رسول الله ﷺ د شپې په څه حصه کې. هغې ووېل: هغه به د ماسخوتن مونځ په جمعه کولو، بيا به خپل اهل ته واپس شو. څلور رکعاته به يې وکړل، بيا به خپلې بسترې ته راغلو، او اوده به شو او د اودس اوبه به د هغه د سر سره وې، او مسواک به ورته کېښودلی شوی وو، تردې چې الله به راپاڅولو په خپل هغه وخت کې چې راپاڅولو به يې دشپې، مسواک به يې ووهلو، او پوره اودس به يې وکړو، بيا خپل مانځه ځاى کې ودريدو، مونځ به يې وکړو اته رکعاته، په هغې کې به يې سورة الفاتحه لوستله او يو سورت د قرآن نه، او هغه چې د الله به خوښه وه، او نه به کېناستلو په هيڅ شي کې د هغې نه تردې چې په اتم به کېناستلو، او سلام به يې نه ګرځولو، او لوستلو به يې په نهم کې، بيا به کېناستلو، دعاء به يې کوله په هغې سره چې الله غوښتل چې د هغې دعاء وکړي او هغه وغواړي، او د هغه مينه وه هغې ته، او يو

(١): انظر حديث رقم: (١٣٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٦١٠٤) (صحيح)
(٢): انظر حديث رقم: (١٣٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٦١٠٤) (صحيح)
(٣): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٠٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٦/٦) (صحيح)

سخت سلام به یې ګرځولو نژدې وو چې د کور والا رابیدار کړي د شدت د سلام نه. بیا به یې لوستله سورة الفاتحه او هغه به ناست وو، او رکوع به یې کوله او هغه به ناست وو. بیا قراءت کولو په دویم کې، رکوع او سجده به یې کوله او هغه به ناست وو. بیا به یې دعاء غوښتله هغه چې د الله خوښه وه چې وېې غواړي. بیا به یې سلام واړولو او تلو به. د رسول الله ﷺ دغه مونځ وو د همېشه دپاره تردې چې غټ شو. نو د نهو نه یې دوه کم کړل ویې ګرځول شپږو او اوو ته. او دوه رکعاتونه به ناسته تردې چې وفات شو رسول الله ﷺ په دغې باندې

**تشریح قوله**: و یسلم تسلیمة واحدة شدیدة یکاد یوقظ اهله. یعنی یو سلام به حضور ﷺ دومره په زروه سره ګرځولو چه کور واله اودهٔ راپاسی.

## په تسلیمه واحده کښې د امام مالک دلیل

په کومو ابوابو کښې چه مصنف د مانځه ارکان بیان کړي وو هلته یو باب. باب فی السلام. تیر شوي دي په کوم کښې چه مصنف د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په روایت سره د تسلیمتینو حدیث، کان یسلم عن یمینه و عن شماله. ذکر فرمائیلي وو هلته دا خبره تیره شوي وه چه ائمه ثلاثه په مانځه کښې د تسلیمتینو قائل دی او امام مالك د تسلیمه واحده قائل دي او هم دا حدیث د دوئ دلیل دې. هلته د تسلیمهٔ واحده په باره کښې یو جواب تیر شوي وو چه هغه په جهر شدید باندې محمول دې یعنی یو سلام به ئې په ډیر زوره سره وئیلو د تسلیمهٔ ثانیه نفی مقصود نهٔ ده.

[۱۳۴۷](۱) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ، فَذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: "يُصَلِّي الْعِشَاءَ ثُمَّ يَأْوِي إِلَى فِرَاشِهِ، لَمْ يَذْكُرِ الْأَرْبَعَ رَكَعَاتٍ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، وَقَالَ فِيهِ: فَيُصَلِّي ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ يُسَوِّي بَيْنَهُنَّ فِي الْقِرَاءَةِ وَالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ وَلَا يَجْلِسُ فِي شَيْءٍ مِنْهُنَّ إِلَّا فِي الثَّامِنَةِ فَإِنَّهُ كَانَ يَجْلِسُ، ثُمَّ يَقُومُ وَلَا يُسَلِّمُ فِيهِ فَيُصَلِّي رَكْعَةً يُوتِرُ بِهَا، ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيمَةً يَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهُ حَتَّى يُوقِظَنَا، ثُمَّ سَاقَ مَعْنَاهُ".

یزید بن هارون وایي مونږ ته بهز بن حکیم خبر راکړی دی، دا حدیث یې ذکر کړو په خپل اسناد سره هغه پکې ووېل مونځ به یې کولو د ماسخوتن. بیا به راتلو خپلې بسترې ته. نه یې دې ذکر کړې څلور رکعاته. او بیان یې کړو حدیث. هغه پکې ووېل مونځ به یې کولو اته رکعاته برابروالی به یې کولو په هغې په قراءت او رکوع او سجده کې. او نه به کیناستلو په هیڅ شي کې د هغې نه مګر په اتم رکعات کې. بیشکه هغه به کیناستلو. بیا به پاڅیدلو. او سلام به یې نه ګرځولو په هغې کې. مونځ به یې کولو یو رکعات هغه به یې وتر شو. بیا به یې سلام اړولو اوچتولو به یې خپل اواز په هغې سره تردې چې مونږ به یې رابیدار کړو، بیایې بیان کړه معنی د هغې

[۱۳۴۸](۲) حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ يَعْنِي ابْنَ مُعَاوِيَةَ، عَنْ بَهْزٍ، حَدَّثَنَا زُرَارَةُ بْنُ أَوْفَى، عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، أَنَّهَا سُئِلَتْ عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "كَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱٦٠٨٦) (صحیح)
(۲): انظر حدیث رقم: ۱۳٤٦، (تحفة الأشراف: ۱٦٠٨٦) (صحیح)

الْعِشَاءَ، ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى أَهْلِهِ فَيُصَلِّي أَرْبَعًا، ثُمَّ يَأْوِي إِلَى فِرَاشِهِ، ثُمَّ سَاقَ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ، وَلَمْ يَذْكُرْ يُسَوِّي بَيْنَهُنَّ فِي الْقِرَاءَةِ وَالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِي التَّسْلِيمِ حَتَّى يُوقِظَنَا".

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی، بېشکه د هغې نه تپوس وشو د مانځه د رسول الله ﷺ، هغې وويل: هغه به د ماسخوتن مونځ کولو خلقو ته، بيا به واپس کېدلو خپل اهل ته، څلور رکعاته مونځ به يې کولو، بيا به راتلو خپلې بسترې ته، بيايي ټول حديث بيان کړو، او ذکر يې نه کړو چې تسويه يې کوله په مينځ د هغې کې په قراءت او رکوع او سجده کې، او نه يې دی ذکر کړی په سلام کې، ترديې چې مونږ يې بيدار کړو.

[۱۳۴۹]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَلَيْسَ فِي تَمَامِ حَدِيثِهِمْ.

د عائشي رضي الله عنها نه روايت دی، دا حديث، او نشته په تمام د حديث د هغوی کې.

**تشريح: قوله**: عن زرارة بن اوفى عن سعد بن هشام عن عائشة رضى الله عنها بهذا الحديث و ليس فى تمام حديثه،

## شرح السند:

دا روايات چه کوم روان دی د دې ټولو مدار په بهز بن حکيم باندې دې، د بهز ګنړ شاګردان دی(۱) ابن عدی(۲) يزيد بن هارون(۳) مروان بن معاويه(۴) حماد بن سلمه، په دې ټولو روايتونو کښې دزرارة بن اوفي او دعائشه رضي الله عنها په مينځ کښې هيڅ واسطه نشته ټول روايتونه بغير واسطې نه دې، خو آخرې روايۀ د حماد بن سلمه کښې د دې دواړو په مينځ کښې د سعد بن هشام واسطه ده او واسطه پکار هم ده د دې په باره کښې مصنف فرمائي .
وليس فى تمام حديثهم. د حماد په مقابله کښې د نورو رواتو د حديث يعنى د سند حديث تام يعنى پوره نۀ دې، اصل عبارت داسې دې. وليس فى حديثهم بتمام.

[۱۳۵۰]([2])حَدَّثَنَا مُوسَى يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً يُوتِرُ بِتِسْعٍ، أَوْ كَمَا قَالَتْ: وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ وَرَكْعَتَيِ الْفَجْرِ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ".

دعائشي رضي الله عنها نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ وو چې مونځ يې کولو دشپې ديارلس رکعاته، درې به يې پکې وتر کول. يا لکه څنګه چې هغې ويلي دي. مونځ به يې کولو دوه رکعاته او هغه به ناست وو، او دوه رکعاتونه د سحر په مابين د اذان او اقامت کې.

[۱۳۵۱]([3])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُوتِرُ بِتِسْعِ رَكَعَاتٍ، ثُمَّ أَوْتَرَ بِسَبْعِ رَكَعَاتٍ وَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ بَعْدَ الْوِتْرِ يَقْرَأُ فِيهِمَا، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ، ثُمَّ سَجَدَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَيْنِ الْحَدِيثَيْنِ خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو مِثْلَهُ، قَالَ فِيهِ: قَالَ عَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ: يَا أُمَّتَاهُ،

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۰۸۶، ۱۶۱۱۰) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۱۰، ۱۶۱۱۱، ۱۷۷۵۵) (حسن صحيح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۱۱)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ۱۶ (۷۳۸) (حسن صحيح)

كَيْفَ كَانَ يُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ؟ فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی، بېشکه رسول الله ﷺ وو چې وتريې کول په اوه رکعاتونو سره، بيا به يې اوه رکعاته وتر کول. او دوه رکعاته يې وکړل په ناسته وروسته د وترو نه قراءت به يې کولو په هغې دواړو کې، کله چې به يې اراده د رکوع نو پاڅېدلو به، نو رکوع يې وکړه او سجده يې وکړه. ويلي دي ابوداود دواړه حديثونه خالد بن عبد الله الواسطي د محمد بن عمرو نه روايت کړي په مثل د هغې. هغه پکې ويلي دي ويلي دي علقمه بن وقاص: اې مورې دوه رکعاته يې څنګه کول. ذکر يې کړه معنی د هغې.

**تشريح: قوله:** كان يصلي من الليل ثلث عشرة ركعة يوتر بتسع، د نهو رکعاتو تهجدو سره د وترو نه او دوه د صبا سنت او ركعتين جالسًا بعد الوتر دا ټول ديارلس رکعاته شول

قوله، كان يوتر بتسع ركعات ثم اوتر بسبع. يعنې په اوله کښې به حضور ﷺ د تهجدو نهٔ رکعاته سره د وترو نه کول بيا (کله چه ضعف ورته پيښ شو) نو د نهو په ځائې به ئې اووهٔ رکعاته کول.

**قوله:** قال ابوداؤد روى الحديثين خالد بن عبدالله الواسطي مثله، د حديثينو نه مراد يو خو هم دا حديث دې په کوم کښې چه روان يو يعنې حديث د علقمه عن عائشة او دويم حديث ددې نه وړاندې حديث دابي سلمة بن عبدالرحمن عن عائشة. دې دواړو حديثونو لره خالد بن عبدالله روايت کړې دی د حماد بن سلمه پشان يعنې څنګه چه حماد دې لره د محمد بن عمرو نه روايت کوی دغه شان خالد هم دې لره د محمد بن عمرو نه روايت کوی

[۱۳۵۲](1) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، قَالَ: قَدِمْتُ الْمَدِينَةَ فَدَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ، فَقُلْتُ: أَخْبِرِينِي عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ صَلَاةَ الْعِشَاءِ، ثُمَّ يَأْوِي إِلَى فِرَاشِهِ فَيَنَامُ، فَإِذَا كَانَ جَوْفُ اللَّيْلِ قَامَ إِلَى حَاجَتِهِ وَإِلَى طَهُورِهِ فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ، يُخَيَّلُ إِلَيَّ أَنَّهُ يُسَوِّي بَيْنَهُنَّ فِي الْقِرَاءَةِ وَالرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ، ثُمَّ يُوتِرُ بِرَكْعَةٍ، ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ، ثُمَّ يَضَعُ جَنْبَهُ، فَرُبَّمَا جَاءَ بِلَالٌ فَآذَنَهُ بِالصَّلَاةِ، ثُمَّ يُغْفِي، وَرُبَّمَا شَكَكْتُ أَغْفَى أَوْ لَا، حَتَّى يُؤْذِنَهُ بِالصَّلَاةِ فَكَانَتْ تِلْكَ صَلَاتُهُ حَتَّى أَسَنَّ لَحُمَ"، فَذَكَرَتْ مِنْ لَحْمِهِ مَا شَاءَ اللَّهُ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

د سعد بن هشام نه روايت دی، هغه وايي زه راغلم مدينې ته، عائشې ته ورغلم، ما وويل ماته خبر راکړه د مانځه د رسول الله ﷺ، هغې وويل بېشکه رسول الله ﷺ به خلقو ته د ماسخوتن مونځ کولو. بيا به راغلو خپلې بسترې ته اوده کېدلو به. کله چې به شپه نيمه شوه نو خپل حاجت او اودس ته به پاڅېدلو. نو اودس به يې وکړو. بيا به مسجد ته داخل شو، مونځ به يې وکړو اته رکعاته. زما ګمان دی چې هغه به برابروالي کولو په مابين د قراءت او رکوع او سجده کې. بيا به يې وتر کولو په يو رکعات سره، بيا به يې دوه رکعاته کول او هغه به ناست وو. بيا به يې اړخ کېخودو. کله چې به بلال راغی نو هغه ته بې خبر ورکړو په مانځه سره، بيا به لږ شان اوده شو. او کله به زما شک شو چې اوده شو او که نه؟

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۰۹۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/ ۹۱، ۹۷، ۱۶۸، ۲۱۶، ۲۲۷، ۲۳۵) (صحيح)

تردې چې هغه به يې خبر کړو په مانځه سره، نو دغه د هغه مونځ وو تردې چې ښه بوډا شو، ذکر يې د هغه د غوښې وکړ هغه چې د الله خوښه وه، او حديث يې بيان کړو

**قوله**: حدثنا وهب بن بقية عن خالد ح، پورته مصنف د خالد د روايت حواله ورکړې وه، خالد چونکه د مصنف استاذ نۀ دې بلکه استاذ الاستاذ دې لهذا دا پورتنی روايت تعليق شو، د تعليق نه پس د مصنفينو دا عادت دې چه د دې وصل کوی يعني د سند ابتدائی حصه ذکر کړی او د سند تکميل يعني پوره والې کوی چنانچه مصنف اووئيل، حدثنا وهب بن بقية عن خالد. عن خالد نه چه راغلو نو مخکښني سند چه ناقص وو د هغې تکميل اوشو

## د سند تصحيح و تحقيق او د نسخو د اختلاف بيان

اوس د دينه پس مصنف يو بل مستقل سند شروع کړو د کوم ابتداء چه د ابن المثنی نه ده خو دلته زمونږ په نسخه کښې د دې نه وړاندې حاء د تحويل ليکلې شوې ده د کومې چه څۀ وجه نشته دې ځکه چه د نا ابن المثنی نه مستقل سند شروع کيږی لهذا دا حاء دلته غلطه ده، دويمه غلطی دا ده چه کله ابن المثنی نه د سند ابتداء کيږی نو بيا د دې په شروع کښې د، نا. په ځائې، حدثنا، پوره جلی قلم سره پکار وو لکه څنګه چه د سند په ابتداء کښې وی. چنانچه په بعضې قلمی نسخو کښې دغه شان دی. كذا حققه شيخنا فى البذل و تبعه صاحب المنهل بدون العز و اليه و اما صاحب العون فوقع فى الوهم لاجل هذه النسخة فظن،حاء التحويل ههنا صحيحا و شرح السند حسب هذه النسخة بان خالدًا و عبدالاعلى كلاهما يرويان عن هشام فجعل هشامًا ملتقى السندين ثم تحير و كتب لم نجد رواية وهب بن بقية عن خالد عن هشام فى اطراف المزّى، قال صاحب البذل متعقبًا كلامه كيف يوجد فى الاطراف ما لا وجود له، والله تعالى اعلم

ثم يضع جنبه.دا هم هغه اضطجاع ده کومه چه په بعضې روايتونو کښې بعد رکعتی الفجر ده او دلته قبل رکعتی الفجر ده د دې مستقل باب د دېنه وړاندې کتاب کښې تير شوې دې

**قوله**: فربما جاء بلال فآذنه بالصلوة ثم يغفى و ربما شككت،،الخ. اغفاء وائی نوم خفيف يعني لږ غوندې خوب ته کوم ته چه زمونږ په عرف کښې سترګې ورتلو سره تعبير کوی، وئيلې کيږی. اغفيت اغفاء اى نمت نومًا خفيفًا.

مطلب دا دې چه حضور ﷺ به د وترو نه پس دوه رکعت په ناسته باندې اوکړل او د صبا سنت کولو نه وړاندې به لږ غوندې وخت دپاره څملاستل خو هغۀ به دومره لږ وخت وو چه اکثر وختونو کښې به داسې اوشول چه حضور ﷺ په څملاستلو نو سمدستی به بلال رضی الله عنه د آذان نه پس د مونځ خبرداری دپاره راغلو تر دې پورې چه ما ته به شك پيدا شولو چه د حضور ﷺ سترګې ورغلې هم دی او که نۀ، د ابوداؤد سياق واضح نۀ دې د نسائی روايت واضح دې دا مطلب مونږ د هغې مطابق ليکلې دې

حتى اسنّ او لحُمَ.(دا د راوی شك دې چه استاذ دا لفظ وئيلې وو او که نۀ) تر دې چه حضور ﷺ بوډا شو يا بدن ئې درون شو (کوم چه بعضې خلقو ته په بوډاوالی کښې کيږی) سمن د حضور ﷺ د صفاتو نه دې او که نۀ؟ دا بحث د دې نه وړاندې غالبًا دوه ځايه تېر شوې دې

[۱۳۵۳] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ رَقَدَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَآهُ "اسْتَيْقَظَ فَتَسَوَّكَ وَتَوَضَّأَ، وَهُوَ يَقُولُ: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ سورة البقرة آية ۱۶۴ حَتَّى خَتَمَ السُّورَةَ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ أَطَالَ فِيهِمَا الْقِيَامَ وَالرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ، ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَامَ حَتَّى نَفَخَ، ثُمَّ فَعَلَ ذَلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ بِسِتِّ رَكَعَاتٍ، كُلُّ ذَلِكَ يَسْتَاكُ، ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وَيَقْرَأُ هَؤُلَاءِ الْآيَاتِ، ثُمَّ أَوْتَرَ". قَالَ عُثْمَانُ: "بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ فَأَتَاهُ الْمُؤَذِّنُ فَخَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ"، وَقَالَ ابْنُ عِيسَى: "ثُمَّ أَوْتَرَ فَأَتَاهُ بِلَالٌ فَآذَنَهُ بِالصَّلَاةِ حِينَ طَلَعَ الْفَجْرُ فَصَلَّى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ، ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، وَهُوَ يَقُولُ: اللَّهُمَّ اجْعَلْ فِي قَلْبِي نُورًا، وَاجْعَلْ فِي لِسَانِي نُورًا، وَاجْعَلْ فِي سَمْعِي نُورًا، وَاجْعَلْ فِي بَصَرِي نُورًا، وَاجْعَلْ خَلْفِي نُورًا، وَأَمَامِي نُورًا، وَاجْعَلْ مِنْ فَوْقِي نُورًا، وَمِنْ تَحْتِي نُورًا، اللَّهُمَّ وَأَعْظِمْ لِي نُورًا".

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی. بېشکه هغه اوده شو د نبي ﷺ سره، هغه وليدلو چې رابيدار شو، مسواک يې ووهلو او اودس يې وکړو، او هغه دا وويل: (ان في خلق السماوات و الارض) تردې چې سورت يې ختم کړو، بيا ودريدلو دوه رکعاته يې وکړل قيام رکوع او سجده يې پکې اوږده کړه، بيا لاړلو اوده شو تردې چې پوکی يې وکړو، بيايي دغسې درې ځله وکړل شپږ رکعاته، هر ځل به يې مسواک وهلو، بيا به يې اودس کولو او دا ايتونه به يې لوستل، بيايې وتر وکړل. عثمان ويلي دي: درې رکعاته، مؤذن ورته راغی، نو مانځه ته ووتلو، او ويلي دي ابن عيسی: بيايې وتر وکړل، پس بلال ورته راغی، خبر يې کړو په مانځه سره کله چې صباح راوختلو دوه رکعاته د سحريې وکړل، بيا مانځه ته ووتلو، بيا دواړه متفق شوي دي.-او هغه به ويل: ای الله زما په زړه کې نور واچوی، او زما په ژبه کې نور واچوي، او زما په غوږونو کې نور واچوي، او زما په سترګو کې نور واچوي، زما نه وروسته نور وګرځوي، او زمانه مخکې هم، زما نه بره نور وګرځوي، او زما نه لاندې نور ای الله، لوی کړې زما دپاره نور.

[۱۳۵۴] (۲) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، نَحْوَهُ، قَالَ: "وَأَعْظِمْ لِي نُورًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ قَالَ أَبُو خَالِدٍ الدَّالَانِيُّ: عَنْ حَبِيبٍ فِي هَذَا، وَكَذَلِكَ قَالَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: وَقَالَ سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ: عَنْ أَبِي رِشْدِينَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.

حصين روايت کړی دی پشان د هغې، او لوی کړې مالره نور. ويلي دي ابوداود: همدارنګه ويلي دي ابو خالد الدالاني د حبيب نه په دې کې، همدارنګه يې ويلي دي په دې حديث کې، او ويلي دي سلمة بن کهيل د ابو راشد نه او هغه د ابن عباس نه.

[۱۳۵۵] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بِتُّ لَيْلَةً عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَنْظُرَ كَيْفَ يُصَلِّي، "فَقَامَ فَتَوَضَّأَ وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ قِيَامُهُ مِثْلُ رُكُوعِهِ وَرُكُوعُهُ مِثْلُ سُجُودِهِ، ثُمَّ نَامَ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ فَتَوَضَّأَ وَاسْتَنَّ، ثُمَّ قَرَأَ بِخَمْسِ

(۱): انظر حديث رقم: ٥٨، (تحفة الأشراف: ٦٢٨٧) (صحيح)
(۲): انظر حديث رقم: ٥٨، (تحفة الأشراف: ٦٢٨٧) (صحيح)
(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٥٩) (ضعيف)

آيَاتٍ مِنْ آلِ عِمْرَانَ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ سورة آل عمران آية ۱۹۰ فَلَمْ يَزَلْ يَفْعَلُ هَذَا حَتَّى صَلَّى عَشْرَ رَكَعَاتٍ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى سَجْدَةً وَاحِدَةً فَأَوْتَرَ بِهَا وَنَادَى الْمُنَادِي عِنْدَ ذَلِكَ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ، فَصَلَّى سَجْدَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ حَتَّى صَلَّى الصُّبْحَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: خَفِيَ عَلَيَّ مِنِ ابْنِ بَشَّارٍ بَعْضُهُ.

د فضل بن عباس نه روایت دی هغه ویلي دي: ما شپه تېره کړه د نبي ﷺ سره دې دپاره چې زه اوګورم چې هغه څنګه مونځ کوي، هغه پاڅېدلو اودس یي وکړو او دوه رکعاته یي وکړل، قیام یي پشان د رکوع وو، او رکوع یي پشان د سجدي وه، بیا اوده شو، بیا رابیدار شو، اودس یي وکړو او مسواک یي ووهلو، بیا د سورت آل عمران پنځه ایتونه ولوستل (ان في خلق السماوات و الارض و اختلاف الليل و النهار) همېشه وو چې داسې یي کول تردې چې پنځلس رکعاته یي وکړل، بیا ودریدلو یو رکعات یي وکړل هغه یي کړل، اذان وکړو اذان کونکي په دغه وقت کې، رسول الله ﷺ پاڅېدلو پس د هغې نه چې مؤذن چوپ شوی وو، مونځ یي وکړو دوه رکعاته سپک، بیا کېناستلو تردې چې د ماسخوتن مونځ یي وکړو. ویلي دي ابوداود: پټ شوی دی په ما باندې بعضې د ابن بشار نه.

حدثنا محمد بن بشار.... عن الفضل بن عباس قال بِتُّ ليلةً عند النبی صلی الله علیه وسلم، د اکثرو مشهورو روایتونو نه معلومېږي چه دا د مبیت واقعه د عبدالله بن عباس رضی الله عنه سره متعلق ده لکه څنګه چه صحیحینو او نورو احادیثو په کتابونو کښې ده، عن ابن عباس رضی الله عنه قال بت عند خالتي ميمونة، او دلته په دې روایت کښې د دې نسبت د دهٔ رور فضل بن عباس رضی الله عنه طرف ته کیږي، دا روایت دغه شان په صحاح سته کښې صرف یو ځائې دلته په ابوداؤد کښې دې او د محمد بن نصر په قیام اللیل کښې هم یو ځائې دغه شان دې، یا خو به دې ته وهم اوو شېلي شي یا کیدې شي تعدد د قصې وي (منهل)

[۱۳۵۶] ([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قَيْسٍ الْأَسَدِيُّ، عَنِ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ، فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا أَمْسَى، فَقَالَ: "أَصَلَّى الْغُلَامُ؟" قَالُوا: نَعَمْ، "فَاضْطَجَعَ حَتَّى إِذَا مَضَى مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللَّهُ قَامَ فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ صَلَّى سَبْعًا أَوْ خَمْسًا أَوْتَرَ بِهِنَّ لَمْ يُسَلِّمْ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ".

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی، هغه ویلي دي، ما شپه تېره کړه د خپلې ترور سره، نو رسول الله ﷺ راغی پس د بېګاه نه، هغه وویل: ایا هلک مونځ کړی دی؟ هغوی وویل: آو، نو دده یي ولګوله تردې چې نیمه شپه لاړه هغه چې الله غوښتله، اوچت شو اودس یي وکړو، بیایي مونځ وکړو اوه رکعاته. او یا پنځه. هغه یي وتر کړل، سلام یي ونه ګرځولو مګر په اخیر کې.

[1]: صحيح البخاري/العلم ٤١ (١١٧)، الأذان ٥٧ (٦٩٧)، سنن النسائي/الإمامة ٢٢ (٨٠٧)، (تحفة الأشراف:٥٤٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٤١، ٣٥٤)، دي/الطهارة ٣ (٦٨٤) (صحيح)

[۱۳۵۷]( )حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بِتُّ فِي بَيْتِ خَالَتِي مَيْمُونَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ "فَصَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ، ثُمَّ جَاءَ فَصَلَّى أَرْبَعًا، ثُمَّ نَامَ، ثُمَّ قَامَ يُصَلِّي، فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَدَارَنِي فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ، فَصَلَّى خَمْسًا، ثُمَّ نَامَ حَتَّى سَمِعْتُ غَطِيطَهُ أَوْ خَطِيطَهُ، ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الْغَدَاةَ".

د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی، هغه ویلي دي: ما شپه تېره کړه په کور د ترور خپلې کې چې میمونة بنت الحارث ده، نو مونځ وکړو رسول الله ﷺ د ماسخوتن، بیا راغی څلور رکعاته یې وکړل، بیا اوده شو، بیا پاڅیدلو چې مونځ یې کولو، زه د هغه چپ طرف ته ودریدم، زه یې راتاو کړم ویې درولم خپل ښي طرف ته، پنځه رکعاته یې وکړل، بیا اوده شو تردې چې د هغه خنهاری ما واوریدلو - او یایې خطیط وویله. بیا پاڅیدلو دوه رکعاته یې وکړل، بیا ووتلو، د سحر مونځ یې وکړو.

[۱۳۵۸]( )حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ حَدَّثَهُ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: "فَقَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ حَتَّى صَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ، ثُمَّ أَوْتَرَ بِخَمْسٍ وَلَمْ يَجْلِسْ بَيْنَهُنَّ".

د سعید بن جبیر نه روایت دی بېشکه ابن عباس ورته حدیث بیان کړی دی په دې قصه کې، هغه وویل: هغه ودریدلو مونځ یې وکړو دوه دوه رکعاته تردې چې اته رکعاته مونځ یې وکړو، بیایې پنځه رکعاته وتر وکړل او کېناستلی نه دی د هغې په مینځ کې.

[۱۳۵۹]( )حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً بِرَكْعَتَيْهِ، قَبْلَ الصُّبْحِ يُصَلِّي سِتًّا مَثْنَى مَثْنَى، وَيُوتِرُ بِخَمْسٍ لَا يَقْعُدُ بَيْنَهُنَّ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ".

د عائشې رضي الله عنها نه روایت دی هغې ویلي دي: وو رسول الله ﷺ چې دیارلس رکعاته مونځ یې کولو په دوه دوه رکعاتونو سره مخکې د صباح نه، شپږ به یې دوه دوه رکعاته کول، او وتر به یې کول پنځه، نه به کېناستلو مګر په اخیر د هغې کې.

[۱۳۶۰]( )حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُصَلِّي بِاللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً بِرَكْعَتَيِ الْفَجْرِ".

د عائشې رضي الله عنها نه روایت دی، هغې خبر ورکړی دی عروة ته، بېشکه نبي ﷺ وو د شپې مونځ ئې کولو لس رکاته سره د دوه رکعاتو د فجر.

[۱۳۶۱]( )حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَجَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ يَزِيدَ الْمُقْرِئَ أَخْبَرَهُمَا، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٤٩٦) (صحيح)

[2]: سنن النسائي/الإمامة ٢٢ (٨٠٧)، (تحفة الأشراف: ٥٦٤٤) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٣٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٧٥/٦) (صحيح)

[4]: م/المسافرين ١٧ (٧٣٧)، (تحفة الأشراف: ١٦٣٧١)، مسند احمد (٢٢٢/٦) (صحيح)

[5]: صحيح البخاري/التهجد ٢٢ (١١٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٣٥)، وانظر حديث رقم: (١٣٤٢) (صحيح)؟وركعتين جالساً بين الأذانين؟

أَيُّوبَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الْعِشَاءَ، ثُمَّ صَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ قَائِمًا وَرَكْعَتَيْنِ بَيْنَ الْأَذَانَيْنِ، وَلَمْ يَكُنْ يَدَعُهُمَا". قَالَ جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ فِي حَدِيثِهِ: "وَرَكْعَتَيْنِ جَالِسًا بَيْنَ الْأَذَانَيْنِ، زَادَ جَالِسًا".

د عائشې رضي الله عنها نه روايت دی بېشکه رسول الله ﷺ د ماسخوتن مونځ وکړو، بيايي اته رکعاته وکړل په ولاړه، او دوه رکعاته په مابين د اذان او اقامت کې، او هغه به دغه دواړه نه پرېښودل، جعفر بن مسافر په خپل حديث کې ويلي دي: او دوه رکعاته په ناسته په مابين د دواړو اذانونو کې، زيات يې کړی دی: په ناسته.

قال جعفر بن مسافر في حديثه و ركعتين جالسا بين الاذانين، د اذانين نه مراد آذان او اقامت دي.

## د روايت په وهم باندې خبرداری:

په دې روايت کښې د جالسًا زيادت د راوي وهم دې د صبا سنت کوم چه د آذان او اقامت په مېنځ کښې وی د حضور ﷺ نه د دې په ناسته باندې کول ثابت نۀ دی بلکه رکعتين جالسًا خو حضور ﷺ به د وترو نه پس د سنتو نه وړاندې کول يا به دې لره په عذر باندې محمول کړې شي.

[۱۳۶۲] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ، قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: بِكَمْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ؟ قَالَتْ: "كَانَ يُوتِرُ بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ وَسِتٍّ وَثَلَاثٍ وَثَمَانٍ وَثَلَاثٍ وَعَشْرٍ وَثَلَاثٍ، وَلَمْ يَكُنْ يُوتِرُ بِأَنْقَصَ مِنْ سَبْعٍ وَلَا بِأَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: زَادَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ: "وَلَمْ يَكُنْ يُوتِرُ بِرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْفَجْرِ"، قُلْتُ: مَا يُوتِرُ؟ قَالَتْ: "لَمْ يَكُنْ يَدَعُ ذَلِكَ". وَلَمْ يَذْكُرْ أَحْمَدُ: "وَسِتٍّ وَثَلَاثٍ".

د عبد الله بن قيس نه روايت دی هغه ويلي دي: ما وويل عائشې رضي الله عنها ته، رسول الله ﷺ به څو رکعاته وتر کول؟ هغې وويل: په څلورو او دريو سره، او په شپږو او دريو سره، او اتو او دريو سره، او په لسو او دريو سره، او نه وو چې وتريې کول کم د اوو نه، او نه زيات د ديارلسو نه. ويلي دي ابوداود: احمد بن صالح دا زيادت کړی دی: او نه وو چې وتريې کول په دوه رکعاتونو سره مخکې د فجر نه، ما وويل: وتر يې څه شی کول؟ هغې وويل: هغه نه وو چې پرېښودل يې دغه، او احمد نه دی ذکر کړی: (و ست و ثلاث).

حدثنا احمد بن صالح،الخ، قوله، قالت كان يوتر باربع و ثلث و سِتٍ و ثلث،الخ، دا همهغه جامع او واضح روايت دې د کوم حواله چه مونږ د باب په شروع کښې ورکړې وه،

قوله، و لم يكن يَوَتِرُ، په فتحې د ياء او کسرې د تاء سره د دې تفسير په خپله په کتاب کښې راغې، اى لم يكن يدع، يعنې حضور ﷺ به نۀ پرېښودل، په اصل کښې دا د وَتَرَ يَتِرُ وترًا په شان د وَعَدَ يعدِ وعدًا د، اثباتې واو په دې کښې خلاف قياس دې، چنانچه په قرآن کريم کښې دی، والله معكم و لن يتركم اعمالكم، د دې معنی د نقص يعنی کمولو ده دلته د دينه مراد ترک کول يعنی پرېښودل دی، راوی وائي چه حضور ﷺ د صبا سنت کله هم نۀ

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٢٨٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحيض ٦ (٣٠٧)، مختصراً سنن الترمذي/فضائل القرآن ٢٣ (١٦٢٨٢)، مسند احمد (١٤٩/٦) (صحيح)

پریخودل بلکه مدام به ئې کول.

[۱۳٦۳](۱)حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ، أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى عَائِشَةَ فَسَأَلَهَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ، فَقَالَتْ: "كَانَ يُصَلِّي ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً مِنَ اللَّيْلِ، ثُمَّ إِنَّهُ صَلَّى إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً وَتَرَكَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قُبِضَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قُبِضَ وَهُوَ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ تِسْعَ رَكَعَاتٍ، وَكَانَ آخِرُ صَلَاتِهِ مِنَ اللَّيْلِ الْوِتْرَ".

د اسود بن یزید نه روایت دی، بېشکه هغه ورغی عائشې ته تپوس یې ترېنه وکړو د مانځه د رسول الله ﷺ دشپې، هغې ووېل: هغه وو دیارلس رکعاته به یې کول د شپې، بیا هغه یوولس رکعاته مونځ وکړو، دوه رکعاته یې پریخودل، بیا رسول الله ﷺ وفات شو کله چې وفات شو، او هغه به دشپې نهه رکعاته کول، او د شپې اخیرنی مونځ د هغه وتر وو.

[۱۳٦٤](۲)حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ، أَنَّ كُرَيْبًا مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ: كَيْفَ كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ؟ قَالَ: بِتُّ عِنْدَهُ لَيْلَةً وَهُوَ عِنْدَ مَيْمُونَةَ، "فَنَامَ حَتَّى إِذَا ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ أَوْ نِصْفُهُ اسْتَيْقَظَ، فَقَامَ إِلَى شَنٍّ فِيهِ مَاءٌ، فَتَوَضَّأَ وَتَوَضَّأْتُ مَعَهُ، ثُمَّ قَامَ فَقُمْتُ إِلَى جَنْبِهِ عَلَى يَسَارِهِ فَجَعَلَنِي عَلَى يَمِينِهِ، ثُمَّ وَضَعَ يَدَهُ عَلَى رَأْسِي كَأَنَّهُ يَمَسُّ أُذُنِي كَأَنَّهُ يُوقِظُنِي، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، قُلْتُ: فَقَرَأَ فِيهِمَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ، ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ صَلَّى حَتَّى صَلَّى إِحْدَى عَشْرَةَ رَكْعَةً بِالْوِتْرِ، ثُمَّ نَامَ، فَأَتَاهُ بِلَالٌ، فَقَالَ: الصَّلَاةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَامَ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى لِلنَّاسِ".

د مخرمة بن سلیمان نه روایت دی چې کریب ورته خبر ورکړی دی، بېشکه هغه ویلي دي: ما تپوس وکړو د ابن عباس نه، د رسول الله ﷺ مونځ دشپې څنګه وو؟ هغه ووېل: زه د هغه سره یوه شپه وم او هغه د میموني سره وو، هغه اوده شو تردې چې دریمه حصه دشپې تیره شو۔او یا نیمه۔نو رابیدار شو، نو ودریدلو یوې مشکېزې ته چې اوبه پکې وې، هغه اودس وکړو ما هم اودس وکړو د هغه سره، بیا ودریدلو زه د هغه اړخ ته چپ طرف ته ودریدم، زه یې خپل ښي اړخ ته ودرولم، بیایې خپل لاس زما په غوږ باندې کېښودو ګویا چې هغه زما غوږ مسه کوي ګویا چې هغه ما رابیداروي، دوه رکعاته یې وکړل، په هر رکعات کې یې سورة الفاتحه ولوستله، بیایې سلام وګرځولو، بیایې مونځ وکړو تردې چې یوولس رکعاته یې وکړل سره د وترو نه، بیا اوده شو، بلال ورته راغی، هغه ووېل: مونځ تیار دی ای د الله رسوله! هغه ودریدو، دوه رکعاته یې وکړل، بیا مونځ وکړو خلقو ته.

[۱۳٦٥](۳)حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ حَبِيبٍ، وَيَحْيَى بْنُ مُوسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ "فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي مِنَ

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٦۰۳٤) (ضعيف)

(۲): صحيح البخاري/الطهارة ۳۷ (۱۸۳)، الأذان ۵۸ (٦۹۸)، الوتر ۱ (۹۹۲)، التفسير ۱۸ (٤۵۷۰)، ۱۹ (٤۵۷۱)، ۲۰ (٤۵۷۲)، صحيح مسلم/المسافرين ۲٦ (۷٦۳)، سنن الترمذي/الشمائل (۲٦۵)، سنن النسائي/قيام الليل ۹ (۱٦۲۱)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۸۱ (۱۳٦۳)، (تحفة الأشراف: ٦۳٦۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الليل ۲ (۱۱)، مسند احمد (۱/۲۲۲، ۳۵۸) (صحيح)

(۳): سنن النسائي/الإمامة ۲۲ (۸۰۷)، والكبرى/ الوتر ۵۹ (۱٤۲۵)، (تحفة الأشراف: ۵۹۸٤) (صحيح)

اللَّيْلِ، فَصَلَّى ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً مِنْهَا رَكْعَتَا الْفَجْرِ حَزَرْتُ قِيَامَهُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ بِقَدْرِ يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ، لَمْ يَقُلْ نُوحٌ، مِنْهَا رَكْعَتَا الْفَجْرِ".

د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی، هغه ويلي دي: ما شپه تېره کړه د خپلې ترور ميموني سره، پاڅېدلو نبي ﷺ چې د شپې مونځ يې کولو، مونځ يې وکړو ديارلس رکعاته، دوه د هغې نه د سحر دوه رکعاته وو، ما اندازه کړو د هغه قيام په هر رکعات کې په قدر د سورة المزمل باندې، نوح نه دي ويلي: بعضې د هغې نه دوه رکعاته د سحر وو.

[۱۳۶۶](1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَخْبَرَهُ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: لَأَرْمُقَنَّ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللَّيْلَةَ، قَالَ: فَتَوَسَّدْتُ عَتَبَتَهُ أَوْ فُسْطَاطَهُ "فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا، ثُمَّ أَوْتَرَ، فَذَلِكَ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً".

د زيد بن خالد الجهني نه روايت دی هغه ووېل: زه به خامخا نن شپه ګورم مونځ د رسول الله ﷺ، هغه وايي: ما تکيا ولګوله د هغه درشل ته۔ او يا خېمې ته۔ مونځ وکړو رسول الله ﷺ دوه رکعاته سپک، بيايي دوه رکعاته اوږده وکړل، اوږده اوږده، بيايي دوه رکعاته وکړل چې دا کم وو د هغې نه چې مخکې يې کړي وو د دې دواړو نه، بيايي دوه رکعاته مونځ وکړو چې کم وو د هغې نه چې مخکې د دېنه و، بيايي دوه رکعاته مونځ وکړو چې کم وو د مخکنو دواړو نه، بيايي وتر وکړل، دغه ديارلس رکعاته وو.

**تشريح: قوله**: عن زيد بن خالد الجهني انه قال لارمُقنّ صلوٰة رسول الله صلى الله عليه وسلم، زيد بن خالد فرمائي چه ما په خپل زړۀ زړۀ کښې اووئيل چه زۀ به نن شپه ضرور بالضرور د حضور ﷺ مونځ ګورم، بظاهر دا خبره هغوی د ورځې په زړۀ کښې کړې وی چه نن شپه به دا کار کوم، بيا د شپې د کتلو نه پس دې لره د نقل کوی.

**قوله**: فتوَسَّدتُ عتبَته اَو فُسطاطه، پس ما(کله چه شپه شوه نو)د حضور ﷺ درشل لره(د سر لاندې کړو) او دې لره مې بالخ جوړکړو، يا خيمې لره(شك د راوی دې) بظاهر دا د سفر واقعه ده لهذا د عتبه په نسبت هم د فسطاط لفظ راجح معلومېږی(منهل) ثم صلى ركعتين طويلتين طويلتين طويلتين، حضور ﷺ په شروع کښې دوه رکعاته لنډ غوندې اوکړل د دېنه پس ئې دوه رکعاته ډېر اوږدۀ اوکړل، د، طويلتين، لفظ د مبالغې دپاره درې خله دې(دا دې اونۀ ګڼړلې شی چه دا شپږ رکعاته شول) د دېنه پس بيا ئې دوه رکعاته د رومبنو نه کم يعنی لنډ اوکړل د دېنه پس ئې دوه رکعاته بيا نور لنډ اوکړل.

---

(1): صحيح مسلم/المسافرين ٢٦ (٧٦٥)، سنن الترمذي/الشمائل (٢٦٩)، سنن النسائي/الكبرى/قيام الليل ٢٦ (١٣٣٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨١ (١٣٦٢)، (تحفة الأشراف: ٣٧٥٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٢ (١٢)،مسنداحمد(١٩٢/٥)(صحيح)

[۱۳۶۷]( )حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مَخْرَمَةَ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ بَاتَ عِنْدَ مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهِيَ خَالَتُهُ، قَالَ: فَاضْطَجَعْتُ فِي عَرْضِ الْوِسَادَةِ" وَاضْطَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَهْلُهُ فِي طُولِهَا، فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا انْتَصَفَ اللَّيْلُ أَوْ قَبْلَهُ بِقَلِيلٍ أَوْ بَعْدَهُ بِقَلِيلٍ اسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَلَسَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهِ بِيَدِهِ، ثُمَّ قَرَأَ الْعَشْرَ الْآيَاتِ الْخَوَاتِمَ مِنْ سُورَةِ آلِ عِمْرَانَ، ثُمَّ قَامَ إِلَى شَنٍّ مُعَلَّقَةٍ، فَتَوَضَّأَ مِنْهَا، فَأَحْسَنَ وُضُوءَهُ، ثُمَّ قَامَ يُصَلِّي، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: فَقُمْتُ، فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ، ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُمْتُ إِلَى جَنْبِهِ، فَوَضَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى رَأْسِي فَأَخَذَ بِأُذُنِي يَفْتِلُهَا فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ، قَالَ الْقَعْنَبِيُّ: سِتَّ مَرَّاتٍ، ثُمَّ أَوْتَرَ، ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتَّى جَاءَهُ الْمُؤَذِّنُ، فَقَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ، ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ".

ببشکه عبد الله بن عباس شپه تېره کړه د میموني سره چي د پیغمبر ﷺ بي بي ده او هغه د هغه ترور ده، هغه وايي: زه تکیا شوم پلنوالي د بالښت ته، تکیا شو رسول الله ﷺ او د هغه اهل اوږدوالي د هغي ته، رسول الله ﷺ اوده شو تردې چي شپه نیمه شوه، او یا لږ مخکي، او لږ وروسته، رابیدار شو رسول الله ﷺ، کېناستلو چي خوب يي شړلو د خپل مخ نه په خپل لاس سره، بیایي د سورة آل عمران لس ایتونه ولوستل، بیا ودریدلو یو مشکیزې ته چي زوړنده وه، د هغي نه يي اودس وکړو، ښائسته اودس يي وکړو، بیا ودریدلو مونځ يي کولو. ویلي دي عبد الله: زه ودریدلم ما وکړل پشان د هغي چي هغه وکړل، بیا لاړم د هغه اړخ ته ودریدم، رسول الله ﷺ خپل ښي لاس زما سر کېښوده، هغه زما غوږ مړلو، هغه دوه رکعاته مونځ وکړو، بیا دوه رکعاته، بیا دوه رکعاته ـ قعنبي ویلي: شپږ ځل ـ بیايي وتر وکړل، بیایي ډډه ووهله تردې چي مؤذن ورته راغی، ودریدلو دوه رکعاته يي وکړل سپک، بیا ووتلو د صباح مونځ يي وکړو.

**تشریح: قوله**: حدثنا القعنبی عن مالك عن مخرمة، آلخ، دا د دي باب آخری حدیث دي.

**قوله**: فاضطجعت فی عرض الوسادة، عرض په فتحې د عین او سکون د راء سره، و قیل هو بآلضم بمعنی الجانب، والصحیح الاول.

## شرح حدیث:

ابن عباس ﷺ د خپلي شپې تیرولو واقعه داسي بیانوی چه ما د بالښ په پلنو باندې په دې باندې سر کیخودلو او څملاستم او حضور ﷺ او میمونه ﷺ دواړه د بالښ په اوږدو باندې په دې باندې سر کیخودلو او څملاستل(۲). د اکثرو شراحو په نیز د وساده نه د دې

(۱): انظر حدیث رقم (۱۳٦٤)، (تحفة الأشراف: ٦٣٦٢) (صحیح)

(۲) چونکه حضور ﷺ به داسي څملاستلو چه ښي اړخ بدلولو په صورت کښي استقبال قبله اوشي نو په یو بالخ باندې د دریوارو سرونه ایخودلو شکل بظاهر دا به وی چه بالخ به شرقاً غرباً کیخودلي شوې وو او عرض د دې به جنوب او شمال کښي وو، د حضور ﷺ او د حضرت میمونه ﷺ به د بالخ په اوږدو باندې سرونه کیخودل او داسي به څملاستل چه سرونه به ئې د مغرب په جانب او قدمونه به ئې د مشرق په جانب شول، او د ابن عباس ﷺ به د بالخ په پلنو باندې هغه طرف ته کوم چه د شمال په اړخ وو او د شمال په اړخ به ښې اوږدې کړې او څملاستلو، ځکه که د پلنو په هغه اړخ باندې څملي کوم چه د جنوب په اړخ باندې وو نو پښې به ئې د قبلې په اړخ باندې شي، ځکه چه په مدینه کښي قبله د جنوب په اړخ کښي ده.

مشهوره معنی مراد ده یعنی بالخ، اود بعضې علماؤ په نیز لکه علامه باجي او اصیلی نه منقول دی چه دلته د وساده نه مراد بالخ نۀ ده بلکه فراش (بستره) ده او مطلب ئې دا بیان کړې دې چه د بسترې په اوږدوالی کښې هغوی دواړه اودۀ شول او د دې په عرض یعنی پلنوالی کښې ابن عباس ﷺ، خو د کوم لفظ موضوع له، یعنی کوم دپاره چه دا وضع شوې وی، هغه پریخودل او بله معنی مراد اغستل د څه مجبورۍ نه بغیر صحیح نۀ ده.

الحمد لله په، باب فی صلوة اللیل، باندې کلام پوره شو، دا باب ډیراوږد دې په دې کښې مصنف تقریبًا ثلثون حدیثا (دیرش حدیثونه) ذکر کړې دی دومره اوږد د باب غالبًا په دې کتاب کښې بل کوم نشته دې، والحمد لله اولاً و آخراً.

## بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنَ الْقَصْدِ فِي الصَّلَاةِ

### باب دی په بیان د هغې کې چې امر کولی شي په هغې سره د میانه روۍ نه په مانځه کې

### (ماقبل سره ربط اومناسبت)

تیر شوې باب چونکه د ډیر مجاهدې او ریاضت واله باب وو او مجاهده او ریاضت په مسئله کښې بعضې خلق په افراط او تفریط یعنی کمی او زیاتی کښې اخته کیږی، غالبًا هم په دې مناسبت سره مصنف دا باب راوړې دې، په کوم کښې چه قصد یعنی د اعتدال او میانه روی (مینځ حالۍ)مضمون دې او دا د دې دپاره دې چه په عمل باندې مواظبت او همیشوالې اوشی، د افراط په صورت کښې په کوم کار باندې مداومة گران دې او اصل هم دا دې چه کوم نیك کار شروع کړې شی نو د هغې د پوره کولو کوشش دې اوکړې شی، خیر العمل ما دیم علیه، کان رسول الله صلی الله علیه وسلم اِذا عمِلَ عملاً اثبتهٗ،

[۱۳٦۸](۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اكْلَفُوا مِنَ الْعَمَلِ مَا تُطِيقُونَ، فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَمَلُّ حَتَّى تَمَلُّوا، وَإِنَّ أَحَبَّ الْعَمَلِ إِلَى اللَّهِ أَدْوَمُهُ وَإِنْ قَلَّ، وَكَانَ إِذَا عَمِلَ عَمَلًا أَثْبَتَهُ".

د عائشې ﷺ نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ ویلي دي: مکلف شئ په عمل هغومره چې تاسويي طاقت لرئ، ځکه الله نه ستړی کېږي تردې چې تاسو ستړي شئ، او ډیر خوښ عمل الله ته دا دی چې همېشه وي اګر که کم وي، او هغه وو چې کوم عمل به یې کولو نو کلکولو به یې.

د باب د رومبی حدیث مطلب دا دې چه نفلی عباداتو نه خواه که هغه مونځ وی یا بل کوم عمل نو دومره پکار دې چه د هغې برداشت اوکړې شی ځکه که کوم عمل د تحمل نه زیات شروع کړې شی نو یقیناً د سړی طبیعت د هغې نه ستړې شی او هغه د دې په پریخودلو باندې مجبوره شی، او کله چه عمل مهجور او متروك شی نو د الله د طرف نه په دې باندې چه کوم ثواب ملاویدلو هغه هم موقوف شی، فان الله لا یَمَلّ حتی تملوا، کښې صنعةِ مشاکلة لره

(۱): صحیح البخاري/الإیمان ۳۲ (۴۳)، الأذان ۸۱ (۷۳۰)، والتهجد ۱۸ (۱۱۵۲)، واللباس ۴۳ (۵۸٦۱)، والرقاق ۱۸ (٦۴٦۵)، صحیح مسلم/المسافرین ۳۰ (۷۸۲)، سنن النسائي/القبلة ۱۳ (۷٦۳)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۳٦ (۹۴۲)، (تحفة الأشراف: ۱۷۷۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۴۰، ۵۱، ٦۱، ۲۴۱) (صحیح)

استعمال کړې شوې دې. مثل قوله تعالی، و جزاء سيئة سيئة مثلها، ظاهره خبره ده چه د بدئ بدله برابر برابر وی نو هغه په خپله بدی نۀ ده خو چونکه هغۀ صورة د دې سره مشابه وی نو ځکه دې ته سیئة وئیلې شوې ده، مَلَلْ او سآمة، ضَجِرْ، مترادف الفاظ دی، ستړې کیدل او زړۀ تنګیدل، دلته لازمی معنی مراد ده یعنی پریخودل، قال صاحب المنهل و فيه دليل للجمهور على ان قيام كل الليل مكروه وكرهه مالك اولاً ثم قال لاباس به ما لم يضر ذلك بصلوة الصبح، انتهى.

[١٣٦٩]([1])حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا عَمِّي، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ إِلَى عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُونٍ، فَجَاءَهُ، فَقَالَ: "يَا عُثْمَانُ، أَرَغِبْتَ عَنْ سُنَّتِي؟" قَالَ: لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَلَكِنْ سُنَّتَكَ أَطْلُبُ، قَالَ: "فَإِنِّي أَنَامُ، وَأُصَلِّي، وَأَصُومُ، وَأُفْطِرُ، وَأَنْكِحُ النِّسَاءَ، فَاتَّقِ اللَّهَ يَا عُثْمَانُ فَإِنَّ لِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، وَإِنَّ لِضَيْفِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، وَإِنَّ لِنَفْسِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، فَصُمْ وَأَفْطِرْ، وَصَلِّ وَنَمْ".

د عائشي رضی الله عنها نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ کس یې ولېږلو عثمان بن مظعون ته، نو هغه راغی، هغه ورېل: ای عثمان! ایا ته بې رغبته شوی یې زما د سنتو نه، هغه ووېل: قسم په الله نه ای د الله رسوله! لکن زه ستا سنت طلبوم، هغه ورته وفرمایل: زه اوده کېږم او مونځ کوم، روژه نیسم او کله یې نه نیسم، او نکاح کوم د ښځو سره، د الله نه ویرېږه ای عثمان! ستا د اهل په تا باندې حق دی، ستا د میلمه په تا باندې حق دی، ستا د نفس په تا باندې حق دی، روژه نیسه او ماتوه یې، او مونځ کوه او اوده کېږه.

[١٣٧٠]([2])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ: كَيْفَ كَانَ عَمَلُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ هَلْ كَانَ يَخُصُّ شَيْئًا مِنَ الْأَيَّامِ؟ قَالَتْ: لَا، "كَانَ كُلُّ عَمَلِهِ دِيمَةً" وَأَيُّكُمْ يَسْتَطِيعُ مَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَطِيعُ؟.

د علقمه نه روایت دی هغه ویلي دي: ما تپوس وکړو د عائشې نه، د رسول الله ﷺ عمل څنګه وو؟ ایا هغه به څه شی خاص کولو د ورځو نه؟ هغې ووېل: نه، د هغه هر عمل به همېشه وو، او په تاسو کې کوم یو طاقت لري د هغې چې رسول الله ﷺ یې طاقت لرلو.

عن علقمة قال سالت عائشة رضی الله عنه كيف كان عمل رسول الله صلى الله عليه وسلم... كان عمله دِيْمة، ديمة المطر الدائم في سكونٍ، رو رو مسلسل باران، کوم ته چه د باران جړئ وائی، کوم چه د پسرلی په موسم کښې کله کله انخلی، د باب دا آخری حدیث متفق علیه دې او په ترمذی کښې هم شته (قاله المنذری)

## په دوه حدیثونو کښی دفع د تعارض:

که څوك اووائی چه، كان علمه ديمة، دا حدیث د هغۀ متفق علیه حدیث خلاف دې په کوم کښې چه دا دی چه حضرت عائشة رضی الله عنها فرمائی چه، كان يصوم حتى نقول لا يفطر و يفطر حتى نقول لا يصوم، په بعضې میاشتو کښې به حضور ﷺ مسلسل روژې نیولې او په بعضو کښې به ئې مسلسل افطار کولو. جواب دا دې چه مقصد خو دا دې چه د حضور ﷺ په اعمالو

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٧١٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٢٦، ٢٨٦) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الرقاق ١٨ (٦٤٦٦)، صحيح مسلم/المسافرين ٣٠ (٧٨٣)، سنن الترمذي/الشمائل (٣١٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٣، ٥٥، ١٧٤، ١٨٩، ٢٧٨) (صحيح)

کښې دوام او تسلسل وو، او دا هم د دوام او تسلسل یو صورت دې، د حضور ﷺ عادة مستمره دا وو چه په کوم زمانه کښې به د روژو تسلسل او په کوم زمانه کښې به د افطار تسلسل مدام داسې وو دا به نهٔ وو چه یو ځل به تسلسل ختم شونو بیا به نهٔ شروع کیده.

# كتاب تفريع أبواب شهر رمضان

## د رمضان المبارک د میاشتې د ابوابو تفریع (احکام و مسائل)

یعنی د روژې د میاشتې سره متعلق ابواب او احکامو تفصیل او تجزیه د دې ټولو احکامو نه یو صلوة التراویح دې، چنانچه د ټولو نه وړاندې هم دې لره بیانوی.

# بَابٌ فِي قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ

## باب دی په بیان د قیام د میاشتې د رمضان کښې

د قیام اللیل اطلاق د تهجدو په مانځه باندې او د قیام رمضان اطلاق په تراویحو باندې کیږی لکه څنګه چه په حدیث کښې دی، من صام رمضان و قامه غفرله ما تقدم من ذنبه.

### د رمضان د لفظ داستعمال طریقه او د دې وجه د تسمیه:

مصنف شهر رمضان اووئیل او صرف رمضان ئې اونهٔ وئیلو، امام بخاری خو د کتاب الصوم په شروع کښې په دې باندې یو مستقل باب قائم کړې دې، هل يقال رمضان أوْ شهر رمضان و من راى كله واسعًا، په اصل کښې په یو ضعیف روایت کښې د کوم تخریج چه ابن عدی په الکامل کښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه مرفوعا کړې دې، لا تقولوا رمضانْ فانّ رمضان اسمٌ من اسماء الله تعالى و لكن قولوا شهر رمضان، چنانچه د مالکیه عمل هم په دې باندې دې د دوئ په نیز بغیر د اضافت د شهر نه د دې استعمال مکروه دې، او ډیر شوافع دا وائی چه د قرینی د وجود په وخت کښې مطلق رمضان وئیل جائز دی ګینی مکروه دی، مثلا، جاء رمضان، دخل رمضان، وئیل مکروه دی او قمنا رمضان وئیل صحیح دی، خو عند الجمهور په هر صورت کښې صحیح دی.

د رمضان په وجه د تسمیه کښې دوه قوله دی(۱) دا د رمضَ بمعنی شدة الحر نه ماخوذ دې، کله چه اهل عربو د میاشتو نومونو لره د قدیم لغت نه نقل کړل او د میاشتو نومونه ئې د نوی سر نه د هغه زمانو او موسمونو په اعتبار سره تجویز کړل په کومو کښې چه به دا میاشتې واقع کیدې نو د کومې میاشت نوم چه رمضان کیخودلې شو دغه وخت هغه میاشت په اوړی کښې واقع وه.(۲) او دویم قول دا دې چه چونکه دا میاشت یعنی د دې اعمال او وظائف د ګناهونو رمض کوی یعنی سوزوی نو ځکه دې ته رمضان اووئیلی شو یعنی ګناهونو لره سوزونکې میاشت.

[۱۳۷۱](¹) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، قَالَ الْحَسَنُ فِي حَدِيثِهِ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرَغِّبُ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَأْمُرَهُمْ بِعَزِيمَةٍ، ثُمَّ يَقُولُ: "مَنْ قَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ"، فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ، ثُمَّ كَانَ الْأَمْرُ عَلَى ذَلِكَ فِي خِلَافَةِ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ عُقَيْلٌ، وَيُونُسُ، وَأَبُو أُوَيْسٍ "مَنْ قَامَ رَمَضَانَ"، وَرَوَى عُقَيْلٌ "مَنْ صَامَ رَمَضَانَ وَقَامَهُ".

د ابو هریره ﷛ نه روایت دی هغه ویلي دي: وو رسول الله ﷺ چي ترغیب يي ورکولو په قیام د رمضان کي، بغیر د دېنه چي دوی ته امر وکړي په عزیمت سره، بیا به يي ویل: چا چي قیام د رمضان وکړو د ایمان او د احتساب سره نو هغه ته به د هغه مخکني ګناهونه معاف شي. رسول الله ﷺ وفات شو او خبره همدغسي وه، بیا همدغسي کار وو د ابوبکر په خلافت کي، او په اول سر دخلافت د عمر کي. ابوداود ویلي دي: همدارنګه نقل کړی دی عقیل او یونس او ابو أویس: (من قام رمضان) او روایت کړی دی عقیل (من صام رمضان و قامه).

## شرح حدیث:

**قوله:** من صام رمضان و قامه ایمانًا و احتسابًا، د ایمان لغوی معنی د تصدیق ده. کوم سړی چه د رمضان روژې او د دې تراویح په اعتقاد او تصدیق سره په عمل کښې راوړی، د روژې تصدیق دا دې چه دې لره فرض او د اسلام رکن ګڼړلو سره اونیسی، او د تراویحو تصدیق دا دې چه دې لره د حضور ﷺ سنت اوګڼړی. حاصل د دې دا دې چه دې دواړو کارونو لره په اعتقاد او عظمت او اهمیت سره اوکړی، په سرسری او صرف د عادة او تفریح دپاره نه، او د احتساب معنی طلب د ثواب ده، یعنی دا کار صرف حسبة لله اوکړی.

### (په قیام اوصیام سره کوم ګناهونه معاف کیږی؟)

**قوله:** غفرله ما تقدم من ذنبه، او د مسند احمد په یو روایت کښې د، و ما تاخر، زیادت دې، د دۀ وړاندې او روستو ټول ګناهونه به معاف شي، ابن المنذر دې لره په عموم باندې محمول کړې دې خواه هغه ګناهونه صغائر وی یا کبائر، امام نووی فرمائی چه جمهور اهل سنة والجماعت دې لره د صغائرو سره مقید کړې دې ځکه چه کبائر بغیر د توبه او استغفار نه صرف په حسناتو سره نۀ معاف کیږی، یعنی صرف په حسناتو د کبائرو د معافئ څه وعده نشته دې، الله تعالی ئې که د خپل طرف نه معاف کړی نو هغه بله خبره ده، (و یغفر ما دون ذلك لمن یشاء) او په کبائرو کښې هم چه کوم دحقوق العباد د قبیلې نه دی هغه بغیر د اصحاب الحقوق یعنی چه د چا حقوق وی د معافئ نه نۀ معاف کیږی(مګر دا که الله پاک د خپل طرف نه صاحب حق لره په څۀ ورکولو سره راضی کړی)

¹): صحيح مسلم/المسافرين ٢٥ (٧٥٩)، سنن الترمذي/الصوم ١ (٦٨٣)، ٨٣ (٨٠٨)، سنن النسائي/قيام الليل ٣ (١٦٠٤)، والصوم ٣٩ (٢٠٠٢)، والإيمان ٢٢ (٢١٩٦)، ٢٢ (٥٠٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٧٧، ١٥٢٧٠، ١٥٢٤٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الإيمان ٢٧ (٣٧)، والصوم ٦ (١٩٠١)، والتراويح ١ (٢٠٠٩)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٣ (١٣٢٦)، موطا امام مالك/الصلاة في رمضان ١ (٢)، مسند احمد (٢/٢٣٢، ٢٤١، ٣٨٥، ٤٧٣، ٥٠٣)، سنن الدارمي/الصوم ٥٤ (١٨١٧) (صحيح)

فتوفی رسول الله صلی الله علیه وسلم والامر علی ذلك ثم كان الامر علی ذلك فی خلافة ابی بكر و صدرا من خلافة عمر رضی الله عنه،

## د روایات الباب تجزیه:

مصنف د قیام رمضان په باره کښې د دریو صحابه کرامو روایات راوړی دی، ابوهریره رضی الله عنه، حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها، ابوذر رضی الله عنه، د ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې خو صرف د تراویح د ترغیب او د دې فضیلت ذکر دی،د حضور صلی الله علیه وسلم د تراویح کولو په دې کښې ذکر نشته دې، د حضرت عائشه رضی الله عنها په حدیث کښې اګر که د تراویح کولو ذکر دې خو صرف په دوو شپو کښې او په دریم حدیث کښې یعنی په حدیث د ابوذر رضی الله عنه کښې تفصیل دې او هغه دا چه حضور صلی الله علیه وسلم پوره د روژې په میاشت کښې درې ځله په دریو شپو کښې تراویح کړې دی، خو د حضرت عائشه رضی الله عنها حدیث کوم چه په بخاری شریف کښې دې په هغې کښې هم درې ځله تراویح کول ذکر دی، لهذا دا به اوویلې شی چه په ابوداؤد شریف کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها روایت مختصر دې، دویم فرق په دې دواو روایتونو کښې دا دې چه د حضرت عائشه رضی الله عنها د حدیث نه بظاهر دا معلومیږی چه حضور صلی الله علیه وسلم تراویح دوه شپې متوالیًا پرله پسې(بغیر د فصل نه) ورکړې وی، او د ابوذر رضی الله عنه په حدیث کښې تصریح ده چه حضور صلی الله علیه وسلم تراویح لیالی مفصوله(جدا جدا شپو) کښې ورکړې وې(په مینځ کښې ئې یوه شپه پریخولو سره) خو د حضرت عائشه رضی الله عنها په حدیث کښې د وصل تصریح نشته دې نو ځکه دې لره به هم په فصل باندې محمول کړې شی، د دې دپاره چه تعارض رانشی.

## د تراویح ابتداء:

بهر کیف په دې مفصل روایت کښې دا دی چه حضور صلی الله علیه وسلم یو ځل په رمضان کښې په درویشتمه شپه کښې صحابه کرامو ته تر ثلث لیل یعنی د شپې تر دریمې حصې پورې په جومات کښې په جماعت سره ورکړې وی، بیا په څلوریشتمه شپه صحابه کرامو د حضور صلی الله علیه وسلم انتظار اوکړو خو دوئ د حجرة الحصیر(د خپل معتکف) نه بهر تشریف رانهٔ وړلو، بیا په پنځویشتمه شپه حضور صلی الله علیه وسلم تر نصف اللیل پورې مونځ ورکړو او په شپږویشتمه شپه کښې ئې اونهٔ کړلې، بیا ئې په اوویشتمه شپه باندې په ډیر اهتمام سره سرو او ښځو لره راجمع کړل او د اولې شپې نه واخله تر آخرې شپې پورې ئې ورکړې تر دې چه صحابه کرامو ته دا اندیښنه اوشوله چه د پیشمنی خوړلو وخت به اوموندلې شی او که نهٔ؟ حتی خشینا ان تفوتنا الفلاح، دفلاح نه مراد پیشمنې دې، د دې نه پس دا پیژندل پکار دی دلته دوه بحثونه دی(۱)نفس تراویح(۲) عدد رکعات تراویح یعنی د تراویح د رکعاتونو شمیر، د نفس تراویح په سلسله کښې خو تیر شول چه حضور صلی الله علیه وسلم په دې باندې مواظبة نهٔ دې فرمائیلې بلکه صرف په دریو شپو کښې د دې کول ثابت دی اګر که د حضور صلی الله علیه وسلم زړهٔ غوښتل چه په دې باندې مواظبة اوکړې شی خو د فرض کیدو د ویرې نه ئې مواظبة او نهٔ فرمائیلو.

**فائده**: مولانا عبدالحئ صاحب، التعلیق الممجّد، کښې لیکی چه که حضور صلی الله علیه وسلم اګر که په دې باندې مواظبة نهٔ دې فرمائیلې خو د مواظبة محبوب او خوښیدو لره ئې ظاهر کړې دې،

پس دا هم يو قسم مواظبة دې، يعني مواظبة حكميه، او د سنيت مدار په مطلق مواظبة باندې دې لهذا د دېنه مستفاد شوه چه تراويح سنت مؤكده دی، او هم دا خبره بعينه د جماعت په باره كښې به وئيلې شي چه حضور ﷺ دې لره هميشه په جماعت سره كول غوښتل، لهذا د دې مانځه دپاره جماعت هم سنت شو، دغه شان حضور ﷺ دې لره په ټولو شپو د رمضان كښې كول غوښتل د دينه معلومه شوه چه دا د ټول رمضان سنت دی، نۀ داسې لکه څنګه چه د بعضې فقهاؤ نه منقول دی چه تراويح په رمضان كښې د قران د ختم په قدر سنت دی او د دينه پس مستحب دی، انتهى كلامه.

## بحث ثاني: (د رکعاتونو د تعداد دوه شقونه)

يعني د رکعاتونو د شمير دوه شقونه دی، اول عدد ركعات في العهد النبوي، دوم عدد ركعات في العهد الفاروقي،

### (۱) عدد ركعات في العهد النبوي

صاحب بذل المجهود فرمائي چه د حضور ﷺ نه ليالي ثلثه كښې چه كومې تراويح كول د صحاح په کتابونو کښې مروی دی په هغې کښې د رکعاتونو تعداد څومره وو؟ د صحاح روايات د دينه ساكت دی، البته عهد فاروقي يعني د عمر فاروق رضی الله عنه په زمانه كښې چه كومې تراويح شوې وې دهغې د تعداد په حقله روايتونو كښې مذكور دی. انتهى.
بيا د دينه پس حضرت هغه روايتونو لره ذكر فرمائيلې دی، زۀ وايم چه اهل حديثو ته دا خبره نۀ ده منظور چه په صحاح كښې د حضور ﷺ د رکعاتونو تعداد نۀ دې مذكور، هغوی د صحيح بخاري او مسلم هغه حديث کوم چه په سنن ابوداؤد كښې هم تير شوې دې په کوم کښې چه حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي، ما كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يزيد في رمضان و لا في غيره على احدى عشرة ركعة، هغوی دې لره عام ګڼړی او وائي چه د تراويح مونځ د دينه علاوه بل يو مستقل او ځانله مونځ نۀ دې، خو زمونږ اكثر دعلماؤ دې سره اتفاق نشته دې، چنانچه په لامع الدراري كښې د حضرت ګنګوهي نه دا منقول دی چه په دې حديث كښې د حضور ﷺ دائمي معمول يعني هميشه معمول بيان كړې شوې دې، تراويح چونكه د روژې دمياشتې پورې خاص دی نو ځکه هغه د دې نه ځانله دی.
دغه شان د صحاح ستة نه علاوه په نورو د کتابونو د حديثو كښې د حضور ﷺ د رکعاتونو تعداد موجود دې چنانچه په دې سلسله كښې دوه روايتونه مشهور دی، اول د جابر رضی الله عنه حديث ، صلى رسول الله صلى الله عليه وسلم في رمضان ليلة ثمان ركعات والوتر، رواه محمد بن نصر في قيام الليل، و رواه خزيمة و ابن حبان في صحيحيهما، قال النيموی فيه عيسى بن جارية و هو ضعيف، دويم حديث د ابن عباس رضی الله عنهما دې ، كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلى في شهر رمضان في غير جماعة [1] عشرين ركعة، رواه ابن ابي شيبة و عبد بن حُميد في مسنده و الطبراني في معجمه الكبير قال البيهقي تفرد به ابو شيبة ابراهيم بن عثمان(جد ابي بكر بن شيبة) و هو ضعيف.

[1] د مصنف ابن ابی شيبه الفاظ دادي: ان رسول الله صلي الله عليه وسلم كان يصلي في رمضان عشرين ركعة "په دې كښې د "في غير جماعة" الفاظ نشته.

د مولانا حبیب الرحمن الاعظمی د تراویحو د رکعاتونو د تعداد په سلسله کښې یو مستقل تالیف دې (اردو) هغوی لیکی چه په دې کښې اختلاف دې چه د حضور ﷺ په قول یا فعل سره د رکعاتونو عدد ثابت دې او که نهٔ؟ په دې کښې دوه ډلې دی.یو جماعت چه په هغوی کښې ابن تیمیه، علامه سیوطی، علامه سبکی وغیره دی هغوی دثبوت قائل نه دی، او دویم جماعت هغه دې چه هغوی قائل دی، په دې کښې مولانا قاضی خان او امام طحاوی لره شمار کړې دی،دغه شان هغوی لیکی چه په دې سلسله کښې د ابن عباس رضی الله عنه حدیث لره وړاندې کول غلط نهٔ دی هغه روایت دومره ضعیف نهٔ دې چه هغې لره بالکل نظر انداز کړې شی([1]) هغه اګر که سنداً ضعیف دې خو امت د دې تلقی بالقبول کړې دې چنانچه د عهد فاروقی نه واخله تراوسه پورې په دې باندې عمل کیږی.

او په عرف الشذی کښې ئې د مولانا انورشاه کشمیری رائې دا لیکلې ده چه د حضور ﷺ نه تراویح هم اتهٔ رکعاته ثابت دی او د دوئ نه په رمضان کښې تهجد او تراویح دوه جدا جدا مونځونو ثابت نهٔ دی بس هم یو مونځ وو کوم چه په غیر رمضان کښې تهجد او د رمضان په میاشت کښې تراویح ورته وئیلې کیدل، فرق په دې دواړو کښې صرف دا وو چه د تراویح رکعاتونو کښې به اوږدوالې زیات وو او هغه به باجماعت په جومات کښې د شپې په شروع حصه کښې کیدل، او د تهجدو مونځ به په آخره شپه کښې بغیر د جماعت نه، دغه شان په عرف الشذی کښې لیکلې دی چه په دې کښې هم شك نشته دې چه په ائمه اربعه کښې د چا په نیز تراویح د شلو رکعاتونو نه کمې نشته دې بلکه د امام مالك په نیز خو شپږ دیرش(۳۶) رکعات دی(د کومو وجه به چه وړاندې راشی) د دې ائمه اربعه حضراتو ماخذ د عمر فاروق رضی الله عنه عمل دې د کوم چه امت تلقی بالقبول کړې ده.

**(۲) عدد رکعات فی العهد الفاروقی:**

په مؤطا امام مالك کښې دی چه حضرت عمر رضی الله عنه په خپله زمانه کښې ابی بن کعب او تمیم داری رضی الله عنهما ته حکم اوفرمائیلو چه هغوی دواړه دې یوځائې خلقو ته تراویح ورکړی، علامه زرقانی فرمائی چه په سنن سعید بن منصور کښې دی چه حضرت عمر رضی الله عنه ابی بن کعب لره امام الرجال یعنی د سړو امام او تمیم داری رضی الله عنه لره امام النساء یعنی د ښځو امام مقرر کړل، او د محمد بن نصر په، قیام اللیل، کښې د تمیم داری رضی الله عنه په ځائې د سلیمان بن ابی حثمه رضی الله عنه نوم ذکر دې، حافظ ابن حجر فرمائی چه شاید دا اختلاف د وختونو فرق دې.

[1]) د دې حدیث په سند کښې دامام ابوبکر بن ابی شیبه نیکهٔ ابراهیم بن عثمان ابوشیبه العبسی الکوفی قاضی واسط دې. حافظ په تقریب کښې دهٔ لره متروك لیکلې دې، د ترمذی او ابن ماجه د رواتو نه دې، میزان الاعتدل کښې دی ، کذبه شعبة وعن ابن معین لیس بثقة و قال احمد ضعیف، قال البخاری سکتوا عنه ، نو معلومه شوه چه امام بخاری او امام احمد د دهٔ سخت تضعیف نهٔ دې کړې دغه شان د ترمذی دکتاب الجنائز په،ص،۱۲۲، کښې په باب فی القراءة علی الجنازة بفاتحة الکتاب د حدیث د سند په رواتو کښې دا ابراهیم هم دې نو د دهٔ په باره کښې مصنف فرمائی چه، لیس اسناده بذاك القوي(د دې حدیث سند څهٔ زیات قوی نهٔ دې، لهذا دمولانا الاعظمی دا فرمائیل چه دا حدیث داسې ضعیف نهٔ دې چه دې لره بالکل نظرانداز کړې شی بالکل صحیح دهٔ).

بیا په دې کښې هم اختلاف دې چه ابی بن کعب څومره رکعاته کړې وو، مؤطا امام مالك کښې په طریقې د سائب بن یزید په روایت کښې دی چه، انه کان یصلی بهم احد عشر رکعة، خو حافظ ابن عبدالبر دې لره وهم ګرځولې دې او فرمائیلې ئې دی چه د مؤطا په روایت سره مالك متفرد دې، د دې نه علاوه د سائب بن یزید د روایت ټولو طریقو کښې، احدی و عشرین رکعة، راغلې دی، یا به د دې تاویل اوکړې شی چه په شروع کښې یولس رکعاتونو به ئې کول او روستو ئې یوویشت(۲۱) باندې استقرار اوشولو، علامه زرقانی فرمائی چه تاویل مناسب دې او وهم ګرځول صحیح نهٔ دی، ځکه چه امام مالك دې سره متفرد نهٔ دې بلکه په سنن سعید بن منصور کښې غیر د طریق د مالك نه هم، احدی عشر رکعة، مروی دی، انتهی. باقی صحیح دا ده چه په اکثرو روایتونو کښې د سائب نه هم، احدی و عشرین رکعة، مروی دی، چنانچه بیهقی په صحیح سند سره د سائب بن یزید[1] نه روایت کړې دې چه، کانوا یقومون علی عهد عمر بعشرین رکعة و علی عهد عثمان و علی مثله، دغه شان د سائب بن یزید روایت په مصنف ابی بکر بن ابی شیبه او محمد بن نصر په، قیام اللیل، کښې دې ، کانوا یقومون فی عهد عمر بعشرین رکعة،(دا خو د سائب د روایت متعلق کلام وو) او په مؤطا کښې دویم روایت د یزید بن رومان دې چه، کان الناس یقومون فی زمان عمر بن الخطاب فی رمضان بثلث و عشرین رکعة.

د دینه علاوه هم په سنن بیهقی او مصنف ابی بکر بن ابی شیبه کښې ګڼړ روایتونه او آثار دی کومو لره چه علامه شوق نیموی په آثار السنن کښې او د هغهٔ ځائې نه بعضو لره په اوجز المسالك او بذل المجهود کښې نقل کړې دی.

او هم دغه شان امام ترمذی فرمائی چه، و اکثر اهل العلم علٰی ما روی عن عمر و علی و غیرهما من اصحاب النبی صلی الله علیه وسلم عشرین رکعة.

مجموعه روایات او د شراحو کلام لره وړاندې ایخودلو نه دا معلومیږی چه په عهد فاروقی کښې ابتداء یولس رکعاته کیدل[2] د رکعاتو د اوږدوالی سره، چنانچه په مؤطاء کښې دی چه، و کان القارئ یقراء بالمئین حتی کنا نعتمد علی العصیّ من طول القیام، الخ، چه په یو رکعت کښې به سل، سل آیاتونه امام لوستل تر دې چه بعضې خلقو به په مانځه کښې د لرګی په آډونه باندې اودریدل او تر صبح صادق پورې نژدې به د تراویح نه اوزګاریدل، علامه زرقانی د ابن حبان نه نقل کوی چه په ابتداء کښې بهٔ تراویح یولس رکعات وې خو د قراءة اوږداولی سره، کله چه خلقو ته په دې کښې ګران والې اوشو نو په قراءة کښې نور هم کموالې اوشو او د دې پځائې په رکعاتونو کښې زیات والې اوشو، او متوسط قراءت سره

---

[1] کذا فی المنهل، خو په دې روایت کښې د عهد عثمان او علی رضی الله عنهما اضافه مدرج ده د بیهقی په تصانیفو کښې نشته دې، قاله النیموي في تعلیق آثار السنن،ص،۵۵، خو وړاندې د امام ترمذی په کلام کښې عمر رضی الله عنه سره د علی رضی الله عنه لفظ راځی)۱۲۔

[2] قال القسطلاني شرح البخاري و جمع البیهقي بینهما بانهم کانوا یقومون باحدي عشرة ثم قاموا بعشرین و اوتروا بثلاثة وقد عدوا ما وقع في زمن عمر رضي الله عنه تعالي عنه کالاجماع، ۱هـ(تعلیق آثار السنن))۔

علاوه د وترو نه شل رکعات شولې، او بیا په قراءة کښې نور هم کموالې اوشو او په رکعاتونو کښې زیاتوالې اوشو او دې لره شپږدیرش کړې شو د وترو د دوو رکعاتونو نه علاوه او ټول یوکم څلویښت رکعاته شول، چنانچه د اهل مدینه عمل هم په دې باندې وو.
او امام نووی فرمائی چه د اهل مدینه دې زیادت وجه دا شوه چه په اصل کښې اهل مکه به تراویح شل رکعات کولې او د هر څلورم رکعات نه پس ترویحه کښې به ئې د بیت الله شریف طواف کولو او په آخری یعنی د پنځمه ترویحې نه پس به ئې نهٔ کولو(لهذا د تراویحو په مینځ کښې به د دوئ څلور طوافه شول) اهل مدینه د اهل مکه په دې منډه کښې دا اوکړل چه د یو طواف په مقابله کښې څلور رکعاته اوکړل نو د څلور طوافونو په بدله کښې شپاړس رکعاتونو زیادت اوکړې شو، په کوم سره چه د تراویحو رکعاتونه د شلو په ځائې شپږدیرش رکعاتونه شول،(من المنهل) په عرف الشذی کښې لیکلې دی چه اهل مدینه به د هرو څلورو رکعاتونو نه پس په ترویحه کښې ځانله ځانله څلور څلور رکعاته کول لکه څنګه چه به اهل مکه د هرې ترویحې نه پس یو طواف کولو، بیا لیکی چه په عهد فاروقی کښې د رکعاتونو تعداد خو په قوی روایتونو سره دا څلور شان ثابت دی، یولس رکعاته، دیارلس رکعاته، یوویشت رکعاته، درویشت رکعاته مع الوتر خو په اخره کښې استقرار په شلو رکعاتونو باندې اوشو، او هغه چه کوم شیخ ابن الهمام فرمائی چه په شلو رکعاتونو کښې اتهٔ سنت دی او باقی دولس رکعاتونه مستحب دی، لم یقل به احدٌ، یعنی په دې باندې چا وینا نهٔ ده کړې، بلکه صحیح دا ده چه د خلفاء راشدین سنت هم سنة الشریعة دی(شرعی طریقه سنة نبوی) د اصولینو تصریح ده چه د حضور ﷺ طریقه او د دوئ د خلفاؤ طریقه هم د سنت مصداق دې او په حدیث شریف کښې دی، علیکم بسنتی و سنة الخلفاء الراشدین، لهذا د عمر فاروق رضی الله عنه عمل هم سنت دې، انتهی.

او مولانا عبدالحئ، التعلیق الممجد، کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها حدیث، ما کان یزید فی رمضان و لا فی غیره علی احدٰی عشرة رکعة، د لاندې د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما حدیث، عشرین رکعة، واله ذکر فرمائیلو نه پس لیکی، او هغه کوم چه علماء لکه زیلعی، ابن الهمام، سیوطی، زرقانی وئیلې دی چه دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنه بآوجود د ضعف نه د حضرت عائشه رضی الله عنها د حدیث معارض دې لهذا صحیح لره اختیاروی او غیر صحیح لره مطروح ګرځولې شی،(د دې حضراتو) دا خبره منظور فیه ده څکه چه اګر که دا صحیح ده چه حدیث د ابن عباس رضی الله عنه ضعیف او حدیث د حضرت عائشه رضی الله عنها صحیح دې خو د راجح اخذ یعنی اخستل او د مرجوح ترک یعنی پریخودل هغه وخت متعین دی کله چه جمع بین الروایتین ممکن نهٔ وی او دلته داسې نهٔ ده بلکه د جمع شکل دا دې چه داسې اووئیلې شی چه حدیث د حضرت عائشه رضی الله عنها په غالب حال باندې محمول دې، کما صرح به الباجی وغیره فی شرح المؤطاء او حدیث د ابن عباس رضی الله عنه په بعضې وختونو باندې، انتهی.

**فائده**: په سنن ابوداؤد کښې په، باب القنوت فی الوتر، کښې یو روایت دې په کوم کښې د عهد فاروقی د تراویح ذکر دې، په دې کښې زمونږ په نسخه کښې خو داسې دی، ان عمر

بن الخطاب رضی الله عنه جمع الناس علی ابی بن کعب فکان یصلی لهم عشرین لیلة و لا یقنت بهم الا فی النصف الباقی، خو د سنن ابوداؤد هغه نسخه کومه چه په مطبع مجتبائی کښې د حضرت شیخ الهند په تصحیح سره طبع یعنی چاپ شوې ده، د هغې نسخې په حاشیه باندې او دغه شان د بذل المهجود په حاشیه باندې هم د نسخې د علامت جوړولو سره د عشرین لیلة په ځائې عشرین رکعة دی په دې ځائې کښې په حاشیه باندې دا عبارت هم لیکلې دې ، کذا فی نسخة مقروءة علی الشیخ مولانا محمد اسحاق رحمه الله تعالی، لهذا دا وئیلې شو چه په سنن ابوداؤد کښې د عهد فاروقی د تراویحو تعداد عشرین رکعة مذکور دې.

سید منصور بن علی ناصف (من علماء الازهر) التاج الجامع للاصول فی احادیث الرسول، مرتب او مصنف په خپله د دې شرح کښې په صفحه ۶۴،ج۲، کښې لیکی چه، په دې مختلفو روایتونو کښې څه تعارض نشته دې کیدې شی اولاً صحابه کرامو په لږو رکعاتونو باندې اکتفاء کړې وی بیا روستو د دوئ رائې دا شوې وی چه دا صلوٰة اللیل دې په کوم کښې چه څۀ حد او اندازه نشته دې. حضور ﷺ به هم دې لره اوږدۀ بتدریج سره کول. تر دې چه په دریمه شپه کښې ئې د شپې تر آخره پورې دا مونځ کړې وو. کما فی حدیث ابی ذر رضی الله عنه، نو څکه دې حضراتو هم د تراویحو شل رکعات اوکړل، او بیا ئې په دې باندې مداومة اوکړو،پس دا د صحابه کرامو اجماعی رائې شوه کوم لره چه هغوی فعل حسن اوګنړله او اختیار ئې کړه، فهو عند الله حسن لحدیث ما رٰه المؤمنون حسنا فهو عند الله حسن رواه الامام مالک رحمه الله تعالی، پس دې وخت د ټولو اسلامی بقاع مدار په شل رکعاتو باندې دې، انتهی.

[۱۳۷۲](۱)حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، وَابْنُ أَبِي خَلَفٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ صَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ، وَمَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ.

ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه یې رسوي نبي ﷺ ته، چا چې روژه ونیوله د ایمان سره او خپل اجریې په الله حسابوه، نو هغه ته به د هغه مخکښي ګناهونه معاف شي، او چا چې قیام وکړو د لیلة القدر د ایمان او احتساب سره نو هغه ته به د هغه م خکښي او ورستني ګناهونه معاف شي ویلي دي ابوداود همداسي روایت کړی دی یحیی بن ابي کثیر د ابو سلمة نه، او محمد بن عمرو د ابي سلمة نه.

[۱۳۷۳](۲)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى فِي الْمَسْجِدِ، فَصَلَّى بِصَلَاتِهِ نَاسٌ، ثُمَّ صَلَّى مِنَ الْقَابِلَةِ

[1]: صحيح البخاري/ليلة القدر ١ (٢٠١٤)، سنن النسائي/الصيام ٢٢ (٢٢٠٤)، (تحفة الأشراف:١٥١٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤١/٢) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الأذان ٨٠ (٧٢٩)، والجمعة ٢٩(٩٢٤)، والتهجد ٥ (١١٢٩)، والتراويح ١ (٢٠١١)، صحيح مسلم/المسافرين ٢٥ (٧٦١)، سنن النسائي/ قيام الليل ٤ (١٦٠٥)، (تحفة الأشراف:١٦٥٩٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة في رمضان ١(١)، مسند احمد (١٦٩/٦، ١٧٧) (صحيح)

فَكَثُرَ النَّاسُ، ثُمَّ اجْتَمَعُوا مِنَ اللَّيْلَةِ الثَّالِثَةِ، فَلَمْ يَخْرُجْ إِلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا أَصْبَحَ، قَالَ: "قَدْ رَأَيْتُ الَّذِي صَنَعْتُمْ، فَلَمْ يَمْنَعْنِي مِنَ الْخُرُوجِ إِلَيْكُمْ إِلَّا أَنِّي خَشِيتُ أَنْ يُفْرَضَ عَلَيْكُمْ، وَذَلِكَ فِي رَمَضَانَ".

د عائشي ﷺ نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ مونځ وکړو په مسجد کې، د هغه د مونځ پسې خلقو هم مونځ وکړو، بيايي په راتلونکي شپه کې مونځ وکړو، نو خلق ډېر شول، بيا خلق راجمع شول په دريمه شپه کې، رسول الله ﷺ ورته راونه وتلو، هرکله يي چې صباح کړو، هغه ووېل: ما هغه څه وليدل تاسو چې وکړل، زه د راوتلو نه منع نه کړم، مګر دې خبرې چې زه ويرېدم چې فرض به شي په تاسو او دا په رمضان کې.

[١٣٧٤] (١) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّاسُ يُصَلُّونَ فِي الْمَسْجِدِ فِي رَمَضَانَ أَوْزَاعًا، فَأَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبْتُ لَهُ حَصِيرًا فَصَلَّى عَلَيْهِ، بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَتْ فِيهِ: قَالَ: تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّهَا النَّاسُ، أَمَا وَاللَّهِ مَا بِتُّ لَيْلَتِي هَذِهِ بِحَمْدِ اللَّهِ غَافِلًا، وَلَا خَفِيَ عَلَيَّ مَكَانُكُمْ".

د عائشي نه روايت دی هغې ويلي دي: وو خلق چې مونځ يي کولو په مسجد کې په رمضان کې ډلې ډلې، ماته رسول الله ﷺ امر وکړو، ما هغه ته پوزې واچولو، په هغې يي مونځ وکړو. په دې قصې سره. هغې پکې ويلي دي: هغه ووېل: نبي ﷺ يي مقصد دی: ای خلقو! خبردار قسم په الله د الله حمد دی چې ما تېره شپه په غفلت کې نه ده تېره کړې، او نه ستاسو د حال نه غافل وم.

[١٣٧٥] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، أَخْبَرَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: "صُمْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَمَضَانَ، فَلَمْ يَقُمْ بِنَا شَيْئًا مِنَ الشَّهْرِ حَتَّى بَقِيَ سَبْعٌ، فَقَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ، فَلَمَّا كَانَتِ السَّادِسَةُ لَمْ يَقُمْ بِنَا، فَلَمَّا كَانَتِ الْخَامِسَةُ قَامَ بِنَا حَتَّى ذَهَبَ شَطْرُ اللَّيْلِ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَوْ نَفَّلْتَنَا قِيَامَ هَذِهِ اللَّيْلَةِ، قَالَ: فَقَالَ: إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا صَلَّى مَعَ الْإِمَامِ حَتَّى يَنْصَرِفَ حُسِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ، قَالَ: فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ لَمْ يَقُمْ، فَلَمَّا كَانَتِ الثَّالِثَةُ جَمَعَ أَهْلَهُ وَنِسَاءَهُ وَالنَّاسَ، فَقَامَ بِنَا حَتَّى خَشِينَا أَنْ يَفُوتَنَا الْفَلَاحُ، قَالَ: قُلْتُ: وَمَا الْفَلَاحُ؟ قَالَ: السُّحُورُ، ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِقِيَّةَ الشَّهْرِ".

د ابوذر نه روايت دی هغه ويلي دي: مونږ روژه ونيوله د رسول الله ﷺ سره د رمضان، هغه مونږ ته هېڅ قيام الليل نه دی کړی د مياشتې نه تردې چې اوه شپې پاتې شوې، هغه قيام الليل وکړو مونږ ته تردې چې دريمه حصه د شپې تېره شوه، کله چې شپږمه وه مونږ ته يي قيام الليل ونه کړو، هرکله چې پنځمه شوه نو قيام الليل يي وکړو مونږ ته، تردې چې څه حصه د شپې لاړله، ما ووېل: ای د الله رسوله! که چېرې تا مونږ ته د دشپې قيام الليل کړې وی، هغه وايي: چې هغه ووېل: کله چې سړی د امام سره مونځ وکړي تردې چې فارغ شي هغه دپاره حسابولی شي قيام د يوې شپې. هغه وايي: هرکله چې څلورمه شپه شوه، هغه قيام الليل ونه کړو، هرکله چې دريمه شوه راجمع يي کړل خپل اهل او بيبياني او خلق، هغه مونږ ته قيام الليل وکړو تردې چې مونږ وويرېدو چې زمونږ نه به فوت شي پيشنمی، هغه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٧٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٧/٦) (حسن صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الصوم ٨١ (٨٠٦)، سنن النسائي/السهو ١٠٣ (١٣٦٥)، قيام الليل ٤ (١٦٠٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٣ (١٣٢٧)، (تحفة الأشراف: ١١٩٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٩/٥، ١٦٣)، سنن الدارمي/الصوم ٥٤ (١٨١٨) (صحيح)

وايي: ما ووېل: فلاح څه شی دی؟ هغه ووېل: پيسنمی، بيايي قيام الليل ونه کړو تر ډېره مياشت.
**قوله**: فقلت يا رسول الله صلى الله عليه وسلم لو نفّلتنا قيام هذه الليلة قال فقال ان الرّجل اذا صلى مع الامام حتى ينصرف حُسِبَ له قيام ليلة، حضور ﷺ په دويمه شپه کښې تراويح تر نصف ليل پورې ورکړی، په دې باندې ابوذر ؓ د زيادت درخواست اوکړو که په دې باندې حضور ﷺ څهٔ لږ نور زياتې اوکړی نو څهٔ ښهٔ به وی[1]

## شرح حديث:

حضور ﷺ اوفرمائيل چه سړې کله فرض مونځ (د ماسخوتن او سحر) د امام سره يعنی جماعت سره اوکړی تر دې چه امام د مانځه نه فارغ شی يعنی مونځ پوره کړی نو دهٔ ته د پوره شپې د قيام ثواب ملاويږی، لهذا کله چه تاسو خلق د ماسخوتن او سحر مونځ ما سره باجماعت اوکړئ نو د ټولې شپې ثواب خو ملاؤ شو او د دې تراويحو ثواب په دې باندې زياتی شو (نو نور بيا څهٔ پکار دی)

د دې حديث دويمه شرحه دا ده چه، اذا صلى مع الامام، نه مراد د تراويحو مونځ دې چه کوم سړې امام پسې پوره تراويح اوکړی (داسې نهٔ چه په مينځ کښې پرېږدی او لاړ شی بلکه د دهٔ په زړهٔ کښې دا وی چه تر څو پورې امام مونځ کوی مونږ به دهٔ پسې شاته مونځ کوو) نو په دې صورت کښې به دې سړی ته د ټولې شپې د مونځ ثواب ملاويږی، سبحان الله، اوګورئ، نية المؤمن خير من علمه.

دا دويم مطلب زيات صحيح معلوميږی، حضرت په بذل کښې هم دې لره ترجيح ورکړې ده، په دې کښې، حتى ينصرف، دا جمله د دې مطلب زياته مناسب ده.

[۱۳۷٦] (1) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَدَاوُدُ بْنُ أُمَيَّةَ، أَنَّ سُفْيَانَ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، وَقَالَ دَاوُدُ عَنِ ابْنِ عُبَيْدِ بْنِ نِسْطَاسٍ، عَنْ أَبِي الضُّحَى، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ أَحْيَا اللَّيْلَ، وَشَدَّ الْمِئْزَرَ، وَأَيْقَظَ أَهْلَهُ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: أَبُو يَعْفُورٍ: اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ نِسْطَاسٍ.

د عائشې ؓ نه روايت دی، بېشکه نبي ﷺ، او وو کله چې به داخل شوې اخيرنۍ لس، شپه به يې رونه کړه، او لنګ به يې مضبوط کړو، او خپل اهل به يې رابيدار کړو. ابوداود ويلي دي: د ابو يعفور نوم عبد الرحمن بن عبيد بن نسطاس دی.

**تشريح**: **قوله**: كان اذا دخل العشر احيى الليل و شدّ الميزر، حضور ﷺ به په آخری عشره کښې احياء ليل فرمائيل يعنی د شپې اکثره حصه به ئې په عبادت کښې تيروله، او ازار (لنګ) به ئې مضبوط ترلو د دينه يا خو ظاهری معنی يعنی اعتزال عن النساء مراد دې چه خپل لنګ به ئې مضبوط ترلو او د (همبسترئ دپاره) به ئې لنګ نهٔ پرانستلو، او يا د دې نه تشمير ازار او مجاهده فی العبادت مراده ده، څکه چه مزدور کله خپل کار شروع کوی نو لنګ وغيره په ښهٔ شان باندې پورته او ترې.

[1]: صحيح البخاري/ليلة القدر ۵ (۲۰۲۴)، صحيح مسلم/الاعتكاف ۳ (۱۱۷۴)، سنن الترمذي/الصوم ۷۳ (۷۹۵)، سنن النسائي/قيام الليل ۱۵ (۱٦۴۰)، سنن ابن ماجه/الصوم ۵۷ (۱۷٦۸)، (تحفة الأشراف: ۱۷٦۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۴۰، ۴۱) (صحيح)

[١٣٧٧]( )حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مُسْلِمُ بْنُ خَالِدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِذَا أُنَاسٌ فِي رَمَضَانَ يُصَلُّونَ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: "مَا هَؤُلَاءِ؟" فَقِيلَ: هَؤُلَاءِ نَاسٌ لَيْسَ مَعَهُمْ قُرْآنٌ، وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يُصَلِّي وَهُمْ يُصَلُّونَ بِصَلَاتِهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَصَابُوا، وَنِعْمَ مَا صَنَعُوا". قَالَ أَبُو دَاوُد: لَيْسَ هَذَا الْحَدِيثُ بِالْقَوِيِّ، مُسْلِمُ بْنُ خَالِدٍ ضَعِيفٌ.

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: رسول الله ﷺ راووتلو، ناڅاپه څه خلق وو په رمضان کې مونځ يې کولو په يو ګوټ د مسجد کې، هغه ووېل: دا کوم خلق دي؟ هغه ته ووېل شول: دا څه خلق دي د دوی د قرآن څه حصه ياده نه ده، او ابي بن کعب دوی ته مونځ کوي، او هغوی مونځ کوي د هغه پسي، نبي ﷺ ووېل: دوی حق ته ورسيدل او ډيرښه يي کړي دي. ابوداود ويلي دي: دا حديث قوي نه دی اومسلم بن خالد ضعيف دی.

حدثنا احمد بن سعيد الهمدانی الخ،،،، فقال النبی صلی الله عليه وسلم اصابوا و نعم اصابوا، دوئ اوفرمائيل صحيح کوی او ډير ښۀ کوی.

### يو اشکال او جواب:

د دينه معلومه شوه چه حضرت ابی بن کعب د حضور ﷺ په زمانه کښې هم د تراويح امامت کړې وو دا خبره د مشهورو رواياتو خلاف ده، د مشهورو رواياتو نه خو دا معلوميږی چه د حضور ﷺ په زمانه کښې حضور ﷺ په خپله بذات خود تراويح ورکړې وی او ابی بن کعب لره د تراويحو امام د حضرت عمر رضي الله عنه په دور خلافت کښې جوړ کړې شوې وو، د دې يو جواب خو دا دې چه د دې حديث په سند کښې مسلم بن خالد الزنجی دې کوم چه ضعيف دې (کما قال المصنف) او دويم جواب دا ورکړې شوې دې چه د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې خو ابی بن کعب رضي الله عنه لره هغوی باقاعده د تراويحو امام جوړ کړې وو او د حضور ﷺ په زمانه کښې به هغوی په خپله يو وړوکی غونډې جماعت ځان سره کړو او تراويح به ئې ورکولې، لهذا دا خبره د دې مشهور امر خلاف نۀ ده. الحمد لله د تراويحو باب پوره شو.

## بَابٌ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ

### باب دی په بيان د ليلة القدر کې

### د ماقبل سره مناسبت:

ليلة القدر لره بعضې محدثين په کتاب الصلوة کښې ذکر کوی لکه څنګه چه مصنف کړې دی او هم داسې امام مسلم هم کړې دی، او بعضې مصنفينو دې لره په کتاب الصوم کښې ذکر کوی، کما فعل الامام البخاری والامام الترمذی و لکل وجهة، که دا اوکتلې شی چه د دې شپې وقوع د رمضان په مياشت کښې وی نو دې لحاظ سره کتاب الصوم ددې مناسب دې او که دا اوکتلې شی چه د دې شپې چه کوم اهم عمل او وظيفه ده يعنی مونځ او نوافل نو دهغې د کتاب الصلوة مناسب دی.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:١٤٠٩٤) (ضعيف)

### وجه تسميه:

د ليلة القدر وجه تسميه کښې دوه قوله دي(۱) قدر په معنی د التقدير ځکه چه په دې شپه کښې بعضې د کال تکوينی امور او احکام مقررېږي، اجال او ارزاق وغيره، او فرښتو له په هغې باندې خبرولې شي، د هر يو اجل يعنی نيته، چه په دې کال به څوك څوك مري او چا ته به څومره روزی ملاوېږي.

(۲) قدر په معنی د مرتبه يعنی لوئی مرتبې واله شپه، علامه شامی ليکي چه فقهاؤ تصريح کړې ده چه دا شپه افضل الليالی ده يعنی د کال په ټولو شپو کښې د ټولو نه زياته افضله ده، حضرت سعيد بن المسيب فرمائی چه کوم سړې په دې شپه کښې د ماسخوتن مونځ باجماعت اوکړی نو پوهه شۀ چه دې سړی ته د دې شپې د عبادت حصه ملاؤ شوه، او د امام شافعی په کلام کښې عشاء او فجر يعنی ماسخوتن او صبا دواړه ذکر دی، انتهی، خو ظاهره دا ده چه د دې پوره حصه خو په اخلاص سره شپه شوګيره کولو سره حاصلېږي.

(۳) قدر په معنی د تنګئ، کما فی قوله تعالی، فظن ان لن نقدر عليه، او تنګی دلته يا خو د علم په اعتبار سره ده چا چه ته هم د دې شپې په تعين سره علم نشته دې، او يا په دې لحاظ سره ده چه د فرښتو په دې کښې ډيرازدحام يعنی ګڼړه وی نو ګويا فضاء تنګه شی، والله تعالی اعلم

### د دې خداوندی عطيه سبب او منشاء:

دا شپه په دې امت باندې د الله پاك انعام دې د دې انعام ظاهری سبب څۀ اوشو د موطاء امام مالك روايت دې چه يو ځل حضور اقدس ﷺ د تير شوو امتونو عمرونو ته اوکتل او هغه ډير اوږدۀ اوږدۀ وو د پنځه سوه کالو نه هم زيات وو نو حضور ﷺ خيال اوفرمائيلو چا بيا زما د امت عملونه د هغوی د عملونو برابر نۀ شی کيدلې نو د حضور ﷺ په دې تاثر باندې دې امت ته دا انعام ورکړې شو، بيهقی او ابن ابی حاتم روايت کړې دې چه يوځل حضور ﷺ د بنی اسرائيلو د يو سړی ذکر اوفرمائيلو چه هغه تر يو کاله پورې په جهاد فی سبيل الله کښې مشغول وو، په دې باندې مسلمانانو ته تعجب اوشو نو په دې بآندې دا سورۀ قدر نازل شو، (التاج الجامع، ۷۹، ج۲، مع شرحه) احقر وائی چه د جامع ترمذی په کتاب التفسير، ص، ۱۷۱، ج، ۲، کښې يو حديث د سورۀ قدر په شان نزول کښې مذکور دې، په کوم باندې چه امام ترمذی د غرابة حکم لګولې دې، د هغې مضمون دا دې چه کوم سړی حسن بن علی رضي الله عنهما ته د حضرت معاويه رضي الله عنه ته په صلح کولو باندې طن او پيغور ورکړلو او اوئی وئيل چه، سوّدت وجوه المؤمنين، تا د مسلمانانو او بنوهاشم مخونه تورل کړل، نو په دې باندې هغوی اوفرمائيل داسې مۀ وايه تا ته څۀ خبر هم شته چه حضور ﷺ يو ځل په خوب کښې په خپل منبر شريف باندې د بنو اميه امراء اوليدل په کوم سره چه حضور ﷺ غمژن شو (لاجل انتقال الخلافة من بنی هاشم الی بنی اميه) نو په دې بآندې الله تعالی دوئ ته ليلة القدر عطيه کړله او سورة قدر نازل شو، د حديث راوی وائی مونږ د بنو اميه د خلافت

موده حساب کړه نو هغه پوره زر(۱۰۰۰) میاشتې کیږي[۱] (په کوم سره چه د حضرت حسن رضي الله عنه د خبرې تصدیق اوشولو چه دا شپه حضور ﷺ ته د بنوامیه د خلافت په بدله کښې ورکړې شوې ده)

په بذل کښې دعلامه شامی نه نقل کړې دی چه الله تعالی چا لره غواړي هغه دې شپې لره کتلې شی او څوك چه ئې اووینی نو هغهٔ لره پکار دی چه د دې افشاء یعنی ښکاره والی دې نهٔ کوی او اخلاص سره دې دعاء اوکړي، علماؤ د دې شپې څهٔ علامات او نښې هم لیکلې دی، د باب په اولنی حدیث کښې وړاندې د دې ذکر راروان دې.

## د دې شپې په تعیین کښې د علماء اقوال:

د دې شپې په تعیین کښې ډیر اختلاف دې، په بذل کښې حافظ ابن حجر د دې په تعیین کښې شپږ څلویښت(۴۶) قولونه نقل کړې دی، مونږ د هغې چه کوم مشهور دی او خصوصا د ائمه اربعه په مینځ کښې دی صرف هغه به لیکو، د دې شپې په باره کښې بعضې علماؤ لیکلې دی چه دا دې امت سره خاص ده، یو قول دا دې چه دا شپه پورته کړې شوې ده، روافض هم دا وائی څکه چه په یو روایت کښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل، رُفعت. جواب دا دې چه د حضور ﷺ مراد دا دې چه د دې شپې تعیین پورته کړې شوې دې، او یو قول دا دې چه دا شپه د حضور ﷺ په زمانه کښې صرف یو څل موندلې شوې ده،مراقی الفلاح کښې دی چه د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه رائې دا ده چه دا شپه په ټول کال کښې گرځی او هم دا د امام ابوحنیفه رحمه الله نه مروی دی، محی الدین ابن عربی په فتوحات مکیه کښې لیکی چه هم دا زما رائې ده څکه چه ما دې لره کله په شعبان کښې او کله د ربیع په میاشت کښې او اکثر او ډیره د رمضان په میاشت کښې لیدلې ده په ناتګئ او غیر ناتګئ دواړه شپو کښې.

دویم قول د امام صاحب دا دې چه دا د رمضان په میاشت کښې گرځی یعنی خاص خو تر رمضان ترمیاشتې پورې ده خو متعین نهٔ ده گرځی راگرځی، صاحبین فرمائی چه تر رمضان پورې خاص او متعین ده خو معلومه نهٔ ده چه کومه ده، په دې باندې ثمره د اختلاف دا

---

[۱] هغه داسې چه د بنوامیه خلافت په،۱۳۲، سنه هجری باندې ختم شولو، د دوئ آخری خلیه مروان بن محمد په کال،۱۳۲، سنه هجری کښې اووژلې شو او د بنوامیه د خلافت تسلسل د ،۴۰، سنه هجری نه شروع کیږی د یو سل او دوو دیرشو نه چه څلویښت اوباسې نو باقی لس کم سل کاله پاتې کیږی او په مینځ کښې چونکه دعبدالله بن الزبیر رضی الله عنه خلافت هم راغلو کوم چه اتهٔ کاله او اتهٔ میاشتې دی(کوم لره چه اوخکل دی) د(اتهٔ کم(۹۲) سلو کالو نه چه اتهٔ کاله او اتهٔ میاشتې اوباسې نو درې اتیا کاله او څلور میاشتې باقی پاتې کیږی او درې اتیا کاله او څلور میاشتې پوره زر میاشتې کیږی (چه دهغې برابر دا یوه شپه یعنی لیلة القدر ده) خو په دې باندې یو اشکال دې او هغه دا چه د عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه د خلافت استثناء د کوم خائې نه صحیح ده د دوئ په خلافت سره د بنوامیه د خلافت تسلسل نهٔ وو ختم شوې، د دئ دور خلافت کښې کوم چه په حجاز او عراق باندې وو د مروان بن عبدالملك خلافت په شام او مصر باندې قائم وو، والله تعالی اعلم،(تحفة الاحوذی)احقر وائی چه دا خو صحیح ده چه تسلسل منقطع شوې نهٔ وو خو د خلافت په کمال او پوره والی کښې خلل خو واقع شوې وو) ۱۲.

لیکلي ده چه کوم سړي د خپل غلام ازادول تر لیلة القدر پورې معلق کړي چه کله لیلة القدر وی نو ته آزاده ئې نو که دهٔ دا خبره مثلا په پنځلسم رمضان باندې اوکړه نو د صاحبینو په نیز د دهٔ غلام به راتلونکی کال په رمضان کښې هم دې تاریخ باندې آزادیږی په خلاف د امام صاحب نه چه د دوئ په نیز باندې راتلونکی رمضان پوره تیریدلو باندې د اختر په شپه باندې به آزاد وی ځکه چه کیدې شی چه تیر شوی کال کله چه دهٔ عتق لره معلق کړې وو دغه کال دا شپه د پنځلسم تاریخ نه وړاندې تیره شوې وی او دې کال یعنی راتلونکی کال دا شپه د رمضان په آخره کښې راشی دې نو ترڅور پورې د رمضان میاشت پوره نهٔ وی تیره شوې تر هغه وخته پورې به عتق نهٔ واقع کیږی.

د صاحبینو دویم روایت دا دې چه دا شپه د رمضان په آخری نیمه کښې منقل کیږی، امام شافعی فرمائی چه، ارجی اللیالی، یوویشتمه شپه ده یعنی د ټولو نه زیاته توقع د یوویشتمې شپې په باره کښې ده، امام مالك او احمد فرمائی چه د آخری عشرې په شپو کښې ګرځی، دحضرت ابی بن کعب رضی الله عنه په نیز اوویشتمه شپه متعین ده لکه ځنګه چه وړاندې په روایت کښې راروان دی او هم دا قول د جمهورو علماؤ طرف ته منسوب دې.

[١٣٧٨] (١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ زِرٍّ، قَالَ: قُلْتُ لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ أَخْبِرْنِي عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ فَإِنَّ صَاحِبَنَا سُئِلَ عَنْهَا، فَقَالَ: مَنْ يَقُمِ الْحَوْلَ يُصِبْهَا، فَقَالَ: رَحِمَ اللَّهُ أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمَ أَنَّهَا فِي رَمَضَانَ، زَادَ مُسَدَّدٌ: وَلَكِنْ كَرِهَ أَنْ يَتَّكِلُوا، أَوْ أَحَبَّ أَنْ لَا يَتَّكِلُوا، ثُمَّ اتَّفَقَا، وَاللَّهِ إِنَّهَا لَفِي رَمَضَانَ لَيْلَةَ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ لَا يَسْتَثْنِي، قُلْتُ: يَا أَبَا الْمُنْذِرِ، أَنَّى عَلِمْتَ ذَلِكَ؟ قَالَ: بِالْآيَةِ الَّتِي أَخْبَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْتُ لِزِرٍّ: مَا الْآيَةُ؟ قَالَ: تُصْبِحُ الشَّمْسُ صَبِيحَةَ تِلْكَ اللَّيْلَةِ مِثْلَ الطَّسْتِ لَيْسَ لَهَا شُعَاعٌ حَتَّى تَرْتَفِعَ.

زر وايي ما ابي بن كعب ته وويل: ماته خبر راكړه د ليلة القدر په باره كې اى ابو المنذره! بېشكه زمونږ د ملګري نه د دې باره كې تپوس شوى دى، هغه وويل: څوك چې پوره كال قيام الليل وكړي نو ورته وبه رسېږي، هغه وويل: الله دې رحم وكړي اى ابو عبد الرحمن! قسم په الله بېشكه هغه ته علم وو چې هغه په رمضان كې ده. مسدد زيادت كړى دى، لكن هغه دا بده وګڼله چې دا خلق ځان وسپاري، او يايي دا خوښه وه چې ځان وسپاري، بيا دوه متفق شوي دي . قسم په الله بېشكه هغه په رمضان كې وه، په شپه اووېشتمه كې بلا استثناء، ما وويل: اى ابو المنذره! تاته څه علم دى د دې؟ هغه وويل: په هغې نښې سره چې مونږ ته رسول الله ﷺ خبر راكړى دى، ما زر ته وويل: هغه نښه كومه يوه ده؟ هغه وويل: صباح كوي نمر په دغه سحرباندې پشان د يو لوښي چې رڼا نه لري، ترڅو چې راپورته شي.

فان صاحبنا سئل عنها فقال من يَقُم الحَول يُصِبْهَا. د صاحب نه مراد ابن مسعود رضی الله عنه دې د مسلم په روايت كښې د دې تصريح ده، هغه فرمائی چه كوم سړي د پوره كال شپو كښې قيام اوكړی هغه به ئې په يقين سره دې لره اومومی (ځكه چه هغه په ټول كال كښې ګرځی)

(١): صحيح مسلم/المسافرين ٢٥ (٧٦٢)، سنن الترمذي/الصوم ٧٣ (٧٩٣)، سنن النسائي/الاعتكاف (٣٤٠٦)، (تحفة الأشراف:١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٠/٥، ١٣١) (حسن صحيح)

په دې باندې ابی بن کعب اوفرمائیل چه الله تعالی دې په ابن مسعود رضي الله عنه باندې رحم اوفرمائي هغوی (ماته) د دې خبرې یقین دې چه هغه شپه د رمضان په میاشت کښې ده او اوویشتمه (۲۷)شپه ده، لا یستثنی، یعنی هغه به انشاء الله هم نۀ وئیل خکه چه انشاء الله عام طور بآندې غیر یقیني خبرې کښې وئیلې کیږي، قلت یا اباالمنذر، دا د ابی بن کعب رضي الله عنه کنیت دې، انی علمتَ ذلك، تاسو ته دا څنګه معلومه شوه.

## د دې شپې علامات:

**قوله:** قلت لِزرٍّ ما الآیة، د لیلة القدر علامت او نښه څۀ ده هغوی اووئیل چه د دې علامت او نښه دا ده چه د دې شپې په صبا به نمر داسې راخیژي لکه څنګه چه یو پلیټ وی چه په هغې کښې شعاګانې (څریکې) نۀ وی،اودا هم وئیلې شی لکه څنګه چه په بعضې روایاتو کښې دی چه د څوارلسمې شپې د سپوږمۍ پشان وی، په سپوږمۍ کښې شعلې نۀ وی، او دا ځکه چه په دې شپه کښې د فرښتو کثرت او ډیروالې وی د آسمان نه راکوزیدل او ختل نو د هغوی اجسام لطیفه او وزرې حائلې شی په کومو سره چه د نمر په رنړا کښې کمې راشی، علماؤ څۀ نور علامات هم لیکلې دی، مثلا دا چه دا شپه ډیره صفا او روښانه وی لکه څنګه چه سپوږمۍ پرقیږي او په هغې کښې یو خاص سکومخاموشی محسوسیږي نۀ په دې شپه کښې ډیره یخنی وی او نۀ زیاته ګرمی بلکه معتدله وی، یو علامت دا ئې هم لیکلې دې چه په دې شپه رجم شیاطین(د ستورو ماتیدل او شیطانانو باندې لګیدل) نۀ وی،دغه شان هر څیز شجر او حجر سجده کونکی ښکاری(یُری کل شیء ساجدًا) هر ځائې رنړا او انوار موندلې شی تر دې چه د تیارۀ نه تیارۀ ځائې کښې هم.

دلته په حدیث کښې چه کوم علامات د نمر متعلق بیان کړې شوې دی په دې کښې دا سوال کیږي چه د دې علاماتو د بیانولو څۀ فائده اوشوه دا خو روستو شپه تیریدلو نه پس موندلې کیږي؟ جواب دا دې چه فائده ئې داه ده چه چا ته دا شپه نصیب شوې وی هغه چه دا علامات اوګوری نو د الله تعالی شکر به ادا کړی او راتلونکی وخت کښې به د دې د حاصلولو کوشش کوی.

[۱۳۷۹](¹)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَفْصِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ السُّلَمِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ الزُّهْرِيِّ، عَنْ ضَمْرَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُنَيْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كُنْتُ فِي مَجْلِسِ بَنِي سَلِمَةَ، وَأَنَا أَصْغَرُهُمْ، فَقَالُوا: مَنْ يَسْأَلُ لَنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ، وَذَلِكَ صَبِيحَةَ إِحْدَى وَعِشْرِينَ مِنْ رَمَضَانَ، فَخَرَجْتُ، فَوَافَيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْمَغْرِبِ، ثُمَّ قُمْتُ بِبَابِ بَيْتِهِ، فَمَرَّ بِي، فَقَالَ: "ادْخُلْ"، فَدَخَلْتُ فَأُتِيَ بِعَشَائِهِ فَرَآنِي أَكُفُّ عَنْهُ مِنْ قِلَّتِهِ، فَلَمَّا فَرَغَ، قَالَ: "نَاوِلْنِي نَعْلِي"، فَقَامَ وَقُمْتُ مَعَهُ، فَقَالَ: "كَأَنَّ لَكَ حَاجَةً" قُلْتُ: أَجَلْ، أَرْسَلَنِي إِلَيْكَ رَهْطٌ مِنْ بَنِي سَلِمَةَ يَسْأَلُونَكَ عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ، فَقَالَ: "كَمِ اللَّيْلَةُ؟" فَقُلْتُ: اثْنَتَانِ وَعِشْرُونَ، قَالَ: "هِيَ اللَّيْلَةُ"، ثُمَّ رَجَعَ، فَقَالَ: "أَوِ الْقَابِلَةُ"، يُرِيدُ لَيْلَةَ ثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ.

ضمرة بن عبید الله بن انیس د خپل پلار نه روایت کوی، هغه وایې: زه وم په یو مجلس د بنو

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٥١٤٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/الاعتكاف (٣٤٠١، ٣٤٠٢)، مسند احمد (٤٩٥/٣) (حسن صحيح)

سلمة کې او زه پکې ورکوټی وم، هغوی وویل: زمونږ دپاره به د رسول الله ﷺ نه د لیلة القدر باره کې څوک تپوس وکړي او دا د یوېشتمې سحر وو د رمضان؟ زه ووتلم او مخامخ شوم د هغه سره د ماښام په مانځه کې، بیا زه د هغه د کور په دروازه کې ودریدم، هغه تیر شو په ما باندې ویې ویل: ننوځه، ننوتم، هغه ته د ماښام ډوډۍ راوړې شوه، زه هغه ولیدم چې بندشوم دهغې نه دوجې دکموالي دهغې نه،هرکله چې فارغ شو،هغه وویل: ماته زما پیزار راکړه، هغه پاڅیدلو او زه هم ورسره پاڅیدم، هغه وویل: ګویا کې ستا څه حاجت دی، ما وویل: آو، تاته زه یو ټولګې د بنو سلمه رالیږلی یم، تپوس کوي ستا نه په باره د لیلة القدر کې، هغه وویل: نن شپه څومه ده؟ ما وویل: دوېشتمه، هغه وویل: همدغه شپه ده، بیا راواپس شو، ویې ویل: او یا راتلونکې، اراده یې دروېشتمه شپه وه.

## مضمون حدیث:

**قوله:** قال کنت في مجلس بني سلمة و نا اصغرهم فقالوا من يسال لنا رسول الله صلى الله عليه وسلم عن ليلة القدر...فخرجت فوافيت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم صلوة المغرب،الخ: عبدالله بن أنيس انصاری فرمائی چه زهٔ یو ځل د بنو سلمه قبیلې په یو مجلس کښې شریك ووم او زهٔ په اهل مجلس کښې د ټولو نه وړوکې ووم نو هغوی په خپلو کښې اووئیل چه څوك به وی چه زمونږ دپاره د حضور ﷺ نه د لیلة القدر په حقله سوال اوکړی او دا د یوویشتمې نیټې د صبا واقعه ده، عبدالله بن أنیس فرمائی(ما سوچ اوکړلو چه زهٔ دا کار اوکړم) چنانچه د مجلس نه اووتلم او د حضور ﷺ سره مې د ماښام مونځ اوموندلو او د مانځه نه په فارغیدلو سره زهٔ د حضور ﷺ د حجرې په دروازه باندې اودریدلم، کله چه حضور ﷺ په هغهٔ ځائې تیر شو نو ما ته ئې اوفرمائیل چه تهٔ هم دننه راشه(بظاهر دا وه چه دا کم عمره وو) زهٔ هم دننه داخل شوم او د حضور ﷺ سره کیناستم، په دې کښې حضور ﷺ ته د عشاء(ماسخوتن خوراك) راوړلې شو و(بظاهر حضور ﷺ به په خوراك کښې د شریك کیدلو اشاره کړې وی) خو زهٔ خپل خان ته ګورم چه خپل لاس روستو کوم د خوراك نه د دې وجه نه چه خوراك لږ وو کله چه حضور ﷺ د خوراك نه فارغ شو نو ما ته ئې اوفرمائیل ما ته زما پیزار راوړه(د دینه معلومه شوه چه حضور ﷺ به خوراك ته پیزار اوښکلو او په ناسته به ئې خوړله) حضور ﷺ پوښتنه اوکړله چه شاید تهٔ په څهٔ کار باندې راغلې ئې، بنده عرض اوکړو، او جی او بیا ئې د راتلو غرض بیان کړو، په دې باندې حضور ﷺ تپوس اوکړو چه راتلونکې شپه کومه یوه ده ما عرض اوکړو چه د دوویشتمې شپه ده حضور ﷺ اوفرمائیل بس هم دا لیلة القدر ده(او دا ئې اوفرمائیل او وراندې شو) بیا لږ غوندې واپس شو او وئې فرمائیل د دینه پس راتلونکې شپه یعنې د دیرویشتمې شپه ده.

[۱۳۸۰](۱)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ ابْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُنَيْسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لِي بَادِيَةً أَكُونُ فِيهَا وَأَنَا أُصَلِّي فِيهَا بِحَمْدِ اللَّهِ، فَمُرْنِي بِلَيْلَةٍ أَنْزِلُهَا إِلَى هَذَا الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: "انْزِلْ لَيْلَةَ ثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ" ،فَقُلْتُ لِابْنِهِ: كَيْفَ كَانَ أَبُوكَ يَصْنَعُ؟ قَالَ:

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۱۴۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك الاعتكاف ۶(۱۲)، (كلاهما نحوه) (حسن صحيح)

كَانَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ إِذَا صَلَّى الْعَصْرَ فَلَا يَخْرُجُ مِنْهُ لِحَاجَةٍ حَتَّى يُصَلِّيَ الصُّبْحَ، فَإِذَا صَلَّى الصُّبْحَ وَجَدَ دَابَّتَهُ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ، فَجَلَسَ عَلَيْهَا، فَلَحِقَ بِبَادِيَتِهِ.

ابن عبد الله بن أنيس الجهني د خپل پلار نه روایت کوي، هغه وايي: ما وويل: اى د الله رسوله! زما يوه باندېه ده زه په هغې کې يم، او د الله د الله حمد دى زه په هغې کې مونځ کوم، امر وکړه ماته په يوې شپې سره چې راکوزيږم دې مسجد ته، هغه وويل: راکوزيږه درويشتمه شپه، ما د هغه ځوی ته وويل: ستا پلار به څنګه کول؟ هغه وويل: وو هغه چې ننوتلو به مسجد ته کله چې به يې د مازيګر وکړو، هغه به د ضرورت دپاره نه وتلو تردې چې د سحر مونځ به يې وکړو، کله چې به يې د مازيګر مونځ وکړو نو خپله دابه به يې د مسجد په دروازه کې وموندله، په هغې کې به کېناستلو نو خپلې باندېې ته به لاړلو.

**تشريح: قوله**: حدثنا احمد بن يونس نا زهير...... قال قلت يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ان لى بادية اكون فيها و انا اصلى فيها بحمد الله،آلخ، عبدالله بن أنيس رضي الله عنه (هم هغه د تير شوې حديث راوى) فرمائى چه يو ځل ما حضور ﷺ ته عرض اوکړو چه يا رسول الله زما يو ځنګل دې (بظاهر پټې مراد دې) په هغې کښې اوسيږم او زۀ بحمد الله تعالى هلته مونځ (په جماعت) سره کوم زۀ دا غواړم چه د رمضان المبارك يوه شپه تاسو سره ستاسو په مسجد نبوى کښې تيره کړم نو تاسو ما ته اوښائى چه کوم شپه تيره کړم نو حضور ﷺ د ديرويشتمې شپې تعين اوفرمائيلو، د دۀ ځوئې وائى چه بيا ما پلار په دې اوليدلو چه د دوويشتمې نيتې د مازيګر مونځ به ئې په خپل پټى کښې اوکړو او هلته به تللو او مسجد نبوى کښې به حاضريدلو او د هغۀ وخت نه تر صبا پورې به هم په مسجد نبوى کښې وو، د صبا د مانځه نه به چه فارغ شو نو د جومات په دروازه کښې به ئې خپله سورلى موندله او په هغې باندې به سور شو او خپل استوګنى ته به واپس راتلو.

په منهل کښې ليکلى دى چه د محمد بن نصر په روايت کښې دومره زياتې دې چه دوئ د دې صحابى ته دا هم[1] فرمائيلې وو چه په دې شپه دلته راشئ نو مونځ کوئ، بيا که زړۀ دې غواړى نو تر آخرى مياشتې پورې دا معمول کوئ او که نۀ غواړئ نو مۀ کوئ.

[١٣٨١] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ، فِي تَاسِعَةٍ تَبْقَى، وَفِي سَابِعَةٍ تَبْقَى، وَفِي خَامِسَةٍ تَبْقَى".

د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دى، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه، هغه ويلي دي: ولټوئ هغې لره په اخيرنو لسو کې د رمضان نه، په نهمه کې کومې چې پاتې وي، په اوومه کې کومې چې پاتې وي، په پنځمه کې کومې چې پاتې وي.

---

[1] قوله انزل ليلة ثلاث و عشرين، زاد ابن نصر في رواية فصلّها فيه فان احببت ان تستتم آخر الشهر فافعل و ان احببت فكف)

[2]: صحيح البخاري/ليلة القدر ٣ (٢٠٢١) ٣ (٢٠٢٦)، (تحفة الأشراف: ٥٩٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣١/١، ٢٧٩، ٣٦٠، ٣٦٥) (صحيح)

## شرح حديث:

**قوله:** عن ابن عباس رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال التمسوها فى العشر الاواخر من رمضان فى تاسعة تبقى و فى سابعة تبقى و فى خامسة تبقى.

فى تاسعة تبقي،الخ، دا بدل واقع کيږی د فی العشر نه حضور ﷺ رومبي اوفرمائيل چه ليلة القدر لره په آخری کښې اولټوئ اوس وراندې د دې بيان دې چه په آخری عشره کښې په دې شپو کښې، تاسعة تبقى، يعنى باقى پاتې کيدونکی شپو کښې نهمهٔ شپه کښې(اولټوئ) د دې مصداق راجح قول په بناء باندې يوويشتمه شپه ده ځکه چه شل ورځې تيريدلو نه پس اوس يقينى توګه باندې کومې شپې چه پاتې کيږی هغه هم نهه دی د لسو کيدل غير يقينى دی، هکذا فسره مالك والجمهور ،د دې مصداق يوويشتمه شپه خو په هغه صورت کښې ده چه د مياشتې د آخر نه شپې شمارل شروع شی خو که دشمير ابتداء د آخری عشرى نه شروع کړی نو بيا دتاسعة تبقى مصداق به يوکم ديرشمه شپه وی.

**قوله:** على هذا القياس دسابعة تبقى مصداق يو صورت دريويشتمه شپه او يو صورت کښې اوويشتمه شپه به وی او د خامسة تبقى مصداق به په دواړو صورتونو کښې پنځويشتمه شپه وی.

**فائده:** په حديث کښې يوويشتمې شپې لره په تاسعة تبقى سره تعبير کړه او، فى الليلة الحادية والعشرين،ئې وننه وئيل هغه ځکه چه د عربو خلقو عادت دا دې چه هغوی تر نيمې مياشتې پورې خو تاريخ شميرلو کښې د تيرو شو ورځو اعتبار کوی مثلاً ، يولسمه شپه به وئيلې شی، الحادية عشر، او د نيمې مياشتې تيريدلو نه پس د تاريخ کله خو په تيرو شو ورځو لحاظ ساتی او ذکر کوی مثلاً، الحادى والعشرون ليکی او کله د پاتو ورځو په اعتبار سره يوشتمې شپې ته التاسعة الباقيه يا تاسعة تبقى وائی لکه څنګه چه دلته په حديث کښې راغی، او که مياشت د ديرشو اولګوئ نو د شمير شروع د آخرې نه اوکړې نو تاسعة تبقى مصداق به دوويشتمه شپه وی په دې باندې به نور کلام هم هلته راځی

## بَابُ فِيمَنْ قَالَ لَيْلَةُ إِحْدَى وَعِشْرِينَ

### باب دی په بيان د هغه چا کې چې ويلي يې دي په يوويشتمه شپه کې ده

د ليلة القدر د تعيين په سلسله کښې مصنف څلور بابونه قائم کړې دی، يوويشتمه شپه، اوولسمه شپه، اوويشتمه شپه، سبع أواخر، د کوم مصداق چه څو أقوال دی، کوم چه به په خپل ځائې کښې راشی.

[١٣٨٢](١)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ مِنْ رَمَضَانَ، فَاعْتَكَفَ عَامًا حَتَّى إِذَا كَانَتْ لَيْلَةَ إِحْدَى وَعِشْرِينَ وَهِيَ اللَّيْلَةُ الَّتِي يَخْرُجُ فِيهَا مِنَ اعْتِكَافِهِ، قَالَ: "مَنْ كَانَ اعْتَكَفَ مَعِي فَلْيَعْتَكِفِ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ، وَقَدْ رَأَيْتُ هَذِهِ اللَّيْلَةَ ثُمَّ أُنْسِيتُهَا، وَقَدْ رَأَيْتُنِي

(١): انظر حديث رقم: ٨٩٤، (تحفة الأشراف: ٤٤١٩) (صحيح)

أَسْجُدُ مِنْ صَبِيحَتِهَا فِي مَاءٍ وَطِينٍ، فَالْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ، وَالْتَمِسُوهَا فِي كُلِّ وِتْرٍ". قَالَ أَبُو سَعِيدٍ: فَمَطَرَتِ السَّمَاءُ مِنْ تِلْكَ اللَّيْلَةِ، وَكَانَ الْمَسْجِدُ عَلَى عَرِيشٍ، فَوَكَفَ الْمَسْجِدُ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ: فَأَبْصَرَتْ عَيْنَايَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَى جَبْهَتِهِ وَأَنْفِهِ أَثَرُ الْمَاءِ وَالطِّينِ مِنْ صَبِيحَةِ إِحْدَى وَعِشْرِينَ.

د ابو سعيد الخدري ﷜ نه روايت دی، هغه ويلي دي: رسول الله ﷺ وو چې اعتكاف يې كولو په مينځنۍ عشره كې د رمضان نه، اعتكاف يې وكړو يو كال، تردې چې شوه يوېشتمه شپه او دا هغه شپه وه چې هغه به پكې راوتلو د اعتكاف نه، هغه وويل: هغه چا چې د ماسره اعتكاف وكړو نو اعتكاف دې وكړي په اخيرنۍ عشره كې، او ما هغه وليده په دې شپه كې، بيا د مانه هېره شوه، او بېشكه ما خان وليدلو چې زه سجده كوم د دغې ورځې په سحر كې په اوبو او خټو كې، ولټوئ هغې لره په هر وترو كې. ويلي دي ابو سعيد: باران وورولو اسمان په دغه شپه او مسجد چت چوتره وو، نو راوڅڅيدلو مسجد. ابو سعيد وويل: زما سترګو رسول الله ﷺ وليدلو او د هغه په تندي او پوزه باندې اثر د اوبو او د خټې وو په سحر د يوېشتمې كې.

عن ابی سعيد الخدری قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يعتكف العشر الاوسط من رمضان، حضور ﷺ به د رمضان په مينځنۍ عشره كښې اعتكاف فرمائيلو او د شلم تاريخ په ماښام باندې به د اعتكاف نه بهر راوتلو، يوځل داسې اوشول چه حضور ﷺ د شلم تاريخ په ماښام كښې اوفرمائيل چه كومو خلقو ما سره د مينځنۍ عشرې اعتكاف كړې دې هغوی د آخرې عشرې اعتكاف هم اوكړی دې دپاره چه ما ته دا شپه يعنی ليلة القدر ښودلې شوې ده (چه فلانكۍ شپه ده) بيا د دې تعيين رانه هير كړې شو (البته د دې علامات راته ياد دی) او هغه دا چه د دې شپې په صبا چه كله تاسو د سحر مونځ سجده چه كوئ نو هغه به په اوبو او خاورۀ كښې كوئ(او دا نښې تراوسه پورې نۀ دې موندلې شوې) نو هغه خلق دوئ سره د آخرې عشرې په اعتكاف كښې پاتې شول، وړاندې راوی وائی چه د آخرې عشرې په ړومبۍ شپه يعنی په يووشتمه شپه كښې په مدينه منوره كښې باران اوشو او د مسجد نبوی چهت د څپر وو نو هغه رااوڅڅيدلو(او كوم ځائې كښې چه حضور ﷺ سجده كوله هغه ځائې خټې شو) د سحر مونځ چه كله حضور ﷺ اوكړو نو د حضور ﷺ په تندی مبارك باندې خاروه اولګيدله(ګويا د ليلة القدر د علاماتو تحقق اوشو، فالحمد لله على ذلك)

[۱۳۸۳] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، أَخْبَرَنَا سَعِيدٌ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ، وَالْتَمِسُوهَا فِي التَّاسِعَةِ، وَالسَّابِعَةِ، وَالْخَامِسَةِ". قَالَ: قُلْتُ: يَا أَبَا سَعِيدٍ، إِنَّكُمْ أَعْلَمُ بِالْعَدَدِ مِنَّا، قَالَ: أَجَلْ، قُلْتُ: مَا التَّاسِعَةُ وَالسَّابِعَةُ وَالْخَامِسَةُ؟ قَالَ: إِذَا مَضَتْ وَاحِدَةٌ وَعِشْرُونَ فَالَّتِي تَلِيهَا التَّاسِعَةُ، وَإِذَا مَضَى ثَلَاثٌ وَعِشْرُونَ فَالَّتِي تَلِيهَا السَّابِعَةُ، وَإِذَا مَضَى خَمْسٌ وَعِشْرُونَ فَالَّتِي تَلِيهَا الْخَامِسَةُ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: لَا أَدْرِي أَخَفِيَ عَلَيَّ مِنْهُ شَيْءٌ أَمْ لَا.

[1]: سنن النسائي/السهو ۹۸ (۱۳۵۷)، (تحفة الأشراف:۴۳۳۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/ليلة القدر ۲ (۲۰۱۶)، ۳ (۲۰۲۲)، والاعتكاف ۱ (۲۰۲۶)، ۹ (۲۰۳۶)، ۱۳ (۲۰۴۰)، صحيح مسلم/الصيام ۴۰ (۱۱۶۷)، سنن ابن ماجه/الصيام ۵۶ (۱۷۶۶)، موطا امام مالك/الاعتكاف ۶ (۹)، مسند احمد (۹۴/۳) (صحيح)

د ابو سعید الخدري رضی الله عنه نه روایت دی، هغه وايي، رسول الله ﷺ ویلي دي: ولټوئ هغې لره په اخیرنۍ عشره کې، ولټوئ هغې لره په نهمه کې او په اومه کې او په پنځمه کې. هغه وايي ما وویل ای ابو سعیدا تاسو په عدد باندې ډیر پوهه یې زمونږ نه، هغه وویل: آو، ما وویل نهمه او اومه او پنځمه څه شی دی؟ هغه وویل کله چې یوویشتمه تیره شي نو هغه نژدې ورته نهمه ده، او کله چې دروېشتمه تیره شي نو هغه نژدې ورته اومه ده، او کله چې پنځه ویشت تیرې شي نو هغې نژدې ورته پنځمه ده. ویلي دي ابوداود: زه نه پوهیږم چې د دېنه په ما باندې څه شی پټ شوی دی او که نه؟

بظاهر په دې حدیث کښې اختصار دې ګینې د مسلم شریف په حدیث کښې کوم چه هم د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه مروی دې داسې دې چه یوځل حضور ﷺ د رمضان په اولنۍ عشره کښې اعتکاف اوفرمائیلو بیا په مینځنۍ عشره کښې او بیا وړاندې هم هغه دې کوم چه دلته د ابوداؤد په روایت کښې دی.

**تشریح: قوله:** عن ابی سعید الخدري رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم التمسوها فی العشر الاواخر من رمضان.... قلت ما التاسعة و السابعة والخامسة قال اذا مضت واحدة وعشرون فالتی تلیها التاسعة،الخ، د تاسعه نه مراد تاسعه باقیه دی علی هذا القیاس سابعه اوخامسه، لکه څنګه چه په تیر شوی حدیث کښې تیر شوې دی فی تاسعة تبقی،الخ،

او تاسعه باقیه و سابعه باقیه او خامسه باقیه د هر یو تفسیر په تیر شوی باب کښې د حدیث د عبدالله بن عباس رضی الله عنه د لاندې تیر شوې دې، په دې حدیث کښې دا اضافه ده چه شاګرد د استاذ نه سوال اوکړو چه تاسو په حساب زمونږ نه زیات پوهیږی نو څکه اوښایه چه د تاسعه او سابعه وغیره مصداق څۀ دې هغوی جواب ورکړو چه د یوویشتمې شپې نه روستو چه کومه شپه راشی هم هغه د دې مصداق دې یعنی دروېشتمه شپه،

## یو اشکال او جواب:

په دې تفسیر کښې یو قوی اشکال دې هغه دا چه د دېنه وړاندینی روایت کښې د تاسعه تفسیر په یوویشتمې شپې سره تیر شوې دې او دا موجوده ترجمة الباب هم په یوویشتمې شپې باندې دې، لهذا دا تفسیر د ترجمة الباب هم خلاف دې او تیر شوی تفسیر هم خلاف دې. د دې یو جواب خو دا دې چه حضرت ابوسعید الخدری رضی الله عنه د حساب دآسانتیا دپاره میاشت د دیرشو ورځو لګولې ده چه په دې صورت کښې د تاسعه مصداق دا دې خو ظاهره دا ده چه د دیرشو کیدل یقینی خبره نۀ ده. څکه چه میاشت د یوکم دیرشو اولګوې او په دې کښې یوه ورځ کمه کړې شی نو بیا هغه د دوویشتمې په ځائې د یوویشتمې شی، دویم جواب د دې هغه دې کوم چه علامه زرقانی ورکړې دې چه د تاسعه مصداق هم دووشتمه شپه ده خو د حدیث مطلب دا دې چه لیلة القدر لره اولټوئ په دې شپه کښې کوم نه پس چه تاسعه باقی پاتې شی او دا شپه کومې نه پس چه تاسعه یعنی دوویشتمه شپه راځی هغه ظاهره ده چه هم یوویشتمه شپه ده، (من البذل بتوضیح) زمونږ شیخ نور الله مرقده به فرمائیل چه ماته د زرقانی جواب ډیر خوښ دې

قال ابوداوٗد لا ادری اخفی علیّ منه شئ ام لا، غالبا امام ابوداوٗد ته هم دا اشکال کیږی کوم چه مونږ پورته لیکلي دي چه دویشتمي سره تفسیر څنګه صحیح کیږی، مصنف وائی چه نهٔ پوهیږم چه څهٔ چل اوشو چه دا حدیث ما ته په ښهٔ شان نهٔ دي یاد یا بله څه خبره ده مثلا د یو راوی د طرف نه چه وهم دي، والله تعالی اعلم.

## بَابُ مَنْ رَوَى أَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعَ عَشْرَةَ

### باب دی په بیان د هغه چا کې چې روایت یې کړی دی چې دا ولسمه شپه ده

[١٣٨٤]() حَدَّثَنَا حَكِيمُ بْنُ سَيْفٍ الرَّقِّيُّ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ زَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اطْلُبُوهَا لَيْلَةَ سَبْعَ عَشْرَةَ مِنْ رَمَضَانَ، وَلَيْلَةَ إِحْدَى وَعِشْرِينَ، وَلَيْلَةَ ثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ، ثُمَّ سَكَتَ".

د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی، هغه وایي: مونږ ته رسول الله ﷺ وویل: طلب کړئ هغې لره په اولسمه شپه کې د رمضان نه، او په یوویشتمه شپه کې، او په دروېشتمه شپه کې، بیا چوپ شو.

## بَابُ مَنْ رَوَى فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ

### باب دی په بیان د هغه چا کې چې روایت یې کړی دی، چې په اخیري اوو کې ده

[١٣٨٥]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ".

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی، هغه ویلي دي: رسول الله ﷺ ویلي دي: لیلة القدر په اخیري اوه شپو کې ولټوئ.

**تشریح: قوله**: تحروا لیلة فی السبع الاواخر، د سبع اواخر په مصداق کښې څو اقواله دی(١) آخری اووهٔ ورځې یعنی د دیرویشتمې شپې نه د میاشتې آخره پورې(٢) السبع بعد العشرین یعنی د آخری عشرې رومبنۍ اووهٔ ورځې د یوویشت نه تر اوویشتو پورې (٣) سبوع اربع (د رمضان آخری یعنی څلورمه هفته) د دوویشتو نه تر اتهٔ ویشتو پورې(۴) آخری د اووهٔ عدد یعنی ٢٧ (اوویشتمه شپه)

### دفع دتعارض بین الحدیثین:

اوس به دلته دا اشکال وی چه دا د، حدیث التسمواها فی العشر الاواخر، خلاف دي، جواب دا دي چه کیدې شی چه حضور ﷺ ته رومبې دا ښودلې شوې وی چه لیلة القدر په آخری عشره کښې ده ا روستو دا ښودلې شوې وی چه د آخری عشرې په سبع اواخر کښې ده (سبع اواخر هم د آخری عشرې یو فرد دې) یا دا اوونیلې شی چه د قوی سرې دپاره حضور ﷺ آخری عشره فرمائیلې وی او د ضعیف دپاره سبع اواخر، او د امام شافعی جواب خو

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٩١٧٦) (ضعيف)

(٢): صحيح مسلم/الصيام ٤٠ (١١٦٥)، سنن النسائي/الكبري/ الاعتكاف (٣٤٠٠)، (تحفة الأشراف: ٧٢٣٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الاعتكاف ٦(١١)، مسند احمد (٢/٣٧، ٦٢، ٧٤، ١١٣)، سنن الدارمي/الصوم ٥٦ (١٨٢٤) (صحيح)

مشهور دي کوم لره چه امام ترمذی هم نقل کړي دي هغه دا چه حضور ﷺ د سائل د سوال مطابق جواب ورکړي دي، چا چه وئیلي وو یا رسول الله ﷺ مونږ لیلة القدر لره په فلانکۍ شپه کښې اولټوو حضور ﷺ اوفرمائیل آو هم په دې کښې ئې اولټوئ چا د بلې شپې په باره کښې پوښتنه اوکړله چه په دې کښې اولټوو حضور ﷺ اوفرمائیل آو په دې کښې ئې اولټوئ (منهل)

## بَابُ مَنْ قَالَ سَبْعٌ وَعِشْرُونَ

### باب دی په بیان د هغه چاکې چې وېلي یې دي: په اوېشتمه شپه ده

[١٣٨٦] (١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ مُطَرِّفًا، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ، قَالَ: "لَيْلَةُ الْقَدْرِ لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ".

د معاویة بن ابي سفیان نه روایت دی هغه روایت کوي د نبي ﷺ نه په باره د لیلة القدر کې هغه ویلي دي لیلة القدر اوېشتمه شپه ده.

هم دا حافظ د جمهورو مسلك لیکلي دي، ابی بن کعب رضي الله عنه خو حلفا یعنی په قسم سره دا وائی لکه څنګه تیر شول. دغه شان په بیهقی وغیره کښې د ابن عباس رضي الله عنه حدیث دي چه د حضور ﷺ په خدمت کښې یو سړي راغلو اوعرض ئې اوکړو چه، یانبی الله انی شیخ کبیر علیل، قیام لیل په ما باندې ډیر سخت دي نو څکه ما ته خو بس حضور ﷺ دي یوه شپه اوښائی چه په هغې کښې ماته د لیلة القدر ملاویدو توقع وی نو په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائیل چه، علیك بالسابعة، چه د آخری عشرې اوومې شپې لره اختیار کړه، دغه شان په مسند احمد کښې د ابن عمر رضي الله عنه نه مرفوعا مروی دی ، من کان متحریها فلیتحرها لیلة سبع و عشرین(منهل)

## بَابُ مَنْ قَالَ هِيَ فِي كُلِّ رَمَضَانَ

### باب دی په بیان د هغه چاکې چې ویلي یې دي: هغه په ټول رمضان کې ده

دا ترجمه بلفظ الحدیث ده، او زما په خیال کښې د دې دوه مطلبه کیدې شی(١) لیلة القدر هم په رمضان کښې دې او د رمضان هره شپه کښې د دې امکان دې یعنی په پوره میاشت کښې ګرځی راګرځی، د اخری عشرې یا د بلې یوې شپې پورې خاص نهٔ دې(کما حُكِيَ عن ابی حنیفة) دویم مطلب دا دې چه د هر کال په رمضان کښې موندلې کیږی د یوخاص رمضان پورې خاص نهٔ دي(لهذا هغه چه یو قول دې چه لیلة القدر د حضور ﷺ په زمانه کښې صرف یو ځل موندلې شوې دې د هغې پس نه هغه غلط دې)

[١٣٨٧] (٢) حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ زَنْجُوَيْهِ النَّسَائِيُّ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَسْمَعُ عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ، فَقَالَ: "هِيَ فِي كُلِّ رَمَضَانَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ سُفْيَانُ، وَشُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ مَوْقُوفًا عَلَى ابْنِ عُمَرَ، لَمْ يَرْفَعَاهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٤٤٠) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٠٦٥) (ضعيف) والصحيح موقوف

د عبد الله بن عمر ﷺ نه روایت دی هغه وایي: د رسول الله ﷺ نه تپوس وشو د لیلة القدر باره کي او ما اوریدل، هغه وویل: هغه په ټول رمضان کي ده. ابوداود ویلي دي: نقل کړی دی دې لره سفیان او شعبه د ابو اسحاق نه په طریقي د وقف سره په ابن عمر باندې، دواړه نه دی مرفوع کړی نبي ﷺ ته.

الحمد لله د لیلة القدر ابواب پوره شول. الله تعالی دې په خپل فضل او کرم سره او د حدیث شریف د خدمت په طفیل سره د دې شپې د عبادتونو فراخه برخه مونږ ته نصیب کړی، آمین.

## أَبْوَابِ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ وَتَحْزِيبِهِ وَتَرْتِيلِهِ

### قرات د قرآن د دې جز مقرر کول او ترتیل سره د لوستلو مسائل

## بَابٌ فِي كَمْ يُقْرَأُ الْقُرْآنُ

### باب دی چې څومره وقت کې به قرآن لوستلی شي

### د ما قبل سره ربط:

اوس د دې ځائي نه مضمون بدلیږی او د ماقبل سره مناسب دویم مضمون شروع کیږی څکه چه په ماقبل کښې د قیام اللیل او د شب قدر ذکر وو او دلته دا بیانوی چه سړي لره روزانه د قرآن پاك کم نه کم او زیات نه زیات څومره اندازه لوستل پکار دی او د قرآن د قراءت غوره محل او ځائي قیام اللیل یعنی د تهجد و مونځ دی، د ماقبل سره هم دا مناسبت دی.

[١٣٨٨](١)حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: أَخْبَرَنَا أَبَانُ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: "اقْرَأِ الْقُرْآنَ فِي شَهْرٍ" قَالَ: إِنِّي أَجِدُ قُوَّةً، قَالَ: "اقْرَأْ فِي عِشْرِينَ"، قَالَ: إِنِّي أَجِدُ قُوَّةً، قَالَ: "اقْرَأْ فِي خَمْسَ عَشْرَةَ" قَالَ: إِنِّي أَجِدُ قُوَّةً، قَالَ: "اقْرَأْ فِي عَشْرٍ" قَالَ: إِنِّي أَجِدُ قُوَّةً، قَالَ: "اقْرَأْ فِي سَبْعٍ وَلَا تَزِيدَنَّ عَلَى ذَلِكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ مُسْلِمٍ أَتَمُّ.

د عبد الله بن عمرو نه روایت دی، بېشکه نبي ﷺ هغه ته وویل ولوله قران په یوې میاشت کي هغه وویل زه مومم طاقت. هغه وویل: په شلو کي وایه. هغه وویل: زه طاقت لرم، هغه وفرمایل: په پنځلسو کي وایه. هغه وویل: زه طاقت لرم، هغه وفرمایل: ولوله په لسو کي هغه وویل: زه طاقت لرم. هغه وفرمایل: په اوو کي وایه. او زیادت مه کوه په دې باندې. ویلي دي ابوداود: او حدیث د مسلم اتم دی.

قوله اقرأ فی سبع و لا تزیدنّ علی ذلك، حضور ﷺ صحابی ﷺ ته په اووۀ ورځو کښې د قرآن پاك د ختمولو اجازت ورکړې دې او په دې باندې د زیاتی نه ئې منع فرمائیلې ده خو دا منع د تحریم دپاره نه ده بلکه دا نهی د شفقت نهی ده دې دپاره چه دوئ باندې مشقت اوچتول رانۀ شی او په یو مقدار باندې پوره کول او دوام اوشی، چنانچه د دې نه وړاندې په حدیث

(١): صحيح البخاري/فضائل القرآن ٣٤ (٥٠٥٣، ٥٠٥٤)، صحيح مسلم/الصيام ٣٥ (١١٥٩)، (تحفة الأشراف: ٨٩٦٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/القراءات ١٣ (٢٩٤٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٨ (١٣٤٦)، مسند احمد (٢/١٦٣، ١٩٩)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ٣٢ (٣٥١٤) (صحيح)

کښې هم د دې صحابي په اصرار باندې حضور ﷺ د اووه ورځو په ځائې په دريو ورځو کښې د ختم کولو اجازت فرمائيلې دې او وئې فرمائيل، لا يفقه من قرأه فى اقل من ثلاث، يعنى د دريو ورځو نه په کمو کښې ختم کونکې په فهم د معنى او تدبر سره نۀ شي لوستلې.

## د قران په ختمولو کښې د حضور صلى الله عليه وسلم معمول:

په منهل کښې د حضرت عائشه رضي الله عنها يو حديث نقل کړې دې ، ان النبى صلى الله عليه وسلم كان لا يختم القرآن فى اقل من ثلاث، (رواه ابوعبيد من طريق الطيب بن سليمان عن عمرة عن عائشة)
دغه شان د سنن سعيد بن منصور په حواله سره په صحيح سند سره د ابن مسعود رضي الله عنه اثر نقل کړې دې چه، اقرؤا القرآن فى سبع و لا يقرؤه فى اقل من ثلاث.
په علماؤ کښې دا مشهوره ده چه د دريو ورځو نه په کمو کښې او د څلويښت ورځو نه په زياتو کښې ختمول نۀ دی پکار بس کم نه کم په دريو ورځو کښې او زيات نه زيات په څلويښتو ورځو کښې يو ختم کول پکار دی، روزانه درې پاؤ سپاره لوستلو سره په څلويښتو ورځو کښې يو ختم به اوشي.
امام نووی فرمائي په دې حديث کښې اقتصاد فى العبادة، طرف ته اشاره ده او دا چه د قرآن کريم تلاوت په تدبر سره کيدل پکار دی.

## د قران په ختمولو کښې د سلفو معمول:

د دېنه پس هغه ليکى چه د قرآن په تلاوت کښې د سلفو معمول مختلف پاتې شوې دی د خپل خپل حال او فهم په اعتبار سره، چنانچه د بعضو عادت په يو مياشت کښې د ختم پاتې شوې دې او بعضو په شلو ورځو کښې او بعضو په لسو ورځو کښې او د اکثرو په اووه ورځو کښې او د ډيرو په دريو ورځو کښې او د څۀ په يوه شپه او ورځ کښې او بعضو صرف په يوه شپه کښې او بعضو په يوه ورځ او شپه کښې درې ختمونه کړې دی او بعضو اتۀ ختمونه کړې دی، د دېنه زيات د چا عادت او معمول زمونږ په علم کښې نشته دې.
هغه فرمائي چه سړی لره د خپل مشغولتيا او فرصت په لحاظ سره د تلاوت مقدار متعين کول پکار دی د دې دپاره چه په نورو ذمه واريانو کښې خلل واقع نۀ شي.

[١٣٨٩] (¹)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، أَخْبَرَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صُمْ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، وَاقْرَأِ الْقُرْآنَ فِي شَهْرٍ" فَنَاقَصَنِي، وَنَاقَصْتُهُ، فَقَالَ: "صُمْ يَوْمًا وَأَفْطِرْ يَوْمًا". قَالَ عَطَاءٌ: وَاخْتَلَفْنَا عَنْ أَبِي، فَقَالَ بَعْضُنَا: سَبْعَةَ أَيَّامٍ، وَقَالَ بَعْضُنَا: خَمْسًا.

د عبد الله بن عمرو نه روايت دی هغه ويلي دي: ماته رسول الله ﷺ وويل: د هرې مياشت نه درې ورځې روژه نيسه، او قرآن لوله په مياشت کې. مونږ يو بل لره کمولو، هغه وويل: روژه نيسه يوه ورځ او يوه ورځ افطار کوه. عطاء وايي: مونږ اختلاف کړی دی د خپل پلار نه، بعضو زمونږ نه اوه ورځې وويله، او بعضو زمونږ نه پنځه ورځې وويله.
**تشريح: قوله:** فناقصنى و ناقصته، يعنى حضور ﷺ به زما نه د تلاوت د مقدار د کمولو کوشش کولو او ما به د حضور ﷺ نه د ختم د مودې کمولو کوشش کولو.

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٨٦٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٢/٢، ٢١٦) (صحيح)

[١٣٩٠] (١) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، أَخْبَرَنَا قَتَادَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فِي كَمْ أَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ قَالَ: "فِي شَهْرٍ" قَالَ: إِنِّي أَقْوَى مِنْ ذَلِكَ، يُرَدِّدُ الْكَلَامَ أَبُو مُوسَى وَتَنَاقَصَهُ حَتَّى قَالَ: "اقْرَأْهُ فِي سَبْعٍ" قَالَ: إِنِّي أَقْوَى مِنْ ذَلِكَ، قَالَ: "لَا يَفْقَهُهُ مَنْ قَرَأَهُ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ".

د عبد الله بن عمرو نه روايت دی، بېشکه هغه ووېل: ای د الله رسوله! په څومره ورځو کې قرآن لولم؟ هغه وفرمايل: په يوه مياشت کې، هغه ووېل: زه د دېنه زيات طاقت لرم، ابو موسى به خبره بار بار کوله، او هغه به کمولو، تردې چې ورته يې ووېل: لوله هغې لره په اوه ورځو کې، هغه ووېل: زه د دېنه زيات طاقت لرم، هغه وفرمايل: نه پوهېږي هغه څوک چې ولولي هغې لره کم د دريو نه.

[١٣٩١] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَفْصٍ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقَطَّانُ خَالُ عِيسَى بْنِ شَاذَانَ، أَخْبَرَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا الْحَرِيشُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْرَأِ الْقُرْآنَ فِي شَهْرٍ" قَالَ: إِنَّ بِي قُوَّةً، قَالَ: "اقْرَأْهُ فِي ثَلَاثٍ"، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: سَمِعْتُ أَبَا دَاوُدَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ يَعْنِي ابْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: عِيسَى بْنُ شَاذَانَ كَيِّسٌ.

د عبد الله بن عمرو نه روايت دی هغه ويلي دي: ماته رسول الله ﷺ وفرمايل: قران په يوه مياشت کې لوله، هغه ووېل: زه زيات طاقت لرم، هغه ووېل: ولوله هغې لره په دريو کې، ابو علي ويلي دي: ما د ابوداود نه اوريدلي دي هغه ويل: ما اوريدلي دي د احمد نه يعني د ابن حنبل نه هغه ويل: عيسى بن شاذان اوښيار دی.

**تشريح: قوله**: عيسى بن شاذان كيّسٌ، عيسى بن شاذان ډېر هوښيار دی.

## باب تَحْزِيبِ الْقُرْآنِ

### باب دی په بيان د تجزيي د قرآن کې

تحزيب د حزب نه ماخوذ دې، حزب د روزانه معمول او وظيفې ته وائی کوم ته چه ورد هم وئيلې کيږی يعنی د روزانه تلاوت مقدار متعين کول.

په تير شوې باب کښې يو حديث تير شوې دې چه عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ ته حضور ﷺ فرمائيلې وو چه قرآن پاك په اووه ورځو کښې ختموه او په دې باندې زيادت مه کوه، د دې د وړاندې په عام توګه باندې صحابه کرامو او نورو علماؤ او قراؤ د قرآن کريم سورتونو لره په اووه برخو کښې تقسيم کړې وو، چنانچه مشهوره ده چه د قرآن پاك اووه منزلونه دی، هر منزل د يوې ورځې وظيفه ده، منزل خو زمونږ په عرف کښې وائی په زړه اصطلاح کښې حزب وائی لکه څنګه چه په ترجمة الباب کښې دی او وړاندې په حديث کښې به هم راشی، كيف تحزبون القرآن، نور کلام به هلته راشی.

[١٣٩٢] (٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ ابْنِ الْهَادِ، قَالَ: سَأَلَنِي نَافِعُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، فَقَالَ لِي: فِي كَمْ تَقْرَأُ الْقُرْآنَ؟ فَقُلْتُ: مَا أُحَزِّبُهُ، فَقَالَ لِي نَافِعٌ: لَا تَقُلْ مَا أُحَزِّبُهُ، فَإِنَّ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٩٥١) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦٢٣) (حسن صحيح)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٥٣٢) (صحيح)

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "قَرَأْتُ جُزْءًا مِنَ الْقُرْآنِ"، قَالَ: حَسِبْتُ أَنَّهُ ذَكَرَهُ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ.

د ابن الهاد نه روایت دی هغه ویلي دي: مانه تپوس وکړو نافع بن جبیر نه مطعم، هغه وویل ماته: په څو ورځو کې قرآن لولي؟ ما وویل: زه یي نه تجزیه کوم، ماته نافع وویل: ته مه وایه چې زه یي نه تجزیه کوم، بېشکه رسول الله ﷺ ویلي دي: ما لوستلی دی یو جزء د قرآن نه، هغه وایي: زما دا ګمان دی چې هغه نقل کړی دی د مغیرة بن شعبة نه.

**تشریح: قوله:** قلت ما أحزّبه..... **لا** تقل ما أحزّبه، د سائل د سوال په جواب کښې ابن الهاد اوونیل چه زۀ د وظیفې په توګه د قرآن مقدار نۀ متعین کوم (بلکه څومره چه په آسانتیا سره کیدې شی تلاوت کوم) د دېنه بظاهر دا معلومیږی چه هغۀ مقدار لره متعین کول نۀ خوښول، نو ځکه هغوی اووئیل چه داسې مۀ وایه دا خو د حضور ﷺ نه ثابت دی.

[۱۳۹۳] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَخْبَرَنَا قُرَّانُ بْنُ تَمَّامٍ ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو خَالِدٍ وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْلَى، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ فِي حَدِيثِهِ: أَوْسُ بْنُ حُذَيْفَةَ، قَالَ: قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي وَفْدِ ثَقِيفٍ، قَالَ: فَنَزَلَتِ الْأَحْلَافُ عَلَى الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، وَأَنْزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَنِي مَالِكٍ فِي قُبَّةٍ لَهُ، قَالَ مُسَدَّدٌ: وَكَانَ فِي الْوَفْدِ الَّذِينَ قَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ثَقِيفٍ، قَالَ: كَانَ كُلَّ لَيْلَةٍ يَأْتِينَا بَعْدَ الْعِشَاءِ يُحَدِّثُنَا، وقَالَ أَبُو سَعِيدٍ: قَائِمًا عَلَى رِجْلَيْهِ حَتَّى يُرَاوِحَ بَيْنَ رِجْلَيْهِ مِنْ طُولِ الْقِيَامِ، وَأَكْثَرُ مَا يُحَدِّثُنَا مَا لَقِيَ مِنْ قَوْمِهِ مِنْ قُرَيْشٍ، ثُمَّ يَقُولُ: "لَا سَوَاءَ كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ مُسْتَذَلِّينَ، قَالَ مُسَدَّدٌ: بِمَكَّةَ، فَلَمَّا خَرَجْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ كَانَتْ سِجَالُ الْحَرْبِ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ نُدَالُ عَلَيْهِمْ، وَيُدَالُونَ عَلَيْنَا"، فَلَمَّا كَانَتْ لَيْلَةٌ أَبْطَأَ عَنِ الْوَقْتِ الَّذِي كَانَ يَأْتِينَا فِيهِ، فَقُلْنَا: لَقَدْ أَبْطَأْتَ عَنَّا اللَّيْلَةَ، قَالَ: "إِنَّهُ طَرَأَ عَلَيَّ جُزْئِي مِنَ الْقُرْآنِ فَكَرِهْتُ أَنْ أَجِيءَ حَتَّى أُتِمَّهُ". قَالَ أَوْسٌ: سَأَلْتُ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يُحَزِّبُونَ الْقُرْآنَ؟ قَالُوا: ثَلَاثٌ وَخَمْسٌ وَسَبْعٌ وَتِسْعٌ وَإِحْدَى عَشْرَةَ وَثَلَاثَ عَشْرَةَ وَحِزْبُ الْمُفَصَّلِ وَحْدَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ أَتَمُّ.

عثمان بن عبد الله بن اودس د خپل نیکه نه روایت کوي. ویلي دي عبد الله بن سعید په خپل حدیث کې: اوس بن حذیفه. هغه وایي: مونږ راغلو رسول الله ﷺ ته په وفد د ثقیف کې، هغه وایي: مغیرة بن شعبة ته معاهدین راغلل، او رسول الله ﷺ ځای ورکړو بني مالک ته د هغه په قبه کې. مسدد وایي: او په وفد کې وو هغه کسان چې راغلي وو رسول الله ﷺ ته د ثقیف نه. هغه وایي: هغه به مونږ ته هره شپه د ماسخوتن نه وروسته راتلو مونږ سره به یي خبرې کولي. او ابو سعید ویلي دي: ولاړ به وو تردې چې یوه خپه به یي په بله ذمه کوله د اوږد ودریدو نه. او ډیرې خبرې به یي چې کولي نو هغه به وې چې دا ورسره مخامخ شوی وو د خپل قوم د قریشو سره، بیا به هغه ویل: یو شان نه دي مونږ کمزوري وو. ویلي دي مسدد: په مکه کې. هرکله چې مونږ مدینې ته راووتلو وه بوکه د جنګ زمونږ او د دوی په مینځ کې، مونږ به اړوله په هغوی او هغوی به اړوله په مونږ، یوه شپه د هغه وقت نه وروسته شو په کوم کې چې به مونږ ته راتلو، مونږ وویل: نن شپه ته مونږ ته وروسته راغلې، هغه وویل: ماته خپل جزء د قرآن نه رامخامخ شو، ما بده وګڼله چې راشم تردې چې هغه پوره کړم، ویلي دي اوس: ما تپوس وکړو د ملګرو د صحابو نه هغوی به څنګه تجزیه کوه قرآن؟ هغوی وویل: درې، پنځه، اوه، نهه، یوولس، دیارلس، او جزء د مفصل یو اځې.

۱): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۷۸ (۱۳۴۵)، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۷) (ضعیف)

ویلي دي ابوداود: د ابو سعید حدیث اتم دی.

**مضمون حدیث:**

**قوله: کان کل لیلة یاتینا بعدالعشاء:** مونږ ته (د زړهٔ خوشحالولو او خبرو اترو کولو دپاره) حضور ﷺ به روزانه د ماسخوتن نه روستو تشریف راوړلو او زمونږ خیمې سره به په ولاړه ولاړه بغیر د تکلف نه تر ډیر وخته پورې خبرې اترې کولې، چه دهغې د وجه نه به د، مراوحت بین القدمین، نوبت راتلو، یعنی کله به ئې په دې پښې باندې زور اچولو او اودریدلو به او کله به ئې په هغه پښې باندې زور اچولو. او زیاتره چه به حضور ﷺ کوم ذکر او تذکره فرمائیله هغه به د هغهٔ ناانصافیانو او زیاتو وه کوم چه به حضور ﷺ د خپل قوم قریش دطرف نه زغملې وې.

**ثم یقول لا سواء کنا مستضعفین مستذلین،** مونږ او هغوی یعنی کفار قریش په مکه کښې د قیام یعنی قبل الهجرت برابر درجه کښې نهٔ وو بلکه هغه خلق دغه وخت کمزورې او ضعیف او خراب حالت کښې وو.

**فلما خرجنا الی المدینة کانت سِجال الحرب بیننا و بینهم،** بیا کله چه مونږ هجرت اوکړو او مدینې ته راغلو (نو دلته راتللو سره مونږ ته قوت او شوکت حاصل شو) نو د جنګ ډول زمونږه او د هغوی په مینځ کښې مشترك شو، یعنی کله به زمونږ نوبت وو د بوکې اچولو او اوبو راویښکلو او کله د هغوی.

**ندال علیهم و یدالون علینا،** دا جمله د ړومبنۍ جملې پشان ده، یعنی کله به دولة او غلبه زمونږه وه او کله د هغوی، د عربو په محاوره کښې وئیلې کیږی چه، اُدیل علی اعدائنا ای نصرنا علیهم، یعنی مونږ ته په دښمن باندې غلبه حاصله شوه، دا په اصل کښې د دولة یعنی په معنی د غلبه نه ماخوذ دې.

**فلما کانت لیلة ابطاء عن الوقت الذي کان یاتینا فیه،** یعنی یوه ورځ داسې اوشول چه په کوم معین وخت کښې به حضور ﷺ راتلو د هغې نه ئې ناوخته کړو کله چه ئې تشریف راوړو نو مونږ په تاخیر سره د راتللو په حقله پوښتنه اوکړه نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه د دې وجه دا اوشوه چه زما د روزانه کوم ورد او وظیفه وه هغه پاتې شوې وه د هغې په پوره کولو کښې ناوخته شو د دېنه د روزانه وظیفه او معمول مقررولو اصل معلوم شو دې ته تحزیب وائی لهذا ترجمة الباب ثابت شو.

**سالت اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم کیف تحزبون القرآن،** یعنی د قرآن کریم څومره حصې کوئ یعنی د ورځې لوستلو مقدار څنګه مقرره وئ؟ د دې سوال په جواب کښې هغوی اوښودل چه په یوه ورځ کښې درې سورتونه او په دویمه ورځ کښې پنځه سورتونه او په دریمه ورځ کښې اووهٔ سورتونه او په څلورمه ورځ کښې نههٔ سورتونه او په پنځمه ورځ کښې یولس سورتونه او په شپږمه ورځ کښې دیارلس سورتونه او په اووئمه ورځ کښې د مفصل ټول سورتونه (کوم چه شپږ اویا دی)

**د تحزیب "فمی بشوق" تشریح:**

ددې تقسیم نوم تحزیب دې، او دې ته د قراؤ په عرف کښې تحزیب فمی بشوق وئیلې شی، په فمی بشوق کښې اووه حروف دی، هر منزل او حزب چه د کوم سورت نه شروع دې، دهغې سورة د نوم رومبې حرف ددې مجموعه حروف (فمی بشوق) نه اخستلې شوې دې. لکه اول منزل د سورة فاتحې نه شروع کیږی، چه دهغې په شروع کښې فاء ده. او دویم منزل د مائدې نه شروع کیږی، دهغې دپاره میم دې، دریم منزل د سورة یونس نه شروع کیږی، دهغې دپاره یاء ده، څلورم منزل د سورة بنی اسرائیل نه شروع کیږی، دهغې دپاره باء ده، پنځم د سورة شعراء نه شروع کیږی، دهغې دپاره شین دې، او شپږم د سورة والصافات نه شروع کیږی، دهغې دپاره واؤ دې، او اووم منزل د سورة ق نه شروع کیږی

[١٣٩٤](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، أَخْبَرَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَفْقَهُ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ".

د عبد الله نه یعني د ابن عمرو نه روایت دی هغه ویلي دي: رسول الله ﷺ ویلي دي: نه پوهیږي هغه څوک چې قرآن ولولي کم د دریو نه.

[١٣٩٥](٢)حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ حَبِيبٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ الْفَضْلِ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِي كَمْ يُقْرَأُ الْقُرْآنُ؟ قَالَ: "فِي أَرْبَعِينَ يَوْمًا" ثُمَّ قَالَ: "فِي شَهْرٍ"، ثُمَّ قَالَ: "فِي عِشْرِينَ"، ثُمَّ قَالَ: "فِي خَمْسَ عَشْرَةَ"، ثُمَّ قَالَ: "فِي عَشْرٍ"، ثُمَّ قَالَ: "فِي سَبْعٍ" لَمْ يَنْزِلْ مِنْ سَبْعٍ.

د عبد الله بن عمرو نه روایت دی بیشکه هغه تپوس وکړو د رسول الله ﷺ نه، په څومره وخت کې به قرآن لوستلی شي؟ هغه وویل: په څلوېښتو کې، بیا هغه وویل: په څلوېښتو کې، بیا هغه وویل: په شلو کې، بیا هغه وویل: په پنځلسو کې، بیایي وویل: په لسو کې، بیا هغه وویل: په اوو کې، د اوو نه راښکته نه شو.

**تشریح: قوله**:ثم قال في سبع لم ينزل من سبع:

نبی کریم (ﷺ) اجازت ورکولو کښې د اووه ورځو نه کمې کړې نه دی، یعنی په دغې مجلس کښې، ګنی ددې نه مخکښې تیر شوې دی، چه نبی کریم (ﷺ) هغوی ته د دریو ورځو پورې اجازت ورکړې وو.

[١٣٩٦](٣)حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، وَالْأَسْوَدِ، قَالَا: أَتَى ابْنَ مَسْعُودٍ رَجُلٌ، فَقَالَ: إِنِّي أَقْرَأُ الْمُفَصَّلَ فِي رَكْعَةٍ، فَقَالَ: أَهَذًّا كَهَذِّ الشِّعْرِ وَنَثْرًا كَنَثْرِ الدَّقَلِ؟ لَكِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْرَأُ النَّظَائِرَ السُّورَتَيْنِ فِي رَكْعَةٍ النَّجْمَ، وَالرَّحْمَنَ فِي رَكْعَةٍ، وَاقْتَرَبَتْ، وَالْحَاقَّةَ

(١): سنن الترمذي/القراءات ١٣ (٢٩٤٩)، ن الكبري/ فضائل القرآن (٨٠٦٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٨ (١٣٤٧)، (تحفة الأشراف: ٨٩٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٦٤، ١٦٥، ١٨٩، ١٩٥)، دي/فضائل القرآن ٣٢ (٣٥١٤) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/ القراءات ١٣ (٢٩٤٧)، ن الكبري/فضائل القرآن (٨٠٦٨، ٨٠٦٩)، (تحفة الأشراف: ٨٩٤٤) (صحيح)

(٣): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩١٨٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ١٠٦ (٧٧٥)، وفضائل القرآن ٦ (٤٩٩٦)، ٢٨ (٥٠٤٣)، صحيح مسلم/المسافرين ٤٩ (٧٢٢)، سنن الترمذي/الصلاة ٣٠٥ (الجمعة ٦٩) (٦٠٢)، سنن النسائي/الافتتاح ٧٥ (١٠٠٧)، مسند احمد (١/٣٨٠، ٤١٧، ٤٢٧، ٤٣٦، ٤٥٥) (صحيح)

فِي رَكْعَةٍ، وَالطُّورَ، وَالذَّارِيَاتِ فِي رَكْعَةٍ، وَإِذَا وَقَعَتْ، وَنُونَ فِي رَكْعَةٍ، وَسَأَلَ سَائِلٌ وَالنَّازِعَاتِ فِي رَكْعَةٍ، وَوَيْلٌ لِلْمُطَفِّفِينَ، وَعَبَسَ فِي رَكْعَةٍ، وَالْمُدَّثِّرَ، وَالْمُزَّمِّلَ فِي رَكْعَةٍ، وَهَلْ أَتَى، وَلَا أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فِي رَكْعَةٍ، وَعَمَّ يَتَسَاءَلُونَ، وَالْمُرْسَلَاتِ فِي رَكْعَةٍ، وَالدُّخَانَ، وَإِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ فِي رَكْعَةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا تَأْلِيفُ ابْنِ مَسْعُودٍ رَحِمَهُ اللَّهُ.

د علقمه او اسود نه روایت دی، دواړو ویلي دي: ابن مسعود ته یو سړی راغی هغه وویل: زه مفصل په یو رکعات کي لولم، هغه وویل: ایا د شعر پشان یي زر زر وایي، او زر زریي شیندې پشان د بېکاره کجورو، لکن نبي ﷺ به لوستلو دوه متقارب سورتونه په یو رکعات کي، رحمن او نجم په رکعات کي، واقتربت او الحاقه په یو رکعات کي، او الطور او الذاریات په بل رکعات کي، اذا وقعت او نون په یو رکعات کي، او سال سائل او والنازعات په یو رکعات کي، او ویل للمطففین او عبس په یو رکعات کي، او المدثر او المزمل په یو رکعات کي، او هل اتی او لا اقسم بیوم القیامة په یو رکعات کي، او عم یتساءلون او و المرسلات په یو رکعات کي، او الدخان او اذا الشمس کورت په یو رکعات کي. ابو داود ویلي دي: دا ترتیب د ابن مسعود رضی الله عنه وو.

**تشریح: قوله**: اتی ابن مسعود رجل فقال انی اقرء المفصل فی رکعة:
حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته یو سړي راغلو، او ورته ئي اوئیل، (ماشاء الله ماته قرآن دومره پوخ یاد دي) چه زهٔ د مفصل ټول سورتونه په یو رکعت کښې لولم، ددغې سړی نوم نهیک بن سنان دې، (کما فی روایة المسلم) په دې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل: اهذا کهذ الشعر، چه د شعرونو پشان زر زر ئي لولې، د هذ معنی اسراع شدید ده، ډیر په تیزۍ او زر زر یو کار کول، دلته کښې دا اشکال پیدا کیږی، چه شعر خو ډیر په ښه انداز او اطمینان سره لوستلي کیږی، په هغې کښې تلوار نه شي کولې، جواب دادې، چه یادولو دپاره چه کوم اشعار لوستلي شی، هغه مراد دی، هغه زر زر لوستلي شی، او یو وی انشاد دشعر، یعنی نورو ته شعرونه اورول، دا واقعی په ترنم او ترتیل سره لوستلي شی.

**قوله**: و نثرا کنثر الدقل: او څرنګه چه خرابې کجورې د اوني نه څنډلې کیږی، دغه شان به ئهٔ هم کوې، دقل هغه خراب قسم کجورې دې، چه په اونه کښې اوچې شوې وی، او په مزه سره اونه خوزولو سره هغه ټول په یو ځل راغورزیږی.

او بیا هغوی اوفرمائیل: لکن النبی (صلی الله علیه وسلم) کان یقرء النظائر السورتین فی رکعة الخ: او د بخاری شریف (ص ۱۰۷) د یو روایت الفاظ داسې دی، لقد عرفت النظائر التی کان النبی (صلی الله علیه وسلم) یقرن معا بینهن.

**د حضور (صلی الله علیه وسلم) معمول په تهجد کښې د کومو سورتونو لوستلو وو:**
یعنی زهٔ ښه پیژنم، هغې سورتونو لره، چه هغه به حضور (ﷺ) دوه دوه یو ځائې کول، او په یو رکعت کښې به ئې لوستل، او بیا هغوی شل سورتونه ذکر کړل، چه هغې لره به حضور (ﷺ) په لسو رکعتو کښې لوستل (چه دهغې تفصیل په حدیث کښې مذکور دې) مطلب دادې، چه اې د الله تعالی بندهٔ! تهٔ شپږ اویا سورتونه په یو رکعت کښې لولې، حالانکه

حضور (ﷺ) به صرف شل سورتونه په لس رکعته کښې لوستل، (١)
الحاصل قرآن مجيد لره په ترتيل او تدبر سره لوستل پکار دی، دا منډه ترړه صحيح نه ده، بلکه خلاف سنت ده.

دا حديث په صحيحين او نورو کتب حديث کښې هم شته، ليکن په هغې کښې ددې شلو سورتونو تفصيل او ددې مصداق مذکور نه دې، ددې وجې نه امام نووی رحمه الله په شرح مسلم (ص ٢٧٢) کښې ليکلې دی، په سنن ابوداؤد کښې ددې سورتونو تعيين مذکور دې، دې سورتونو ته نظائر ددې وجې نه اوئيلې شو، چه دا د مضمون په اعتبار سره يو شان دی، او بعضو وئيلې دی، چه نظائر ئې ددې وجې نه اوئيل، چه د آياتونو په مقدار کښې دا سورتونه تقريباً برابر دی، ليکن دا خبره صحيح نه ده،
د مذکوره حديث سبب هم وارد دې، چه دلته کښې ذکر نه دې، د صحيح مسلم او ترمذی په روايت کښې شته، هغه دا چه دا سړې د ابن مسعود رضي الله عنه خدمت کښې حاضر شو، او راتلو سره ئې سوال اوکړو، چه تاسو دې آيت لره څرنګه لولئ، فيها انهر من ماء غير آسن، تپوس ئې اوکړو، چه آسن دې او که ياسن، په دې باندې هغوی اوفرمائيل و کل قرآن قد احصيت غير هذا الحرف، آيا ددې حرف نه علاوه باقی ټولو قراءتونو نه تهٔ واقف يئ، او آيا تا ټول قران لوستلې دې، په دې باندې هغه سړی هغه خبره اوکړه، چه دلته کښې د ابوداؤد په حديث کښې ذکر ده.

قال ابوداؤد هذا تاليف ابن مسعود رضي الله عنه: بره په حديث کښې چه کوم د شلو سورتونو ترتيب مذکور دې، هغه چونکه د مصحف عثمانی (چه کوم موږ سره دې) د ترتيب نه خلاف دې، ددې وجې نه مصنف رحمه الله فرمائي، چه مذکوره بالا ترتيب د مصحف ابن مسعود رضي الله عنه مطابق دې، دهغوی په مصحف کښې د سورة فاتحې نه پس بقره او دهغې نه پس سورة النساء دې، او بيا سورة آل عمران دې.
په دې خبره پوهيدل پکار دی، چه مشهوره داده، چه د آيتونو ترتيب توقيفی دې، يعنی مسموع من الشارع، او د سورتونو ترتيب د صحابه کرامو اجتهادی او مختلف فيه دې، علماؤ ليکلې دی، چه د مصحف علی رضي الله عنه ترتيب علی ترتيب النزول دې، په هغې کښې د ټولو نه اول سورة اقراء دې، ثم المدثر ثم ن والقلم، ثم المزمل.

### زمونږ د اکابرو د عمل بالسنة مثال:

حضرت شيخ رحمه الله فرمائي چه په کومه ورځ په بذل المجهود کښې ددې مقام شرح اوليکلې شوه، نو حضرت سهارنپوری رحمه الله اوفرمائيل : مولوی زکريا! په يوې پرچه باندې دا سورتونه په دې ترتيب سره اوليکه، نن به به تهجد کښې په دې ترتيب سره سورتونه

(١) امام نووی رحمه الله ليکی: ددې نه معلومه شوه چه د حضور ﷺ معمول په تهجدو کښې د تلاوت مقدار عام طور سره دا وو کوم چه په دې حديث کښې مذکور دې اوکوم چه په بعضې رواياتو کښې د سورة بقره او آل عمران وغيره اوږدو اوږدو سورتونو ذکر راغلې دې نوهغه په بعضې وختونو باندې محمول دې چه دا کله کله وو.

لولم، سبحان الله، دعمل بالحديث جذبه هم داسې پکار ده، د حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله نه هم منقول دی، چه هغوی به په هر حديث باندې يو ځل خامخا عمل کولو.

[۱۳۹۷] (١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا مَسْعُودٍ وَهُوَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ، فَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَرَأَ الْآيَتَيْنِ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ".

د عبد الرحمن بن یزید نه روايت دی هغه ويلي دي: ما تپوس وکړو د ابو مسعود نه او هغه د بيت الله طواف کولو، هغه وويل: رسول الله ﷺ ويلي دي: چا چې دوه ايتونه ولوستل د سورة البقرې نه په يوه شپه کې نو دواړه ورله پوره دي.

**قوله**: من قرء الآيتين من آخر سورة البقرة في ليلة كفتاه:

## شرح حديث:

کوم سړې چه د سورة بقرې آخرې دوه آيتونه امن الرسول تا ختم سورة په شپه کښې اولولی، نو دهغه دپاره دا لوستل د قيام الليل نه کفايت کوی، يعنی دهغې قائم مقام کيږی، يا مطلب دادې، چه په قيام الليل (تهجد) کښې ددې دواؤ آيتونو لوستل کافی کيږی، يا مطلب دادې، چه د شيطان د شر نه بچ کيدو دپاره کافی دې، يا د جن او انس د ټولو د شر نه بچ کيدلو دپاره کافی کيږی، يا اعتقاد سره متعلق چه کوم آيت قرآنيه دی، دهغې ټولو د طرف نه دا دوه آيتونه کافی دی، دا ټول مطالب شراح ليکلي دی، ددې دواؤ آيتونو په احاديثو کښې ډير فضيلت راغلي دې، حضرت علی رضي الله عنه فرمائي، زۀ نه پيژنم، چه يو داسې عقلمند سړې به هم وی، چه ددې لوستلو نه بغير به اوده شی.

[۱۳۹۸] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنَا عَمْرٌو، أَنَّ أَبَا سَوِيَّةَ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ حُجَيْرَةَ يُخْبِرُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَامَ بِعَشْرِ آيَاتٍ لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغَافِلِينَ، وَمَنْ قَامَ بِمِائَةِ آيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْقَانِتِينَ، وَمَنْ قَامَ بِأَلْفِ آيَةٍ كُتِبَ مِنَ الْمُقَنْطِرِينَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: ابْنُ حُجَيْرَةَ الْأَصْغَرُ عَبْدُ اللَّهِ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ ابْنِ حُجَيْرَةَ.

د عبد الله بن عمرو بن العاص نه روايت دی هغه ويلي دي: رسول الله ﷺ ويلي دي: هغه چا چې په لسو ايتونو سره قيام وکړو نو هغه به د غافلينو نه نه ليکل کېږي، او چا چې قيام وکړو په سلو ايتونو سره هغه به د قانتينو نه وليکل شي، او چا چې قيام وکړو په زرو ايتونو سره نو هغه به وليکل شي د ډير مال والا نه. ابوداود ويلي دي: ابن حجيرة ورکوټی هغه عبد الله بن عبد الرحمن بن حجيرة دی.

**تشريح**: **قوله**: ومن قام بعشر آيات لم يكتب من الغافلين، کوم سړې چه لس آيتونه د تهجد په مونځ کښې اولولی، هغه به په غافلينو کښې نه شماريږی (بذل) او کيدې شی، چه مطلق

---

١): صحيح البخاري/فضائل القرآن ١٠ (٥٠٠٩)، صحيح مسلم/المسافرين ٤٣ (٨٠٧)، سنن الترمذي/فضائل القرآن ٤ (٢٨٨١)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (٧٢١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨٣ (١٣٦٩)، (تحفة الأشراف:٩٩٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٨/٤، ١٢١، ١٢٢)، سنن الدارمي/الصلاة ١٧٠ (١٥٢٨)، وفضائل القرآن ١٤ (٣٤٣١) (صحيح)

٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٨٨٧٤) (صحيح)

لوستل مراد وي، یعنی بغیر د مانځه نه. کما یظهر من کلام بعض الشراح.

**و من قام بالف آية كتب من المقنطرين:** چه څوک زر آیتونه په یوه شپه کښې اولولي، دهغه دپاره د اجر او ثواب قنطار (انبارونه) لیکلي کیږي، قنطار د دولس زره رطلو وي، او وئیلې شوي دي، چه د دولسو سوؤ اوقیه وي، او یو اوقیه د څلویښتو درهمو وي، یعنی دهغې د وزن برابر اجر او ثواب، او په یو روایت کښې دي، چه یو قنطار دومره لوئې دې، چه دهغې دپاره دا دنیا کافي نه ده، په دې دنیا کښې نه ځائی کیږي.

**قال ابوداؤد ابن حجيرة الاصغر الخ:** حاصل دا دې، چه په سند کښې کوم ابن حجیره راغلې دې، هغه ته ابن حجیره الاصغر وئیلې شي، دهغه نوم او نسب دادې، عبدالله بن عبدالرحمن بن حجیره، دې الاصغر ددې وجې نه دې، چه دلته کښې نسبة الی الجد دې، او ددې راوی چه کوم والد دی، یعنی عبدالرحمن بن حجیره، هغه ته ابن حجیره الاکبر وئیلې شي.

[١٣٩٩] ()حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، وَهَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَا: أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي عَيَّاشُ بْنُ عَبَّاسٍ الْقِتْبَانِيُّ، عَنْ عِيسَى بْنِ هِلَالٍ الصَّدَفِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: أَتَى رَجُلٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَقْرِئْنِي يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ: "اقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ ذَوَاتِ الرَّاءِ"، فَقَالَ: كَبِرَتْ سِنِّي، وَاشْتَدَّ قَلْبِي، وَغَلُظَ لِسَانِي، قَالَ: "فَاقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ ذَوَاتِ حم"، فَقَالَ مِثْلَ مَقَالَتِهِ، فَقَالَ: "اقْرَأْ ثَلَاثًا مِنَ الْمُسَبِّحَاتِ" فَقَالَ مِثْلَ مَقَالَتِهِ، فَقَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَقْرِئْنِي سُورَةً جَامِعَةً، فَأَقْرَأَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ حَتَّى فَرَغَ مِنْهَا، فَقَالَ الرَّجُلُ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا أَزِيدُ عَلَيْهَا أَبَدًا، ثُمَّ أَدْبَرَ الرَّجُلُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْلَحَ الرُّوَيْجِلُ، مَرَّتَيْنِ".

د عبد الله بن عمرو نه روایت دی هغه ویلي دي: یو سړی رسول الله ﷺ ته راغی هغه وویل ماته څه راوښایه، هغه ورته وفرمایل: لوله درې د الر والاو نه، هغه وویل: زما عمر زیات دی، زړه مې سخت شوی دی، او ژبه مې سخته ده، هغه وفرمایل: درې د حم والاو نه وایه، هغه د خپلې مخکنۍ وینا پشان وینا وکړه، هغه ورته وفرمایل: ولوله درې د مسبحاتو نه، هغه بیا خپل مقاله وویله، هغه سړي وویل: ای د الله رسوله! ماته یو جامعې سورت وښایه، نبي ﷺ ورته اذا زلزلت الارض وښودلو تردې چې ترېنه فارغ شو، هغه سړي وویل: قسم په هغه ذات چې ته یې په حق رالیږلی یې زه به په دې باندې زیادت نه کوم، نبي ﷺ وویل: سړی ګوتی کامیاب شو، دوه ځله یې وویل.

**تشریح: قوله:** عن عبدالله بن عمرو ﷺ قال اتی رجل رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فقال اقرانی: دا اقراء د باب افعال نه دې، یعنی ماباند اولوله، مطلب دادې، چه ماته د لوستلو دپاره اوایئ،نبی کریم (ﷺ) اوفرمائیل چه درې سورتونونه لوله، دهغې سورتونه، د کومو په شروع کښې چه الف، ل، ر دې، یا دا لفظ الراء (مفرد) دې، مراد ددې نه هم هغه دې، او هغه پنځه سورتونه دی، هود، یوسف، ابراهیم، الحجر، یونس.

**قوله:فقال كبرت سني واشتد قلبي و غلظ لساني:** هغه صحابی اوئیل چه اوس زۀ بوډا شوې یم، او زما زړۀ سخت شوې دې، یعنی ذهن او حافظه مې کمزورې شوې ده، او ژبه مې هم درنه

(): سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ٢٠٤ (٩٥٠)، (تحفة الأشراف:٨٩٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٩/٢) (ضعيف)

شوې ده، په آسانۍ سره نه ګرځي، ددې نه پس نبي کريم (ﷺ) هغه ته د "ذوات حم" مشوره ورکړه، ځکه چه دا سورتونو د هغې سورتونو نه ورکوتي دي.

**قوله**:من المسبحات: د کومو سورتونو په شروع کښې چه سبح يا يسبح يا سبح مذکور دې، او دا اووه سورتونه دي، سبحان الذى اسرى، الحديد، الحشر، الصف، الجمعة، التغابن، الاعلى، د ترمذى (ج ۲ ص ۱۱۶) په يو روايت کښې دى، ان النبى (صلى الله عليه وسلم) كان يقراء المسبحات قبل ان يرقد يقول ان فيهن آية خير من الف آية.

**قوله**:افلح الرويجل: يا خو دا د رجل تصغير دې، يا د راجل (پيدل تلونکې) تصغير دې، ځکه چه دا سړې د نبى کريم (ﷺ) خدمت کښې پيدل راغلې وو، سور نه وو.

## بَابٌ فِي عَدَدِ الآيِ

### باب دې په بيان د عدد د ايتونو کې

د سورتونو آيتونه شمارل، مقصود په ظاهر کښې ددې جواز بيانول دى، او دا چه دا فعل عبث نه دې، بلکه په دې کښې يو قسم اهتمام مونډلې کيږى، په تير شوې يو باب کښې تير شوې دى، چه کوم سړې لس آيتونه اولولى، نو هغه ته دومره ثواب ملاويږى، او څوک چه سل آيتونه اولولى، هغه ته دومره ثواب ملاويږى، په دې کښې هم د آيتونو د عدد ذکر دې.

[١٤٠٠](١)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، أَخْبَرَنَا قَتَادَةُ، عَنْ عَبَّاسٍ الْجُشَمِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "سُورَةٌ مِنَ الْقُرْآنِ ثَلَاثُونَ آيَةً تَشْفَعُ لِصَاحِبِهَا حَتَّى يُغْفَرَ لَهُ: تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى، هغه روايت کوي د نبي ﷺ نه هغه ويلي دي: يو سورت دى د قرآن هغه دېرش ايتونه دى، خپل خاوند دپاره به شفاعت کوي تردې چې ببننه ورته وشي، هغه تبارک الذي بيده الملک دى.

**قوله**:سورة من القرآن ثلثون آية تشفع لصاحبها حتى غفرله:
د قرآن مجيد ديرش آيتونه داسې دى، چه د خپل لوستونکې سفارش کوى، تردې پورې چه دهغه مغفرت اوکړې شى.

### شرح حديث:

دا شفاعت يا خو حقيقى دې، د قرآن مجيد شافع او مشفع کيدل د بعضو احاديثو نه ثابت دې، يا مجازى دې، په اعتبار د سبب سره، يعنى ددې لوستل به د نجات سبب وى، د حضور (ﷺ) د شفاعت د وجې نه، او حتى غفرله کښې د ماضى مضارع په معنى کښې ده، د تحقق وقوع يعنى امر يقينى کيدلو د وجې نه دې نه په ماضى سره تعبير اوکړې شو، ګويا داسې اوګنړئ چه داسې شوې دى، دا سورت به شفاعت چرته کوى، يو شارح ليکلې دى، چه يا خو به په قبر کښې کوى، يا په قيامت کښې، او ظاهر اول دې، ځکه چه دبعضو رواياتو نه ددې سورت د عذاب قبر نه د نجات ذريعه کيدل ثابت دى.

١): سنن الترمذي/فضائل القرآن ٩ (٢٨٩١)، ن الكبري/التفسير (١١٦١٢)، اليوم والليلة (٧١٠)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥٢ (٣٧٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٥٠)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/فضائل القرآن ٢٣ (٣٤٥٢) (حسن)

# كِتَابُ سُجُودِ الْقُرْآنِ

## د سجده تلاوت احکام و مسائل

## بَابُ تَفْرِيعِ أَبْوَابِ السُّجُودِ وَكَمْ سَجْدَةٍ فِي الْقُرْآنِ

**باب دی په بیان د فصل د بابونود سجدو کې، او په قرآن کې څو سجدې دی؟**

په ماقبل کښې چونکه د تلاوت قرآن ابواب تیر شو، دهغې په مناسبت سره دلته کښې سجود القرآن لره بیانوی.

### ابحاث اربعه:

دلته کښې څلور بحثونه دی، (۱) د سجده تلاوة حکم (۲) د سجود القرآن تعداد (۳) د سجده تلاوت طریقه او کیفیت (۴) په سامع باندې د سجدې واجب کیدو شرائط.

### بحث اول: د سجده تلاوت حکم

سجده تلاوت د احنافو په نزد واجب ده، د ائمه ثلثه په نزد سنة مؤکده ده، د امام احمد رحمه الله یو روایت دادې، واجبة في الصلوة سنة خارجها، امام بخاری رحمه الله هم د یو ترجمة الباب نه ددې غیر واجب کیدل ثابت کړې دی، احنافو په صیغه دامر سره وجوب باندې استدلال کړې دې، لکه واسجد واقترب وغیره، او جمهورو استدلال د عمر رضی الله عنه د اثر نه کړې دې، هغوی فرمائي لکه چه په بخاری کښې دی، انما نمر بالسجود فمن سجد فقد اصاب و من لم يسجد فلا اثم عليه، احنافو وائی، چه دا حدیث موقوف دې، حجت نه دې.

### بحث ثاني: د سجود القران تعداد

د سجود القرآن تعداد د لیث بن سعد، اسحاق بن راهویه او د بعضو شوافعو لکه ابن المنذر، دغه شان د بعضو موالکو لکه ابن حبیب په نزد پنځلس دی، او هم داسې یو روایت د امام احمد رحمه الله نه منقول دې، او دجمهور علماء ائمه ثلثه په نزد ددې تعداد څوارلس دی، لیکن د احنافو په نزد په داسې طریقې، چه په سورة ص کښې سجده ده، او په سورة حج کښې دویمه سجده نشته، او د شافعیه او حنابله په نزد په سورة حج کښې دوه سجدې دی، او په سورة ص کښې سجده نشته، او د امام مالک رحمه الله په نزد د سجدو تعداد تول یوولس دې، په مفصل کښې عند الجمهور چه کومې درې سجدې دی، هغه ددې قائل نه دې، او علامه عینی لیکلې دی، چه د امام شافعی رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد په ص کښې سجده ده، لیکن هغه دې لره د عزائم سجود نه نه منی، نو هغه ددې د استحباب په خارج صلوة کښې قائل دې، داخل صلوة کښې قائل نه دې.

### بحث ثالث: د سجده تلاوت طریقه او کیفیت

د امام شافعی رحمه الله په نزد سجده تلاوت چه خارج صلوة وی، په هغې کښې تحریم او تسلیم دواړه شته، او د امام احمد رحمه الله په نزد تسلیم شته تحریمه نشته، او د احنافو او مالکیه په نزد بغیرتحریمه اوتسلیم نه دی، پس الله اکبر وئیلو سره به سجدې ته لاړ شی، او تکبیر وئیلوسره به سر پورته کړی، زمونږ په نزد ظاهرالروایة هم دادې، وروی الحسن عن ابی حنیفة

اله لا يكبر عن الانحطاط والصحيح ظاهر الرواية كذا في البذل.(ص ۳۱۹)

**بحث رابع : په سامع باندې د سجدې د وجوب شرائط**

د امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد سجود على السامع درې شرطونو سره مشروط دي، (۱) الاستماع د سجدې آيت لره قصد سره اوريدل، كه بغير د قصد نه د سجدې آيت واؤرى نو هغه معتبر نه دې، (۲) سجود التالي، يعنى د اصل تلاوت كونكې سجده كول، كه هغه سجده اونه كړه، نو بيا په سامع باندې هم سجده نشته، اهلية الامامة في التالي للسامع، يعنى تلاوت كونكې كښې د سامع د امام جوړيدلو صلاحيت وى، لهذا په سړى باندې د ښځې تلاوت سره، يا د صبى په تلاوت سره سجده نه لازميږى، دې اختلاف طرف ته خپله مصنف رحمه الله هم په راتلونكې باب كښې اشاره كړې ده،

**بحث خامس: سجده تلاوت دپاره د طهارت حكم**

دلته كښې يو بحث بل پاتې شو، هغه دا چه سجده تلاوت دپاره طهارت شرط دې او كه نه؟ د جمهور علماء او ائمه اربعه په نزد طهارت شرط دې، د شعبى رحمه الله او محمد بن جرير طبرى رحمه الله په نزد شرط نه دې، د امام بخارى رحمه الله ميلان هم دوى طرف ته دې، و قد تقدم في الجزء الاول تحت حديث لا يقبل الله صلوة بغير طهور، نو امام بخارى رحمه الله د يو ترجمة الباب په ضمن كښې تعليقا فرمائيلې دى، وكان ابن عمر يسجد على غير وضوء، ليكن په دې كښې د صحيح بخارى نسخې مختلفې دى، په بعضو كښې على غير وضوء دې، او په بعضو كښې على وضوء دې، علامه عينى رحمه الله فرمائي چه د ابن عمر رضي الله عنه نه دواړه قسمه روايتونه مروى دى، د تطبيق شكل دادې، چه ممكن ده، سجده تلاوت دپاره هغوى طهارت كبرى ضرورى گنړله، او طهارت صغرى لره غير ضرورى، يا دا چه په حالت اختيار كښې د طهارت قائل وو، او په حالت ضرورت او مجبورى كښې د عدم طهارت قائل وو، والله تعالى اعلم.

[۱۴۰۱] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ بْنِ الْبَرْقِيِّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا نَافِعُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سَعِيدٍ الْعُتَقِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُنَيْنٍ مِنْ بَنِي عَبْدِ كُلَالٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَقْرَأَهُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَجْدَةً فِي الْقُرْآنِ، مِنْهَا ثَلَاثٌ فِي الْمُفَصَّلِ، وَفِي سُورَةِ الْحَجِّ سَجْدَتَانِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رُوِيَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "إِحْدَى عَشْرَةَ سَجْدَةً" وَإِسْنَادُهُ وَاهٍ.

د عمرو بن العاص نه روايت دى، بيشكه رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته پنځلس سجدې لوستلې دي په قرآن كې، درې د هغې نه په مفصلو كې دي، او په سورة الحج كې دوه سجدې دي. ابوداود ويلې دي: روايت نقل شوى دى د ابو الدرداء نه هغه روايت كوي د نبي صلى الله عليه وسلم نه يولس سجدې دي، او اسناديې كمزورى دى.

حدثنا محمد بن عبد الرحيم ابن البرقي الخ، قوله عن عمرو بن العاص رضي الله عنه ان النبي (صلى الله عليه وسلم) اقرءه خمس عشرة سجدة في القرآن الخ،

دا د باب اول حديث دې، او ډير جامع دې، په دې اعتبار سره چه په دې كښې د سجود

(۱): سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۷۱ (۱۰۵۷)، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۳۵) (ضعيف)

القرآن پوره تعداد مذکور دې، او دا چه هغه پنځلس دی، او په دې کښې يو روايت مصنف تعليقا ذکر کړې دې، عن ابی الدرداء مرفوعا، په هغې کښې دا دی، چه ټول سجود القرآن يوولس دی، ددې روايت امام ترمذی تخريج کړې دې، دا دويم روايت ضعيف دې، کما قال المصنف، امام ترمذی رحمه الله هم ددې په سند باندې کلام کړې دې، او د باب د اول حديث تخريج د مصنف نه علاوه ابن ماجه، دارقطنی، حاکم، بيهقی هم کړې دې، ددې په بعضو راويانو باندې هم اګر چه کلام دې، لکه الحارث بن سعيد او عبدالله بن منين، ليکن امام نووی او منذری ددې تحسين کړې دې، کمافی المنهل.

په صحيحين بخاری او مسلم کښې هيڅ يو حديث ماته داسې ملاؤ نشو، چه په هغې کښې د سجود القرآن مجموعی تعداد مذکور وی، بلکه متفرق طور باندې څو د سجدو سره متعلق روايات دی، او د باقی سره هيڅ تعرض نشته، نه نفيا او نه اثباتا.

دا حديث د اسحاق بن راهويه، ليث بن سعد، امام احمد فی رواية سره خو موافق دې، ځکه د هغوی په نزد د سجود القرآن تعداد هم دادې، کوم چه په دې حديث کښې ذکر دې، او د جمهورو سره تقريبا موافق دې، البته د مالکيه خلاف دې، د شافعيه سره موافق خو ددې وجې نه دې، چه دهغوی په نزد په سورة حج کښې دوه سجدې دی، او د سورة ص سجده هم هغوی منی، ليکن دا وائی، چه هغه د غير عزائم نه ده، د هغې حکم د شوافعو په نزد دادې، چه په مانځه کښې به سجده نه کوی، خارج صلوة که تلاوت وی، نو کولې شی، او د حنفيه سره موافق ددې وجې نه ده، چه داسې به وئيلې شی، چه اګر چه په سورة حج کښې سجدتين مذکور دی، ليکن دنورو دلائلو نه دا ثابت دی، چه د سورة حج د سجدتينو نه دويمه سجده، چه د سورة په آخر کښې ده، هغه سجده تلاوت نه ده، بلکه هغه سجده صلويه ده، ځکه چه هغه مقرون بالرکوع ده، او زمونږ د علماؤ استقراء داده، چه په قرآن مجيد کښې کوم ځائې هم د سجدې ذکر رکوع سره راشی، دهغې نه سجده د صلوة مراد ده، مثل قوله تعالی: واسجدی وارکعی مع الراکعين.

امام محمد رحمه الله په موطا کښې فرمائي چه د عمر او ابن عمر رضی الله عنهما نه هم دا منقول دی، چه په سورة حج کښې سجدتين دی، ليکن ابن عباس رضی الله عنهما په دې سورت کښې يوه سجده منلې ده[1] اهـ.

[١٤٠٢] ([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ لَهِيعَةَ، أَنَّ مِشْرَحَ بْنَ هَاعَانَ أَبَا الْمُصْعَبِ حَدَّثَهُ، أَنَّ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ حَدَّثَهُ، قَالَ: قُلْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَفِي سُورَةِ الْحَجِّ سَجْدَتَانِ؟ قَالَ: "نَعَمْ، وَمَنْ لَمْ يَسْجُدْهُمَا فَلَا يَقْرَأْهُمَا".

عقبة بن عامر ورته حديث بيان کړی دی، هغه وايي ما وويل رسول الله صلی الله عليه وسلم ته: ايا په سورة الحج کې دوه سجدې دي؟ هغه وويل: آو، او څوک چې هغه دواړه نه کوي نو نه هغې دې نه لولي.

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ٢٨٩ (الجمعة ٥٤) (٥٧٨)، (تحفة الأشراف:٩٩٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٥١، ١٥٥) (حسن)

**تشریح: قوله**:قلت لرسول الله (صلی الله علیه وسلم) فی سورة الحج سجدتان قال نعم و من لم یسجدهما فلا یقراهما.

او په بعضو روایاتو کښې فلا یقراها دي، یعنی د چا اراده چه د سجدې کولو نه وی، نو دهغه دپاره بهتره داده، چه هغه دې دا سورة نه لولی، یا د سجدې آیت دې نه لولی، شارحینو لیکلي دی، ددې وجي نه چه تلاوت قرآن خو امر مستحب دې، او سجده تلاوت کم نه کم سنت مؤکده، کما عند الشافعي، ګنی واجب ده کما عند الحنفیه، او کوم فعل مستحب چه سبب وی د ترک واجب، یا د ترک سنت، دهغې نه کول بهتر دی،

دا حدیث د حنفیه خلاف دې، لیکن ضعیف دې، کما قال الترمذی وغیره ځکه چه ددې په سند کښې ابن لهیعه او مشرح بن هاعان دې، او دا دواړه ضعیف راویان دی.

## بَابِ مَنْ لَمْ يَرَ السُّجُودَ فِي الْمُفَصَّلِ

**باب دی په بیان دهغه چا کې په مفصلو کې د سجدې قائل نه دی**

[١٤٠٣](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ الْقَاسِمِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: رَأَيْتُهُ بِمَكَّةَ، حَدَّثَنَا أَبُو قُدَامَةَ، عَنْ مَطَرٍ الْوَرَّاقِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمْ يَسْجُدْ فِي شَيْءٍ مِنَ الْمُفَصَّلِ مُنْذُ تَحَوَّلَ إِلَى الْمَدِينَةِ".

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ هغه په هېڅ شي د مفصل کې سجده نه ده کړې د کوم وخت نه چې مدینې ته راغلی دی.

لکه چه د مالکیه مسلک دې، کما تقدم، جمهور فرمائي: حدیث الباب ضعیف دې، د ابوقدامه او مطر وراق د وجې نه، او په سورة انشقاق کښې سجده د ابوهریره رضی الله عنه د حدیث مرفوع نه په صحیح بخاری کښې ثابت ده، او په سنن ابوداؤد کښې د ابوهریره رضی الله عنه د حدیث نه سورة انشقاق او سورة اقراء کښې، او هم د ابوهریره رضی الله عنه د حدیث مرفوع نه په مسند بزار او دارقطنی کښې سورة النجم کښې سجده ثابت ده، او دا درې واړه سجدې د مفصل دی، چه دهغې نفی ابن عباس رضی الله عنه فرمائي والمثبت اولی من النافی، او ددې دریو واړو احادیث راوی، څرنګه چه مخکښې معلومه شوه، ابوهریره رضی الله عنه دې، چه په سنه ٧هـ کښې ئې اسلام راوړې دې، او حضرت ابن عباس رضی الله عنه دا فرمائي چه حضور (ﷺ) د هجرت نه روستو تر اوسه پورې دې سورتونو کښې سجده نه ده کړې، دا خبره دې واضحه وی، چه خپله مصنف رحمه الله په راتلونکې بابونو کښې په مفصل کښې د سجدو کېدل ثابت کړې دی.

منذ تحول الی المدینة: ابن عباس رضی الله عنه په ظاهر کښې دا خبره ددې دپاره اوفرمائیله چه خپله د ابن عباس رضی الله عنه حدیث کښې په سورة النجم کښې د حضور (ﷺ) او د ټولو مسلمانانو او مشرکانو بلکه ټولو انسانانو او جناتو سجده کول قبل الهجرت د بخاری وغیره صحیح روایاتو نه ثابت دی، لکه چه مخکښې دلته کښې هم راروان دی.

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف:٦٢١٦) (ضعيف)

[١٤٠٤]()حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُسَيْطٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "النَّجْمَ" فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا".

د زید بن ثابت نه روایت دی، هغه وېلي دي: ما د رسول الله نه سورة النجم ولوستلو هغه پکښې سجده ونه کړه.

**تشریح: قوله**:عن زيد بن ثابت قال قرات على رسول الله (صلى الله عليه وسلم) النجم فلم يسجد بها: په سورة النجم کښې د نورو بعضو احادیث نه د حضور (ﷺ) سجده کول ثابت دی، ددې وجې نه ددې جواب به دا وی، (١) لم يكن متوضا (٢) لم يكن الوقت صالحا للسجدة (٣) لا وجوب على الفور بل يجوز فيه التراخي.

[١٤٠٥]()حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو صَخْرٍ، عَنْ ابْنِ قُسَيْطٍ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: كَانَ زَيْدٌ الْإِمَامَ فَلَمْ يَسْجُدْ فِيهَا.

د خارجة بن زيد بن ثابت نه روایت دی هغه روایت کوي د خپل پلار نه، او هغه د نبي ﷺ نه په معنی د هغې سره. ابوداود وېلي دي: زيد امام وو او په هغې کښې يې سجده ونه کړه.

قال ابوداؤد و کان زيدالامام فلم يسجد: مصنف په سورة النجم کښې د حضور (ﷺ) د سجدې نه کولو وجه بیانوی، چه په اصل کښې قاری زید بن ثابت وو، نو چونکه په دغې موقعه خپله امام سجده اونه کړه، ([٣]) ددې وجې نه حضور (ﷺ) هم اونه کړه، اوس پاتې شو دا سوال، چه زید رضی الله عنه ولې سجده اونه کړه، نو ددې جوابات هم هغه کیدې شی، کوم چه بره ذکر شو، دا مسئله په ابتدائی مباحثو کښې تیره شوې ده، چه د بعضو علماؤ په نزد ومنهم الامام مالک والامام احمد رحمهما الله سجود على السامع مشروط ده سجدې د تالی (قاری) سره، دلته کښې چونکه هغه شرط اونه موندلې شو، ددې وجې نه حضور (ﷺ) سجده اونه کړه،هم دا خبره امام ترمذی فرمائیلې ده، وتاول بعض اهل العلم هذ الحديث فقال انما ترك النبي (صلى الله عليه وسلم) السجود لان زيد بن ثابت لم يسجد. ١ هـ

## بَاب مَنْ رَأَى فِيهَا السُّجُودَ

### باب دی په بیان د هغه چا کښې چې په هغې کښې د سجدې قائل دی

دا باب د اول باب مقابل دې،اول باب د مالکیه موافق وو،او دا باب د جمهور موافق دې.

[١٤٠٦]()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ

[١]): صحيح البخاري/سجود القرآن ٦ (١٠٧٢)، صحيح مسلم/المساجد ٢٠ (٥٧٧)، ت الجمعة ٥٢ (٥٧٦)، سنن النسائي/الافتتاح ٥٠ (٩٦١)، (تحفة الأشراف:٣٧٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٣/٥، ١٨٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٦٤ (١٥١٣) (صحيح)

[٢]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٣٧٠٧) (صحيح)

[٣]) د امام نه مراد امام صلوة نه دې، بلکه امام قراءة دې،یعنی متبوع او پیشوا گویا قاری د قرآن پیشوا دې، او سامع د قاری تابع دې په سجده کولو کښې،)

[٤]): صحيح البخاري/سجود القرآن ١ (١٠٧٢)، ٤ (١٠٧٣)، ومناقب الأنصار ٢٩ (٣٨٥٣)، والمغازي ٨ (٣٩٧٢)، وتفسير النجم ٤ (٤٨٦٢)، صحيح مسلم/المساجد ٢٠ (٥٧٦)، سنن النسائي/الافتتاح ٤٩ (٩٦٠)، (تحفة الأشراف:٩١٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٨/١، ٤٠١، ٤٤٣، ٤٦٢) دي/الصلاة ١٦٠ (١٥٠٦) (صحيح)

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ سُورَةَ النَّجْمِ فَسَجَدَ فِيهَا، وَمَا بَقِيَ أَحَدٌ مِنَ الْقَوْمِ إِلَّا سَجَدَ، فَأَخَذَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ كَفًّا مِنْ حَصًى أَوْ تُرَابٍ فَرَفَعَهُ إِلَى وَجْهِهِ، وَقَالَ يَكْفِينِي هَذَا"، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ بَعْدَ ذَلِكَ قُتِلَ كَافِرًا.

د عبد الله نه روایت دی، بېشکه رسول الله ﷺ سورة النجم ولوستلو او سجده یي وکړه په هغې کې، د قوم نه هېڅ کس پاتې نه شو مګر سجده یي وکړه، یو سړي د قوم نه په ورغوي کې کاڼي راوخستل. او یا خاوره. هغه یي اوچته کړه خپل مخ ته، او ويي ویل: زما دپاره دا کافي ده، عبد الله وايي: بېشکه ما هغه وروسته ولیدلو چې کافر مړ شو.

**قوله:** عن عبدالله ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) قرأ سورة النجم فسجد فیها و مابقی احد من القوم الا سجد فاخذ رجل من القوم کفا من حصا او تراب فرفعه الی وجهه و قال یکفینی هذا.

**د حدیث مضمون:**

یو ځل نبی کریم (ﷺ) سورة نجم تلاوت کړو، پس حضور (ﷺ) دهغې د وجې نه سجده اوکړه، او ټولو خلقو هم سجده اوکړه، په مجلس والو کښې هیڅوک باقی پاتې نه شو د سجدې کولو نه، سوا د یو سړی نه، چه هغه د سجدې کولو په ځائې دا اوکړل، چه په لاسونو کښې ئې کاڼړی یا خاوره راؤچته کړه، او هغه ئې مخ ته یوړه، (او په هغې باندې ئې خپل سر کیخودو کما فی روایة الحاکم) او وې وئیل، بس ما لپاره هم دا کافی ده، یعنی په زمکه باندې د سجدې کولو ضرورت نشته، راوی وائی، چه دغې سړی لره ما ددې نه پس اولیدو، چه د کفر په حالت کښې قتل کړې شو.

**شرح حدیث:**

**(په دغه موقع سجده نه کونکې څوک وو؟)**

دا سړې امیه بن خلف وو، کما فی روایة البخاری فی کتاب التفسیر او دې په جنګ بدر کښې اوژلې شو، ددې سړی په تعیین کښې نور هم اقوال دی، چه په حاشیه دبخاری کښې ذکر دی. لیکن اصح او راجح ئې دا قول لیکلې دې.

او د نسائی په روایت کښې دمطلب بن ابی وداعه باره کښې دی، هغوی خپله فرمائي، چه ما سجده نه وه کړې، ځکه چه هغه وخته پورې ما اسلام نه وو راؤړې (روستو بیا مشرف باسلام شو، رضی الله عنه) اوس سجده نه کونکې دوه سړی شو، امیه بن خلف او مطلب بن ابی وداعه. حالانکه دلته په روایت کښې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د یو سړی باره کښې حصر کړې دې، جواب دادې، چه ممکن ده، چه هغوی صرف یو لره لیدلې وی، ځکه ئې د یو استثناء اوکړه، او یا د یو تخصیص هغوی په دې اعتبار سره کړې وی، کوم چه په روایت کښې مذکور دی، فاخذ کفا من تراب یعنی سجده نه کونکې دوه وو، لیکن په موټی کښې خاوره راؤچتونکې او په هغې باندې سر ایخودونکې صرف یو سړې وو.

او دا واقعه د مکې مکرمې ده، قبل الهجرة کما فی روایة البخاری عن ابن مسعود، او په بخاری کښې د ابن عباس رضی الله عنهما په روایت کښې تردې پورې تصریح ده، چه نبی کریم (ﷺ) سره مسلمانانو، مشرکانو جناتو او انسانانو ټولو سجده اوکړه، نبی کریم (ﷺ) خو سجده د الله تعالی د حکم په تعمیل کښې اوکړه، او ددې وجې نه ئې اوکړه، چه ددې سورة په شروع

کښې د عظیم نعمتونو ذکر دې، دهغې په شکریه کښې نبی کریم (ﷺ) سجده اوکړه، او مسلمانانو سجده د هغوی په اتباع کښې اوکړه.

## د مشرکینو د سجدې منشاء:

پاتې شو دا سوال چه مشرکینو سجده ولې اوکړه؟ ددې مختلفې وجهې بیان شوې دی، بعضو وئیلې دی، چه چونکه په دې سورة کښې د بتانو، لات، منات او عزی وغیره ذکر وو، نو په هغې باندې خوشحاله شو، او وقتی طور باندې ئې د حضور (ﷺ) موافقت اوکړو، سجده ئې اوکړه، او حضرت شاه ولی الله دهلوی رحمه الله په حجة الله البالغه کښې دا لیکلې دی (کما فی حاشیة اللامع) چه دغه وخت کښې په دغې بابرکت مجلس کښې د الله تعالی د انواراتو او تجلیاتو ډیر زیات ظهور اوشو، چه هغې سره حق داسې واضحه او ښکاره شو، چه مشرکان هم دهغې په منلو باندې مجبوره شو، لیکن بیا روستو چه کوم ځائې وو، هلته کښې واپس راغلل.

د حضرت اقدس ګنګوهی رحمه الله رائې هم داده، لکه چه په الکوکب الدری کښې ذکر ده، او حضرت سهارنپوری په بذل المجهود کښې یوه مشهوره قصه نقل کړې ده، چه هغې لره د حدیث شارحین دلته ددې حدیث په تشریح کښې او حضرات مفسرین د سورة حج د آیت شریف وما ارسلنا من قبلک من رسول ولا نبی الا اذا تمنی القی الشیطان فی امنیته.

په ذیل کښې ذکر کوی، چه دهغې ترجمه داده: نه دې لیږلې مونږ ستا نه مخکښې هیڅ یو رسول یا نبی، مګر دا چه کله به هغه د وحی آیتونه تلاوت کول، یعنی خلقو ته به ئې اورول، نو شیطان به دهغه په تلاوت کښې القاء کوله، یعنی د خپل طرف نه په وحی کښې د غیر وحی القاء او خلط کولو.

او هغه واقعه داده، چه ابن ابی حاتم او ابن جریر طبری او جلال الدین محلی په تفسیر جلالین کښې، او محمد بن اسحاق صاحب المغازی په سیرت کښې، او موسی بن عقبه په مغازی کښې، او دسعید بن جبیر نه مرسلا او سعید بن جبیر عن ابن عباس مسندا روایت کړې ده، چه نبی کریم (ﷺ) په مکه مکرمه کښې د سورة النجم تلاوت کولو، چه کله هغوی دې آیت ته اورسیدل، افرایتم اللات والعزی و مناة الثالثة الاخری، القی الشیطان علی لسانه، تلک الغرانیق العلی وان شفاعتهن لترتجی، یعنی شیطان د هغوی په ژبه باندې (د لات او عزی وغیره بتانو په مدح کښې) دا کلمات جاری کړل، چه دا پورته پرواز کونکې مرغۍ دی، او په تحقیق سره ددوی د شفاعت امید کیدې شی.

په دې باندې مشرکین ډیر زیات خوشحاله شو، او وې وئیل، چه دې نبی اوسه پورې زمونږ د بتانو تعریف نه دې کړې، نن ئې تعریف اوکړو، ددې وجې نه هغوی هم د نبی کریم (ﷺ) په موافقت کښې سجده کښې پریوتل (دا واقعه د سجود مشرکین منشاء جوړه شوه)

ددې واقعې د صحت باره کښې د شروع نه په علماؤ کښې اختلاف دې، یو جماعت ددې واقعې نه انکار کوی، په هغوی کښې قاضی ابوبکر ابن العربی او قاضی عیاض وغیره دی، هغوی فرمائې چه دا قصه دروغ او د زندیقانو او ملحدانو اختراع ده، د اسرائیلیاتو د

قبیلې نه ده، ددې هیڅ اصل نشته، هم دا رائې د شیخ عبدالحق محدث دهلوی ده، په لمعات شرح مشکوة کښې هغوی فرمائي: د بتانو مدح کول خو صریح کفر دې، حضور (ﷺ) د ژبې مبارکې نه عمدا خو ډیر بعیده ده، سهوا هم صادر کیدې نشی، ددې وجې نه ددې واقعې ذکر نه په کتب صحاح کښې شته، او نه په نور تصنیفات حدیثیه کښې، بلکه بعضو اهل سیر او هغې مؤرخینو نقل کړې ده، چه د عجیبه حکایاتو نقل کولو شوقین دی، دغه شان حضرت شاه ولی الله صاحب په خپل تراجم بخاری کښې، او حضرت اقدس گنگوهی رحمه الله په الکوکب الدری کښې لیکلې دی، چه ددې قصې هیڅ اصل نشته.

لیکن حافظ ابن حجر دې قصې لره بې اصله منلو ته تیار نه دې، هغوی فرمائي: علی قواعد المحدثین ددې واقعې انکار مشکل دې، ځکه چه هرکله چه ددې واقعې طرق کثیر دی، او دهغې طرقو مخارج هم متعدد دی، اگر چه ضعیف دی، بیا هم ددې څه اصل ضرور شته، خصوصا هرکله چه ما اوئیل چه ددې درې سندونه علی شرط الصحیح دی، اگر چه مرسل دی، او مرسل حدیث حجت دې عند الجمهور خصوصا بعد الاعتضاد.

هغوی فرمائي چه دا به هم منل وی، چه دا واقعه په خپل ظاهر باندې قطعا محمول نه ده، لهذا ددې تاویل ضروری دې، بیا حافظ صاحب رحمه الله ددې شپږ اووه توجیهات ذکر کړې دی، په هغې کښې بعضو لره په خپله هغوی ناخوښه کړې او رد کړې دی، (١) دا کلمات مدحیه د حضور (ﷺ) د ژبې مبارکې نه هغه وخت کښې جاری شول، چه کله هغوی د پرکالې په حالت کښې وو[1] (چه اختیاری حالت نه دې) بیا چه کله هغوی ته پته اولگیده، چه دا څه اوشو، نو الله تعالی خپل صحیح آیتونو لره محکم کړل، او د شیطان القائی کلماتو لره ئې رد او منسوخ کړل، کما قال الله تعالی فینسخ الله ما یلقی الشیطان ثم یحکم الله آیاته، (٢) د مشرکینو عادت وو، چه کله به هغوی د خپلو معبودانو ذکر کولو، نو د هغې معبودانو دپاره به ئې دا مدحیه کلمات استعمالول، نبی کریم (ﷺ) هم چونکه دا کلمات اوریدل، ددې وجې نه دهغوی په حافظه کښې دا ناست وو، چه کله نبی کریم (ﷺ) د سورة نجم دا آیتونه تلاوت فرمائیل، نو بغیر د قصد نه د هغوی د ژبې مبارکې نه دا کلمات صادر شول، (٣) نبی کریم (ﷺ) دا کلمات توبیخا لوستلې وو، یعنی د کافرانو د زجر او توبیخ دپاره، قاضی عیاض دې جواب لره خوښ کړې دې، خصوصا ددې وجې نه هم، چه په دغه زمانه کښې کلام فی الصلوة جائز وو، (۴) چه کله نبی کریم (ﷺ) تلاوت کولو دوران کښې د کافرانو د معبودانو ذکر ته اورسیدو، نو مشرکینو سره دا خطره پیدا شوه، چه چرته محمد (ﷺ) مخکښې د مذمت کلمات او نه فرمائي، ددې وجې نه کافرانو په جلدی سره د خپل طرف نه د حضور (ﷺ) په تلاوت کښې دا کلمات خلط کړل، لکه چه دهغوی عادت وو د خلط کولو، قال الله تعالی، لا تسمعوا لهذا القرآن والغو فیه، او ددې القاء نسبت شیطان طرف ته ددې وجې نه اوکړې شو، چه حامل په دې باندې هم هغه وو، (۵) تلک

---

[1] دا توجیه د قتاده نه نقل ده قاضی عیاض دا رد کړې ده، لأنه ولایة للشیطان علیه في النوم أیضاً.

الغرانیق العلی وان شفاعتهن لترتجی، دا دوه آیتونه د کلام پاک وو (چه اوس منسوخ التلاوة دی) او د الغرانیق العلی نه مراد صرف ملائکې دی، او مطلب دا وو، چه فرشتې خو دالله تعالی مقبول بندګان دی، دهغوی نه صرف د سفارش امید کیدې شی، ددې نه زیات هغوی هیڅ نه شی کولې (یعنی که هغوی العیاذ بالله بنات الله وې، کما قالوا، نو بیا به ددې نه په زیات باندې قادر وو) لیکن

کافرانو د تلک اشاره د ملائکو په ځائې مذکوره اصنام یعنی لات و عزی و منات طرف ته اوګڼړله، او په دې باندې خوشحاله شو، چه نن زمونږ د معبودانو مدح اوشوه (لهذا دې غلط فهمی لره لرې کولو دپاره دا آیتونه منسوخ کړې شو) (٢) نبی کریم (ﷺ) دا سورت ښه په ترتیل سره په مزه مزه لوستلو . چه کله هغوی ذکر آلهه ته اورسیدل، نو شیطان سمدستی د هغوی په سکته کښې دغه کلمات د هغوی په آواز او لهجه کښې داسې اولوستل، چه هغې سره اوریدونکې دا اوګڼړل، چه دا کلمات هم نبی کریم (ﷺ) لوستلې دی، حالانکه فی الواقع نبی کریم (ﷺ) دا کلمات نه وو لوستلې، دې توجیه لره اکثرو عالمانو خوښه کړې ده، حافظ رحمه الله فرمائي وهذا احسن الوجوه.[١] دا مخکښې لیکلې شوې دی، چه حضرت اقدس ګنګوهی رحمه الله په الکوکب الدری کښې فرمائیلې دی، چه ددې واقعې څه اصل محقق نشته، اوس سوال دادې، چه بیا د آیت کریمه وما ارسلنا من قبلک من رسول و لانبی الا اذا تمنی الآیة مطلب به څه وی؟ جواب دادې، چه تفسیر بیان القرآن کتل پکار دی، او د حضرت ګنګوهی رحمه الله یو تالیف منیف، چه هغې لره د حضرت شیخ والد مولانا محمد یحیی صاحب رحمه الله د لطائف رشیدیه په نوم سره چاپ کړې وو، په هغې کښې د بعضې آیات قرآنیه مطلب بیان کړې شوې دې، هغې طرف ته رجوع کول پکاردی. ([٢])

---

[١] هغه په دې وجه چه په دې صورت کښې د شیطان هیڅ قسم تصور او تسلط یا تصرف په رسول الله ﷺ باندې نه شی موندلې کیدې بلکه د شیطان خپل فعل دې بله دا چه دا د ابن عباس(ض) تفسیر موافق دې چه هغوی د تمنی او امنیت تفسیر په تلاوت سره کړې دې.

[٢] د لوستونکو د سهولت دپاره د رساله مبارکه نه لږ شان نقل کوم، وهو هذا سوال ٢: اذا تمنی القی الشیطان فی امنیته په معنی مع تحقیق روایة جلالین کوم چه د دې په تفسیر کښې وارد دې، ارشاد اوشو، ترجمه د آیت معلومه نه ده چه ولې تپوسې که د اشکال وجه دې لیکلې وې نو غوره وه، خیر لیکم : چه کوم وخت لوستلې شی اچوی د دې په قراءت کښې، جلالین خو داسې خبط روایت اولیکلو چه د عقل او نقل خلاف دې (د دې نه روستو حضرت د دې واقعې یوه توجیه لیکلې ده بیا وړاندې فرمائی) زه وایم چه که داسې اوئیلې شی چه په قراءة کښې د القاء کولو نه دا مراد دې چه کفارو ته چه کوم قراءة رسیږی په هغې کښې مفتری خلق څه افتراء کمولو سره کم او زیات د خواهش مطابق اوروی چه د هغې نه حضرات انبیاء علیهم السلام باندې د طعن موقع راشی نو څه حرج دې دا تصور کول چه عین د قراءة په وخت القاء کوی، دا د تخصیص وقت قرینه څه ده؟ بلکه په قران کریم کښې تحریف کول مراد دی الی اخر ما افاد. ١٢.

## بَابُ السُّجُودِ فِي {إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ} وَ{اقْرَأْ}

**باب دی په بيان د سجده کې په اذا السماء انشقت او اقرا کې**

[١٤٠٧](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ عَطَاءِ بْنِ مِينَاءَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "سَجَدْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي: إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ وَاقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ".

د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه ويلي دي: مونږ د رسول الله ﷺ سره سجده وکړه په اذا السماء انشقت او اقرء باسم ربک الذي خلق کې. ابوداود ويلي دي: ابو هريره رضي الله عنه په شپږم کال اسلام راوړی دی په کال د خيبر کې، او دا سجده د رسول الله ﷺ اخيري فعل د هغه وو.

[١٤٠٨](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، حَدَّثَنَا بَكْرٌ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ الْعَتَمَةَ، فَقَرَأَ: إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ، فَسَجَدَ، فَقُلْتُ: مَا هَذِهِ السَّجْدَةُ؟ قَالَ: "سَجَدْتُ بِهَا خَلْفَ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَا أَزَالُ أَسْجُدُ بِهَا حَتَّى أَلْقَاهُ".

د ابو رافع نه روايت دی، هغه وايي: ما مونځ وکړو د ابو هريرة سره د ماسخوتن، هغه ولوستلو اذا السماء انشقت، هغه سجده وکړه، ما وويل: دا کومه سجده ده؟ هغه وويل: دا سجده ما کړې وه وروسته د ابو القاسم نه، زه به همېشه دا سجده کوم تردې چې ورسره مخامخ شوم.

## بَابُ السُّجُودِ فِي {ص}

**باب دی په بيان د سجده کې په ص کې**

[١٤٠٩](3) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَيْسَ ص مِنْ عَزَائِمِ السُّجُودِ، وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَسْجُدُ فِيهَا".

د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی، هغه ويلي دي: سجده د سورة ص د فرضي سجدو نه نه ده، او بېشکه ما ليدلی دی رسول الله ﷺ چې هغه يې کوله.

عن ابن عباس رضي الله عنه قال ليس ص من عزائم السجود، دا د ابن عباس رضي الله عنه خپله رائې ده، و قد رايت رسول الله (صلى الله عليه وسلم) يسجد فيها، دا زمونږ دليل دې، ځکه چه بغيردآيت دسجدې نه سجده کول دهيچا په نزد مشروع نه دی، عن ابی سعيد الخدری رضي الله عنه انه قال قرا رسول الله (صلى الله عليه وسلم) وهو على المنبر ص: نبی کريم (ﷺ) اول ځل په سورة ص کښې سجده اوکړه، معلومه شوه، چه په دې کښې آيت سجده شته.

(1): صحيح مسلم/المساجد ٢٠ (٥٧٨)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٨٥ (الجمعة ٥٠) (٥٧٣ و ٥٧٤)، سنن النسائي/الافتتاح ٥٢ (٩٦٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٧١ (١٠٥٨ و ١٠٥٩)، (تحفة الأشراف:١٤٢٠٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ١٠٠ (٧٦٦)، موطا امام مالك/القرآن ٥ (١٢)، مسند احمد (٢/٢٤٩، ٤٦١)، سنن الدارمي/الصلاة ١٦٣ (١٥١٢) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/الأذان ١٠٠ (٧٦٦)، صحيح مسلم/المساجد ٢٠ (٥٧٨)، سنن النسائي/الافتتاح ٥٣ (٩٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٢٩، ٢٥٦، ٢٦٦) (صحيح)

(3): صحيح البخاري/سجود القرآن ٣ (١٠٦٩)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٨٨ (الجمعة ٥٣) (٥٧٧)، سنن النسائي/الافتتاح ٤٨ (٩٥٨)، (تحفة الأشراف:٥٩٨٨)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصلاة ١٦١ (١٥٠٨) (صحيح)

[١٤١٠](1)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، عَنِ ابْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي سَرْحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: قَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ ص، فَلَمَّا بَلَغَ السَّجْدَةَ نَزَلَ فَسَجَدَ وَسَجَدَ النَّاسُ مَعَهُ، فَلَمَّا كَانَ يَوْمٌ آخَرُ قَرَأَهَا فَلَمَّا بَلَغَ السَّجْدَةَ تَشَزَّنَ النَّاسُ لِلسُّجُودِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا هِيَ تَوْبَةُ نَبِيٍّ، وَلَكِنِّي رَأَيْتُكُمْ تَشَزَّنْتُمْ لِلسُّجُودِ، فَنَزَلَ، فَسَجَدَ وَسَجَدُوا".

د ابو سعید الخدري رضی الله عنه نه روایت دی، بېشکه هغه ویلي دي: رسول الله صلی الله علیه وسلم سورة ص ولوستلو په منبر باندې، هرکله چې سجدې ته وررورسیدلو راخکته شو سجده يې وکړه او خلقو هم سجده وکړه، بله ورځ يې ولوستلو، هرکله چې ورسیده سجدې ته خلق سجدې ته تیار شول، نبي صلی الله علیه وسلم وویل: بېشکه دا د نبي توبه ده، لکن ما ولیدلئ تاسو چې سجدې ته تیار شوئ، هغه راخکته شو سجده يې وکړه خلقو هم سجده وکړه.

ولکنی رایتکم تشزنتم للسجود: لیکن کله چه ما تئ اولیدې چه تئ سجدې دپاره تیار وې، ددې وجې نه نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) د منبر نه راکوز شو، او سجده ئې اوکړه، دې سره دا لازم نه راځی، چه د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) اراده د سجدې کولو نه وه، بلکه کیدې شی، چه دا مطلب وی، چه اوس في الحال د سجدې کولو اراده ئې نه وه، ځکه چه سجده علی الفور واجب نه ده، او امام طحاوی رحمه الله د مجاهد رحمه الله نه نقل کړې دی، چه د ابن عباس رضی الله عنه نه د سورة ص د سجدې باره کښې پوښتنه اوکړې شوه، نو هغوی اوفرمائیل اولئک الذین هدی الله فبهداهم اقتده یعنی په قرآن مجید کښې الله تعالی حضور (صلی الله علیه وسلم) لره مامور او مکلف فرمائیلي دي، ددې خبرې چه هغوی به د انبیاء سابقین سیرت اختیاروی، او په انبیاء سابقین کښې حضرت داؤد علیه السلام هم دې، او دهغوی د سجدې کولو ذکر په دې سورت کښې کړې شوې دې، دا خبره دې واضحه وی، چه حضرات شافعیه هم په دې سورت کښې د سجدې قائل دی، لیکن هغوی دې لره د غیر عزائم نه ګنړی، لکه چه په ابتدائی مباحثو کښې تیر شوې دی.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَسْمَعُ السَّجْدَةَ وَهُوَ رَاكِبٌ وَفِي غَيْرِ الصَّلَاةِ

**باب دی په بیان د سړي کښې چې سجده واوري په حالت د سورلۍ کښې او هغه په مانځه کښې نه وي**

او د حاشیه په نسخه کښې د ترجمه په الفاظو کښې دومره اضافه ده، او فی غیر صلوة.

[١٤١١](2)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ الدِّمَشْقِيُّ أَبُو الْجَمَاهِرِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ ثَابِتِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَرَأَ عَامَ الْفَتْحِ سَجْدَةً، فَسَجَدَ النَّاسُ كُلُّهُمْ، مِنْهُمُ الرَّاكِبُ وَالسَّاجِدُ فِي الْأَرْضِ حَتَّى إِنَّ الرَّاكِبَ لَيَسْجُدُ عَلَى يَدِهِ".

د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی، بېشکه رسول الله صلی الله علیه وسلم د فتح په کال سجده ولوستله، ټولو خلقو سجده وکړه، بعضې پکې سواره وو، او بعضو په ځمکه وکړه، تردې چې سور سړي په خپل لاس وکړه.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٤٢٧٦)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصلاة ١٦١ (١٥٠٧) (صحيح)
(2): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف:٨٤٤٤) (ضعيف)

عن ابن عمر رضی الله عنهما ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) قرأ عام الفتح سجدة، یعنی حضور (ﷺ) داسې سورة تلاوت کړو، چه په هغې کښې آیت د سجدې وو، یا ممکن ده، صرف د سجدې آیت ئې لوستلې وی د بیان دجواز دپاره، ځکه چه صرف آیت سجده لوستل خلاف اولی دی، د ایهام دتفضیل د وجې نه. (یعنی ددې وهم ددفع کولو د وجې نه چه دا آیت افضل دې)

فسجد الناس کلهم منهم الراکب والساجد فی الارض حتی ان الراکب یسجد علی یده:

ددې نه معلومه شوه، چه سجده تلاوت په سورلۍ باندې بالایماء جائز ده، د جمهور علماؤ ومنهم الحنفیه هم دا مذهب دې، د لاس دپاسه یا د زین دپاسه د سره ایخودلو ضرورت نشته، صرف اشاره کافی ده، لیکن د حنفیه په نزد ددې تصریح ده، چه سجود علی الدابه په هغه صورت کښې جائز ده، چه په سورلۍ باندې ئې لوستلې وی، یا اوریدلې وی، لهذا که تلاوت ئې په زمکه اوکړو، نو په سورلۍ باندې سجده کول جائز نه دی، او فقهاؤ لیکلې دی، چه که د رش د وجې نه په زمکه باندې سجده نشی کولې، نو په غیر ارض مثلا فخذ (اورون) وغیره باندې کول جائز دی، او که یو سړې په زمکه باندې لاس کیږدی، او په لاس باندې سجده اوکړی، نو داسې بلاعذر کول مکروه دی، لیکن سجده صحیح کیږی، عن ابی حنیفه رحمه الله.

په مسئلة الباب کښې مالکیه دا وائی، چه سجده تلاوت راکبا د مسافر دپاره خو جائز ده، او څوک چه مسافر شرعی نه وی، هغه لره د سورلۍ نه راکوزیدل او سجده کول ضروری دی. (منهل)

[١٤١٢]([1])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ الْمَعْنَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَيْنَا السُّورَةَ، قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ: فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، فَيَسْجُدُ وَنَسْجُدُ مَعَهُ حَتَّى لَا يَجِدَ أَحَدُنَا مَكَانًا لِمَوْضِعِ جَبْهَتِهِ".

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی هغه وئیلي دي: رسول الله ﷺ وو چې لوستلو یې په مونږ باندې سورت. ابن نمیر وئیلي دي: بغیر د مانځه نه، بیا دواړه متفق شوي دي. هغه به سجده کوله مونږ به هم ورسره سجده وکړه، تردې چې نه به پیدا کولو یو کس زمونږ ځای د خپل تندي دپاره.

## شرح د حدیث:

قوله : فیسجد و نسجد معه حتی لا یجد احدنا مکانا لموضع جبهته: مطلب دادې، چه حضور (ﷺ) به خپل مجلس کښې تلاوت فرمائیلو، نو چه کله به د سجدې آیت راغلو، او نبی کریم (ﷺ) به سجده کوله نو هغه وخت په مجلس کښې چه څومره خلق به حاضر وو، ټولو به سجده کوله، او د سجده کونکو خلقو به هجوم شو تردې پورې چه د سجدې دپاره د سر ایخودلو ځائې به پاتې نشو، او د طبرانی په یو روایت کښې داسې دی، چه کله مکې والو اسلام ظاهرول شروع کړل، نو داسې حالت به وو، چه نبی کریم (ﷺ) به تلاوت فرمائیلو او سجده به ئې کوله، نو ټولو خلقو به سجده کوله، حتی سجد الرجل علی ظهر الرجل. د اول

[1]: صحیح البخاري/سجود القرآن ٨ (١٠٧٥)، صحیح مسلم/المساجد ٢٠ (٥٧٥)، (تحفة الأشراف:٨٠٠٨، ٨٠١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٧/٢)، سنن الدارمي/الصلاة ١٦١ (١٥٠٧) (صحیح)

حدیث په ضمن کښې تیر شو، چه عندالزحام په غیر ارض باندې سجده کول (فخذ وغیره باندې) جائز ده.
ددې حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت نشته، البته که د حاشیې والا نسخه واخستلې شي، نو بې شکه مطابقت به پیدا شي،

[١٤١٣] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْفُرَاتِ أَبُو مَسْعُودٍ الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَيْنَا الْقُرْآنَ، فَإِذَا مَرَّ بِالسَّجْدَةِ كَبَّرَ وَسَجَدَ وَسَجَدْنَا". قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ: وَكَانَ الثَّوْرِيُّ يُعْجِبُهُ هَذَا الْحَدِيثُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: يُعْجِبُهُ لِأَنَّهُ كَبَّرَ.

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی هغه وایلي دي: رسول الله ﷺ به مونږ ته قران لوستلو، کله چې به هغه په سجده باندې تیریدلو الله اکبر به یې وویلو، هغه به سجده وکړه مونږ به هم ورسره وکړه، عبد الرزاق وایلي دي: او ثوري وو چې دا حدیث یې خوښ وو، ابو داود وایلي دي: هغه یې په تعجب کې اچوه ځکه هغه تکبیر وویله.

کان الثوری یعجبه هذا الحدیث: سفیان ثوری رحمه الله ته دا حدیث خوښ وو، مخکښې مصنف د اعجاب وجه بیانوی، چه په دې حدیث کښې ددې خبرې تصریح ده، چه نبی کریم (ﷺ) به سجدې ته تللو په وخت کښې تکبیر وئیلو، په خلاف د نورو احادیثو نه، چه په هغې کښې دا زیاتوالې نشته،

سجده تلاوت کښې سره پورته کولو په وخت کښې تکبیر وئیل بالاتفاق شته، او تللو په وخت کښې ظاهر الروایة کښې شته، او په غیر ظاهر الروایة کښې نشته، والاول اصح.
د سجده تلاوت طریقه مع اختلاف ائمه په ابتدائی بحثونو کښې تیره شوې ده.

## بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا سَجَدَ

### باب دی چې څه به وایي کله چې سجده کوي

[١٤١٤] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي سُجُودِ الْقُرْآنِ بِاللَّيْلِ، يَقُولُ فِي السَّجْدَةِ مِرَارًا: "سَجَدَ وَجْهِي لِلَّذِي خَلَقَهُ وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ".

د عائشې رضی الله عنها نه روایت دی هغې وایلي دي: رسول الله ﷺ وو چې وایل به یې د قران په شپې سجده کې، هغه به څو ځلې په سجده کې ویل: زما مخ سجده وکړه هغه چاته چې هغه یې پیدا کړی دی، او کولاو کړي یې دي اوریدل د هغه او لیدل د هغه په خپل تصرف او طاقت سره.

### (په سجده تلاوت کښې به کومه دعا وئیلې شي؟)

که سجدهٔ تلاوت په فرض مانځه کښې وی، نو بهتره داده، چه په هغې کښې سبحان ربی الاعلی اوائی، او که خارج صلوة وی، یا نفل مونځ وی، نو اختیار دې، که هغه دعا لولی،

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٧٢٦) (منكر)
[2]: سنن الترمذي/الصلاة ٢٩٠ (الجمعة ٥٥) (٥٨٠)، والدعوات ٣٣ (٣٤٢٥)، سنن النسائي/التطبيق ٧٠ (١١٣٠)، (تحفة الأشراف: ١٦٠٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠/٦، ٢١٧) (صحيح)

کومه چه په حدیث کښې ذکر ده، یا سبحان ربی الاعلی لولی، او بعضې علماء وائی، چه دعا بهتره ده: سبحان ربنا ان کان وعد ربنا لمفعولا، لکه چه د سورة بنی اسرائیل په آخر کښې دی، ان الذین اوتوا العلم من قبله اذا یتلی علیهم یخرون للاذقان سجدا و یقولون سبحان ربنا ان کان وعد ربنا لمفعولا.

## د عمل بالرؤیا مثال:

او د ترمذی شریف په یو روایت کښې دی، ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) ته یو سړي راغلو، او هغه خپل خوب بیان کړو، چه ما اولیدل، چه د یوې اونې لاندې زۀ اودریدم، او مونځ مې ادا کړو، او په آیت سجده باندې ما سجده اوکړه، نو هغې اونې هم سجده اوکړه، ما غور سره واؤریدل، چه هغې اونې په سجده کښې دا دعا لوستله، (دعا په ترمذی شریف کښې ذکر ده) ابن عباس رضی الله عنه فرمائي، ددې قصې نه پس یوه ورځ ما حضور (صلی الله علیه وسلم) اولیدو، چه هغوی په سجده تلاوت کښې هم هغه اذکار لوستل، کوم چه هغې اونې لوستلې وو.

## بَابٌ فِيمَنْ يَقْرَأُ السَّجْدَةَ بَعْدَ الصُّبْحِ

### باب دی په بیان د هغه چاکې سجده لولي وروسته د صباح نه

[١٤١٥](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الصَّبَّاحِ الْعَطَّارُ، حَدَّثَنَا أَبُو بَحْرٍ، حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ عُمَارَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيُّ، قَالَ: لَمَّا بَعَثْنَا الرَّكْبَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: يَعْنِي إِلَى الْمَدِينَةِ، قَالَ: كُنْتُ أَقُصُّ بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ، فَأَسْجُدُ، فَنَهَانِي ابْنُ عُمَرَ فَلَمْ أَنْتَهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ، ثُمَّ عَادَ، فَقَالَ: "إِنِّي صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَعُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ فَلَمْ يَسْجُدُوا حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ".

ابو تمیمة الهجیمي ویلي دي: کله چې مونږ قافله ولېږله، ویلي دي ابوداود: یعني مدینې ته، هغه وایي: ما به قصې کولې وروسته د صباح مانځه نه، ما به سجده کوله، نو ابن عمر زه منع کړم زه منع نه شوم درې ځل، بیا واپس شو، هغه وویل: بېشکه ما مونځ وکړو وروسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه، او د ابو بکر او د عمر او د عثمان رضی الله عنهم سره، هغوی سجده ونه کړه تردې چې نمر راوختلو.

## شرح حدیث:

قوله: عن ابی تمیمة الهجیمی قال لما بعثنا الرکب: بعثنا معروف او مجهول دواړه کیدې شی، که مجهول دې، نو الرکب به منصوب بنزع الخافض وی، تقدیر د عبارت به دا وی، لما بعثنا فی الرکب، یعنی کله چه مونږ اولیږلې شو، په یوې قافلې کښې، او د معروف په صورت کښې به مطلب دا وی، چه کله مونږ اولیږله قافلې لره، یعنی زمونږ قوم اولیږله یوه قافله (په هغې کښې زۀ هم اوم) قالت کنت اقص بعد صلوة الصبح نو ما به د سحر دمانځه نه پس خلقو ته د وعظ او نصیحت خبرې کولې، او په آیت سجده به مې سجده هم هغه وخت کوله، فنهانی ابن عمر فلم انته ثلاث مرات، زۀ ابن عمر رضی الله عنه هغه وخت سجدې کولو نه منع کړم، لیکن زۀ منع نه شوم، او ددې درې کرته موقع راغله.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧١١٠)، وقد أخرجه: (حم (٢/٢٤، ١٠٦) (ضعیف)

**مذاهب ائمه:**

د حنابله په نزد اوقات مكروهه كښې سجدۀ تلاوت كول ناجائز دی، بلكه صحيح كيږی هم نه، او د مالكيه په نزد مكروه دی (اگر چه صحيح كيږی) او د شافعيه په نزد مطلقا جائز ده، ځكه چه دهغوی په نزد نفل ذات السبب په ټولو وختونو كښې جائز دی، د حنفيه په نزد دادی، چه كه تلاوت په وقت مكروه كښې كړې وی، نو سجده هم دغه وخت كښې كولې شی، او كه تلاوت په غير مكروه وخت كښې كړې وی، نو بيا په وقت مكروه كښې سجده كول مكروه دی،[1]

لهذا دا حديث د حنابله او مالكيه موافق دې، او د حنفيه او شافعيه خلاف دې، جواب دادې، چه دا حديث ضعيف دې د ابوبحر راوی د وجې نه.

**فائده:** د ابوتميمه نوم طريف بن مجالد دې، او دا راوی ثقه دې.

# كتاب تفريع أبواب الوتر

## كتاب د وترو فروعی احكام و مسائل

## باب استحباب الوتر

### باب د وترو د مستحب كيدو په بيان كښې

[١٤١٦] ([2]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنْ زَكَرِيَّا، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ، أَوْتِرُوا فَإِنَّ اللَّهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ".

سيدنا علی رضي الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: اې قران والو! وتر لولئ. بې شكه الله عز وجل وتر (يواځې) دې، او وتر خوښه وی."

عن علی رضي الله عنه قال قال رسول الله (صلى الله عليه وسلم) يا اهل القرآن اوتروا.

**شرح حديث:**

په دې كښې ټول مسلمانان شامل دی، ځكه چه ټول مسلمانان اهل ايمان بالقرآن دی، ليكن حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا حديث په خپل ظاهر باندې محمول كړې دې، لكه چه په مخكښې روايت كښې راروان دی، او په ترمذی كښې دی، اسحاق بن راهويه فرمائي، چه په دې حديث كښې د وتر نه مراد قيام اليل دې، لكه چه په باب قيام اليل كښې تير شو، چه اكثر احاديثو كښې په جمله صلوة الليل باندې د وتر اطلاق كړې شوې دې، لهذا مطلب به دا وی، چه د قيام الليل اصل مخاطبين حفاظ قرآن دی، حافظانو لره پكار دی، چه هغوی د شپې په تهجدو كښې تلاوت قرآن اوكړی، هم دا د قرآن مجيد قدردانی ده، او ددې نه د نفع حاصلولو يو خاص شكل دې. والله تعالى اعلم.

[1]) يعنی د نمر راختلو وخت، پريوتلو وخت او د نصف النهار (زوال) وخت، واما بعد الفجر وبعد العصر فيجوز مطلقًا.

[2]): سنن الترمذي/الصلاة ٢١٦، (٤٥٣)، سنن النسائي/قيام الليل ٢٥ (١٦٧٤)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١٤ (١١٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٠١٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٨٦، ٩٨، ١٠٠، ١٠٧، ١١٠، ١١٥، ١٢٠، ١٤٣، ١٤٤، ١٤٨)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٠٩ (١٦٢١) (صحيح)

[۱۴۱۷]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ الْأَبَّارُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، زَادَ: فَقَالَ أَعْرَابِيٌّ: مَا تَقُولُ؟ فَقَالَ: لَيْسَ لَكَ، وَلَا لِأَصْحَابِكَ.

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه ددې په مثل باندې روایت کړې دې او په دې کښې ئې اضافه کړې ده چه یو باندیچی اووئیل تاسو څۀ وائئ؟ (حضرت عبد الله رضی الله عنه) اووئیل دا حکم ستا او ستا د ملګرو د پاره نۀ دې.

[۱۴۱۸]()حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَاشِدٍ الزَّوْفِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُرَّةَ الزَّوْفِيِّ، عَنْ خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ، قَالَ أَبُو الْوَلِيدِ الْعَدَوِيُّ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ أَمَدَّكُمْ بِصَلَاةٍ وَهِيَ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ، وَهِيَ الْوِتْرُ، فَجَعَلَهَا لَكُمْ فِيمَا بَيْنَ الْعِشَاءِ إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ".

خارجه بن خذافه عدوی رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ مونږ ته تشریف راوړو اووې فرمائیل: بې شکه الله تعالیٰ په یو (مزید او اضافي) مونځ سره ستاسو مدد فرمائیلې دې او دا ستاسو د پاره د سرو اوښانو نه هم زیات بهتر دی. دا مونځ وتر دی او ددې وخت ئې د ماسخوتن او د طلوع فجر په درمیان کښې مقرر کړې دې."

**عن خارجة بن حذافة العدوی قال خرج علینا رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فقال ان الله تعالی قد امدکم بصلوة الخ:**

**ای انعم علیکم و زاد لکم صلوة،** په بعضو روایتونو کښې (طبرانی وغیره کښې) **زادکم صلوة** هم وارد دې، **قال الله تعالی امدکم بانعام و بنین و جنت و عیون،** الله تعالی ستاسو دپاره یعنی ستاسو د ثواب زیاتولو دپاره یو مونځ زیات کړې دې

## د وجوب وتر دپاره دلیل:

دې حدیث سره صاحب هدایه وغیره په وجوب وتر باندې استدلال کړې دې، ځکه چه په نوافلو او تطوعاتو کښې هیڅ تحدید نشته، زیاتې خو په محدود څیزونو کښې وی، او محدود مونځ فرض دې، بعضو علماؤ ته په دې کښې اشکال دې، چه د مزید دپاره دا ضروری نه ده، چه هغه د مزید علیه د جنس نه وی، بلکه د امداد معنی ده: داسې زیاتې چه هغې سره مزید علیه ته تقویت اورسی، ددې وجې نه شیخ ابن الهمام فرمائي چه په وجوب دوتر باندې استدلال ددې نه روستو حدیث سره کول پکار دې، چه مخکښې په کتاب راروان دې، **الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا،**

---

): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۱۴ (۱۱۷۰)، (تحفة الأشراف: ۹۶۲۷) (صحیح)

[۲]): سنن الترمذي/الصلاة ۲۱۵، الوتر ۱ (۴۵۲)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۱۴ (۱۱۶۸)، (تحفة الأشراف: ۳۴۵۰)، وقد أخرجه. سنن الدارمي/الصلاة ۲۰۸ (۱۶۱۷) (صحیح) (لکن ؟هي خير لكم من حمر النعم؟)

# بَابٌ فِيمَنْ لَمْ يُوتِرْ

## باب: څوک کس چه وتر اونهٔ کړی؟

[١٤١٩](١) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْعَتَكِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا، الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا، الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا".

عبد الله بن بریده د خپل پلار نه روایت کوی، د هغوی بیان دې چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی، فرمائیل ئې: وتر حق دی، څوک چه وتر اونهٔ کړی هغه زمونږ نه، نهٔ دې، وتر حق دی، څوک چه وتر اونهٔ کړی هغه زمونږ نه، نهٔ دې، وتر حق دی، څوک چه وتر اونهٔ کړی هغه زمونږ نه، نهٔ دې.

[١٤٢٠](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنِ ابْنِ مُحَيْرِيزٍ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَنِي كِنَانَةَ يُدْعَى الْمَخْدَجِيَّ سَمِعَ رَجُلًا بِالشَّامِ يُدْعَى أَبَا مُحَمَّدٍ، يَقُولُ: إِنَّ الْوِتْرَ وَاجِبٌ، قَالَ الْمَخْدَجِيُّ: فَرُحْتُ إِلَى عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ عُبَادَةُ: كَذَبَ أَبُو مُحَمَّدٍ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "خَمْسُ صَلَوَاتٍ كَتَبَهُنَّ اللَّهُ عَلَى الْعِبَادِ، فَمَنْ جَاءَ بِهِنَّ لَمْ يُضَيِّعْ مِنْهُنَّ شَيْئًا اسْتِخْفَافًا بِحَقِّهِنَّ كَانَ لَهُ عِنْدَ اللَّهِ عَهْدٌ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ، وَمَنْ لَمْ يَأْتِ بِهِنَّ فَلَيْسَ لَهُ عِنْدَ اللَّهِ عَهْدٌ إِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ، وَإِنْ شَاءَ أَدْخَلَهُ الْجَنَّةَ".

د ابن محیریز نه مروی دی چه د بنو کنانه مخدج نومی یو کس په شام کښې د یو سړی نه اوریدلې دی چه هغه ته به ئې ابو محمد وئیلو، هغه وئیل چه وتر واجب دی. مخدجی اووئیل چه زهٔ حضرت عباده بن صامت ؓ ته ورغلم او هغه ته مې د ابو محمد خبره اورسوله. نو حضرت عباده اووئیل: ابو محمد غلط وئیلې دی. ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی، هغوی ﷺ فرمائیل پنځهٔ مونځونه دی چه الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندې فرض کړې دی. چاچه دې لره ادا کړل او ددې حق ئې سپک ګڼړلو سره په دې کښې ضائع نهٔ کړل نو ددا سې شخص دپاره د الله په ذمه باندې دا عهد دې چه دهٔ لره به په جنت کښې داخل کړی. او چاچه دا ادا نهٔ کړل نو دداسې کس په الله باندې هيڅ عهد نشته دې، کهٔ غواړی نو عذاب به ورکړی او کهٔ اوغواړی نو جنت کښې به ئې داخل کړی.

حدثنا القعنبی عن مالک الخ: په دې حدیث باندې کلام باب المحافظة علی الصلوات کښې تیر شوې دې، ځکه چه دا حدیث هلته کښې هم تیر شوې دې.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:١٩٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٧/٥) (ضعيف)

(٢): سنن النسائي/الصلاة ٦ (٤٦٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٩٤ (١٤٠١)، (تحفة الأشراف: ٥١٢٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صلاة الليل ٣ (١٤)، مسند احمد (٣١٥/٥، ٣١٩، ٣٢٢)، سنن الدارمي/الصلاة ٢٠٨ (١٦١٨) (صحيح)

# بَاب كَمِ الْوِتْرُ

## باب: ۳- په وترو کښې څومره رکعتونه دی

[١٤٢١]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْبَادِيَةِ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ اللَّيْلِ، فَقَالَ بِأُصْبُعَيْهِ هَكَذَا: "مَثْنَى مَثْنَى، وَالْوِتْرُ رَكْعَةٌ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ".

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه مروی دی چه یو د باندې اوسیدونکی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه د شپې د مونځ په باره کښې پوښتنه اوکړه نو حضور صلی الله علیه وسلم په خپلو ګوتو سره اشاره اوفرمائیله اووې فرمائیل: داسې دوه رکعته. او وتر یو رکعت دې د شپې په آخره کښې.

**قوله : والوتر رکعة من آخر اللیل**: د وتر د کعتونو په تعداد باندې کلام باب قیام اللیل کښې تفصیل سره تیر شو، دا حدیث د ابن عمر رضی الله عنه ددې نه مخکښې په باب صلوة اللیل مثنی مثنی کښې په طریق د نافع تیر شوې دې، په لفظ "فاذا خشی احدکم الصبح صلی رکعة واحدة توتر له ما قد صلی" ددې نه په صفا طور باندې د حنفیه د مسلک تائید کیږی.

[١٤٢٢]([2])حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنِي قُرَيْشُ بْنُ حَيَّانَ الْعِجْلِيُّ، حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ وَائِلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْوِتْرُ حَقٌّ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ، فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِخَمْسٍ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِثَلَاثٍ فَلْيَفْعَلْ، وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْيَفْعَلْ".

حضرت ابو ایوب انصاری رضی الله عنه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: وتر مونځ په مسلمان باندې حق دې، چنانچه څوک چه پنځهٔ رکعته کول غواړی اودې لولی. او څوک چه درې رکعته کول غواړی نو اودې کړی. او څوک چه یو رکعت کول غواړی نو اودې کړی."

### د حنفیه د طرف نه د حدیث جواب:

دا حدیث په ظاهر کښې صریح دلیل دې، د ایتار برکعة د جواز دپاره، ددې جواب دادې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي، چه صحیح دا ده، چه دا حدیث موقوفا ثابت دې، مرفوعا ثابت نه دې، زهٔ وایم، چه هرکله دا خبره ده، نو بیا به مونږ د حدیث موقوف معارضه کوؤ بل حدیث موقوف سره، په مؤطا د امام محمد رحمه الله کښې دی: "عن ابن مسعود ما اجزات رکعة قط" ابن صلاح رحمه الله فرمائي چه دحضور (صلی الله علیه وسلم) نه ایتار برکعة ثابت نه دې، دغه شان حدیث النهی عن البتیراء مشهور دې، چه هغې لره حافظ ابن عبد البر رحمه الله د مؤطا په شرح التمهید کښې بسنده الی ابی سعید الخدری مرفوعا ذکر کړې دې، او د دارقطنی روایت دې، عن ابن مسعود رضی الله عنه مرفوعا وتر اللیل ثلث کوتر النهار صلوة المغرب. (من البذل والمنهل)

[1]): صحيح مسلم/المسافرين ٢٠ (٧٤٩)، سنن النسائي/ قيام الليل ٣٢ (١٦٩٢)، (تحفة الأشراف:٧٢٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٠، ٥٨، ٧١، ٧٦، ٧٩، ٨١، ١٠٠) (صحيح)

[2]): سنن النسائي/قيام الليل ٣٤ (١٧١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٢٣ (١١٩٠)، (تحفة الأشراف:٣٤٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد ٥/٤١٨، سنن الدارمي/الصلاة ٢١٠(١٦٢٦) (صحيح)

# بَاب مَا يُقْرَأُ فِي الْوِتْرِ

## باب: ٤- په مونځ دَ وترو کښې قرائت

[١٤٢٣]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو حَفْصٍ الْأَبَّارُ. ح وحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَنَسٍ وَهَذَا لَفْظُهُ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ طَلْحَةَ، وَزُبَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَقُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا وَاللَّهُ الْوَاحِدُ الصَّمَدُ.

حضرت ابی ابن کعب بیان کوی چه رسول الله ﷺ به دَ وترو په مونځ کښې { سبح اسم ربک الاعلیٰ او قل یا ایها الکفرون او قل هو الله احد } تلاوت فرمائیل.

[١٤٢٤]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا خُصَيْفٌ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ: بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يُوتِرُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، قَالَ: "وَفِي الثَّالِثَةِ بِقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ".

عبد العزیز بن جریر وائی چه ما دَ ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه رسول الله ﷺ به په وترو کښې څۀ لوستل؟ نو دَ مذکوره بالا حدیث هم معنیٰ ئې روایت کړو : " په دریم رکعت کښې به ئې { قل هو الله احد } او " معوذتین " (سورهٔ فلق، او سورهٔ الناس) تلاوت کول.

**قوله**:عن عبد العزيز بن جريج قال سالت عائشة ام المؤمنين رضی الله عنها بای شئ كان يوتر رسول الله (صلى الله عليه وسلم)............قال و فى الثالثة بقل هو الله احد والمعوذتين.

### په حديث الباب باندې کلام:

دا حدیث عائشه رضی الله عنها دې، ددې نه مخکښې د ابی بن کعب رضی الله عنه په حدیث کښې قل هو الله احد سره معوذتین مذکور نه دی، دا حدیث ضعیف دې، ځکه چه د عبدالعزیز بن جریج سماع د عائشه رضی الله عنها نه ثابت نه ده، او په دې روایت کښې اګرچه سالت عائشة رضی الله عنها موجود دې (چه په سماع باندې دلالت کوی) لیکن وئیلې شوې دی، چه د سماع تصریح خطاء ده دخصیف راوی د طرف نه، او دا د عادت نه خلاف هم ده، دې سره به لازم راشی، چه آخری رکعت د ړومبو آیتونو نه اوږد شی، لیکن په الکوکب الدری کښې ئې لیکلې دی، چه هیڅ خرج نشته، په تطوعات کښې (ومنها الوتر) هره شفعه مستقل مونځ وی.

صاحب المنهل لیکلې دی، چه د معوذتین زیاتوالې د ډیرو روایاتو نه ثابت دې، محمد بن نصر هم په قیام اللیل کښې ددې روایت تخریج کړې دې، او د شافعیه او مالکیه په نزد هم رکعات وتر کښې ددې تولو سورتونو لوستل سنت دی، او حنفیه او حنابله د معوذتینو د زیاتوالې قائل نه دی [1] اهـ

[1]: سنن النسائي/قيام الليل ٣٤ (١٧٠٠، ١٧٠١، ١٧٠٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١٥ (١١٧٢)، (تحفة الأشراف:٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٣/٥) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الصلاة ٢٢٣ (الوتر ٩) (٤٦٣)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١٥ (١١٧٣)، (تحفة الأشراف:١٦٣٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٧/٦) (صحيح)

**په صلوة الوتر کښې کوم کوم سورتونه لوستل منقول دی:**

بعضې رواياتو کښې ددې سورتونو نه علاوه نور سورتونه هم مروی دی، لکه د محمد بن نصر په روايت کښې دی، حضرت علی رضي الله عنه فرمائي چه حضور صلى الله عليه وسلم به وترو کښې نهه سورتونه لوستل، في الاول الهكم التكاثر، وانا انزلناه في ليلة القدر، و اذا زلزلت الارض و في الثانية والعصر، واذا جاء نصر الله، والفتح وانا اعطيناک الکوثر، وفي الثالثة قل يايها الكفرون و تبت يدا ابی لهب و قل هو الله احد، او د سعيد بن جبير رحمه الله باره کښې روايت دې، چه هغوی به اول رکعت کښې خاتمة البقرة، او په دويم رکعت کښې انا انزلناه في ليلة القدر او کله کله قل يايها الكفرون او په دريم رکعت کښې قل هو الله احد لوستلو، او ابی بن کعب رضي الله عنه لره حضرت عمر رضي الله عنه د تراويح امام جوړ کړو، نو هغه به اول رکعت کښې انا انزلناه في ليلة القدر، او په دويم رکعت کښې قل يايها الكفرون، او په دريم رکعت کښې قل هو الله احد لوستلو، (من المنهل) او په ترمذی (ج ۲ ص ۱۱۸) کښې دی، چه حضرت عثمان رضي الله عنه به د وترو په يو رکعت کښې يو قرآن مجيد ختمولو.

## بَابُ الْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ

### باب: ۵- په مونځ د وترو کښې دعائې قنوت لوستل

د قنوت يوه معنی (ددې د ټولو معنو نه) دعاء هم ده، او دلته کښې ددې نه دعاء في محل مخصوص مراد ده. (منهل)

[۱۴۲۵] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ جَوَّاسٍ الْحَنَفِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَبِي الْحَوْرَاءِ، قَالَ: قَالَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا: عَلَّمَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلِمَاتٍ أَقُولُهُنَّ فِي الْوِتْرِ، قَالَ ابْنُ جَوَّاسٍ: فِي قُنُوتِ الْوِتْرِ، "اللَّهُمَّ اهْدِنِي فِيمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِنِي فِيمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّنِي فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ، وَبَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ، وَقِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ إِنَّكَ تَقْضِي وَلَا يُقْضَى عَلَيْكَ، وَإِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ، وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ، تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ".

ابو اسحاق د بريده بن ابی مريم نه، هغوی د ابو الحوراء نه روايت کوی چه حضرت حسن بن علی رضي الله عنهما فرمائيلي دی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ماته څو کلمات تعليم اوفرمائيل چه دې لره په وترو کښې لوله. د (استاذ) ابن جواس لفظ دې: زه هغې کلماتو لره د وترو په قنوت کښې لولم او هغه کلمات دا دی {اللَّهُمَّ اهْدِنِي فِيمَنْ هَدَيْتَ، وَعَافِنِي فِيمَنْ عَافَيْتَ، وَتَوَلَّنِي فِيمَنْ تَوَلَّيْتَ، وَبَارِكْ لِي فِيمَا أَعْطَيْتَ، وَقِنِي شَرَّ مَا قَضَيْتَ إِنَّكَ تَقْضِي وَلَا يُقْضَى عَلَيْكَ، وَإِنَّهُ لَا يَذِلُّ مَنْ وَالَيْتَ، وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ، تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ} اې الله کومو خلقو ته چه تا هدايت کړې دې د هغوی سره ماته هم هدايت اوکړې او د کومو چه تا عافيت فرمائيلې دې د هغوی سره ما ته هم عافيت اوفرمائې (يعنی د هر قسم بدو او پريشانونه) او د چا چه ته والی (دوست او محافظ) جوړ شوې ئې د هغوی سره زما هم والی جوړ شې. او کوم نعمتونه چه تا عنايت

¹): سنن الترمذي/الصلاة ۲۲٤ (الوتر ۹) (٤٦٤)، سنن النسائي/قيام الليل ٤۲ (۱۷٤٦)، سنن ابن ماجه/اقامة الصلاة ۱۱۷ (۱۱۷۸)، (تحفة الأشراف: ۳٤۰٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۹۹، ۲۰۰)، سنن الدارمي/الصلاة ۲۱٤ (۱٦۳۲) (صحيح)

فرمائیلي دی په هغې کښې ماته برکت واچوې. او کومې فیصلې چه تا کړې دی دَ هغې دَ شر نه مالره محفوظ أوساتې، بې شکه فیصلې هم ته کوې، ستا خلاف هېڅ فیصله نهٔ وی. او دَ چاچه ته محافظ او والی ئې هغه هېڅ کله ذلیل نهٔ شي کیدې، او دَ چا چه ته مخالف ئې هغه عزت بیا نهٔ شي موندلې، دَ ډیر برکتونو او عظمتونو والا ئې اې زمونږه ربه! او ډیر بلند و بالا ئې.

**تشریح: قوله**:حدثنا قتیبة بن سعید نا ابو الاحوص عن ابی اسحق عن برید بن ابی مریم عن ابی الحوراء قال قال الحسن بن علی علمنی رسول الله (صلی الله علیه وسلم) کلمات اقولهن فی الوتر اللهم اهدنی فیمن هدیت الخ:

د قنوت باره کښې مصنف دوه بابونه قائم کړې دی، یو قنوت فی الوتر، او بل یو څو بابه مخکښې قنوت فی الصلوات یعنی فی الفرائض.

ددې نه پس پوهه شئ، چه د قنوت دوه قسمه دی، یو قنوت دائمی (چه تول کال لوستلې کیږی) او یو قنوت نازله (چه صرف د حوادثو په وخت کښې لوستلې کیږی) د ثانی تعلق یعنی دهغې محل فرائض (فرض مونځونه) دی، لهذا هغه باب چه مخکښې راروان دې، هغه خو د قنوت نازله شو، او دا باب چه دلته کښې مذکور دې، دا دهغې د مقابل یعنی قنوت دائمی دې.

بیا په دې کښې اختلاف دې، چه د قنوت دائمی محل کوم دې، آیا وتر دې، یا صلوة الفجر دې. ددې نه پس پوهه شئ، چه په قنوت کښې پنځه مسائل اختلافی دی، (۱) قنوت په وترو کښې مشروع دې او که نه (۲) په صلوة الفجر کښې مشروع دې او که نه (۳) قبل الرکوع دې او که بعد الرکوع (۴) د قنوت دپاره کومه دعا مختار عند الائمة ده (۵) قنوت نازله په ټولو مونځونو کښې مشروع دې، او که صرف په صلوة الفجر کښې،

**(مزید دوه بحثونه)**

او دوه بحثونه نور دی، (۱) د قنوت فی الوتر دلائل (۲) د قنوت فی الفجر (دائما) دلائل.

**بحث اول: (قنوت فی الوتر مشروع دې که نه؟)**

حنفیه او حنابله ټول کال د قنوت فی الوتر قائل دی، او شافعیه د قنوت فی الوتر قائل صرف د رمضان په آخری نصف کښې دی، وهی روایة عن مالک و عنه التخییر فی القنوت وترکه.

**بحث ثانی: (په صلوة الفجر کښې مشروع دې که نه؟)**

د امام شافعی رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد قنوت فی الفجر ټول کال مشروع او سنت دی.

**بحث ثالث: (قنوت قبل الرکوع دې یا بعد الرکوع؟)**

عند الشافعی رحمه الله واحمد بعد الرکوع مطلقا و عند مالک قبل الرکوع مطلقا وعندنا الحنفیه الفرق بین قنوت الوتر و قنوت النازلة فالاول قبل الرکوع والثانی بعده.

**بحث رابع: (قنوت دپاره غوره دعا)**

د حنفیه او مالکیه په نزد په دعاء قنوت کښې اولی سورة الخلع و سورة الحفد دې، اللهم انا

نستعینک و نستغفرک و نؤمن بک و نتوکل علیک و نثنی علیک الخیر ونشکرک ولا نکفرک و نخلع و نترک من یفجرک (دا سورة الخلع دې) اللهم ایا نعبد و لک نصلی الخ (دا سورة الحفد دې) او یو روایت د امام مالک رحمه الله نه دادې، چه دواړو دعاګانو لره به جمع کولې شي، او زمونږ په نزد هم یو قول داسې دې، چه دواړو لره جمع کول بهتر دی، او د شافعیه او حنابله په نزد مختار او راجح اللهم اهدنی فیمن هدیت الخ دې، چه په حدیث الباب کښې ذکر دې، او دا حدیث د سنن اربعه او د مسند احمد حدیث دې،[1] او د شافعیه او حنابله دپاره دلیل دې، او د حنفیه دپاره دلیل ترجیح په دعاء کښې د مراسیل ابی داؤد روایت مرسله دې، د خالد بن ابی عمران (تابعی) نه روایت دې، چه د نبی کریم (ﷺ) په خدمت کښې حضرت جبرئیل (ع) تشریف راوړو، وعلمه القنوت اللهم انا نستعینک الخ، او ابن ابی شیبه هم دا روایت کړې دې، موقوفا علی ابن مسعود او ابن السنی موقوفا علی ابن عمر رضي الله عنه، او درمنثور کښې د محمد بن نصر او طحاوی په حوالې سره د ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دې، چه عمر بن الخطاب رضي الله عنه به قنوت کښې دادوه سورتونه لوستل، اللهم انا نستعینک الخ،

**فائده** : علامه سیوطی رحمه الله د درمنثور په آخر کښې د سورة الناس نه پس یوه سرخی قائمه کړې ده، ذکر ما ورد فی سورة الخلع و سورة الحفد، او بیا دهغې په ذیل کښې ئې ثابت کړې دی، چه دبعضې صحابه کرامو لکه حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه او ابوموسی اشعری رضي الله عنه وغیره په مصحف کښې د سورة الناس نه پس دا دوه سورتونه هم موندلې شی، بسم الله الرحمن الرحیم، اللهم انا نستعینک الی قوله من یفجرک، بسم الله الرحمن الرحیم اللهم ایا نعبد و لک نصلی الخ، لیکن هغوی په دې باندې خپله څه تبصره یا شروع کښې څه تمهید بیان کړې نه دې، په ظاهر کښې دا دوه سورتونه د قراآت شاذه غیر متواتره د قبیلې نه دی، ددې وجې نه صرف په بعضو مصاحفو کښې دی، مصحف عثمانی چه متواتر او اجماعی دې، په هغې کښې نشته.

**بحث خامس**: (ایا قنوت نازله په ټولو مونځونو کښې مشروع ده؟)

قنوت نازله د امام شافعی رحمه الله په نزد په ټولو مونځونو کښې مشروع دې، او د حنفیه په نزد په دې کښې درې اقوال دی، فی جمیع الصلوات، فی الصلوة الجهریة، فی صلوة الفجر فقط، والراجح هو الاخیر، او ابن قدامه حنبلی رحمه الله هم دې ته ترجیح ورکړې ده، لیکن د الروض المربع فی فقه الحنابله نه معلومیږی، چه د شافعیه پشان دهغوی په نزد هم ټولو مونځونو کښې مشروع دې.

الحمد لله مباحث خمسه سر ته اورسیدل، اوس آخری دوه خبرې باقی پاتې شوې، د قنوت فی الوتر او د قنوت فی الفجر د ثبوت دلائل،

---

[1] واخرجه ایضا ابن خزیمة وابن حبان والحاکم والدارقطني والبیهقي من طریق یزید عن ابي الحوراء، ورواه البیهقي ایضا من طریق موسي بن عقبة عن عبدالله بن علي عن الحسن وزاد بعد قوله تبارکت وتعالیت وصلي الله علي النبي محمد قال النووي في شرح المهذب انها زیادة بسند صحیح او حسن، رواه الحافظ في التلخیص بانه منقطع فان عبدالله بن علي لم یلق الحسن بن علي رضي الله عنه.

**بحث سادس: (قنوت فی الوتر)**

قنوت فی الوتر چه دهغې حنفیه او حنابله قائل دی، دهغې باب او دهغې احادیث په سنن اربعه کښې ملاویږی.

**د قنوت فی الوتر باره کښې د محدثینو طرز عمل:**

او امام نسائی د قنوت فی الوتر په ځائې ترجمة الباب الدعاء فی الوتر قائم کړې دې، او په هغې کښې ئې هم دا دوه احادیث، کوم چه په سنن ابی داؤد کښې دی، یعنی د حسن بن علی رضی الله عنه او د علی رضی الله عنه احادیث ذکر کړې دی، او هغوی په دې دواړو احادیثو څه نقد هم نه دې کړې، ددې نه علاوه امام نسائی په دویم مقام کښې د ابی بن کعب حدیث هم ذکر کړې دې، چه په هغې کښې قنوت فی الوتر مذکور دې، لیکن په هغې کښې هغوی د راویانو اختلاف ثابت کړې دې، دهغې په دریو طریقو کښې صرف یو طریق کښې قنوت فی الوتر مذکور دې، باقی په دواؤ کښې نشته، او امام ترمذی رحمه الله د قنوت فی الوتر باب قائمولو سره په هغې کښې هغوی هم دا حدیث الباب یعنی د حسن بن علی رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې، او په دې باندې ئې د حسن حکم لګولې دې، او فرمائیلې دی، ولا نعرف عن النبی (صلی الله علیه وسلم) فی القنوت شیئا احسن من هذا، او زمونږ امام ابوداؤد د قنوت فی الوتر په باب کښې درې احادیث ذکر کړې دی، د حسن بن علی رضی الله عنه حدیث او دویم د علی رضی الله عنه حدیث، په دې دواړو باندې ئې هیڅ نقد نه دې کړې، او دریم حدیث د ابی بن کعب رضی الله عنه ئې ذکر کړې دې، په دې کښې هغوی د راویانو اختلاف او اضطراب ثابت کړې دې، او دې ته ئې غیر ثابت او ضعیف وئیلې دی، او امام بیهقی په السنن الکبری کښې د امام ابوداؤد کلام او دهغوی رائې نقل کولو سره دهغوی تائید کړې دې، لیکن علامه ابن الترکمانی په الجوهر النقی کښې د امام ابوداؤد د رائې تعقب کړې دې، او حدیث دابی لره ئې ثابت کړې دې.

دا خبره دې واضحه وی، چه په صحیحینو (بخاری او مسلم) کښې د قنوت فی الوتر هیڅ حدیث نشته، او کیدې هم نشی، ځکه چه امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائې (کما حکی عنه الحافظ ابن القیم) لم یصح عن النبی (صلی الله علیه وسلم) فی قنوت الوتر قبل الرکوع و بعده شئ، (منهل) لیکن امام بخاری رحمه الله په ابواب الوتر کښې باب القنوت مطلقا قائم کړې دې، چه په هغې کښې د فی الوتر یا فی الفجر هیڅ قیدنه دې لګولې، په هغې باندې دبعضو شارحینو رائې داده، چه د امام بخاری رحمه الله میلان د قنوت فی الوتر مشروعیت طرف ته دې.

ددې برعکس په صحیح بخاری کښې اګر چه د قنوت فی الفجر حدیث موجود دې، لیکن هغوی په قنوت فی الفجر باندې هیڅ باب نه دې قائم کړې، زمونږ د حضرت شیخ رائې داده، چه امام بخاری رحمه الله د قنوت فی الفجر (دائما) قائل نه دې.

**بحث سابع: (قنوت فی الفجر)**

قنوت فی الفجر یعنی دائما، چه دهغې شافعیه او مالکیه قائل دی، دهغې په ثبوت او دلائلو باندې کلام به مونږ انشاء الله تعالی د باب القنوت فی الصلوات دلاندې کښې کوؤ، والله الموفق.

[١٤٢٦] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ فِي آخِرِهِ، قَالَ: هَذَا يَقُولُ فِي الْوِتْرِ فِي الْقُنُوتِ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَقُولُهُنَّ فِي الْوِتْرِ أَبُو الْحَوْرَاءِ رَبِيعَةُ بْنُ شَيْبَانَ.

ابو اسحاق په خپل سند سره د مذکوره بالا حديث هم معنى بيان کړې دې . ددې روايت په آخر کښې دی چه دې لره به ئې دَ وترو په قنوت کښې لوستلو او دا جمله ئې نۀ ده وئيلی چه زۀ دې لره په وترو کښې لولم .

**قوله:** حدثنا عبدالله بن محمد النفيلی نا زهير نا ابواسحاق باسناده و معناه:

## شرح السند:

په اول سند کښې د ابواسحاق شاګرد ابوالاحوص دې، او دلته کښې زهير دې.
زهير دې حديث لره د ابواسحاق نه روايت کوی د ابواسحاق سند سابق سره او هم هغې مضمون سره، ليکن په دواړو روايتونو کښې فرق دې، چه هغې لره مصنف مخکښې بيانوی، هغه دا چه د ابوالاحوص روايت کښې اقولهن فی الوتر خپله د حسن بن علی قول دې، او د زهير په روايت کښې دادی، ابوالحوراء وائی، چه دې کلمات لره به حسن بن علی په وترو کښې لوستل، په دې صورت کښې به دا مقوله د ابوالحوراء وی، بيا په دې کښې دوه احتماله دی، يو دا چه هغه به دا کلمات په وترو کښې د حضور (ﷺ) دحکم مطابق لوستل، او دويم احتمال دا چه هغه به په خپله رائې سره دا کلمات په وترو کښې لوستل، او د ابوالاحوص د روايت د ظاهر نه دا معلوميږی، چه حضور (ﷺ) هغه ته دا کلمات په وترو کښې دلوستلو دپاره ښودلې وو، بهرحال حضرت حسن رضي الله عنه به دا دعاء په وترو کښې لوستله، دا خبره خو متعينه ده، ليکن پاتې شوه دا خبره چه حضور (ﷺ) ورته په وترو کښې د لوستلو فرمائيلې وو، دا خبره يقينی نه ده، (وهذا بحمد الله غاية توضيح و تحقيق لهذا المقام اخذته من كلام صاحب المنهل.

[١٤٢٧] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عَمْرٍو الْفَزَارِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي آخِرِ وِتْرِهِ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سُخْطِكَ، وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ لَا أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هِشَامٌ أَقْدَمُ شَيْخٍ لِحَمَّادٍ، وَبَلَغَنِي عَنْ يَحْيَى بْنِ مَعِينٍ، أَنَّهُ قَالَ: لَمْ يَرْوِ عَنْهُ غَيْرُ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَنَتَ، يَعْنِي فِي الْوِتْرِ، قَبْلَ الرُّكُوعِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى عِيسَى بْنُ يُونُسَ هَذَا الْحَدِيثَ أَيْضًا، عَنْ فِطْرِ بْنِ خَلِيفَةَ، عَنْ زُبَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ، وَرُوِيَ عَنْ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ زُبَيْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَنَتَ فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوعِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ سَعِيدٍ عَنْ قَتَادَةَ. رَوَاهُ يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٤٠٤) (صحيح)
[2]: تخريج: سنن الترمذي/الدعوات ١١٣ (٣٥٦٦)، سنن النسائي/قيام الليل ٤٢ (١٧٤٨)، سنن النسائي/قيام الليل ٤١ (١٧٣٩) سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١٧ (١١٧٩)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٠٧)، وقد أخرجه: حم (٩٦/١، ١١٨، ١٥٠) (صحيح)

قَتَادَةَ، عَنْ عَزْرَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، لَمْ يَذْكُرِ الْقُنُوتَ، وَلَا ذَكَرَ أُبَيًّا، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ عَبْدُ الْأَعْلَى، وَمُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ الْعَبْدِيُّ، وَسَمَاعُهُ بِالْكُوفَةِ مَعَ عِيسَى بْنِ يُونُسَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا الْقُنُوتَ، وَقَدْ رَوَاهُ أَيْضًا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، وَشُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، وَلَمْ يَذْكُرَا الْقُنُوتَ، وَحَدِيثُ زُبَيْدٍ. رَوَاهُ وَشُعْبَةُ، وَعَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، وَجَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ كُلُّهُمْ، سُلَيْمَانُ الْأَعْمَشُ، عَنْ زُبَيْدٍ، لَمْ يَذْكُرْ أَحَدٌ مِنْهُمُ الْقُنُوتَ، إِلَّا مَا رُوِيَ عَنْ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ زُبَيْدٍ، فَإِنَّهُ قَالَ فِي حَدِيثِهِ "إِنَّهُ قَنَتَ قَبْلَ الرُّكُوعِ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَلَيْسَ هُوَ بِالْمَشْهُورِ مِنْ حَدِيثِ حَفْصٍ نَخَافُ أَنْ يَكُونَ عَنْ حَفْصٍ، عَنْ غَيْرِ مِسْعَرٍ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَيُرْوَى أَنَّ أُبَيًّا كَانَ يَقْنُتُ فِي النِّصْفِ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ.

د حضرت علی ابن ابی طالب رضی الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ به د خپلو وترو په اخر کښي دا لوستل : [ (اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ، وَبِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْكَ لَا أُحْصِي ثَنَاءً عَلَيْكَ أَنْتَ كَمَا أَثْنَيْتَ عَلَى نَفْسِكَ)] اي الله ! زهٔ پناه غوارم ستا په رضاء سره ستا د ناراضتیا نه، او ستا په عفو او درگزر سره پناه غوارم ستا د عقوبت او عذاب نه، او زهٔ ستا نه (یعنی ستا د غیظ او غضب نه) پناه غوارم، زهٔ ستا تعریفونه نهٔ شم شمیرلې . تهٔ هم داسې ئې لکه څنګه چه تا د خپل ځان په خپله صفات بیان کړي دی . امام ابوداود رحمه الله فرمائی : چه هشام د حماد قدیم ترین استاذ دې . او د یحیی بن معین نه روایت دې چه دهٔ (هشام) نه، سوا د حماد بن سلمه نه بل چا روایت نهٔ دې کړې . امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه عیسی بن یونس د سعید بن ابی عروبه نه، هغوی د قتاده نه، هغوی د سعید بن عبد الرحمن بن ابزیٰ نه، هغوی د خپل پلار نه، هغوی د ابی ابن کعب رضی الله عنه نه روایت کړې دې چه رسول الله ﷺ د رکوع نه مخکښې قنوت اولوستل، یعنی په وترو کښې امام ابوداود رحمه الله فرمائی : عیسیٰ بن یونس دې حدیث لره هم د فطر بن خلیفه نه، هغوی د زبید نه، هغوی د سعید بن عبد الرحمن بن ابزیٰ نه، هغوی د خپل پلار نه او هغوی د حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه نه، هغوی د نبی کریم ﷺ نه د مذکوره بالا هم مثل روایت کړې دې . د ابو حفص بن غیاث نه مروی دی، هغه د مسعر نه هغه د زبید نه، هغهٔ د سعید بن عبد الرحمن بن ابزیٰ نه هغه د خپل پلار نه، هغوی د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ په وترو کښې د رکوع نه مخکښې قنوت اولوستل . امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه د سعید بن ابی عروبه (مذکوره بالا روایت) کوم چه هغوی د قتاده رضی الله عنه نه روایت کړې دې هغې لره سعید بن زریع د سعید نه، هغوی د قتاده نه، هغوی د عزره نه، هغوی د سعید بن عبد الرحمن بن ابزیٰ نه، هغوی د خپل پلار نه، هغوی د نبی کریم ﷺ نه روایت کړې دې، مګر په دې کښې ئې نهٔ د قنوت ذکر کړې دې او نهٔ د ابی بن کعب رضی الله عنه . (یعنی مرسل دې .) امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې لره عبد الاعلیٰ او محمد بن بشر عبدی هم داسې روایت کړې دې . او د دوی (محمد بن بشر) سماع د عیسیٰ بن یونس سره په کوفه کښې ثابت ده، هغوی د قنوت ذکر نهٔ دې کړې او دې لره هشام دستوائي او شعبه هم د قتاده نه روایت کړې دې او دې دواړو د قنوت ذکر نهٔ دې کړې . امام ابوداود رحمه الله فرمائی : چه حدیث د زبید لره سلیمان اعمش، شعبه، عبد الملک بن ابی سلیمان او جریر بن حازم دې ټولو د زبید نه روایت کړې

دي، مګر په دوی کښې چا هم د قنوت ذکر نۀ دې کړې سوا د حفص بن غیاث نه چه دې لره
ئې په واسطه د مسعر، د زبید نه روایت کړې دې چه " حضور ﷺ د رکوع نه مخکښې
قنوت اولوستل ." امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه د حفص دا حدیث مشهور نۀ دې، اندیښنه
ده چه دا د مسعر نه علاوه د چا بل چا نه روایت وی . امام ابوداود رحمه الله فرمائی روایت کړې
شوې دې چه حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه به په نصف رمضان کښې قنوت لوستل.

**تشریح: قوله**:عن علی ان رسول الله (صلی الله علیه وسلّم) کان یقول فی آخر وتره:
دا دباب دویم حدیث دې، د آخروتر په مطلب کښې څو احتمالات دی، (۱) په آخری رکعت
کښې د تشهدنه پس (۲) په حالت قیام کښې د قرأت نه پس او د رکوع نه مخکښې دعاء
قنوت سره، یا صرف هم دا دعاء (۳) وتر نه فارغ کیدلو نه پس د سلام نه روستو، لکه چه په
بعضو روایاتو کښې ددې تصریح هم شته، لهذا هم دا مطلب راجح دې.

قال ابوداؤد روی عیسی بن یونس عن سعید بن ابی عروبة عن قتادة.

## حدیث ابی بن کعب رضی الله عنه تعلیقا:

په دې ځائې کښې مصنف یو دریم حدیث ذکر کوی، (حدیث د ابی بن کعب رضی الله عنه) لیکن
تعلیقا، ځکه چه عیسی بن یونس د مصنف استاذ نه دې، بلکه استاذ الاستاذ دې، او دې
دریم حدیث لره مصنف ځکه ذکر کوی، چه په دې کښې یوه نوې خبره ذکر ده، چه په اول
دواؤ احادیثو کښې نه وه، یعنی محل دقنوت، نو په دې روایت کښې دی، ان رسول الله
(صلی الله علیه وسلم) قنت فی الوتر قبل الرکوع.

## په حدیث دابی رضی الله عنه باندې د مصنف نقد:

لیکن د مصنف تحقیق دادې، چه د ابی بن کعب په دې حدیث کښې د **قنت فی الوتر**
زیاتوالې ثابت نه دې، بلکه ددې حدیث صرف دومره حصه ثابت ده، چه حضور (ﷺ) به د
وترو درې رکعته ادا کول، په اول رکعت کښې به ئې **سبح اسم ربک الاعلی**، او په دویم کښې
به ئې **قل یاایها الکفرون** او په دریم کښې به **قل هو الله احد** لوستلو، لکه چه په نورو کتابونو
د حدیث (نسائی وغیره) کښې دا مضمون ذکر دې.

دا خو یقین سره نشی وئیلې کیدې،[1] چه مصنف د **قنوت فی الوتر بالکل قائل** نه دې،
ځکه چه مصنف حنبلی دې، او د امام احمد رحمه الله نه منقول دی، چه د قنوت فی الوتر په
سلسله کښې هیڅ حدیث ثابت نه دې، لیکن ددې باوجود هغوی د قنوت فی الوتر قائل
دی، ځکه چه حضرت عمر رضی الله عنه به ټول کال په وترو کښې قنوت لوستلو، (هکذا حکی عن
احمد بن حنبل رحمه الله) دغه شان د باب په شروع کښې مصنف د حسن بن علی رضی الله عنه حدیث ذکر
کړې دې، چه دهغې نه قنوت فی الوتر ثابتیږی، دغه شان د دویم حدیث یعنی د علی رضی الله عنه

---

[1] د دې د لیکلو ضرورت په دې وجه پیښ شو چه په شروع کښې بنده هم دا خیال کوی چه مصنف هم
د قنوت فی الوتر د نورو ائمه کرامو په شان قائل نه دې ځکه چه مصنف د ابن ابی کعب دا حدیث چه
پکښې د قنوت فی الوتر تصریح ده ډیر په قوت او شدت سره رد کړې دې، بیا ئې وړاندې هم دغه
شان رد کړې دې. فقط والله اعلم

حديث نه هم ثابتيږي، غرض دا چه د مصنف رحمه الله قنوت فی الوتر قائل کيدو دا معنی نه ده، چه هغه ددې سلسلې ټول احاديث صحيح منی.

## د الاضطراب الواقع فی السند تشريح:

په دې حديث کښې مصنف د راويانو اختلاف او اضطراب ثابتوی، ددې ټول اختلاف او اضطراب حاصل کوم چه مصنف بيان کړې دې، دادې، چه ددې حديث مدار په سعيد بن عبدالرحمن باندې دې، او بيا دهغه نه روايت کونکې دوه دی، قتاده او زبيد، د هر يو ډير شاګردان دی، او هغه شاګردان په خپلو کښې مختلف دی، او هغه اختلاف دادې، چه بعضې راويان په دې حديث کښې قنوت لره ذکر کوی، او بعضې نه ذکر کوی، او بعضو په دې کښې ابی لره هم ذکر کړې نه دې، او حديث لره ئې مرسلا روايت کړې دې.

اولا قتاده لره واخلئ، سعيد بن ابی عروبه د قتاده نه په دې حديث کښې د قنوت فی الوتر قبل الرکوع ذکر کړې دې، هشام دستوائی او شعبه د قتاده نه په دې حديث کښې قنوت ذکر کړې نه دې، بيا د ابن عروبه تلامذه هم په خپلو کښې دهغه نه روايت کولو کښې متفق نه دی، صرف عيسی بن يونس دهغه نه په دې کښې قنوت ذکر کړې دې، يزيد بن زريع او عبدالاعلی او محمد بن بشر، دا درې واړه د ابن عروبه نه قنوت نه ذکر کوی.(١)

ددې نه پس اوس د زبيد روايت واخلئ، مصنف فرمائي و حديث زبيد رواه سليمان الاعمش و شعبة الخ، چه د زبيد اکثر تلامذه دهغه نه په دې حديث کښې قنوت فی الوتر نه ذکر کوی، او هغه اکثر دادی، اعمش، شعبه عبد الملک، جرير بن حازم، بلکه صرف مسعر د زبيد نه قنوت ذکر کړې دې،(٢) او د مسعر نه روايت کونکې حفص بن غياث دې، (او په هغې کښې هم دا اشکال دې، چه د مسعر نه چه د حفص کوم مشهور روايت دې، هغه داسې نه دې) لهذا کيدې شی، چه د حفص دا روايت (په کوم کښې چه قنوت مذکور دې) د مسعر نه علاوه دبل چانه روايت وی.

**تشريح: قوله:** قال ابوداؤد و يروی ان ابيا رضی الله عنه کان يقنت فی النصف من شهر رمضان:

دا تعليق دې، ددې وصل مخکښې خپله مصنف بيانوی، د مصنف غرض ددې په نقل کولو سره دادې، چه په حديث دابی کښې ذکر دقنوت ثابت نه دې، ځکه چه که هغه ثابت وې، لکه چه بعضې راويانو دې لره ذکر کړې دې، نو بيا حضرت ابی دهغې خلاف څنګه کول.

[١٤٢٨](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، أَخْبَرَنَا هِشَامٌ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِهِ، أَنَّ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ أَمَّهُمْ، يَعْنِي فِي رَمَضَانَ، وَكَانَ يَقْنُتُ فِي النِّصْفِ الْآخِرِ مِنْ رَمَضَانَ.

محمد بن سيرين د بعضِ خپلو اصحابو نه روايت کوی چه حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه د

---

(١) په دې باندې ابن الترکمانی (ح) فرمائی چه عيسی بن يونس انتهائی ثقه راوی دې او د ثقه زيادة معتبر دې او د عيسی شاهد هم موجود دې د نسائی په روايت کښې. ١٢

(٢) په دې باندې ابن الترکمانی اعتراض کړې دې چه تعجب دې چه مصنف اوس نږدې د فطر بن خليفه روايت د زبيد نه نقل کړې دې چه په هغې کښې د قنوت ذکر موجود دې. ١٢

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٩) (ضعيف)

هغوی امامت اوکړو په رمضان کښې، اوهغه به د رمضان په نصف آخر کښې قنوت لوستل.

حدثنا احمد بن محمد بن حنبل: دا د تعليق سابق وصل دی، يعنی اول روايت مصنف بغير د سند نه بيان کړې دې، دلته کښې دهغې سند بيانوی، ليکن دا روايت ضعيف دې، ځکه چه ددې سند په راوی مجهول باندې مشتمل دې،

[١٤٢٩] (١) حَدَّثَنَا شُجَاعُ بْنُ مَخْلَدٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ جَمَعَ النَّاسَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ فَكَانَ يُصَلِّي لَهُمْ عِشْرِينَ لَيْلَةً وَلَا يَقْنُتُ بِهِمْ إِلَّا فِي النِّصْفِ الْبَاقِي، فَإِذَا كَانَتِ الْعَشْرُ الْأَوَاخِرُ تَخَلَّفَ فَصَلَّى فِي بَيْتِهِ، فَكَانُوا يَقُولُونَ: أَبَقَ أُبَيٌّ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ الَّذِي ذُكِرَ فِي الْقُنُوتِ لَيْسَ بِشَيْءٍ، وَهَذَانِ الْحَدِيثَانِ يَدُلَّانِ عَلَى ضَعْفِ حَدِيثِ أُبَيٍّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَنَتَ فِي الْوِتْرِ".

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه خلقو لره په حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه باندې راجمع کړل او هغوی ته به ئې شل رکعته مونځ لوسلتو او قنوت به ئې نۀ کول. مګر په نصف آخير کښې به ئې قنوت وئيل. او کله چه به آخری عشره راغله نو جمع ورکول به ئې پريخودل او په خپل کور کښې به ئې مونځ لوستلو نو خلقو به وئيل چه ابی اوتخښتيدو .امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دا دليل دې د قنوتو په باره کښې چه کوم څه ذکر شو دا صحيح نۀ دی او دا دواړه حديثونه کوم چه دابی نه مروی دی ددې حديث د ضعيف کيدو دليل دې چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم به قنوت لوستل.

**تشريح: قوله**:حدثنا شجاع بن مخلد الخ:په دې روايت کښې داول روايت توضيح او تفصيل دې.

عن الحسن ان عمر بن الخطاب رضی الله عنه جمع الناس على ابی بن كعب فكان يصلى لهم عشرين ليلة:

د تراويح د رکعتونو باره کښې تير شوې دی، چه دلته د ابوداؤد په بعضو نسخو کښې د عشرين ليلة په ځائې عشرين رکعة دې، او دا هغه نسخه ده، کومه چه حضرت مولانا احمد علی صاحب محدث سهارنپوری د حجاز نه نقل کولو سره دلته راوړې وه، او هم په دغه نسخه کښې هغوی مکه مکرمه کښې د حضرت شاه محمد اسحاق صاحب رحمه الله نه سبق وئيلې وو،

**قوله**:ولا يقنت بهم الا فى النصف الباقي:

حضرت ابی خلقو ته صرف شل ورځې تراويح ورکولې، او په شلو کښې به ئې صرف په نصف باقی (يعنی آخری نيمه حصه) کښې وتر مع القنوت لوستۀ، او په نصف اول يعنی د رمضان د شروع نه تر پنځلسم تاريخ پورې قنوت فی الوتر نه لوستۀ، بلکه نصف باقی يعنی پنځلسو نه تر شلو پورې به ئې لوستۀ، (كذا فی المنهل) او حضرت په بذل کښې د شلو ورځو تنصيف کړې دې، يعنی لس ورځې (عشره اولى) کښې به ئې نه لوستۀ، او په نصف باقی يعنی عشره ثانيه کښې به ئې قنوت لوستۀ، او بيا به په دريمه عشره کښې به لاړو، تراويح به ئې هم په جمات کښې نه ورکولې.

**قوله**:قال ابوداؤد........ وهذان الحديثان يدلان على ضعف حديث ابی الخ:

د قنوت فی الوتر باره کښې د ابی بن کعب حديث لره حنفيه خو ثابت او صحيح منی، او دهغې نه په ټول کال کښې قنوت فی الوتر ثابتوی، ليکن مصنف رحمه الله ددې حديث د

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:١٠) (ضعيف)

تضعيف كوشش كوى، هغه داسې چه دا حديث ابى، چه مرفوع دې، كه ثابت شى، نو بيا خپله ابى ددې خلاف عمل ولې كولو، ځكه د هغه عمل خو دادې، چه هغه به صرف د رمضان په نصف آخركښې قنوت فى الوترلوستو ،لكه چه ددې دواړو احاديثونه ثابتيږى.

**د مصنف په كلام باندې نقد:**

د مصنف ددې دعوىٰ تضعيف جواب حضرت په بذل كښې د علامه ابن التركمانى نه دا نقل كړې دې، چه دا دواړه احاديث خپله ضعيف دى، بيا ددې په ذريعې سره د حديث ابى تضعيف څرنګه صحيح كيدې شى، ځكه چه د حديث اول په سند كښې يو راوى مجهول دې (عن بعض اصحابه) او د حديث ثانى په سند كښې انقطاع ده، ځكه چه د حسن بصرى رحمه الله سماع د حضرت عمر رضي الله عنه نه ثابته نه ده.([1]) (والله تعالى اعلم)

دمصنف په كلام باندې نورهم نقدشته،چه په تيره شوې حاشيه كښې ښكاره كړې شوې دې.

## بَابٌ فِي الدُّعَاءِ بَعْدَ الْوِتْرِ

**باب: ٦-دَوترو نه پس دُعا**

[١٤٣٠]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدَةَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ طَلْحَةَ الْأَيَامِيِّ، عَنْ ذَرٍّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ فِي الْوِتْرِ، قَالَ: "سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ".

دحضرت ابى بن كعب رضي الله عنه بيان دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به كله د وترو نه سلام اړولو نو فرمائيل به ئې : (سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوس) پاک دې هغه ذات كوم چه حاكم مطلق دې او په هر اعتبار سره پاک دې.

كان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) اذا سلم فى الوتر قال سبحان الملك القدوس :

نبى كريم (صلى الله عليه وسلم) به د وترو نه پس دا دعاء مذكوره لوستله، او په بعضو رواياتو كښې دادى، چه دې لره به نبى كريم (صلى الله عليه وسلم) درې كرته لوستله، اول او دويم ځل په مزه، او دريم ځل به ئې آواز اوچت او اوږد كړو، او بعضې روايتونو كښې د كلمات مذكوره نه پس دا هم دى، رب الملئكة والروح، او په يو روايت كښې د الملک القدوس په ځائې سبحان ربى القدوس وارد دى، سوال دادې، چه دا دعاء نه ده، بلكه دا خو تسبيح او ذكر دې، جواب دادې، چه د مصنف مراد په ترجمة الباب كښې د دعا نه عامه دعا مراد ده، دعا يا ذكر هر څه چه وى، يا دې دا اووئيلې شى، چه د الله تعالى حمد او ثناء عين دعا ده، الثناء على الكريم دعاء، يو روايت ياديږى، افضل الدعاء الحمد لله.

[1] تنبيه : حضرت په بذل كښې د مصنف د قول (علي ان الذي ذكر في القنوت) باندې ليكلې دى: اي من كونه قبل الركوع ... زما رائې دا ده چه د مصنف نقد صرف په قبل الركوع نه دې بلكه په ذكر قنوت فى الوتر باندې دې يعنى د ابى په حديث مرفوع كښې (قنت في الوتر قبل الركوع) د دې پوره جملې زيادت ثبت نه دې. والله تعالي اعلم ١٢. دا بحث او مقام زمونږ په شان طالبانو دپاره لږ شان ګران او دقيق وو، د الله پاک په فضل سره اوليكلې شو.

[2]: سنن النسائي/قيام الليل ٤٨ (١٧٣٣)، (تحفة الأشراف:٥٥) (صحيح)

[١٤٣١]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي غَسَّانَ مُحَمَّدِ بْنِ مُطَرِّفٍ الْمَدَنِيِّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهِ أَوْ نَسِيَهُ فَلْيُصَلِّهِ إِذَا ذَكَرَهُ".

حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څوک د وترو د لوستونه اوده شو(اوادا ئې ادا نۀ کړې شو) يا هيرشي نوکله چه ورته ياد شي نو ادا دې کړي.

**تشريح: قوله**: عن ابی سعید الخدری رضي الله عنه قال قال رسول الله (صلى الله عليه وسلم) من نام عن وتره او نسيه فليصله اذا ذكره: ددې حديث د ترجمة الباب سره هيڅ مناسبت نشته، صاحب منهل ليکلي دی، ممکن ده چه دبعضو ناسخينونه ترجمة الباب دنقل کولونه پاتې شوې وی، باب من نام عن وتره او نسيه.

په دې حديث کښې امر بقضاء الوتر مذکور دی، چه د وجوب وتر دليل دې، د قضاء وتر خو ټول امامان قائل دی، که د وجوب قائل وی او که نه وی.

**د وتر قضا د کوم وخته پورې ده:**

ليکن په دې کښې اختلاف دې، چه د وترو قضا کوم وخته پورې ده، په دې کښې ډير اقوال دی، (١) د صحابه کرامو او تابعينو يو جماعت، چه په هغې کښې امام مالک او امام احمد هم دي، دهغوی په نزد د وترو قضا مالم يصل الصبح پورې ده، (يعنی د سحر مونځ ادا کولو نه مخکښې مخکښې دهغې نه پس نشته) داسې يو روايت د امام شافعي رحمه الله نه هم منقول دې، ليکن د امام مالک رحمه الله په نزد د صبا راختلو نه پس دسحر مانځه پورې د وترو وخت وخت ادا دې، قضاء نه دې، (٢) د حنفيه مذهب او د شافعيه قول مشهور دادې، چه د وترو قضاء هميشه ده، د څه زمانې سره خاص نه ده، چه دهغې نه پس بيا قضاء نه وی، البته د حنفيه په نزد په اوقات مکروهه کښې کول جائز نه دی، د شافعيه په نزد جائز دی.

په دې کښې نور هم بعضې مذاهب شته، مثلا د ابراهيم نخعي رحمه الله په نزد د وترو قضاء صرف الى طلوع الشمس پورې ده، د طلوع شمس نه پس نشته، او حسن، طاؤس او مجاهد رحمهم الله وغيره په نزد وترو قضاء صرف زوال پورې ده، دهغې نه پس نشته، سعيد بن جبير رحمه الله فرمائې چه د وترو قضاء د طلوع فجر نه پس په ورځ کښې هيڅ يو وخت کښې نشته، بلکه آئنده شپه کښې دهغې قضاء ده، څکه چه وتر د شپې مونځ دې، نو عمل الليل لره عمل النهار جوړول صحيح نه دی.

دبعضې احاديثو نه (د مسند احمد وغيره) د حضور (ﷺ) نه وتر د طلوع فجر نه پس او د صلوة فجر نه مخکښې ادا کول ثابت دی، غالبا ددې وجې نه د امام مالک رحمه الله مذهب دادې، چه د وترو مونځ د طلوع فجر نه پس او د سحر د مونځ نه مخکښې اداء دې، قضاء نه دې، كما تقدم قريبا(ملخصا من المنهل) په دې مسئله کښې (د وترو قضاء کوم وخت پورې ده) په بذ المجهود کښې د علماؤ اتۀ مذاهب نقل کړې دی، په هغې کښې اکثر بره اوليکلې شو،

(): سنن الترمذي/الصلاة ٢٢٥ (الوتر ٩) (٤٦٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٢٢ (١١٨٨)، (تحفة الأشراف:٤١٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣١، ٤٤) (صحيح)

د ابن حزم ظاهری مذهب دا ليکلې دې، چه د خوب او نسيان په صورت کښې (لکه چه په حديث کښې ذکر دې) د وترو قضاء هميشه کولې شي، ليکن عمدا ترک کولو په صورت کښې قضاء ممکن نه ده. پس د ائمه اربعه مسلک دا شو، چه د امام مالک او امام احمد په نزد د وتروقضاء د سحر مانځه پورې ده، اوداحنافو او شوافعو په نزد ددې قضاء هميشه ده.

## بَابٌ فِي الْوِتْرِ قَبْلَ النَّوْمِ

### باب: ٧- داوده کيدو نه مخکښې وتر لوستل

مشهور حديث دې، اجعلوا آخر صلوتکم بالليل وترا، (رواه الشيخان وغيرهما) ليکن دا امر استحبابی دې، ځکه چه نبی کريم (ﷺ) بعضو صحابه کرامو ته لکه ابوهريره رضي الله عنه (د هغوی د حال مناسبت سره) بعد العشاء قبل التهجد د وتر ادا کولو هدايت فرمائيلې وو.

[١٤٣٢](١) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ مِنْ أَزْدِشَنُوءَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "أَوْصَانِي خَلِيلِي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثَلَاثٍ لَا أَدَعُهُنَّ فِي سَفَرٍ وَلَا حَضَرٍ: رَكْعَتَيِ الضُّحَى، وَصَوْمِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مِنَ الشَّهْرِ، وَأَنْ لَا أَنَامَ إِلَّا عَلَى وِتْرٍ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان دې چه زما خليل (دوست) ماته د دريو خبرو وصيت فرمائيلې وو، زۀ هغې له په سفر او حضر کښې نۀ پرېږدم، د ځاښت دوه رکعته، په هره مياشت کښې درې روژې، او بل دا چه زۀ د وترو نه بغير اوده نۀ شم.

عن ابی هريرة رضي الله عنه اوصانی خليلی (صلی الله عليه وسلم) بثلاث...... وان لا انام الا علی وتر. ددې وجه بعضو علماؤ دا ليکلې ده، چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه به د شپې په اکثره حصه کښې د احاديثو حفظ کولو کښې مشغول وو (ګويا هغه طالب علم وو) نه ده معلومه چه آخرى شپه کښې ئې سترګې اوغړيږی او که نه، ددې وجې نه نبی کريم (ﷺ) هغه ته د وتر قبل النوم هدايت فرمائيلې وو، دغه شان فقهاء کرام هم د تاخير وتر باره کښې ليکی: لمن يثق بالانتباه.

[١٤٣٣](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ السَّكُونِيِّ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: "أَوْصَانِي خَلِيلِي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثَلَاثٍ لَا أَدَعُهُنَّ لِشَيْءٍ: أَوْصَانِي بِصِيَامِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ، وَلَا أَنَامُ إِلَّا عَلَى وِتْرٍ، وَبِسُبْحَةِ الضُّحَى فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ".

حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه بيان کوی چه ما ته زما خليل (دوست) د دريو خبرو وصيت فرمائيلې دې زۀ دې له په هيڅ صورت کښې نۀ پرېږدم، ماته ئې وصيت فرمائيلې دې چه زۀ په هره مياشت کښې درې روژې اونيسم، وتر ادا کړم او اوده شم، او د ځاښت نفل اوکړم، په سفر او حضر کښې.

---

(١): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف:١٤٩٤٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التهجد ٣٣ (١١٧٨)، والصيام ٦٠ (١٩٨١)، صحيح مسلم/المسافرين ١٣ (٧٢١)، سنن النسائي/قيام الليل ٢٦ (١٦٧٨)، والصيام ٧٠ (٢٣٧١)، ٨١ (٢٤٠٧)، مسند احمد (٢٢٩/٢، ٢٣٣، ٢٥٤، ٢٥٨، ٢٦٠، ٢٦٥، ٢٧١، ٢٧٧، ٣٢٩)، سنن الدارمي/الصلاة ١٥١ (١٤٩٥)، والصوم ٣٨ (١٧٨٦) (صحيح) دون قوله : «في سفر ولاحضر»

(٢): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف:١٠٩٢٥)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ١٣(٧٢٢)، مسند احمد (٤٤٠/٦، ٤٥١)(صحيح)

[۱۴۳۴]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَحْمَدَ بْنِ أَبِي خَلَفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو زَكَرِيَّا يَحْيَى بْنُ إِسْحَاقَ السَّيْلَحِينِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ: "مَتَى تُوتِرُ"، قَالَ: أُوتِرُ مِنْ أَوَّلِ اللَّيْلِ، وَقَالَ لِعُمَرَ: "مَتَى تُوتِرُ"، قَالَ: آخِرَ اللَّيْلِ، فَقَالَ لِأَبِي بَكْرٍ: "أَخَذَ هَذَا بِالْحَزْمِ"، وَقَالَ لِعُمَرَ: "أَخَذَ هَذَا بِالْقُوَّةِ".

حضرت ابو قتاده رضی الله عنه بیان کوی چه ما د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه تپوس اوکړو تاسو وتر په کوم وخت کښې ادا کوئ؟ هغوی اوفرمائیل زهٔ دَ شپې په اوله حصه کښې ادا کووم . دَ حضرت عمر رضی الله عنه نه مې تپوس اوکړو تاسو وتر په کوم وخت کښې لولئ؟ هغوی اوفرمائیل زهٔ ئې دَ شپې په آخرې حصه کښې لولم . هغوی دَ حضرت ابوبکر رضی الله عنه په باره کښې اوفرمائیل : هغه احتیاط لره غوره کړې دې او دَ حضرت عمر رضی الله عنه په باره کښې ئې اوفرمائیل هغه عزم او قوت لره اختیار کړې دې .

**تشریح: قوله:** اخذ هذا بالحذر واخذ هذا بالقوة: یعنی صدیق اکبر رضی الله عنه احتیاط لره اختیار کړې دې (چه وتر لره د عشاء نه پس ادا کوی) او عمر فاروق عزیمت او همت لره اختیار کړې دې (چه د وتر مونځ په آخری شپه کښې ادا کوی)

## بَابٌ فِي وَقْتِ الْوِتْرِ

### باب: ۸۰ دَ وترو دَ مونځ وخت

[۱۴۳۵]([2])حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ مُسْلِمٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ: مَتَى كَانَ يُوتِرُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَتْ: "كُلَّ ذَلِكَ قَدْ فَعَلَ أَوْتَرَ أَوَّلَ اللَّيْلِ، وَوَسَطَهُ، وَآخِرَهُ، وَلَكِنْ انْتَهَى وِتْرُهُ حِينَ مَاتَ إِلَى السَّحَرِ".

مسروق بیان کوی چه ما د حضرت عائشې رضی الله عنها نه پوښتنه اوکړه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به په کوم وخت کښې وتر ادا کول؟ هغې رضی الله عنها اوفرمائیل : چه حضور صلی الله علیه وسلم په هر وخت کښې وتر ادا کړې دی، د شپې په شروع کښې، په رمیان کښې، او په آخر کښې هم . لیکن په آخری زندګئ ئې وتر دَ سحر په وخت کښې وو .

[۱۴۳۶]([3])حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوِتْرِ".

حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : دَ سحر نه مخکښې مخکښې وتر لولئ .''

**تشریح: قوله:** عن ابن عمر رضی الله عنه ان النبی (صلی الله علیه وسلم) قال بادرو الصبح بالوتر. د تهجدو

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:١٢٠٩٢) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الوتر٢(٩٩٦)، صحيح مسلم/المسافرين١٧ (٧٤٥)، (تحفة الأشراف:١٧٦٣٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ٢١٨ (الوتر ٤) (٤٥٧)، سنن النسائي/قيام الليل ٣٠ (١٦٨٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٢١(١١٨٦)، مسند احمد (٤٦/٦، ١٠٠، ١٠٧، ١٢٩، ٢٠٥، ٢٠٦)، سنن الدارمي/الصلاة ٢١١ (١٦٢٨) (صحيح)

[3]: سنن الترمذي/الصلاة ٢٢٦ (٤٦٧)، (تحفة الأشراف:٨١٣٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ٢٠ (٧٥٠)، مسند احمد ١(٣٧/٢، ٣٨) (صحيح)

نه پس سحر کیدو نه مخکښې زر وتر ادا کړئ، وتر کوم وخته پورې ادا کیدې شی، ددې تفصيل په تیر شوي باب کښې تیر شو.

[١٤٣٧]()حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ وِتْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "رُبَّمَا أَوْتَرَ أَوَّلَ اللَّيْلِ، وَرُبَّمَا أَوْتَرَ مِنْ آخِرِهِ" قُلْتُ: كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَتُهُ، أَكَانَ يُسِرُّ بِالْقِرَاءَةِ أَمْ يَجْهَرُ؟ قَالَتْ: "كُلُّ ذَلِكَ كَانَ يَفْعَلُ رُبَّمَا أَسَرَّ، وَرُبَّمَا جَهَرَ، وَرُبَّمَا اغْتَسَلَ فَنَامَ، وَرُبَّمَا تَوَضَّأَ فَنَامَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ غَيْرُ قُتَيْبَةَ: تَعْنِي فِي الْجَنَابَةِ.

حضرت عبد الله بن ابی قیس بیان کوی چه ما د حضرت عائشې رضی الله عنها نه د رسول الله ﷺ د وترړو متعلق پوښتنه اوکړه نو هغې رضی الله عنها اوفرمائیل: کله خو به هغوی د شپې په اوله حصه کښې ادا کول او کله د شپې په آخر کښې. ما د هغې رضی الله عنها نه د حضور ﷺ د قرائت په باره کښې تپوس اوکړو چه آیا هغوی په خاموشئ سره تلاوت کولو یا په زوره آواز سره؟ نو هغې رضی الله عنها اوفرمائیل: هغوی به هر قسم تلاوت فرمائیلو، کله به ئې په خاموشئ سره تلاوت فرمائیلو او کله په بلند آواز سره. او کله به ئې غسل کولو او اودهٔ کیدلو به او کله به ئې اودس فرمائیلو او اودهٔ کیدلو به.

[١٤٣٨]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اجْعَلُوا آخِرَ صَلَاتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا".

حضرت ابن عمر رضی الله عنهما بیان کوی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د خپلې شپې اخری مونځ وتر قرار اوګرځوئ.

### د مصنف رحمه الله یو عادت:

مونږ دا اندازه لګولې ده، چه مصنف ډیر کرته د باب په اخر کښې داسې حدیث راوړی، چه د راتلونکې باب سره مناسب وی، ددې څه مثالونه زمونږ په ذهن کښې شته، دلته کښې هم مصنف هم داسې کار کړې دې، ځکه چه مخکښې د نقض الوتر باب راروان دې، او د هغې تعلق ددې حدیث یعنی اجعلوا آخر صلوتکم باللیل وترا. سره دې

## بَابٌ فِي نَقْضِ الْوِتْرِ

### باب: ٩- د وترو د ماتولو مسئله

دا یوه مشهوره اختلافی مسئله ده. په ائمه اربعه کښې خو هیڅ اختلاف نشته. البته په قرن اول کښې اختلاف شوی دې، بعضې صحابه کرام علی، عثمان، ابن مسعود رضی الله عنهم د نقض وتر قائل دی، دغه شان ابن عمر رضی الله عنهما بلکه ابن عمر رضی الله عنهما هم په دې باندې عمل هم کولو، کما فی مسند احمد. او په ائمه حدیث کښې اسحق بن راهویه رحمه الله هم ددې قائل دې

[١]: صحيح مسلم بالحيض ٦ (٣٠٧)، سنن الترمذي بالصلاة ٢١٢ (٤٤٩)، فضائل القرآن ٢٣ (٢٩٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٢٧٩)، وقد أخرجه: سنن النسائي قيام الليل ٢١ (١٦٦٣)، مسند احمد (٦/٧٣، ١٤٩، ١٦٧) (صحيح)

[٢]: صحيح البخاري بالوتر ٥ (٩٩٨)، صحيح مسلم بالمسافرين ٢٠ (٧٥١)، (تحفة الأشراف: ٨١٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٠، ١٠٢، ١٤٣) (صحيح)

**(د نقض وتر مسئلې توضیح)**

د نقض وتر چه کومه مسئله ده، دهغې بنیاد په دواړ احادیثو باندې دې، (۱) اجعلوا اخر صلوتکم الخ، (۲) لا وتران فی لیلة، ددې توضیح داده، چه نبی کریم (ﷺ) اوفرمائیل: د وترو مونځ د شپې تولو مونځونو نه په آخر کښې ادا کړه، لهذا د تهجدو نه پس کول پکار دی، اوس که یو سړی بعد العشاء وتر ادا کړل، او روستو د تهجدو په وخت کښې بیدار شو، نو اوس به دا سړې څه کوی، که د تهجدو مونځ ادا کوی، نو د حدیث نمبر۱ خلاف راځی، اوکه ددغې حدیث رعایت ساتی نو د تهجدو نه محرومیږی، او که داسې اوکړی، چه تهجد ادا کولو نه پس د حدیث نمبر۱ په رعایت کښې آخر کښې دوباره وتر ادا کړی، نو د حدیث نمبر۲ خلاف راځی، چه په یوه شپه کښې دوه کرته وتر ادا کول نشته.

نو ددې مشکل حل بعضو علماؤ دا راویستلې دې، چه نقض وتر دې اوکړې شی، یعنی د شپې په شروع کښې چه کوم د وتر مونځ ادا کړې شوې وو، هغې لره دې مات کړې شی، ددې صورت به دا وی، چه تهجد شروع کولو نه مخکښې به یو رکعت مونځ په دې نیت سره ادا کړی، چه دې لره زۀ د وتر په رکعتونو کښې، کوم چه ما د شپې په شروع کښې ادا کړې وو، شاملوم، اوس به هغه مخکښنې د وترو مونځ د وترو په ځائې شفع شی (هم دا مطلب دې د نقض وتر) ددې نه پس به دا سړې په آرام سره د تهجدو مونځ ادا کړی، او بیا به آخر کښې د تهجدو نه پس وتر هم ادا کړی، په دې صورت کښې د تهجدو نه هم محرومه نه شو، اوددې دواړو احادیثو خلاف به هم اونه شو، اسحق بن راهویه ددې قائل دې، او د مسند احمد د روایت نه معلومیږی، چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه به هم داسې کول.

**د جمهورو دلیل:**

ائمه اربعه او جمهور چه د نقض وتر قائل نه دی، هغوی دا فرمائي، چه د سړی په اختیار کښې دا چرته دی، چه هغه مخکښنی وترو لره مات کړی، هغه خو آسمان ته هم رسیدلې دی، الیه یصعد الکلم الطیب والعمل الصالح یرفعه، لهذا که هغه شکل اختیاروی، کوم چه قائلین نقض بیانوی، نو مخکښنی وتر به هم باقی وی، او دا یو رکعت چه په مینځ کښې ادا کړې دی، دا به دویم وتر شی، او بیا د تهجدو نه پس چه کوم وتر ادا کوی، هغه به دریم وتر شی، او دا څیز خلاف مقصود دې، په حدیث کښې خو د دواړ وترو ممانعت راغلې دې، او دلته په دې صورت کښې درې وتره راځی، عرض دا چه د حدیث نمبر۱ هم خلاف شو، او د حدیث نمبر۲ هم خلاف شو، لاحول و لاقوة الا بالله.

جمهور علماء دا فرمائي اجعلوا اخر صلوتکم باللیل وترا، کښې امر صرف داستحباب دپاره دې، د وجوب دپاره نه دې، لهذا که یو سړی د ماسخوتن د مانځه نه پس وتر ادا کړل، او بیا روستو د تهجدو په وخت کښې بیدار شو، نو هغه بغیر د تکلف نه تهجد ادا کولې شی، او د هیڅ څه کولو ضرورت نشته (د نقض وتر وغیره) ج

[۱۴۳۹] ()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا مُلَازِمُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ بَدْرٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ طَلْقٍ، قَالَ: زَارَنَا طَلْقُ بْنُ عَلِيٍّ فِي يَوْمٍ مِنْ رَمَضَانَ، وَأَمْسَى عِنْدَنَا وَأَفْطَرَ، ثُمَّ قَامَ بِنَا تِلْكَ اللَّيْلَةَ وَأَوْتَرَ بِنَا، ثُمَّ انْحَدَرَ إِلَى مَسْجِدِهِ فَصَلَّى بِأَصْحَابِهِ حَتَّى إِذَا بَقِيَ الْوِتْرُ قَدَّمَ رَجُلًا، فَقَالَ: أَوْتِرْ بِأَصْحَابِكَ، فَإِنِّي سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا وِتْرَانِ فِي لَيْلَةٍ".

قیس بن طلق بیان کوی چه حضرت طلق بن علی ﷺ په رمضان کښې یوه ورځ مونږ ته راغې او زمونږ سره ئې ماښام کړو او افطار ئې اوکړو، او بیا ئې په دغه شپه کښې مونږ ته مونځ راکړو او وتر ئې هم اوکړل، بیا خپل جمات طرف ته لاړو او هلته کښې ئې خپلو ملګرو ته مونځ ورکړو، او کله چه وتر باقی شو نو یو کس لره ئې مخکښې کړو اووې فرمائیل : خپلو ملګرو ته وتر اولوله، بې شکه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغوی ﷺ فرمائیل: په یوه شپه کښې دوه وتره نشته دې " (یعنی دوه ځله وتر کول نشته)

عن قیس بن طلق قال زارنا طلق بن علی فی یوم من رمضان امسی عندنا و افطر الخ:

قیس بن طلق وائی، چه یوه ورځ زما پلار یعنی طلق (خپلې محلې او قیامګاه نه) مونږ ته د رمضان په میاشت کښې تشریف راوړو، او ماښام پورې مونږ کره وو، روژه ئې ماته کړه، او تراویح ئې هم مونږ ټولو ته ورکړل او وتر هم، ددې نه پس د محلې جمات ته لاړو، او هلته ئې باقی تراویح ورکړې (د تراویح څه رکعتونه به ترې پاتې شوې وی) او بیا چه کله د وترو نمبر راغلو (نو چونکه خپله ئې وتر کړې وو) حاضرینو کښې یو کس ئې وتر ادا کولو دپاره مخکښې کړو، هغه د وترو مونځ ادا کړو او خپله د وترو مونځ نه ادا کولو وجه ئې دا بیان کړه، چه ما د حضور (ﷺ) نه اوریدلې دی، لاوتران فی لیلة، ددې ترکیب مونږ په حاشیه کښې لیکلې دې. ([2])

## باب القنوت في الصلوات

### باب: ۱۰-په عامو مونځونو کښې قنوت (دُعا) لوستل

### د ترجمة الباب توضیح:

په دې باب کښې د قنوت نازله بیان دې، چه عند الاکثر په ټولو فرضو مونځونو کښې مشروع دې، ددې وجې نه مصنف د جمع صیغه راوړې ده، په خلاف د قنوت دائمی، چه هغه د کومو امامانو په نزد فرض مونځونو کښې مشروع دې، صرف د سحر په مونځ کښې دې، باقی مونځونو کښې مشروع نه دې، البته ترمذی د قنوت فی الفجر باب قائم کړې دې،ددې نه هغه قنوت دائمی مراد دې، امام ترمذی شافعی مسلک دې، او شافعیه ددې (قنوت فی الفجر) قائل دی، او زمونږ امام ابوداؤد حنبلی دې، او حنابله د قنوت فی الفجر قائل نه دی، غالبا ددې وجې نه هغوی د قنوت فی الفجر باب نه دې قائم کړې.

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ۲۲۷ (الوتر۱۳) (۴۷۰)، سنن النسائي/قيام الليل ۲۷ (۱٦٨٠)، (تحفة الأشراف:۵۰۲۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۲۳) (صحيح)

[2]) اي لا يجوز وتران فوتران فاعل، ولا مشبهه بليس فوتران اسمها، او لا لنفي الجنس و وتران بالألف علي لغة بني حارثة كما في قوله تعالي: ان هذا لساحران.

ددې نه مخکښې د قنوت فی الوتر کوم باب چه تیر شوې دې، هلته کښې دا خبره هم تیره شوې ده، چه امام شافعی او امام مالک ټول کال د قنوت فی الصبح قائل دی.

## د شافعیه دلائل او دهغې نه جواب:

د قنوت فی الصبح قائلینو سره دوه قسمه دلائل دی، بعضې خو هغه دی، چه په کتب صحاح کښې موجود دی، دهغې نه بعضې مصنف په دې باب کښې ذکر کړې دی، د هغې جواب خو مونږ سره دادې، چه په دې روایاتو کښې د سحر د مانځه تخصیص نشته، په یو روایت کښې پنځو واړو مونځونو کښې د قنوت ذکر دې، او په بل روایت کښې په دریو مونځونو کښې، او په بعضو کښې صرف په دواړو مونځونو کښې د قنوت ذکر دې، حالانکه دا حضرات د قنوت فی غیر الصبح قائل نه دی، فما هو جوابهم عن القنوت فی غیر الصبح فهو جوابنا عن القنوت فی الصبح.

دویم قسم احادیث هغه دی، چه په هغې کښې د سحر د مونځ تخصیص موجود دې، د ټولو نه اهم د حضرت انس رضی الله عنه هغه حدیث دې، چه هغې لره دارقطنی او حاکم په متعدد طرق سره روایت کړې دې، وصححه الحاکم ان النبی (صلی الله علیه وسلم) قنت شهرا یدعو علیهم ثم ترکه فاما فی الصبح فلم یزل یقنت حتی فارق الدنیا، ددې جواب زمونږ د طرف نه دا ورکړې شوې دې، چه ددې په سند کښې ابوجعفر رازی دې، چه ددهٔ اکثر امامانو تضعیف کړې دې، او خطیب په کتاب القنوت کښې روایت ذکر کړې دې، چه عاصم بن سلیمان وائی چه مونږ د انس رضی الله عنه نه سوال اوکړو، چه بعضې خلق وائی، چه حضور (صلی الله علیه وسلم) به همیشه د سحر په مانځه کښې قنوت لوستلو، نو هغوی جواب راکړو، کذبوا انما قنت رسول الله (صلی الله علیه وسلم) شهرا واحدا، او ددې په سند کښې اګر چه قیس بن الربیع دې، چه ددهٔ یحیی بن سعید تضعیف کړې دې، لیکن دهغه نه علاوه ډیرو امامانو دده توثیق کړې دې، او هغه بهر حال د ابوجعفر رازی نه کمې درجې والا نه دې، بلکه د هغه نه اوثق دې، یا کم از کم برابر، قال الحافظ ابن القیم، څکه چه کومو امامانو د ابوجعفر تضعیف کړې دې، هغه زائد دی، دهغې امامانو نه کومو چه د قیس تضعیف کړې دې.

او دویمه توجیه زمونږ د طرف نه دا کړې شوې ده، چه لم یزل یقنت مطلب دادې، چه همیشه به حضور (صلی الله علیه وسلم) عند النوازل قنوت لوستلو، هره ورځ بغیر د څه حاجت نه مراد نه دې، او دا مطلب ددې وجې نه اخستلې شوې دې، چه د انس رضی الله عنه د دویم روایت خلاف نه وی، په دې صورت کښې به دواړه روایتونه په خپل ځائې باندې صحیح شی.

## د حنفیه دلائل:

او مانعینو (حنفیه، حنابله) سره چه کوم دلائل دی، دهغې تفصیل په نصب الرایه، فتح القدیر، او څه قدر په بذل المجهود کښې موجود دې، څو دلائل مونږ لیکو. امام ترمذی باب القنوت فی الفجر" ترجمه قائمه کړې ده، او په هغې کښې ئې د براء بن عازب رضی الله عنه حدیث مرفوع کان یقنت فی صلوة الفجر والمغرب ذکر کړې دې، او فرمائیلې دی، چه بعضې اهل

علم د قنوت فی الفجر قائل دی، ددې نه پس باب ترک القنوت ترجمه ئې قائمه کړې ده، او په هغې کښې ئې د ابومالک اشجعی حدیث قلت لابی یا ابت انک قد صلیت خلف رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وابی بکر و عمر و عثمان و علی ههنا بالکوفة نحوا من خمس سنین اکانوا یقنتون قال ای بنی محدث، قال ابوعیسی هذا حدیث حسن صحیح والعمل علیه عند اکثر اهل العلم، دغه شان امام نسائی رحمه الله اول متعدد ابواب د قنوت فی الفرائض (د هر فرض مونځ ځان ځانله) قائم کړې دی، او روستو ئې د ترک القنوت باب قائم کړې دې، او په هغې کښې ئې دوه احادیث ذکر کړې دی، یو هم دا د ابومالک اشجعی او دویم د حضرت انس رضی الله عنه ان النبی (صلی الله علیه وسلم) قنت شهرا یدعوا علی حی من احیاء العرب ثم ترکه.

دغه شان مونږ سره د ابوهریره رضی الله عنه هغه حدیث دې، چه دهغې ابن حبان تخریج کړې دې، کان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) لا یقنت فی الصبح الا ان یدعوا لقوم او علی قوم، دغه شان د حضرت انس رضی الله عنه ددې مضمون حدیث، چه دهغې تخریج خطیب په کتاب القنوت کښې کړې دې، ان النبی (صلی الله علیه وسلم) کان لا یقنت الا اذا دعا القوم او علی قوم، ورواه ابن خزیمه و صححه.

د مثبتین قنوت د طرف نه یوه خبره دا کړې شوې ده، چه په کومو روایاتو کښې دادی، ثم ترکه، ددې نه د نفس قنوت ترک مراد نه دې، بلکه د دعاء مخصوص نفی مراد ده، یعنی په مخصوص قبائلو باندې د لعن نفی مراد ده، ددې قرینه داده، چه د صحیح مسلم په روایت کښې دی، فنزل لیس لک من الامر شئ الآیة، جواب دادې، چه هم دا مطلب تاسو د فجر نه علاوه په نورو مونځونو کښې ولې نه جاری کوئ، په هغې کښې د نفس قنوت د نفی تاسو ولې قائل یئ، والله تعالی اعلم.

مذکوره روایات اخستلو کښې مونږ خاص طور سره منهل شرح ابوداؤد مخښې ته ایخودې دې، دهغې کلام ډیر زیات مرتب او جامع دې، فجزاه الله خیرا.

د قنوت فی الصبح روایاتو باندې شیخ ابن الهمام په فتح القدیر کښې جرحا و تعدیلا تفصیلی کلام کولو نه پس طریق نسخ لره اختیار کړې دې، (چه نبی کریم (ﷺ) په شروع کښې د سحر په مانځه کښې قنوت لوستلو، او بیا روستو ئې پریخودو) او زمونږ بعضو علماؤ ددې روایاتو جواب بیان محمل سره ورکړې دې، یعنی دا چه هغه احادیث په قنوت عن النوازل باندې محمول دی، لهذا د منسوخ منلو ضرورت نشته

[١٤٤٠](1)حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أُمَيَّةَ، حَدَّثَنَا مُعَاذٌ يَعْنِي ابْنَ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: وَاللَّهِ لَأُقَرِّبَنَّ بِكُمْ صَلَاةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَكَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ "يَقْنُتُ فِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ مِنْ صَلَاةِ الظُّهْرِ، وَصَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ، وَصَلَاةِ الصُّبْحِ، فَيَدْعُو لِلْمُؤْمِنِينَ وَيَلْعَنُ الْكَافِرِينَ".

(1): صحيح البخاري/الأذان ١٢٦ (٧٩٧)، صحيح مسلم/المساجد ٥٤ (٢٧٦)، سنن النسائي/التطبيق ٢٨ (١٠٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٢١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٤(١٩)، مسند احمد (٢/٢٥٥، ٣٣٧، ٤٧٠) (صحيح)

حضرت ابو سلمه بن عبد الرحمن فرمائي چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل : قسم په الله زهٔ تاسو ته دَ رسول الله ﷺ په شان مونځ کووم . چنانچه حضرت ابوهريره رضي الله عنه به دَ ماسپخين، ماسخوتن او دَ سحر په مونځ کښې قنوت نازل لوستله دَ مؤمنانو دَ پاره به ئې دُعا کووله او په کفارو باندې به ئې لعنت کولو .

**تشريح: قوله**: حدثنا ابوهريرة رضي الله عنه قال والله لاقربن بكم صلوة رسول الله (صلى الله عليه وسلم).

**شرح حديث:**

په خدائې قسم زهٔ به د حضور (ﷺ) مونځ تاسو ته ضرور نزدې کوم (يعنى تاسو ته به زهٔ داسې مونځ ضرور عملى طور سره اوښايم، چه د حضور (ﷺ) مونځ ته به ډير نزدې او هغې سره به ډير مشابه وى .

[١٤٤١](1)حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَحَفْصُ بْنُ عُمَرَ. ح حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، قَالُوا: كُلُّهُمْ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْبَرَاءِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَقْنُتُ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ". زَادَ ابْنُ مُعَاذٍ: "وَصَلَاةِ الْمَغْرِبِ".

دَ حضرت براء نه منقول دى چه رسول الله ﷺ به دَ سحر په مونځ کښې قنوت لوستل .

[١٤٤٢](2)حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْعَتَمَةِ شَهْرًا، يَقُولُ فِي قُنُوتِهِ: "اللَّهُمَّ نَجِّ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ، اللَّهُمَّ نَجِّ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ، اللَّهُمَّ نَجِّ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ، اللَّهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ، اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا عَلَيْهِمْ سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ"، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: وَأَصْبَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَلَمْ يَدْعُ لَهُمْ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: "وَمَا تُرَاهُمْ قَدْ قَدِمُوا".

حضرت ابو سلمه بن عبد الرحمن وائي چه حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان اوکړو چه رسول الله ﷺ دَ ماسخوتن په مونځ کښې تر دَ يو مياشتې پورې قنوت اولوستلو . هغوى به په خپل قنوت کښې دا دُعا کووله :" اې الله ! وليد بن وليد ته نجات ورکړې . اې الله ! سلمه بن هشام ته نجات ورکړې . اې الله ! ضعيف مسلمانانو ته نجات ورکړې . اې الله په قبيلهٔ مضر باندې خپله سزا سخته کړې . اې الله ! په هغوى باندې قحط مسلط کړې لکه څنګه چه په قوم يوسف باندې راغلې وو . " حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان کوى چه يوه ورځ هغوى دُعا اونهٔ کړه نو ما دَ هغوى نه تپوس اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل :" آيا تهٔ نهٔ ګورې چه هغوى راغلې دى "

**تشريح: قوله**: اللهم نج الوليد بن الوليد: دا د خالد بن وليد رور دې، چه د جنګ بدر د قيديانو نه وو ، د فديئ ادا کولو نه پس ئې ايمان راؤړو ، چا تر تپوس اوکړو ، چه اول دې ولې اسلام

---

(1): صحيح مسلم/المساجد ٥٤ (٦٧٨)، سنن الترمذي/الصلاة ١٧٨ (٤٠١)، سنن النسائي/التطبيق ٢٩ (١٠٧٥)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٠/٤، ٢٨٥، ٢٩٩، ٣٠٠)، سنن الدارمي/الصلاة ٢١٦ (١٦٣٨) (صحيح)

(2): صحيح مسلم/المسافرين (٦٧٥)، (تحفة الأشراف:١٥٣٨٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ١٢٨ (٨٠٤)، والاستسقاء ٢ (١٠٠٦)، والجهاد ٩٨ (٢٩٣٢)، والأنبياء ١٩ (٣٣٨٦)، وتفسير آل عمران ٩ (٤٥٦٠)، وتفسير النساء ٢١ (٤٥٩٨)، والدعوات ٥٨ (٦٣٩٣)، والإكراه ١ (٦٩٤٠)، والأدب ١١٠ (٦٢٠٠)، سنن النسائي/التطبيق ٢٧ (١٠٧٤)، سنن ابن ماجه/الاقامة ١٤٥ (١٢٤٤)، مسند احمد (٢٣٩/٢، ٢٥٥، ٢٧١، ٤١٨، ٤٧٠، ٥٠٧، ٥٢١) (صحيح) دون قوله : «فذكرت »

نه راؤړو، نو جواب ئې ورکړو، چه دې دپاره چه تاسو دا اونه ګنړئ، چه د قید نه بچ کيدو دپاره ئې اسلام راؤړو، مشرکينو هغه په مکه کښې ایسار کړې وو.

اللهم نج سلمة بن هشام: دا د ابوجهل بن هشام رور وو، د سابقين الى الاسلام نه دې، حبشې طرف ته ئې هجرت اوکړو، او بيا مکې ته راغلو، نو ابوجهل هغه قيد کړو، او مدينې طرف ته هجرت کولو نه ئې منع کړو، دا دوه شو، دريم ددوی سره عياش بن ابی ربيعه هم وو، كما فى رواية البخارى، دوی په خپلو کښې مشوره اوکړه، او د قيد نه اوتښتيدل، حضور (ﷺ) ته په څه طريقې سره ددې علم اوشو، نو نبی کريم (ﷺ) دهغوی دپاره يو مياشت پورې د ماسخوتن په مانځه کښې قنوت نازله اولوستله. لکه چه په حديث الباب کښې دی.

اللهم نج المستضعفين من المؤمنين: هغه کمزورې مسلمانان چه مشرکينو د هجرت نه منع کړې وو، لکه عمار بن ياسر رضي الله عنه، او دهغوی والدين حضرت ياسر رضي الله عنه او حضرت سميه رضي الله عنها، چه هغوی لره به مشرکينو په ګرمو شګو سملول، د نبی کريم (ﷺ) په هغوی باندې تيريدنه اوشوه، نو ورته ئې اوفرمائيل. صبرا آل ياسر فان موعدكم الجنة،

اې د ياسر کور والو اصبر کوئ، تاسو سره د جنت وعده ده.

اللهم اشدد وطاتک على مضر: اې الله د مضر قبيلې په کافرانو باندې خپل ګرفت سخت کړه.

واجعلها عليهم سنين كسنى يوسف: د ها ضمير وطاة طرف ته راجع دې، اې الله خپل ګرفت په هغوی باندې قحط سالی اوګرځوه، څرنګه قحط سالی چه د حضرت يوسف (ع) په زمانه کښې راغلې وه.

اوماتراهم قد قدموا: يوه ورځ حضور (ﷺ) دا دعا اونه لوستله، نو ابوهريره رضي الله عنه سوال اوکړو، چه نن مو ولې اونه لوستله، نو حضور (ﷺ) اوفرمائيل. ګورې نه، چه د کومو خلقو دپاره مونږ دعا کوله، هغوی راخلاص شو، راغلل.

[١٤٤٣]([1])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْجُمَحِيُّ، حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ خَبَّابٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "قَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا مُتَتَابِعًا فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ وَصَلَاةِ الصُّبْحِ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ، إِذَا قَالَ: سَمِعَ اللَّهُ لِمَنْ حَمِدَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ، يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءٍ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ عَلَى رِعْلٍ، وَذَكْوَانَ، وَعُصَيَّةَ وَيُؤَمِّنُ مَنْ خَلْفَهُ".

د حضرت عکرمه نه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا بيان منقول دې چه رسول الله (ﷺ) يوه مياشت متواتر دَ ماسپخين، مازيګر، ماښام، ماسخوتن او دَ سحر په مونځونو کښې قنوت اولوستلو. دَ هر مونځ په آخری رکعت کښې په رکوع کښې دَ " سمع الله لمن حمده " دَ لوستو نه پس به ئې دَ بنو سليم نه په رعل، ذکوان او رعصيه قبائلو باندې بد دعا کوله او آمين به وئيلې هغه چا چه دَ حضور (ﷺ) نه به ورستو وو.

عن ابن عباس رضي الله عنه قنت رسول الله (صلى الله عليه وسلم) شهر متتابعا فى الظهر والعصر والمغرب والعشاء و صلوة الصبح............ على رعل و ذكوان و عصية:

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف:٦٢٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠١/١) (حسن)

هغوی اویا قاریان په بئر معونه کښې شهید کړې وو، هغې ته سرية القرآء وئیلې شی، دا واقعه په سنه ۴هـ کښې پیښه شوې وه، اویا اصحاب صفه چه ټول په ټوله د قرآن مجید قراء وو، دهغوی سره رعل او ذکوان غدر اوکړو، او هغوی ئې په دهوکې سره قتل کړل. په دې باندې حضور (ﷺ) ډیر زیات غمګین او غصه وو، او یو میاشت پورې مسلسل قنوت نازله ئې لوستله، په دې باندې دا آیت نازل شو، (کما فی روایة المسلم) ليس لک من الامر شئ او يتوب عليهم او يعذبهم فانهم ظالمون، ددې آیت په نزول باندې رسول الله (ﷺ) قنوت نازله لوستل موقوف کړل، الحمد لله په دې باب باندې کلام پوره شو.

[١٤٤٤](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ سُئِلَ: "هَلْ قَنَتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ؟ فَقَالَ: نَعَمْ، فَقِيلَ لَهُ: قَبْلَ الرُّكُوعِ أَوْ بَعْدَ الرُّكُوعِ، قَالَ: بَعْدَ الرُّكُوعِ، قَالَ مُسَدَّدٌ: بِيَسِيرٍ".

دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه پوښتنه اوکړې شوه چه آیا رسول الله ﷺ دَ صبا په مونځ کښې دعائې قنوت فرمائیلې ده؟ هغوی اوفرمائیل: او. تپوس اوکړې شو دَ رکوع نه مخکښې یا ورستو؟ هغوی رضی الله عنه اوفرمائیل: ورستو. دَ مسدد په روایت کښې دی چه ...... لږې مُدې پورې.

[١٤٤٥](2) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَنَتَ شَهْرًا، ثُمَّ تَرَكَهُ".

دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه مروی دی چه رسول الله ﷺ تر دَ یو میاشتې پورې دُعائې قنوت اولوسته، بیا ئې پریخوده."

[١٤٤٦](3) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُفَضَّلٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَنْ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْغَدَاةِ، "فَلَمَّا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ قَامَ هُنَيَّةً".

حضرت محمد بن سیرین وائی چه ما ته هغه کس بیان کړې دې کوم چه دَ نبی کریم ﷺ سره دَ سحر مونځ ادا کړې دې: چه کله نبی کریم ﷺ دَ دویم رکعت نه سر پورته کړو نو لږ غوندې ولاړ وو. (دَ قنوت دَ پاره)

---

(1): صحيح البخاري/الوتر ٧ (١٠٠١)، صحيح مسلم/المساجد ٥٤ (٦٧٧)، سنن النسائي/التطبيق ٢٧ (١٠٧٢)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٢٠ (١١٨٢ و ١١٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٥٣)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الصلاة ٢١٦ (١٦٣٧)، مسند احمد (١١٣/٣) (صحيح)

(2): صحيح مسلم/المساجد ٥٤ (٦٧٨)، (تحفة الأشراف: ٣٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٤/٣، ٢٤٩) (صحيح)

(3): سنن النسائي/التطبيق ٢٧ (١٠٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٥٦٦٧) (صحيح)

# باب في فضل التطوع في البيت

## باب: ١١- په کور کښې د نفل لوستلو فضيلت

ددې مضمون يو باب د ابواب الجمعه نه مخکښې هم تير شوې دې.

[١٤٤٧] ( ) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ يَعْنِي ابْنَ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، أَنَّهُ قَالَ: احْتَجَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ حُجْرَةً، فَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ مِنَ اللَّيْلِ فَيُصَلِّي فِيهَا، قَالَ: فَصَلَّوْا مَعَهُ لِصَلَاتِهِ، يَعْنِي رِجَالًا، وَكَانُوا يَأْتُونَهُ كُلَّ لَيْلَةٍ، حَتَّى إِذَا كَانَ لَيْلَةٌ مِنَ اللَّيَالِي لَمْ يَخْرُجْ إِلَيْهِمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَتَنَحْنَحُوا وَرَفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ وَحَصَبُوا بَابَهُ، قَالَ: فَخَرَجَ إِلَيْهِمْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُغْضَبًا، فَقَالَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، مَا زَالَ بِكُمْ صَنِيعُكُمْ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنْ سَتُكْتَبَ عَلَيْكُمْ، فَعَلَيْكُمْ بِالصَّلَاةِ فِي بُيُوتِكُمْ، فَإِنَّ خَيْرَ صَلَاةِ الْمَرْءِ فِي بَيْتِهِ إِلَّا الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ".

حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه بيان کوی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم په جمات کښې حجره جوړه کړه، هغوی صلى الله عليه وسلم به د شپې د کور نه تشريف راوړو او په دې حجره کښې به ئې مونځ کولو. فرمائي: چه خلقو هم د حضور صلى الله عليه وسلم د مونځ سره، مونځ اولوستو او هغوی به هره شپه حضور صلى الله عليه وسلم ته راتلل، تردې پورې چه يوه شپه حضور صلى الله عليه وسلم تشريف راونۀ ړلو نو دوی مرئ تازه کولې. (ددې دپاره چه حضور صلى الله عليه وسلم ته خبرداري اوشي او مونږ ته راوځي) چا خپل آوازونه بلند کړل او (څو خلقو) د هغوی په دروازه باندې کنکرې هم اوويشتل. آخر هغوی تشريف راوړو او په غصه کښې وو او ووې فرمائيل: خلقو! ستاسو برابر هم دا حال وو، تردې پورې چه ماته يره شوه چه په تاسو باندې فرض نۀ کړې شي. لهذا په خپلو کورونو کښې مونځ کوئ. بې شکه د فرضو نه علاوه د سړی بهترين مونځ هغه دې کوم چه هغه په خپل کور کښې اوکړی."

**تشريح: قوله:** عن زيد بن ثابت رضي الله عنه احتجر رسول الله (صلى الله عليه وسلم) في المسجد حجرة:
نبي کريم (صلى الله عليه وسلم) د جمات په يو گوټ کښې حجرة الحصير جوړه کړه، د حجرة الحصير ذکر په رواياتو کښې کثرت سره راغلې دې، يعنې د کجورو يوه بوريا ئې د جمات په يو گوټ کښې اودروله، او معتکف ئې جوړ کړو، لکه چه نن صبا خلق د اعتکاف دپاره پردې زوروندوی.

**قوله:** فكان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) يخرج من الليل فيصلي فيها:
په عبارت کښې په ظاهر کښې تقديم او تاخير دې، (كما في البذل) مطلب دادې، چه حضور (صلى الله عليه وسلم) به د حجرة الحصير نه بهر راوتلو، او په بعضو شپو کښې به ئې مونځ ادا کولو، ددې نه د تراويح مونځ مراد دې، چه دهغې روايات نزدې تير شوې دی.

[١٤٤٨] ( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، أَخْبَرَنَا نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اجْعَلُوا فِي بُيُوتِكُمْ مِنْ صَلَاتِكُمْ، وَلَا تَتَّخِذُوهَا قُبُورًا".

[1]: انظر حديث رقم (١٠٤٤)، (تحفة الأشراف: ٣٦٩٨) (صحيح)
[2]: انظر حديث رقم (١٠٤٣)، (تحفة الأشراف: ٨١٤٢) (صحيح)

حضرت ابن عمر رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: د خپلو مونځونو څۀ حصه په کورونو کښې هم ادا کوئ. او د خپلو کورونو نه قبرستان مۀ جوړوئ.

اجعلوا فی بیوتکم من صلوتکم ولا تتخذوها قبورا: دا حدیث په هغې سابق باب کښې تیر شوې دې، د کومې حواله چه بره ورکړې شوې ده.

[١٤٤٩](١)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، قَالَ: قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَلِيٍّ الْأَزْدِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ الْخَثْعَمِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ: أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "طُولُ الْقِيَامِ" قِيلَ: فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "جَهْدُ الْمُقِلِّ" قِيلَ: فَأَيُّ الْهِجْرَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "مَنْ هَجَرَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ" قِيلَ: فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "مَنْ جَاهَدَ الْمُشْرِكِينَ بِمَالِهِ وَنَفْسِهِ" قِيلَ: فَأَيُّ الْقَتْلِ أَشْرَفُ؟ قَالَ: "مَنْ أُهَرِيقَ دَمُهُ وَعُقِرَ جَوَادُهُ".

حضرت عبد الله بن حبشی الخثعمی رضی الله عنه نه روایت دې چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړې شو: کوم یو عمل افضل دې؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: " اوږد قیام." اووئیلې شو کومه صدقه افضله ده؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: " چه کوم قلیل مال والا محنت اوکړی او صدقه ورکړی." تپوس اوکړې شو کوم یو هجرت افضل دې؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل " کوم کس چه د الله حرام کرده امور ترک کړی." تپوس اوکړې شو کوم یو جهاد افضل دې؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: کوم کس چه د مشرکانو سره د خپل مال او جان سره جهاد اوکړی." تپوس اوکړې شو کوم یو قتل د شرف والا دې؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: د چا چه وینه تویې کړې شوه او د هغه اس هم کټ کړې شو.

ای الصدقة افضل قال جهد المقل: کومه صدقه افضله ده؟ نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) اوفرمائیل: د غریب سړی کوشش او محنت یعنی کومه صدقه چه سړې محنت مزدوری کولو سره ورکړی، هغه د ټولو نه افضله ده، چه د خپل احتیاج او ضرورت باوجود نورو ته ترجیح ورکوی، ددې بالمقابل یو بل حدیث دې، چه په کتاب الزکوة کښې به راشی،

و خیر الصدقة ما کان عن ظهر غنی: په دواړو کښې به تطبیق انشاء الله هم هلته کښې راشی،

## بَابُ الْحَثِّ عَلَى قِيَامِ اللَّيْلِ

### باب: د قیام اللیل ترغیب

(باب الحث علی قیام اللیل) ددې باب احادیث نزدې تیر شوې دی.

[١٤٥٠](٢)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، حَدَّثَنَا الْقَعْقَاعُ بْنُ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رَحِمَ اللَّهُ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ فَصَلَّتْ، فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ، رَحِمَ اللَّهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ وَأَيْقَظَتْ زَوْجَهَا، فَإِنْ أَبَى نَضَحَتْ فِي وَجْهِهِ الْمَاءَ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: " رحم دې اوکړی الله تعالی

---

(١): انظر حديث رقم: (١٣٢٥)، (تحفة الأشراف: ٥٢٤١) (صحيح) بلفظ: "أي الصلاة"

(٢): سنن النسائي/قيام الليل ٥ (١٦١١)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٥ (١٣٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٥٠، ٤٣٦) (حسن صحيح)

په هغه شخص باندې چه هغه د شپې پاسې او مونځ کوی او خپله بی بی هم پاسوی او هغه هم مونځ لولی کۀ چرې انکار کوی، نو د هغې په مخ باندې د اوبو ترنکه کوی . او رحم دې اوکړی الله تعالی په هغه ښځه باندې کومه چه د شپې پاسی او مونځ کوی او خپل خاوند لره هم پاسوی کۀ چرې هغه انکار کوی نو د هغه په مخ باندې اوبۀ شیندی ."

[۱۴۵۱]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ شَيْبَانَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ الْأَقْمَرِ، عَنِ الْأَغَرِّ أَبِي مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اسْتَيْقَظَ مِنَ اللَّيْلِ وَأَيْقَظَ امْرَأَتَهُ فَصَلَّيَا رَكْعَتَيْنِ جَمِيعًا كُتِبَا مِنَ الذَّاكِرِينَ اللَّهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتِ".

د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه او حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : چه کوم کس پاسی او خپله بی بی هم پاسوی، بیا دواړه دوه رکعته اوکړی نو ددوی شمیر په ذاکرینو او ذاکراتو کښې وی کوم چه الله لره زیات یادوونکی وی ."

## بَابٌ فِي ثَوَابِ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ

### باب: ۱۴- د قرآن د تلاوت ثواب

ددې ځائې نه مصنف د قرآن مجید فضائل بیانول شروع کوی، نو په دې سلسله کښې ئې څو ابواب قائم کړې دی، مصنف دلته په شروع کښې څه لویه سرخی یا عنوان قائم کړې نه دې، امام بخاری او ترمذی "کتاب فضائل القرآن" او "ابواب فضائل القرآن، ددې کلی عنوان لاندې ډیر ابواب راوړې دی.

### تفضیل بعض القران علی بعض:

دا مسئله مختلف فیه ده، یعنی دا اعتقاد چه فلانې سورة د فلانې سورة نه افضل دې، جائز دې او که نه؟ بعضې علماء لکه ابوالحسن اشعری رحمه الله، قاضی ابوبکر باقلانی رحمه الله ددې نه انکار کړې دې، ځکه چه مفضول ناقص وی د افضل نه، حالانکه دلته کښې ټول په ټوله کلام الله دې، د الله تعالی صفت دې، بیا د بعضو آیتونو د بعضې نه افضل کېدلو څه معنی ده؟ لیکن اکثر علماء ظواهر د احادیث په بناء باندې ددې د جواز قائل دی، بیا د قائلین جواز په دې کښې اختلاف دې، چه دا فضیلت په کوم اعتبار سره دې، بعضې وائی، چه ددې تعلق الفاظ او معانی سره نه دې، بلکه کثرت اجر او ثواب سره دې، او بعضې وائی، چه دا خبره نه ده، بلکه هم دې اعتبار سره دې، ځکه چه د الله تعالی په وحدانیت او دهغه په صفاتو باندې چه کوم دلالت آیة الکرسی او د سورة حشر آخری آیتونو (وهو الله الذی لا اله الا هو عالم الغیب والشهادة هو الرحمن الرحیم الآیة) او سورة اخلاص کښې موندلې شی، هغه په سورة تبت کښې ظاهری خبره ده چه نشته.

او اشعری دا فرمائی: انه لا یتنوع فی ذاته بل بحسب متعلقاته، د بنده په ذهن کښې هم د مخکښې نه دا خبره راتله، او زما په خیال ددې تشریح دا کیدې شی، چه د بعضې قرآن په بعضې باندې فضیلت فی حدذاته او د کلام الله کیدلو په اعتبار سره خو نه دې، په دې اعتبار سره خو ټول برابر دې، البته د سورتونه آثار، خواص او د بندګانو د حاجتونو په

(): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۷۵ (۱۳۳۵)، (تحفة الأشراف: ۳۹۶۵)، وقد أخرجه: ن الكبري/التفسير (۱۱۴۰۶) (صحيح)

اعتبار سره بعضو ته په بعضو باندې فوقیت کیدې شي، مثلا تعوذ (دم درود) په اعتبار سره دمعوذتین نه لوئې هیڅ یو سورت نشته، دغه شان د الله تعالی صفات او کمالات او وحدانیت، چه دهغې د معرفت مونږ ټول خلق محتاج یو، داسې احتیاج د ابولهب د واقعې معرفت طرف ته نشته، پس د بعضو سورتونو په بعضو باندې فضیلت د مضامینو د قسمونو سره سره د بندګانو د احتیاج په اعتبار سره هم دې، نه چه د اداء معانی او د الفاظو او تعبیراتو په اعتبار سره دې، نو په تبت یدا ابی لهب کښې چه کوم مضمون بیان کړې شوې دې، یعنی دعاء بالخسران، ددې دپاره دهغې نه بهتر څه تعبیر نه شی کیدې، کوم چه په دې سورة کښې موجود دې، دغه شان د بیان دوحدانیت دپاره چه کوم طرز تعبیر او اسلوب په سورة اخلاص کښې استعمال شوې دې، دهغې نه بهتر څه دویمه تعبیر نشی کیدې، (ملخصا من القسطلانی ج۷ص۴۴۳ بزیادة)

عن عثمان ان النبی (صلی الله علیه وسلم) قال خیرکم من تعلم القرآن و علمه:

## شرح حدیث مع اشکال و جواب :

تاسو به په نور الانوار کښې لوستلې وی، چه قرآن د لفظ او معنی د مجموعې نوم دې، وهو اسم للنظم والمعنی جمیعا، په دې حدیث کښې د خادم القرآن فضیلت بیان شوې دې، پس دا خدمت به یا صرف د الفاظ قرآن وی، د قرآن مجید لوستل، بل ته ښودل، یادول، دهغې تصحیح او تجوید، او یا به دا خدمت د قرآن مجید د معنو و، د قرآن مجید معانی او معارف زده کول او بل ته ښودل، تفسیر او تشریح کول، دهغې نه د احکامو استنباط کول وغیره وغیره، او یا به دا خدمت د دواړو مجموعه وی، لهذا دا کنټرل پکار نه دی، چه ددې حدیث مصداق صرف د مکتب حافظ صاحب دې، بیا ددې تعلیم مراتب دی د تعلیم د حقونو ادا کولو او د کمال اخلاص په اعتبار سره، او ظاهره خبره ده، چه ددې فرد اکمل خپله رسول الله (ﷺ) دې، ثم الاشبه فالاشبه.

## (عالم افضل دی که قاری؟)

په بعضو شرحو کښې ئې لیکلې دی، چه که څوک اوائی، چه ددې حدیث مقتضی داده، چه قاری او مقرئ د فقیه (عالم دین) نه افضل دې، حالانکه د علم او علماؤ په فضائلو کښې په سوونو احادیث وارد دی، جواب دادې، چه په دې حدیث کښې خطاب صحابه کرامو ته دې (اګر چه حکم عام دې) چه قرآن مجید ئې د معنی په فهم سره زده کولو، نو اوس چه کوم سړې عالم او فقیه کیدلو سره قاری او مقرئ هم وی، ظاهره خبره ده، چه هغه به افضل وی، دهغه سړی نه چه صرف عالم او فقیه وی، لکه په ابواب الامامة کښې تیر شوې دی، واقراهم کان اعلمهم، چه په صحابه کرامو کښې به څوک څومره لوئې قاری وو، هغومره به هغه لوئې عالم هم وو، حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلې دی، چه د خیریت او افضلیت مدار د نفع متعدی په کثرت او دهغې په قلت باندې ده، (لحدیث خیر الناس من ینفع الناس) لهذا د چا چه نفع او فیض زیات وی، دهغه مرتبه به هم زیاته وی، (او ظاهره خبره ده، چه د عالم او فقیه فیض عام او تولو ته شامل وی، د صرف قاری د فیض نه)

[١٤٥٢]()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عُثْمَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ".

د حضرت عثمان رضي الله عنه نه روايت دي چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: په تاسو کښې د ټولو نه بهترين هغه څوک دې کوم چه قرآن خپله زده کړی او نورو ته ښائی.

او يا داسې وئيل پکار دی، چه دلته کښې من مقدر دې، ای من خيركم، دې سره به حصر ختم شي، لکه چه ددې قسمه نورو ډيرو احاديثو کښې دا جواب ورکولې شي.

[١٤٥٣]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ زَبَّانَ بْنِ فَائِدٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ وَعَمِلَ بِمَا فِيهِ أُلْبِسَ وَالِدَاهُ تَاجًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ضَوْءُهُ أَحْسَنُ مِنْ ضَوْءِ الشَّمْسِ فِي بُيُوتِ الدُّنْيَا لَوْ كَانَتْ فِيكُمْ فَمَا ظَنُّكُمْ بِالَّذِي عَمِلَ بِهَذَا".

حضرت سهل بن معاذ جهنی د خپل پلار نه روايت کوی، د هغوی بيان دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چا چه قرآن اولوستو او څهٔ چه په دې کښې دی په هغې باندې ئې عمل اوکړو، نو د هغه مور او پلار ته به د قيامت په ورځ باندې يو تاج ورپسر کولې شي چه د هغې رڼړا به د نمر د رڼړا نه زياته وی، کهٔ چرې هغه په دنيا کښې ستاسو په کورونو کښې وو. (کله چه د مور او پلار دا درجه ده) نو ستاسو څهٔ ګمان دې په خپله په دې باندې د عمل کوونکی په باره کښې. چه د هغه به کوم مقام وی.

**تشريح: قوله**: من قرأ القرآن و عمل بما فيه البس والداه تاجا يوم القيمة الخ:

کوم سړی چه قرآن مجيد په ډير شوق سره زده کړی، او هغې له په ښه طريقې سره په ترتيل سره اولولی، او په هغې کښې چه کوم د اخلاق او آداب احکامات دی، په هغې ټولو باندې عمل اوکړی، او بعضو شارحينو د قرأ القرآن تشريح ای حفظه عن ظهر قلب سره کړې ده، يعنی قرآن مجيد هغه زبانی ياد کړې وی، نو دهغه والدينو ته به د قيامت په ورځ داسې تاج ورپسر کړې شی، چه دهغې رڼړا او چمک به دهغې نمر نه هم زيات وی، کوم نمر چه (بالفرض) ستاسو په کور کښې وی، پس څه ګمان دې ستاسو دهغې سړی باره کښې چه هغه خپله دا کار کړې وی، يعنی قراءت قرآن او په هغې باندې ئې عمل کړې وی، يعنی هرکله چه د قارئ قرآن والدينو سره دارنګې د اعزاز او اکرام معامله کولې شی، نو خپله دهغې قاری او حافظ د اعزاز او اکرام به څه حال وی، صاحب منهل ليکلې دی: وهذا اشارة الی ان ثواب القاری بلغ مبلغا عظيما لا تحيط به العقول فلا يعلم قدر عظمه الا الله تعالى. په دې حديث کښې ترغيب دې، خپل اولاد ته د تعليم القرآن ورکولو، او هغوی ته په دې باندې د عمل کولو تاکيد دې.

[1]: صحيح البخاري/فضائل القرآن ٢١ (٢٩٠٧)، سنن الترمذي/فضائل القرآن ١٥ (٢٩٠٧، ٢٩٠٨)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٦ (٢١٢)، (تحفة الأشراف: ٩٨١٣)، وقد أخرجه: ن الكبري/فضائل القرآن (٨٠٣٧)، مسند احمد (١/٥٧، ٥٨، ٦٩)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ٢ (٣٣٤١) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٢٩٤)، وقد أخرجه: (حم ٣/٤٤٠) (ضعيف)

[١٤٥٤]( )حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، وَهَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَهُوَ مَاهِرٌ بِهِ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ، وَالَّذِي يَقْرَؤُهُ وَهُوَ يَشْتَدُّ عَلَيْهِ فَلَهُ أَجْرَانِ".

دَ حضرت ام المؤمنين عائشي رضي الله عنها نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: "کوم کس چه قرآن لولی او هغه په دې کښې ماهر دې، هغه به دَ اعمال ليکونکو معزز او اطاعت گزار فرشتو سره وی. او کوم شخص چه قرآن لولی، مگر هغه ته په قرآن لوستو کښې مشقت وی (په تلاوت کښې اونخلی په روانئ سره تلاوت نهٔ شی کولې) نو دَ هغه دَ پاره دوه اجره دی.

## شرح حديث:

قوله: مع السفرة الكرام البررة: سفره د سافر جمع ده، لکه د کاتب جمع کتبه ده، وزنا او معنی سفر بمعنی کتابت نه ماخوذ دې، يعنی هغه فرشتې چه د لوح محفوظ نه صحيفې نقل کوی، بعضو ددې ترجمه ميرمنشی سره کړې ده، او وئيلې شوې دی، چه ددې نه مراد ملائکه رسل دی، يعنی هغه فرشتې چه د انبياء عليهم السلام او د الله تعالی په مينځ کښې واسطه او سفير وی، په دې سورت کښې به سافر په معنی د سفير کښې وی، او د سافر مصدر به سفارة وی (منهل وغيره) او بررة د بار جمع ده، په معنی د نيکوکار، لهذا ددې معنی دا شوه، صلحاء او اتقياء، کوم سړې چه د قرآن مجيد ماهر دې، هغه به دهغې ملائکو سره وی، د قرآن مجيد ماهر هغه ته وئيلې شی، چه هغه ته ياد هم ښه وی، او لوستل هم ښه کوی، او که په معانی او مراد باندې هم خبر وی، نو بيا لا څه وائې، د ملائکو سره د کيدو مطلب دادې، چه هغوی هم د قرآن مجيد لره د لوح محفوظ نه نقل کونکې دی، او دې هم د قرآن مجيد نقل کونکې او رسونکې دې، نو گويا دواړه په يوه لار باندې دی، يا دا چه په حشر کښې به دهغوی سره اجتماع وی، (فضائل قرآن مجيد) يا کله کله د جنت په منزلونو کښې يو ځائې کيدل مراد دی. وهو يشتد عليه فله اجران: کوم سړې چه د ژبې د دروندوالې د وجې نه د قرآن مجيد الفاظ په سهولت سره ادا کولې نشی، يا د حافظې د کمزورئ په وجه په سهولت سره نه شی لوستلې، دهغه دپاره دوه اجره دی، يو اجر د قراءت، او دويم اجر د مشقت، باقی ددې نه دا لازم نه راځی، چه ددې مرتبه د ماهر بالقرآن نه اوچته شی، د ماهر مرتبه خو ډيره اوچته ده، چه مخکښې بيان شوه.

[١٤٥٥]( )حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللَّهِ تَعَالَى يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ، وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ، وَحَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ، وَذَكَرَهُمُ اللَّهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ".

---

[1]: صحيح البخاري/تفسير القرآن ٧٩ (٤٩٣٧)، صحيح مسلم/المسافرين ٣٨ (٧٩٨)، سنن الترمذي/فضائل القرآن ١٣ (٢٩٠٤)، ن الكبري / فضائل القرآن (٨٠٤٥، ٨٠٤٦)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥٢ (٣٧٧٩)، (تحفة الأشراف: ١٦١٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤٨، ٩٤، ٩٨، ١١٠، ١٧٠، ١٩٢، ٢٣٩، ٢٦٦)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ١١ (٣٤١١) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١١ (٢٦٩٩)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٧ (٢٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٣٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحدود ٣ (١٤٢٥)، والبر والصلة ١٩ (١٩٣٠)، والعلم ٢ (٢٦٤٦)، والقراءات ١٢ (٢٩٤٦)، مسند احمد (٢/٢٥٢)، سنن الدارمي/المقدمة ٣٢ (٣٦٨) (صحيح)

حضرت ابوهریره ﷺ د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی چه حضور ﷺ اوفرمائیل: " کوم خلق چه د الله د کورونو نه په یو کور کښې جمع شی او د کتاب الله تلاوت کوی او په خپل مابین کښې د هغې درس او مذاکره کوی نو په هغوی باندې سکینه نازلیږی، رحمت هغوی له پټوی، فرشتې هغوی له په خپله ګیره کښې اخلی او الله جل شانه د هغوی ذکر په هغه ځا کښې کوی کوم چه د هغه سره دی. " (یعنی مقرب فرشتې)

**تشریح: قوله**: الا نزلت علیهم السکینة: ای الرحمة او ملائکة الرحمة او ما حصل به السکون، یعنی څه داسې څیز، چه هغې سره د زړهٔ سکون حاصل شی، ددې حدیث شرح په رسالله فضائل قرآن ص ٣٢ کښې هم کتلې شئ.

[١٤٥٦](١)حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي الصُّفَّةِ، فَقَالَ: "أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنْ يَغْدُوَ إِلَى بُطْحَانَ، أَوِ الْعَقِيقِ فَيَأْخُذَ نَاقَتَيْنِ كَوْمَاوَيْنِ زَهْرَاوَيْنِ بِغَيْرِ إِثْمٍ بِاللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، وَلَا قَطْعِ رَحِمٍ؟" قَالُوا: كُلُّنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "فَلَأَنْ يَغْدُوَ أَحَدُكُمْ كُلَّ يَوْمٍ إِلَى الْمَسْجِدِ فَيَتَعَلَّمَ آيَتَيْنِ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ خَيْرٌ لَهُ مِنْ نَاقَتَيْنِ، وَإِنْ ثَلَاثٌ فَثَلَاثٌ مِثْلُ أَعْدَادِهِنَّ مِنَ الْإِبِلِ".

حضرت عقبه بن عامر جهنی ﷺ بیان کوی چه رسول الله ﷺ مونږ ته تشریف راوړو، په داسې حال کښې چه مونږ په صُفّه کښې وو. حضور ﷺ اوفرمائیل: " په تاسو کښې څوک دا خوښه وی چه د بطحان یا د عقیق وادئ ته لاړ شی او د هغه ځائې نه چاقې، تازه او د اوچتو قُبونو والا دوه اوښې راولی او دې په دې کښې د څه ګناه یا د قطع رحمۍ مرتکب هم نهٔ وی. " صحابهٔ کرامو ﷺ اوفرمائیل اې د الله رسوله! مونږ ټول دا غواړو. حضور ﷺ اوفرمائیل: " ستاسو هره ورځ جمات ته تلل او د کتاب الله نه دوه آیتونه زده کول د دوو اوښو د حصول نه بهتر دی، کهٔ چرې درې آیتونه زده کړی نو د دریو اوښانو نه بهتر دی. دغه شان د زیاتو آیتونو د مقدار مطابق د اوښانو نه بهتر دی. حضرت ابو عبد الله د " کوماء " ترجمه بیانوی چه د اوچتو قبونو والا اوښان.

**تشریح: قوله**: ایکم یحب ان یغدوا الی بطحان او العقیق: دا دوه مشهور بازارونه او منډیانې دی په مدنیه منوره کښې، کوماوین اوچت قب والا زهراوین خائسته رنګ او چمک دارې، دا تثنیه ده د زهراء چه مشتق ده د زهرة نه، ددې معنی خائسته او رونق ده.

**قوله**: وان ثلث فثلث مثل اعدادهن من الابل: د هن ضمیر آیتونو طرف ته راجع دې، په ظاهر کښې تقدیر د عبارت داسې دې، مثل اعداد من الابل او د دریو آیتونو زده کول، د دریو اوښو نه بهتر دې.

## شرح حدیث:

د مثل اعدادهن من الابل درې مطلبه کیدې شی، (١) هلم جرا یعنی دغه شان په مخکښې ځئ، درې آیاته افضل دی د دریو اوښو نه، او څلور آیتونه د څلورو اوښو نه، او پنځه د

(١): صحیح مسلم/المسافرین ٤١ (٨٠٣)، (تحفة الأشراف: ٩٩٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٤/٤) (صحیح)

پنځو اوښو نه الى آخره. (۲) ناقه خو اوښې (ماده) ته وئيلې شي، او د ابل نه مراد اوښ (نر) دې، بعضې وخت کښې سرې ته په اوښانو کښې د مادې حاجت وی، او بعضې وخت کښې د نر، ددې وجې نه ابل ئې ځانله ذکر کړو، يعنی که غواړې نو هغه واخله، او که غواړې نو دا واخله. (۳) دريم مطلب دادې، چه يو آيت د يوې ناقې او يو ابل (د دواړو د مجموعې) نه افضل دې، او ابل د دواړو مجموعه مراد ده، باقی دا ټول تمثيل او تقريب الى فهمنا العليل دې، ګنی يو آيت د ټولې دنيا نه هم افضل دې، رکعتا الفجر خير من الدنيا و ما فيها.

## بَابُ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ

### باب: ١٥- دَ سورۀ فاتحې بيان

[١٤٥٧] [1] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ أُمُّ الْقُرْآنِ، وَأُمُّ الْكِتَابِ، وَ السَّبْعُ الْمَثَانِي".

حضرت ابوهريره رضی الله عنه بيان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "الحمد لله رب العالمين" ام القران دې، ام الکتاب او السبع المثانی دې."

ام القرآن و ام الکتاب والسبع المثانی، دا ټول د سورۀ فاتحې نومونه دی، ددې سورۀ ډير نومونه دی، و کثرة الاسماء تدل على شرف المسمى، الوافيه، الکافيه، الشافيه، سورۀ الشفاء، سورۀ الاساس، سورۀ الصلوة، سورۀ السوال، سورۀ الشکر، سورۀ الدعاء (بذل من التفسير الكبير)

**(وجه تسميه ب سبع مثانی)**

او سبع مثانی وئيلو دوه وجهې ليکلې دی، سبع خو ددې وجې نه، چه آيتونه اووه دی، او مثانی د مثنی جمع ده، په معنی د مکرر، يا خو ددې وجې نه چه ددې سورۀ نزول مکرر دې، يو ځل په مکه مکرمه کښې، او يو ځل په مدينه منوره کښې نازل شوې دې، او يا ددې وجې نه چه دا سورۀ مکرر او سه کرر لوستلې کيږی، يعنی په ټولو مونځونو کښې لوستلې کيږی.

[١٤٥٨] [2] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: سَمِعْتُ حَفْصَ بْنَ عَاصِمٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِ وَهُوَ يُصَلِّي فَدَعَاهُ، قَالَ: فَصَلَّيْتُ، ثُمَّ أَتَيْتُهُ، قَالَ: فَقَالَ: "مَا مَنَعَكَ أَنْ تُجِيبَنِي؟"، قَالَ: كُنْتُ أُصَلِّي، قَالَ: "أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ لِمَا يُحْيِيكُمْ سورة الأنفال آية ٢٤، لَأُعَلِّمَنَّكَ أَعْظَمَ سُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ، أَوْ فِي الْقُرْآنِ شَكَّ خَالِدٌ، قَبْلَ أَنْ أَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ" قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ قَوْلُكَ، قَالَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ سورة الفاتحة آية ٢ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي الَّتِي أُوتِيتُ وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ".

---

[1]: صحيح البخاري/تفسير القرآن ٣ (٤٧٠٤)، سنن الترمذي/فضائل القرآن ١ (٢٨٧٥)، وتفسير القرآن ١٦ (٣١٢٤)، (تحفة الأشراف: ١٣٠١٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الافتتاح ٢٦ (٩١٥)، مسند احمد (٢/٤٤٨)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ١٢ (٣٤١٧) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/تفسير الفاتحة ١ (٤٤٧٤)، وتفسير الأنفال ٣ (٤٦٤٨)، وتفسير الحجر ٣ (٤٧٠٣)، وفضائل القرآن ٩ (٥٠٠٦)، سنن النسائي/الافتتاح ٢٦ (٩١٤)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥٢ (٣٧٨٥)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٤٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصلاة ٧ (٣٧)، مسند احمد (٣/٤٥٠، ٤/٢١١)، سنن الدارمي/الصلاة ١٧٢ (١٥٣٣)، وفضائل القرآن ١٢ (٣٤١٤) (صحيح)

حضرت ابو سعید بن معلیٰ ﷜ روایت کوی چه نبی کریم ﷺ په دوی باندې تیر شو او حال دادې چه دهٔ مونځ کولو . پس حضور ﷺ دهٔ لره راوبللو . هغه وائی چه ما مونځ مکمل کړو بیا د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم . حضور ﷺ اوفرمائیل :" تا لره ماته دَ جواب راکولو نه څه څیز منع کړو؟ (حاضر ولې نهٔ شوې) هغهٔ اووې ما مونځ کولو، حضور ﷺ اوفرمائیل آیا الله تعالیٰ دانهٔ دی فرمائیلي : اې ایمان والو ! الله او دَ هغه رسول ته جواب ورکړئ کله چه تاسو لره راوبلی داسې څیز طرفته چه هغه تاسو ته حیات درکړی . " (دَ څه څیز چه حکم درکړی نو فوراً په هغې باندې عمل پیرا شئ) (بیا ئې اوفرمائیل ) زهٔ به تاته دَ جمات نه دَ وتلو نه وړاندې یو اعظم (افضل) سورت ښایم." خالد ته شک راغلې دې چه په حدیث کښې لفظ دَ " من القرآن " دې یا دَ " فی القرآن " (بیا څه وخت تیر شو) نو ما عرض اوکړو اې دَ الله رسوله ! تاسو فرمائیلي وو ... حضور ﷺ اوفرمائیل :... " (هغه سورت) { الحمد لله ربّ العالمین } دې دا السبع المثانی دې کوم چه ماته راکړې شوي دي او القرآن العظیم دې .

**تشریح: قوله:** عن سعید بن المعلی ان النبی (صلی الله علیه وسلم) مربه وهو یصلی فدعاه الخ:

د دې صحابی نوم الحارث بن نفیع دې، دهٔ مونځ کولو، حضور (ﷺ) په دهٔ باندې تیر شو، او ورته ئې آواز اوکړو، لیکن دهٔ په مانځه کښې خبرې اونه کړې (یعنی جواب ئې ورنکړو) د مانځه نه فارغیدو نه پس حاضر شو، نبی کریم (ﷺ) ورته اوفرمائیل مامنعک ان تجیبنی.

**اختلاف روایتین:**

دا حدیث په بخاری کښې هم داسې دې، یعنی دا چه دا قصه د ابوسعید بن المعلی ده، لیکن ترمذی کښې په روایت د ابوهریره ﷜ داسې دی، چه دا واقعه د ابی بن کعب ده، چه هغه مونځ کولو، د حضور (ﷺ) تیریدنه په هغه باندې اوشوه، بیهقی فرمائي چه دا واقعه دواړو سره پیښه شوې ده، د حافظ ابن حجر هم دا رائې ده، ځکه چه د دواړو احادیثو مخرج او سیاق مختلف دې، دلته کښې د بعضو راویانو نه یو بل وهم شوې دې، چه هغې طرف ته حافظ اشاره کړې ده، حافظ ﷫ فرمائي، چه دا خبره چه دا قصه د ابوسعید خدری ﷜ سره پیښه شوې ده، دا وهم دې.

**د "اجابة النبی (صلی الله علیه وسلم) فی الصلوة" حکم:**

ددې نه پس په دې پوهیدل پکار دی، چه د ائمه اربعه په نزد اجابة النبی د مانځه په حالت کښې هم واجب دې، اگر که هغه مونځ فرض ولې نه وی، لیکن په بطلان د صلوة کښې اختلاف دې، تقریبا ټولو امامانو په دې کښې دواړه اقوال دی، لیکن معتمد عند الشافعیه والمالکیه عدم بطلان دې، رجح الطحاوی البطلان والقول الثانی للحنفیه عدم البطلان.

# بَابُ مَنْ قَالَ هِيَ مِنَ الطُّوَلِ

**باب: ١٦ - دَ هغه چا دليل ڪوم چه والي سورت فاتحه دَ اوږدو سورتونو نه ده۔**

## په ترجمة الباب کښې دوه احتمالات:

الطول د طولی جمع ده، لکه الکبر د کبری جمع ده، ددې نه پس په دې پوهه شئ، چه په دې ترجمة الباب کښې دوه اقوال دی، اول داچه هی ضمیر راجع دې، فاتحې طرف ته، او مطلب دادې، چه سورة فاتحه د طول یعنی اوږدو سورتونو نه ده، یعنی په اعتبار د معانیو دکثرت اوجامعیت سره، نه په اعتبار دالفاظوسره (دویم قول مخکښې راروان دې)

[١٤٥٩]([1])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ مُسْلِمٍ الْبَطِينِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: أُوتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعًا مِنَ الْمَثَانِي الطُّوَلِ، وَأُوتِيَ مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ سِتًّا، فَلَمَّا أَلْقَى الْأَلْوَاحَ رُفِعَتْ ثِنْتَانِ وَبَقِيَ أَرْبَعٌ.

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اووهٔ ایتونه ورکړې شوې دی کوم چه بار بار لوستلې شی او ډیر اوږدهٔ دی . او موسیٰ علیه السلام ته شپږ آیتونه ورکړې شوې وو . کله چه هغوی تختئ په زمکه باندې اوغورځولې نو د هغې نه دوه اوچت کړې شو او څلور باقی پاتې شو .

**تشریح: قوله**: عن ابن عباس رضی الله عنهما قال اوتی رسول الله (صلی الله علیه وسلم) سبعا من المثانی الطول:
ددې حدیث نه معلومه شوه، چه سبع مثانی د طول نه دې، او په باب سابق کښې تیر شو، چه د سبع مثانی مصداق سورة فاتحه دې، پس دواړه احادیث یوځائې کولو سره معلومه شوه، چه سورة فاتحه د طول نه دې، او دویم قول دادې، چه په ترجمة الباب کښې هی ضمیر طول طرف ته راجع دې، او لفظ من زائد دې، او د الطول نه مراد سبع طول دی، مطلب دا شو، چه سبع مثانی سبع طول دی، په اصل کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه د سبع مثانی په مصداق کښې دوه قوله دی، اول هغه چه په باب سابق کښې تیر شو (یعنی سورة فاتحه) او دویم قول دادې، چه د سبع مثانی نه مراد سبع طول دی، یعنی د قرآن مجید په شروع کښې اووه اوږدهٔ اوږده سورتونه، د سورة بقرې نه سورة توبې پورې.

واوتی موسی ستا فلما القی الالواح رفعت ثنتان و بقین ([2])اربع: موسی (ع) ته چه کوم تورات ورکړې شوې وو، هغه ټول په شپږو تختو باندې لیکلې شوې وو، چه کله هغوی هغه راواخستل (هرکله چه هغوی د طور نه د رب سره مناجات کولو نه فارغ شول او راغلل، نو وې لیدل، چه دهغوی قوم د سخی عبادت کولو) نو په هغې کښې دوه تختې آسمان ته پورته کړې شوې، او څلور باقی پاتې شوې، په دې سلسله کښې روایات مختلف دی، په یو روایت کښې دادی، چه د تورات اووه حصې وې، په هغې کښې شپږ حصې اوچتې کړې شوې، او صرف یوه حصه یعنی سبع باقی پاتې شوه، او په یو بل روایت کښې دادی، چه د

[1]: سنن النسائي/الافتتاح ٢٦ (٩١٦، ٩١٧)، (تحفة الأشراف:٥٦١٧) (صحيح)
[2]) القياس وبقيت.١٢ منهل.

تورات ټولې شپږ حصې وې، په هغې کښې پنځه پورته کړې شوې، او صرف یوه حصه یعنی سدس باقی پاتې شوه، (بذل عن الدر المنثور)

## بَاب مَا جَاءَ فِي آيَةِ الْكُرْسِيِّ

### باب: د آیت الکرسی فضیلت

[١٤٦٠] ( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ إِيَاسٍ، عَنْ أَبِي السَّلِيلِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبَا الْمُنْذِرِ، أَيُّ آيَةٍ مَعَكَ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ أَعْظَمُ؟" قَالَ: قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: "أَبَا الْمُنْذِرِ، أَيُّ آيَةٍ مَعَكَ مِنْ كِتَابِ اللَّهِ أَعْظَمُ؟" قَالَ: قُلْتُ: اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ سورة البقرة آية ٢٥٥، قَالَ: فَضَرَبَ فِي صَدْرِي، وَقَالَ: "لِيَهْنَ لَكَ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ الْعِلْمُ".

حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ ددۀ نه پوښتنه اوکړه: "اې ابو منذر! تاته په کتاب الله کښې د ټولو نه عظیم کوم آیت یاد دې؟ دې فرمائی چه ما عرض اوکړو: الله او د هغه رسول ښۀ پوهیږی. حضور ﷺ (بیا) اوفرمائیل: "اې ابو منذر! تاته په کتاب الله کښې کوم آیت یاد دې کوم چې د ټولو نه اعظم وی؟ ما عرض اوکړو: {اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ} په دې باندې ما لره رسول الله ﷺ په سینه کښې اوهلو اووې فرمائیل: اې ابو منذر! تاته دې علم مبارک وی.

**قلت الله و رسوله اعلم:** ابتداء، جواب ئې د ادب د وجې نه ورکړو، چه حضور (ﷺ) ئې په خپله ارشاد اوفرمائي، او یا ددې وجې نه، چه دا سوچ ئې کړې وی، چه ممکن دۀ، زۀ چه کوم آیت اعظم ګنړم، د نبی کریم (ﷺ) په نزد هغه داسې نه وی.

**و قال لیهن لک یا اباالمنذر العلم:** العلم په ترکیب کښې فاعل دې د فعل مذکور، اې ابوالمنذر! تاته ستا علم مبارک شه،

### (د صیغه لِیَهْنِ تحقیق)

لیهن د امر صیغه ده، او په بعضو نسخو کښې لیهنئ همزې سره دې، او هم دا اصل هم دې، دلته په کتاب کښې تخفیفا خذف کړې شوې دې، ای لیکن العلم هنیئا لک، هنئ هغه څیز ته وئیلې شی، چه انسان ته په سهولت سره بغیر د مشقت نه حاصل وی، هنؤ یهنؤ هنا د باب کرم نه، او هنئ یهنأ د باب سمع نه، وهنأ یهنأ د باب ضرب نه راځی، او هم ددې نه تهنئة هم راځی، چه د تعزیة ضد دې، چاته مبارکی ورکول، او د چا په خوشحالئ باندې د خوشحالئ اظهار کول.

شارحینو لیکلې دی، چه ددې حدیث نه معلومیږی، چه د افسر اعلی او استاذ دپاره مناسب دی، چه هغه کله کله خپل شاګرد او ماتحت ته، په چا کښې چه صلاحیت وینی، بطور امتحان ترې څه سوال کوی، دې دپاره چه دهغه خوبی او فضیلت نورو ته ښکاره شی، او هغوی هم ددۀ نه نفع واخلی، او د استاذ یا د مشر د خپلو فضلاؤ ملګرو او لائق

---

[1]: صحیح مسلم/المسافرین ٤٤(٨١٠)، (تحفة الأشراف: ٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤١/٥) (صحیح)

شاګردانو تعظیم کول، او د چا په مخکښې دهغه مدح کول، هرکله چه په دې کښې مصلحت وی، او څه نقصان په کښې نه وی (یعنی د ممدوح په تکبر کښې مبتلاء کیدل) او دا چه آیة الکرسی د قرآن مجید عظیم ترین آیت دې، او دا چه د بعضو آیتونو تفضیل په بعضو باندې جائز دې، (و قد تقدم شئ من التفضیل والاختلاف فیه)

## بَابٌ فِي سُورَةِ الصَّمَدِ

### باب: ١٨ - دَ سورت اخلاص فضیلت

[١٤٦١] (¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَجُلًا سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ: قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ يُرَدِّدُهَا، فَلَمَّا أَصْبَحَ جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ لَهُ، وَكَأَنَّ الرَّجُلَ يَتَقَالُّهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّهَا لَتَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ".

د حضرت ابو سعید خدری ﷜ نه روایت دې چه یو کس د بل نه اوریدلي دی چه هغه (قل هو الله احد) بار بار لوستله . چه کله صبا شو نو دا سړې نبی کریم ﷺ ته راغي او ددې خبرې ذکر ئې ورته اوکړو ... او دَ ګویا چه دې لره کم ګڼړلو. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: قسم دې په هغه ذات چه دَ هغه په قدرت کښې زما روح دې، بې شکه دا دَ دریمې حصې دَ قرآن برابر دې . "

**تشریح: قوله**: عن ابی سعید الخدری ان رجلا سمع رجلا یقرأ قل هوالله احد:

یو سړی بل سړې اولیدو، چه هغه د شپې په مانځه کښې بس یو سورة یعنی سورة اخلاص بار بار لوستلو (ددې نه علاوه بل څه سورة ئې نه لوستلو) چه کله سحر شو، نو دا اوریدونکې سړې د حضور (ﷺ) په خدمت کښې حاضر شو، او ددې څیز تذکره ئې نبی کریم (ﷺ) ته اوکړه، او دا تذکره ئې ددې وجې نه اوکړه، چه هغه صرف د یو سورة په ذکر باندې اکتفاء کول قلیل مقدار ګڼړلو، په بذل المجهود کښې لیکلي دی، چه په دې قصه کښې اوریدونکې خپله د حدیث راوی ابوسعید خدری ﷜ دې، او قاری (تلاوت کونکې) دهغه اخیافی (مور شریک) رور قتاده بن النعمان دې.

**قوله**: انها لتعدل ثلث القرآن: سورة قل هوالله احد د ثلث قرآن برابر دې، په دې کښې درې احتمالات دی، یا په اعتبار د ثواب سره، او یا په اعتبار د مضمون سره، د اول تشریح داده، چه د عمل یو خو اصل اجر وی، چه دهغې نه په اجر اصلی سره تعبیر کولې شی، او اجر المضاعف (الحسنة بعشر امثالها الی سبع مائة ضعف) چه هغې ته (علی لسان اهل الدرس) اجر انعامی وئیلې شی، نو مطلب دا شو، چه د سورة اخلاص اجر انعامی د ثلث قرآن د اجر اصلی برابر دې، او د دویم مطلب توضیح داده، چه په قرآن مجید کښې درې لوئې لوئې مضامین بیان کړې شوې دی، عقائد ، احکام، اخبار و قصص (د تیر شوؤ انبیاء کرامو او امتونو احوال

(¹): صحيح البخاري/فضائل القرآن ١٣ (٥٠١٣)، والأيمان والنذور ٣ (٦٦٤٣)، والتوحيد ١ (٧٣٧٤)، سنن النسائي/الافتتاح ٦٩ (٩٩٦)، وعمل اليوم والليلة ٢٠٤ (٦٩٨)، (تحفة الأشراف:٤١٠٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القرآن ٦ (١٧)، مسند احمد (٣/٣٥، ٤٣) (صحيح)

او واقعات) په دې ورو کې سورة کښې دهغې دريو نه عقائد يعنى د توحيد او د الله تعالى د صفتونو ذکر دې، په دغې اعتبار سره دې سورة ته ثلث قرآن اوفرمائيلې شو، او دريم احتمال ددې جملې په معنى کښې دادې، چه هغه سرى دا سورت بار بار په دومره کثرت سره اولوستلو، چه په مقدار کښې هغه د لسو سپارو برابر شو، (مثلا زر کرته ئې اولوستلو)

# بَابٌ فِي الْمُعَوِّذَتَيْنِ

## باب: ١٩- دَ معوذتينو فضيلت

په دې کښې د واؤ کسره او فتحه دواړه جائز دى (بذل عن المرقاة)

[١٤٦٢](1)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مُعَاوِيَةُ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ مَوْلَى مُعَاوِيَةَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: كُنْتُ أَقُودُ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَتَهُ فِي السَّفَرِ، فَقَالَ لِي: "يَا عُقْبَةُ، أَلَا أُعَلِّمُكَ خَيْرَ سُورَتَيْنِ قُرِئَتَا؟" فَعَلَّمَنِي: قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ قَالَ: فَلَمْ يَرَنِي سُرِرْتُ بِهِمَا جِدًّا، فَلَمَّا نَزَلَ لِصَلَاةِ الصُّبْحِ صَلَّى بِهِمَا صَلَاةَ الصُّبْحِ لِلنَّاسِ، فَلَمَّا فَرَغَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الصَّلَاةِ الْتَفَتَ إِلَيَّ، فَقَالَ: "يَا عُقْبَةُ كَيْفَ رَأَيْتَ؟".

حضرت عقبه بن عامر وائى چه ما په يو سفر کښې د نبى کريم ﷺ د اوښې رسئ نيولې وه او تللم . حضور ﷺ ماته اوفرمائيل اې عقبه ! آيا زۀ تاته دوه بهترين لوستلې شوى سورتونه اونۀ ښايم؟ چانچه حضور ﷺ ماته {قل اعوذ برب الفلق } او {قل اعوذ برب الناس } اوښودل . فرمائى چه رسول الله ﷺ محسوسه کړه چه زۀ په دې باندې څۀ زيات خوشاله نۀ يم . فرمائى : بيا چه کله نبى کريم ﷺ دَصبا دَ مونځ دَ پاره راکوز شو او خلقو ته ئې مونځ ادا کړو نو په مونځ کښې ئې هم دا دوه سورتونه تلاوت کړل . کله چه هغوى ﷺ دَ مونځ نه فارغ شو نو زما طرف ته متوجه شو اووې فرمائيل : اې عقبه ! تا څنګه بيا موندل "دې دوو ښورتونو لره) .

**تشريح**: **قوله**: الا اعلمک خير سورتين قرءتا الخ: هغه دوه سورتونه چه د ټولو نه بهتر دى، يعنى په باب استعاذه کښې، د پيريانو او شيطانانو او دهغوى د ضرر نه بچ کيدو دپاره، **فلم يرنى سررت بهما جدا**: پس تا زۀ نه اوم ليدلې، چه زۀ ځومره زيات خوشحاله شوم، دهغې دواړو سورتونو نوم اوريدلو سره.

**يا عقبة کيف رايت**: يعنى تا اوليدل هم، چه دا دوه واړۀ واړۀ سورتونه د لوئې سورتونو قائم مقام شول، چه د سحر په مانځه کښې عام طور سره لوستلې شى، دويم مطلب ددې دا هم کيدې شى، چه نبى کريم (ﷺ) هغې صحابى ته د کوم غرض دپاره ددې سورتونو تعليم فرمائيلې وو، (وسوسې، خطرات يا ويره وغيره دفع کولو دپاره) دهغې باره کښې نبى کريم (ﷺ) دهغه نه تپوس فرمائي، چه اوايه اوس دې د زړۀ څۀ حالت دې؟ يعنى فائده درته محسوس شوه او کۀ نه؟

(1): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف:٩٩٤٦)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المسافرين ٤٦ (٨١٤)، سنن الترمذي/فضائل القرآن ١٢ (٢٩٠٢)، قيام الليل (١٣٣٧)، ن الكبري/الاستعاذة (٧٨٤٨)، مسند احمد (١٤٤/٤، ١٤٩، ١٥١، ١٥٣)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ٢٤ (٣٤٨٢) (صحيح)

[۱۴۶۳]([1])حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: بَيْنَا أَنَا أَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْجُحْفَةِ، وَالْأَبْوَاءِ، إِذْ غَشِيَتْنَا رِيحٌ وَظُلْمَةٌ شَدِيدَةٌ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ بِ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَأَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ، وَيَقُولُ: "يَا عُقْبَةُ، تَعَوَّذْ بِهِمَا، فَمَا تَعَوَّذَ مُتَعَوِّذٌ بِمِثْلِهِمَا" قَالَ: وَسَمِعْتُهُ يَؤُمُّنَا بِهِمَا فِي الصَّلَاةِ.

حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه بيان کوی چه يو ځل زهٔ د نبی کريم ﷺ سره تلمه، مونږ د جحفې او دَ ابواء مقام په مابين کښې وو چه سخت باد راغې او سخته تيارهٔ جوړه شوه، نو رسول الله ﷺ {قل اعوذ برب الفلق} او {قل اعوذ برب الناس} اولوستل. اووې فرمائيل: اې عقبه! ددې په تلاوت سره تعوذ کوه (دَ الله نه پناه غواړه) هيڅ پناه غوښتونکی ددې نه په زيات افضل کلماتو سره پناه نهٔ ده غوښتلې، عقبه وائی: ما واوريدل چه حضور ﷺ به په دې سورتونو سره په مونځ کښې مونږ ته امامت راکولو.

## بَابُ اسْتِحْبَابِ التَّرْتِيلِ فِي الْقِرَاءَةِ

### باب: ۲۰- دَ قرائت دَ ترتيل استحباب

ترتيل بمعنی تانی يعنی ترک العجلة، يعنی قرآن مجيد لره په مزه مزه لوستل، حروف او حرکاتو لره په ښه طريقې سره ظاهرول، د حضرت ګنګوهی په تقرير الکوکب الدری کښې ليکلې دی، چه د ترتيل درجه ډيره اوچته ده د تکثير تلاوت نه، او بيا ئې مخکښې ليکلې دی، چه الله تعالی توفيق ورکونکې دې، د خپلو خوښو طريقو، او حضرت شيخ په حاشه کوکب کښې د حضرت شاه عبدالعزيز رحمه الله د تفسير نه نقل کړې دی، چه ترتيل د اووه څيزونو د لحاظ ساتلو نوم دې، تصحيح الحروف، مراعاة الوقوف، اظهار الشد والمد، اشباع الحرکات، تزيين الصوت، التاؤه فيه، التاثر بآيات الرغبة والرهبة، او ددې اووهٔ واړو څيزونو تشريح حضرت شيخ په خپل اردو تصيف فضائل قرآن مجيد کښې فرمائيلې ده،

[۱۴۶۴]([2])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي عَاصِمُ بْنُ بَهْدَلَةَ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُقَالُ لِصَاحِبِ الْقُرْآنِ اقْرَأْ وَارْتَقِ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا، فَإِنَّ مَنْزِلَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَؤُهَا".

حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه بيان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: " صاحب قران ته به اووئيلې شی چه قرآن لوله او خيژه، او په مزه مزه ئې داسې وايه لکه څنګه چه تا دې لره په دنيا کښې لوستلو، په کوم ځائې چه آخری آيت ختمه وې هم هغه به ستا مقام وی.

يقال لصاحب القرآن:

### د صاحب قران مصداق

د صاحب قرآن تفسير په بذل او عون المعبود کښې هغه سړی سره شوې دې، چه د قرآن مجيد د تلاوت اهتمام کوی مع العمل به، او صاحب منهل ددې تفسير حافظ قرآن سره کړې

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:۹۹۵۲) (صحيح)

[2]): سنن الترمذي/فضائل القرآن ۱۸ (۲۹۱۴)، ن الكبري / فضائل القرآن (۸۰۵۶)، (تحفة الأشراف:۸۶۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹۲/۲) (حسن صحيح)

دي، که حافظ د پوره قرآن مجید وي، یا د بعضې قرآن مجید، او د عمل قید ټولو لیکلې دي، حضرت شیخ په حاشیه کوکب کښې لیکلې دی، چه ملا علی قاری رحمه الله د بعضو قرائن روایات حدیثیه نه دا خبره لیکلې ده، چه د صاحب قرآن نه مراد حافظ دي، د حدیث مضمون دادې، چه جنتیان کله جنت ته داخلیږي، نو په هغه کښې هغوی کښې چه څوک حافظ قرآن وي، یا داسې اوایئ، چه څوک د قرآن مجید د تلاوت اهتمام کوي، هغه ته به اوئیلې شي، اقرء وارتق الخ، څرنګه چه تا به دنیا کښې قرأت کولو، ترتیل سره دلته کښې هم تلاوت کوه، او بره خیژه، فان منزلک عند آخر آیة تقرؤها: پس تحقیق ستا منزل ستا د قرأت آخری آیت باندې به وي، پس که هغه ټول قرآن مجید اولوستلو، نو ګویا هغه ټول منزلونه پار کړل، او د ټولو نه اعلی منزل ته اورسیدو.

## د جنت درجات:

ځکه په حدیث کښې دي، چه د جنت درجات د قرآن مجید د آیتونو برابر دي (رواه البیهقی فی الشعب فی حدیث عائشة مرفوعا) علماؤ لیکلې دي، چه د قرآن مجید د آیتونو تعداد شپږ زره خو بالاتفاق دی، ددې نه په زیاتو کښې اختلاف دې، قیل دوه سوه او شپږ دیرش، و قیل شپږ سوه او شپږ شپیتۀ، و قیل غیر ذلک.

او وئیلې شوې دي، چه د جنت درجات د قرآن مجید د حرفونو برابر دي، او حروف قرآن الف الف و خمسة وعشرون الفا دي، یعنی لس لاکهه پنځویشت زره دي، قاله بعض المفسرین (منهل) په دې باندې یو اشکال واردیږي، هغه دا چه کوم حافظ ټول قرآن مجید اولولي، او د ټولو نه اوچتې مرتبې ته اورسیږي، نو بیا دهغه او په منازل انبیاء کښې څه فرق به پاتې شي، جواب دادې، چه هر منزل د منزلونو د جنت نه په بې شمیره درجاتو باندې مشتمل دې، لهذا په دې طریقې باندې به فرق اوشي، (الکوکب الدری)

او صاحب منهل ددې حدیث په شرح کښې یوه بله طریقه اختیار کړې ده، هغه دا چه ددې احادیثو حاصل دادې، چه ددې درجات عالیه حصول به هغه سړي دپاره وي، چه د قرآن مجید حافظ وي، او هغې لره په آداب او ترتیل سره لولي، او دهغې په معانی کښې تدبر او دهغې په مقتضی باندې عمل کوي، او ددې اوصافو حصول په طریقه د اتم او اکمل اول د حضور (ﷺ) دپاره دې، او بیا دهغوی نه پس راتلونکو امامانو دپاره، څنګه څنګه چه دهغوی مرتبې وي د دین او معرفت په اعتبار سره، پس په دوی کښې به هر یو په جنت کښې یو قرأت کوي، څرنګه قرأت ئې چه په دنیا کښې کولو، او دهغې په معانی کښې تدبر او په مقتضی باندې عمل کولو، انتهی کلامه، ددې تقریر او تشریح نه پس د مساوات اشکال بالکل ختمیږي.

**فائده:** په اقرء وارتق باندې د بنده په ذهن کښې یو اشکال راغلې وو، هغه داچه د "لوله او بره خیژه" نه په ظاهر کښې خو دا معلومیږي، چه د دغې منازل عالیه حصول په جنت کښې چه څرنګه قرأت وي، په هغې باندې به وي، حالانکه آخرت خو دار الجزاء دې، دار العمل نه دې، ددې وجې نه بنده ددې مطلب دا واخستلو، چه په اقرء وارتق کښې قراءت بالفعل مراد

نه دي، بلکه په دې کښې اشاره ده دې طرف ته، چه تاته نن کوم منازل حاصل دی، دا ستا دهغې قراءت او ترتيل ثمره او نتيجه ده، کوم چه تا په دنيا کښې کولو، لهذا مطلب دا شو، چه د خپل قراءة فی الدنيا په جزاء کښې نن بره خيژه، ليکن بيا روستو چه کله مې د هغې حديث شروحات اوکتل، نو معلومه شوه، چه قراءة فی الجنة مراد دې، او د خپل اشکال جواب دا په پوهه کښې راشی، چه دا قراءة چه هلته کښې کيږی، هغه به په طريقې د عمل او تکليف سره نه وی، بلکه په طريقه د تشويق او تفريح سره به وی، چه خپل شوق او خوند پوره کولو د پاره لوله او بره خيژه، دې سره دا هم په پوهه کښې راغله، چه قاری قرآن چه په دنيا کښې د قراءت عادی او شوقين وو، هغه ته به هغې ترتيل او تجويد سره د تلاوت کولو موقع په جنت کښې هم ورکولې شی، فلله الحمد والمنة، هلته کښې خو به ټول لوئې لوئې قراء او حافظان موجود وی، نو هرکله چه د لوستلو موقع ورکولې شی، نو د اوريدلو به ولې نشی ورکولې.

[١٤٦٥]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسًا عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "كَانَ يَمُدُّ مَدًّا".

حضرت قتاده رضي الله عنه بيان کوی چه ما د حضرت انس رضي الله عنه نه د نبی کريم ﷺ د قرائت متعلق پوښتنه اوکړه نو هغوی اوفرمائيل: حضور ﷺ به الفاظ دَ مد سره تلاوت فرمائيل. (يعنی الفاظ به ئې اوږده وَل او په مزه مزه باندې به ئې الفاظ ادا کول.)

عن قتادة قال سالت انسا عن قراءة النبی (صلی الله عليه وسلم) فقال کان يمد مدا:

يعنی په کومو حروفو کښې به چه د مد او اطالت صلاحيت وو، په هغې کښې به ئې اطالت فرمائيلو. (منهل)

## شرح حديث:

يعنی حروف مده او حروف لين به ئې د قواعدو مطابق لوستل، حروف مده درې دی، الف (دا هميشه ساکن وی) واؤ او يا هرکله چه ساکن وی، او د ماقبل حرکت ددې موافق وی، د واؤ نه مخکښې ضمه، او يا دنه مخکښې کسره، دغه شان واؤ او يا چه کله ساکن وی، او ددې نه مخکښې فتحه وی، لکه خوف، صيف، په دې صورت کښې دې دواړو ته حروف لين وئيلې شی، او که ددې نه پس سکون راشی، نو دې لره به هم مد سره لوستلې شی، او که واؤ او يا باندې حرکت وی، نو په دې صورت کښې دې ته غير مده وئيلې شی، لکه واذا او يضرب، د حروف مده اصل مقدار خو د يو الف برابر برابر دې، چه هغې ته مد اصلی وئيلې شی، ليکن کله چه ددې نه پس همزه يا سکون وی، نو په دغه وخت کښې مد کښې زياتوالې کيږی، او دهغې مقدار دواؤ يا دريو الفو نه تر څلورو يا پنځو الفو پورې وی، او دې ته مد فرعی او مد زائد هم وئيلې شی، او د مد زائد به څو قسمونه دی، چه دهغې

[1]: صحيح البخاري/فضائل القرآن ٢٩ (٥٠٤٥)، سنن النسائي/الافتتاح ٨٢ (١٠١٥)، سنن الترمذي/الشمائل (٣١٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٩ (١٣٥٣)، (تحفة الأشراف: ١١٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٩/٣، ١٢٧، ١٣١، ١٩٢، ١٩٨، ٢٨٩) (صحيح)

تفصيل د تجويد په کتابونو کښې موجود دې، د يو الف د مقدار اندازه ضم اصبع سره شوې ده، يعنی څومره وخت چه د پرانستې ګوتې بنديدلو کښې يا د بندې ګوتې پرانستلو کښې لګی.

دا حديث په صحيح بخاری کښې هم شته، او هلته کښې په دې باندې دا اضافه ده: ثم قرأ بسم الله الرحمن الرحيم يمد بسم الله و يمد بالرحمن و يمد بالرحيم، يعنی د لفظ الله لام به ئې راکاږلو، او دغه شان د الرحمن ميم لره، او د الرحيم حاء لره، ددې نه مخکښې دوه مده خو اصلی دی، او دريم مدزائد دې د سکون د وجې نه.

په تلاوت کښې د مد رعايت ساتلو مصلحت او حکمت ئې دا ليکلې دې، چه ددې په وجه د معانيو په تدبر او تفکر کښې مدد ملاويږی، (منهل) او فضائل قرآن ص۱۸ کښې د شاه عبدالعزيز رحمه الله نه ئې نقل کړې دی، چه د تشديد او مد په اظهار سره د کلام پاک عظمت ظاهريږی،

(اشکال): او په تاثير کښې مدد ملاويږی، او دبنده په ذهن کښې دلته يو سوال دا پيدا شو، چه د نبی کريم (صلی الله عليه وسلم) په تلاوت کښې ظاهره خبره ده، چه د ټولو صفاتو رعايت به وو، بيا دلته کښې د مد تخصيص ولې اوشو،

(جواب): جواب دا کيدې شی، چه په صفات حروف کښې مد داسې يو صفت دې، چه ډير زيات ښکاره دې، او هر سړې دې لره محسوسوی.

[۱۴۶۶] (۱) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ، أَنَّهُ سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ عَنْ قِرَاءَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَلَاتِهِ، فَقَالَتْ: وَمَا لَكُمْ وَصَلَاتَهُ؟ "كَانَ يُصَلِّي، وَيَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى، ثُمَّ يُصَلِّي قَدْرَ مَا نَامَ، ثُمَّ يَنَامُ قَدْرَ مَا صَلَّى حَتَّى يُصْبِحَ، وَنَعَتَتْ قِرَاءَتَهُ، فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَتَهُ حَرْفًا حَرْفًا".

د يعلی بن مملک نه روايت دې چه هغوی د حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د قرائت او د مونځ په باره کښې پوښتنه اوکړه نو هغوی اوفرمائيل: ستاسو د هغه د مونځ سره څه مقابله؟ حضور صلی الله عليه وسلم به مونځ کولو او بيا به دومره وخت اوده کيدلو څومره چه به ئې مونځ ادا کړې وو. بيا به پاسيدلو او مونځ به ئې کولو څومره قدرې چه به اوده شوې وو. بيا به دومره قدرې اوده شو څومره چه به ئې مونځ ادا کړې وو، تردې پورې چه صبا به شو، هغوی رضی الله عنها د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د قرائت اندازه هم اوښودله چه يو يو حرف به جدا جدا وو.

**تشريح: قوله**: انه سال ام سلمة عن قراءة رسول الله (صلی الله عليه وسلم)......... فاذا هی تنعت قراءته حرفا حرفا الخ.

ام سلمه رضی الله عنها بيان کړې دې، چه د نبی کريم (صلی الله عليه وسلم) قراءة به د هر هر حرف جدا جدا وو، يعنی هر حرف به د بل نه جدا وو، او داسې ترتيل سره به وو، چه که سامع به حرفونه شمارل غوختل، نو شمارلې به ئې شو.

---

(۱): سنن الترمذي/فضائل القرآن ۲۳ (۲۹۲۳)، سنن النسائي/الافتتاح ۸۳ (۱۰۲۳)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۲٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۲۹٤، ۲۹۷، ۳۰۰، ۳۰۸) (ضعيف)

علامه طیبی رحمه الله فرمائي چه ددې کلام دوه مطلبه کیدې شي، یو دا چه ام سلمه رضي الله عنها قولا بیان کړې دې، چه نبی کریم (ﷺ) به تلاوت داسې فرمائیلو، دویم مطلب دادې، چه ام سلمه رضي الله عنها خپله ترتیل سره اولوستلو، اوخلقو ته ئې واورولو، څرنګه به چه نبی کریم (ﷺ) لوستلو.

## د حدیث ام سلمه رضي الله عنها تحقیق من حیث الروایة والدرایة:

ددې نه پس تاسو پوهه شئ، چه ددې حدیث دام سلمه رضي الله عنها دوه طریق دی، یو طریق لیث بن سعد عن ابن ابی ملیکة عن یعلی بن مملک عن ام سلمة رضي الله عنها، مصنف دې حدیث لره په دې طریق سره اخستلې دې، دا طریق متصل دې، او دویم طریق ددې حدیث دادې: ابن جریج عن ابن ابی ملیکة عن ام سلمة رضي الله عنها، په ترمذی شریف کښې دا حدیث په دواړو طریق سره دې، دا دویم سند منقطع دې، په دې کښې د یعلی بن مملک واسطه نشته، قاله الترمذی و قال حدیث اللیث اصح، دویمه خبره داده، چه د دواړو احادیث الفاظ هم مختلف دې، د لیث د روایت الفاظ خو هغه دی، کوم چه بره ذکر دی، او د ابن جریج په روایت کښې داسې دی:
کان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یقطع قراءته یقول الحمد لله رب العالمین ثم یقف ثم یقول الرحمن الرحیم ثم یقف، دا په هر آیت باندې وقف کول په سورة الحمد کښې، په طریق دلیث کښې نشته، د ابن جریج په طریق کښې شته، چه منقطع دې، چه هغې ته امام ترمذی غیر اصح وئیلې دې، د امام ترمذی کلام لره صاحب مشکوة هم نقل کړې دې، او بیا صاحب مظاهر حق هم په هغې باندې کلام کړې دې، او په هر آیت باندې وقف لره ئې غیر مُستحسن [1] لیکلې دې.

---

[1] بعض واتی چه دا روایت (روایة لیث) د حجت لائق نه دې او اهل بلاغت او وقف تام په ﴿ مالك یوم الدین ﴾ باندې دې هم په دې وجه مو وئیلې شی چه حدیث لیث صحیح تر دې، ذکره الطیبی او د جمهورو په نزد مثل د داسې آیتونو متعلق دې چه په هغې کښې خپل مینځ کښې وصل اولی دې او امام جزری(ح) فرمائی چه وقف مستحب دې او دلیل ئې هم د دې حدیث نه نیولې دې او هم په دې باندې باقی شوافع هم دی او جمهورو جواب کړې دې چه دا وقف په دې وجه وو اوریدونکو ته د آیتونو ابتداء معلومه شی. والله اعلم (مظاهر حق قدیم ص ۲۳۸، ج ۲) هم دغه شان حضرت الحاج القاری المقری مولانا عبدالرحمن صاحب پانی پتی المکی نور الله مرقده د فوائد مکیه په اخر کښې لیکلې دی: فائده: په ټولو وقفونو باندې ساه اخستل سره د دې چه ساه جاری ساتلې شې داسې نه دی کول بکار، د قاری مثال د مسافر په شان دې او اوقاف د هغه د دمې ځایونه دی نو څنګه چه په هر یو منزل باندې بغیر د ضرورت نه ایساریدل فضول او وخت ضائع کول دی نو دغه شان هر ځائې کښې وقف کول هم عبث فعل دې چه څومره ساعت وقف کوی په دومره وخت کښې به یو یا دوه کلمې ادا شی، البته په لازم مطلق باندې او هم دغه شان چه د کوم آیت د روستو سره لفظی تعلق نه وی په داسې ځائې کښې وقف کول ضروری او مستحسن دی، انتهی. حضرت اقدس ګنګوهی(ح) په رد الطغیان فی اوقاف القران (کوم چه د اهل حدیث د یوې فتوې په رد کښې دې) کښې حدیث ام سلمه په طریق د ابن جریج په باره کښې فرمائی چه هغه منقطع دې کما قال الزبیدی، او زمونږ د زمانې اهل حدیث، حدیث مرسل منقطع حجت نه منی بیا هغوی د دې نه څنګه استدلال اوکړو، بیا حضرت وړاندې لیکی خو مونږ خلق چونکه مرسل او منقطع ثقه لره معتبر منو، په مونږ باندې د دې حدیث شرح ضروری دی هغه دا چه سیده ام سلمه رضي الله عنها چه قراءت رسول ﷺ کوم بیان فرمائیلې دې نو دا نه ده چه په ټول قران کښې به رسول الله ﷺ داسې کول او خاص یوه طریقه قراءة او وقف په هر یو آیت باندې د هغه په.....

[١٤٦٧] ()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَهُوَ عَلَى نَاقَةٍ "يَقْرَأُ بِسُورَةِ الْفَتْحِ وَهُوَ يُرَجِّعُ".

حضرت عبد الله بن مغفل ﷺ بيان کوی چه ما رسول الله ﷺ لره د فتح مکې په ورځ باندې اوليدو چه هغه ﷺ په خپله اوښه باندې سور وو او سورة فتح ئې تلاوت فرمائيلو او په ترجيع سره ئې تلاوت فرمائيلو.

عن عبدالله بن مغفل............ وهو على ناقة يقرأ بسورة الفتح وهو يرجع.

نبي کريم (ﷺ) د فتح مکې په ورځ په اوښه باندې سور وو، او سورة فتح ئې تلاوت کوله ترجيع سره، يا آواز لره په حلق کښې واپس کولو سره، په دې کښې حافظ ابن حجر دوه احتماله ذکر کړې دی، يو دا چه دا ترجيع د اوښې د حرکت مشي د وجې نه پيدا شوې وه، دويم دا چه دا په موضع دمد کښې د اشباع مد دوجې نه وه، عارف بن ابی جمره فرمائي، چه د ترجيع نه مراد تحسين الصوت دې، نه ترجيع الغناء، يعنی څرنګه چه سندره آواز حلق کښې واپس کولو سره وئيلې شی، ځکه چه دا څيز د خشوع سره منافی دې، او خشوع د تلاوت مقصود دې.

[١٤٦٨] ()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ طَلْحَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْسَجَةَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "زَيِّنُوا الْقُرْآنَ بِأَصْوَاتِكُمْ".

حضرت براء بن عازب ﷺ بيان کوی چی رسول الله ﷺ اوفرمائيل په خپلو اوازونو سره قرآن ته زينت ورکړئ.

**تشريح: قوله**: عن البراء بن عازب ﷺ قال قال رسول الله (صلى الله عليه وسلم) زينواالقرآن باصواتكم:

خپل تلاوت د قرآن مجيد لره مزين کړئ، يا دا چه د قرآن مجيد زينت لره ظاهر کړئ په ښه آوازونو سره (بذل) د زينت نه مراد دادې، چه ترتيل او تجويد سره او د آواز نرمي سره ئې اولولئ، او قرآن مجيد لره په راګ کښې لوستل (د سندرې پشان) په داسې طريقې چه په حروفو کښې يا حرکاتو کښې زياتوالې يا نقصان راشی، حرام دی، (مظاهر حق) وئيلې شوې دی، چه په دې حديث کښې قلب دې، يعنی په دې کښې صنعت قلب لره اختيار کړې شوې دې، کمافی قولهم عرضت الناقة على الحوض والاصل عرضت الحوض على الناقة، ځکه چه غير ذی شعور لره پيش کولې شی په ذی شعور باندې، نه چه برعکس، دغه شان دلته هم دا مراد

---

[1]..... قراءت کښې حصر نه شی کولې د دې دپاره چه د دې نه معلومه شی چه رسول الله ﷺ د دې خلاف نه دې کړې نو مونږ وايو چه رسول الله ﷺ به کله کله داسې هم لوستلې دې او کله کله ئې په بله طريقه هم لوستلې دې کوم چه د قرون ثلاثه د اجماع نه معلوم شو الي اخره (تاليفات رشيديه ص ٢٧٧، مطبوعه پاکستان لاهور)

[1]): صحيح البخاري/المغازي ٤٨ (٤٢٨١)، صحيح مسلم/المسافرين ٣٥ (٧٩٤)، ت الشمائل (٣٩١)، ن الكبري/فضائل القرآن (٨٠٥٥)، (تحفة الأشراف:٩٦٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٥/٤) (صحيح)

[2]): سنن النسائي/الافتتاح ٨٣ (١٠١٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٧٦ (١٣٤٢)، (تحفة الأشراف:١٧٧٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التوحيد ٥٢، تعليقاً، مسند احمد (٢٨٣/٤، ٢٨٥، ٢٩٦، ٣٠٤)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ٣٤ (٣٥٤٤) (صحيح)

دی، زینوا اصواتکم بالقرآن، لیکن دا قول صحیح نه دې، ځکه چه حدیث الباب کښې د حاکم په روایت کښې زیاتوالي دې، فان الصوت الحسن یزید القرآن حسنا، ددې نه معلومه شوه، چه څرنګه دلته په روایت کښې دی، هغه اصل دې، البته په کوم روایت کښې چه ددې عکس وارد شوې دې (کما قیل) د هغې باره کښې وئیل پکار دی، چه هلته قلب شوې دې. (بذل و منهل)

[۱۴۶۹](۱)حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ بِمَعْنَاهُ، أَنَّ اللَّيْثَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَهِيكٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، وَقَالَ يَزِيدُ: عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، وَقَالَ قُتَيْبَةُ: هُوَ فِي كِتَابِي عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْآنِ".

د ابو الولید طیالسی په سند سره د حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه روایت دې ... او د یزید (راوی) په سند کښې د حضرت سعید بن ابی سعید رضی الله عنه نه روایت دې او قتیبه هم داسې وئیلي دی چه زما په کتاب کښې سعید بن ابی سعید رضی الله عنه دې ... هغوی بیان کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: "کوم یو کس چه قرآن مجید لره په خوش الحانۍ سره نۀ لولی هغه زمونږ نه نۀ دې."

**تشریح: قوله:** وَقَالَ قُتَيْبَةُ: هُوَ فِي كِتَابِي عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ:

**شرح السند:**

ددې اختلاف رواة، کوم چه مصنف بیانوی، توضیح داده، چه ددې حدیث په سند کښې د مصنف رحمه الله درې استاذان دی، په خپلو کښې دهغوی په سند کښې اختلاف دې، چه دهغې نقشه داسې ده:

(۱) ابوالولید عن اللیث عن ابن ابی ملیکة عن ابن ابی نهیک عن سعد بن ابی وقاص عن النبی (صلی الله علیه وسلم)،

(۲) قتیبة عن اللیث عن ابن ابی ملیکة عن سعید بن ابی سعید عن النبی (صلی الله علیه وسلم)،[۲]

(۳)یزیدبن خالدعن اللیث عن ابن ابی ملیکة عن سعید بن ابی سعید عن النبی(صلی الله علیه وسلم)،

لیکن د قتیبه سند چه دهغه په حفظ کښې دې، هغه د عن سعید په ځائې عن سعد بن ابی وقاص دې، څرنګه چه د ابوالولید په روایت کښې دی، او دا خبره دې هم واضحه وی، چه د ابوالولید روایت مسند متصل دې، اودغه شان د قتیبه هم هغه روایت چه دهغه په حفظ کښې دې، او د یزید بن خالد او د قتیبه دویم حدیث (چه په کتاب کښې دې) منقطع هم دې او مرسل هم دې، ځکه چه د ابن ابی ملیکه اصل روایت د ابن ابی نهیک نه دې، نه د سعید نه، او مرسل ددې وجې نه دې، چه سعید بن ابی سعید المقبری تابعی دې، صحابی نه دې (بذل ومنهل) په بذل کښې لیکلې دی، چه ددې سند په تشریح کښې د صاحب العون نه غلطی شوې ده.

---

[۱]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف:۳۹۰۵، ۱۸۶۹۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۷۲، ۱۷۵، ۱۷۹)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ۳۴(۳۵۳۱) (صحیح)

[۲]: کذا یستفاد من المنهل، لیکن د مصنف د کلام نه دا نه معلومیږی چه د قتیبه په روایت کښې دابن ابی نهیک واسطه ذکر ده یا نه، والله أعلم.

**تشریح: قوله:** لیس منا من لم یتغن بالقرآن:

## د حدیث په تشریح کښې اقوال علماء بالبسط:

د تغنی په تفسیر کښې څو اقوال دی، متبادر معنی خو ددې غناء او نغمه ده، چه یو مستقل فن دې، دعلم موسیقی، چه دهغې مخصوص اوزان دی، او دغه شان لوستلو ته قراءت بالالحان وئیلې شی، چه هغې ته بعضې عالمان حرام وائی، او بعضې ورته مکروه، او بعضې مباح بلکه مستحب، امام مالک رحمه الله طرف ته کراهت یا تحریم منسوب کولې شی، او بعضو امام شافعی او حنفیه طرف ته جواز منسوب کړې دې، او شافعیه کښې فورانی طرف ته استحباب منسوب دې.

د مجوزینو د طرف نه وئیلې شوې دی، چه دا (قراءة بالالحان) مورث رقت دې، موجب خشیة دې، استماع قرآن طرف ته رغبت پیدا کونکي دې، مانعین وائی، چه دا څیز د خشوع او تحزن او تدبر خلاف دې، د څه دپاره چه قرآن مجید موضوع دې (من المنهل وغیره)

چونکه قراءة بالالحان مختلف فیه دې، ددې وجې نه ددې حدیث شرح ددې په ځائې تحسین صوت سره کولې شی، چه بالاتفاق مستحب دې، په مظاهر حق کښې ددې حدیث لاندې لیکلې دی، یعنی نشته زمونږ په کامله طریقه باندې هغه سړې چه نه خوش آوازی کوی قرآن مجید کښې، یعنی ښه ده خوش آوازی کول په قرآن مجید لوستلو کښې، په شرط ددې چه تغیر دحرف یا حرکت یا مد یا شد یا بلې طریقې سره نه وی، او د راګ یعنی سندرې په طریقې سره هم نه وی، او کوم سړې چه اولولی قرآن مجید لره په راګ کښې قصداً، نو حرام دی لوستل دهغه، او ددې معنی تائید تیر شوې حدیث زینوا القرآن باصواتکم سره هم کیږی، او دا معنی د تغنی د اصل لغت سره هم نزدې ده، ځکه چه د قرآن مجید غناء هم داده، چه دې لره د تجوید د قواعدو مطابق اولوستلې شی، په هغې کښې یقینا تحسین صوت دې، دویم تفسیر ددې په استغناء سره شوې دې، امام طحاوی هم په مشکل الآثار کښې دې لره راجح ګرزولې دې، یعنی د صاحب قرآن تولّه توجه قرآن مجید طرف ته کیدل پکار دی، او د قرآن مجید په وجه هغه ته استغناء عن الناس حاصلول پکار ده، یا استغناء عن الکتب السماویه یعنی د باقی کتب سماویه، تورات زبور انجیل وغیره نه استغناء پکار ده.

او دریمه معنی ئې جهر بالقراءة لیکلې ده (شاید ددې وجې نه چه عام طور سره سندره په اوچت آواز سره وی) او یوه معنی ئې د تحزن لیکلې ده، یعنی قرآن مجید لره د درد په لهجې سره لوستل، چه دهغې تاثیر په قلب باندې زیات وی، او یو تفسیر ددې په کشف الهم سره شوې دې، توضیح ددې داده، چه انسان ته کله یوه ناخوښه یا د غم او پریشانی خبره پیښه شی، نو بعضې وختونو کښې هغه خپل غم غلطولو دپاره اشعار وغیره لولی، دې سره لږ شان زړهٔ مطمئن کیږی، دا د عامو او دنیادارو خلقو حال دې، او د یو مومن حال دا پکار دې، چه کله هغه ته د څه غم یا پریشانی خبره پیښه شی، نو هغه دې خپل غم د عبثو شعرونو په ځائې . قرآن مجید په نغمه سره ختم کړی، یعنی د قرآن مجید دې خوش آوازی سره دور اوکړی، ګویا د مسلمان دپاره د زړهٔ د تسلی دپاره د قرآن مجید تلاوت کول پکار دی.

## د قراءة بالالحان تحقيق او اختلاف علماء:

د قراءة بالالحان په سلسله کښې چه اوسه پورې څه ليکلې شوې دی، هغه د عربی شروح حديث نه اخستلې شوې دی، چه دهغې ترجمه بنده کړې ده، او احقر نه چونکه د فن تجويد او دهغې د اصطلاحاتو پوره علم نشته، ددې وجې نه ما دا غوختل، چه دا مضمون د يو صاحب فن په الفاظو کښې اوليکلې شی، د يو ضرورت د وجې نه فوائد مکيه طرف ته رجوع اوکړې شوه، په هغې کښې دا مضمون هم اتفاقا ملاؤ شو، چه هغې لره ما ډير جامع اوموندلو، ددې وجې نه هغه په حاشيه کښې اوليکلو (١)

[١٤٧٠] (٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَهِيكٍ، عَنْ سَعْدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِثْلَهُ.

---

(١) حضرت قاري صاحب (صاحب فوائد مکيه) ليکلې دی، چه قرآن مجيد لره په الحان او انغام سره لوستلو کښې اختلاف دې، بعضې ورته حرام بعضې ورته مکروه بعضې ورته مباح او بعضې ورته مستحب وائی، بيا په اطلاق او تقييد کښې هم اختلاف دې، مګر قول محقق او معتبر دادې، چه که د قواعد موسيقيه د وجې نه قواعد تجويد ورانيږی، نو بيا خو مکروه يا حرام دې. ګنی مباح يا مستحب دې، او مطلقا تحسين صوت سره لوستل سره د قواعد تجويد نه مستحب او مستحسن دې، لکه چه اهل عرب عموما په خوش آوازۍ سره، او بغير د تکلف او بغير د رعايت د قواعد موسيقيه نه، چه دهغې نه هغوی لږ شان هم واقف نه دی، او ډير په خوش آوازۍ سره ئې لولی، او دا خوش آوازی دهغوی طبعی ده، ددې وجې نه د هر يو لهجه جدا جدا او د بل نه ممتاز وی، هر يو خپلې لهجې لره هر وخت لوستلې شی، په خلاف د انغام، چه دهغې وختونه مقرر دی، چه په نورو وختونو کښې نه جوړيږی، او نه ښه معلوميږی، دلته کښې معلومه شوه، چه په نغم او لهجه کښې فرق دې، طرز طبعی ته لهجه وئيلې شی، په خلاف د نغم، اوس دا هم معلومول ضروری دی، چه انغام څه ته وئيلې شی، هغه دا دی، چه د تحسين صوت دپاره کوم خاص قواعد مقرر کړې شوې دی، دهغې لحاظ ساتلو سره لوستل، يعنی يو ځائې کښې آواز کمول او بل ځائې کښې زياتول، يو ځائې کښې جلدی کول، او بل ځائې کښې نه کول، يو ځائې کښې اواز ښکته کول، او بل ځائې کښې اوچتول، يوې کلمې لره په سختۍ سره ادا کول، او بلې لره په نرمۍ سره ادا کول، يو ځائې کښې د ژړا آواز راويستل، بل ځائې کښې بل څه، يو ځائې کښې يو څه او بل ځائې کښې بل څه، البته چه کوم لوئې لوئې ددې فن ماهرين دی، دهغوی دا اقوال اوريدلې شوې دی، چه ددې نه هيڅ يو آواز خالی نه وی، ضرور بالضرور څه نه څه قاعده به د موسيقۍ موندلې شی، خصوصا هرکله چه انسان په ذوق او شوق سره څه څيز لولی، باوجود ددې نه چه هغه لږ شان هم ددې فن نه واقف نه وی، ليکن څه نه څه نغمه به ترې خامخا راوځی، ددې وجې نه بعضې محتاط خلقو داسې لوستل شروع کړل، چه د تحسين صوت لږ شان نوم هم رانشی، ځکه چه تحسين صوت سره نغم لازم دې، او په دې کښې احتياط پکار دې، او هم دا بعضې اهل احتياط اهل عرب ته وائی، چه هغوی خو په راګ کښې تلاوت کوی، حالانکه دا تحسين چرې هم ممنوع نه دې، او نه ددې نه تيښته شته، خلاصه او ماحصل زمونږ داده، چه قرآن مجيد لره په تجويد سره لوستل، او فی الجمله په خوش آوازۍ سره لوستل پکار دی، او د قواعد موسيقيه خيال دې نه ساتی، چه دهغې سره موافق دې، او که مخالف، او د حروفو د صحت او معانی خيال دې ساتی، او که په معنی نه پوهيږی، نو دومره خيال کافی دې، چه د مالک الملک عزوجل کلام لره لولم، او هغه اوری، او د لوستلو آداب مشهور دی، احقر وائی، د حضرت قاری صاحب د تحقيق نه معلومه شوه، چه قواعد موسيقيه او قواعد تجويد کښې بالکليه تخالف نشته، فی الجمله دواړه جمع کيدې هم شی.

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٩٠٥، ١٨٦٩٠) (صحيح)

حضرت سعد رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ... او د مذکوره بالا حدیث هم مثل ئې بیان کړو.

[۱۴۷۱]() حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْجَبَّارِ بْنُ الْوَرْدِ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي مُلَيْكَةَ، يَقُولُ: قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي يَزِيدَ: مَرَّ بِنَا أَبُو لُبَابَةَ فَاتَّبَعْنَاهُ حَتَّى دَخَلَ بَيْتَهُ، فَدَخَلْنَا عَلَيْهِ، فَإِذَا رَجُلٌ رَثُّ الْبَيْتِ رَثُّ الْهَيْئَةِ، فَسَمِعْتُهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْآنِ"، قَالَ: فَقُلْتُ لِابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ: يَا أَبَا مُحَمَّدٍ، أَرَأَيْتَ إِذَا لَمْ يَكُنْ حَسَنَ الصَّوْتِ؟ قَالَ: يُحَسِّنُهُ مَا اسْتَطَاعَ.

عبید الله بن یزید بیان کوی چه حضرت ابو لبابه رضي الله عنه په مونږ باندې تیر شو پس مونږ هغه پسې شاته وو، تردې پورې چه هغه خپل کور ته داخل شو نو مونږ هم دننه ورغلو. مونږ اولیدل چه ډیر زوړ کور والا او د هغه خپل حالت ازحد ساده وو. ما د هغه نه واوریدل، فرمائیل ئې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی هغوی ﷺ فرمائیل: کوم کس چه قرآن مجید لره په خوش آوازئ سره نهٔ لولی هغه زمونږ نه نهٔ دې." (د حدیث راوی عبد الجبار فرمائی: ما ابن ابی ملیکه ته اووې: کهٔ چرې هغه خوش آواز نهٔ وی؟ هغوی اوفرمائیل: ترڅو چه کیدې شی نو آواز دې عمده کوی."

[۱۴۷۲]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، قَالَ: قَالَ وَكِيعٌ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ يَعْنِي يَسْتَغْنِي بِهِ.

محمد بن سلیمان انباری بیان کوی چه حضرت وکیع او ابن عیینه د حدیث مذکور معنی دا اخستئ چه ددې نه مراد " استغنا " ده.

[۱۴۷۳]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ مَالِكٍ، وَحَيْوَةُ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا أَذِنَ اللَّهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِنَبِيٍّ حَسَنِ الصَّوْتِ يَتَغَنَّى بِالْقُرْآنِ يَجْهَرُ بِهِ".

ترجمه: حضرت ابوهریره رضي الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله عز وجل هیڅ یو څیز لره دومره په غور سره نهٔ اوری، څومره چه د خوش آواز نبی په بلند آواز سره قرآن ته غوږ دی.

**تشریح: قوله:** عن ابی هریرة رضي الله عنه ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) قال ما اذن الله لشئ ما اذن لنبی حسن الصوت یتغنی بالقرآن:

## شرح حدیث:

اذن یاذن اذنا بمعنی استماع غوږ ایخودل او توجه سره اوریدل، یعنی نه اوری الله تعالی یو آواز دومره په توجه سره، څومره چه اوری د خپل هغه نبی آواز لره چه په خوش آوازی سره قرأت کوی، نبی چونکه عام دې، ددې وجې نه قرآن نه هم عام مراد اخستل پکار دی، یعنی

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۹۰۵) (حسن صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۹۰۵) (صحيح)

(۳): صحيح البخاري/فضائل القرآن ۱۹ (۵۰۲۴)، والتوحيد ۳۲ (۷۴۸۲)، ۵۲ (۷۵۴۴)، صحيح مسلم/المسافرين ۳۴ (۷۹۲)، سنن النسائي/الافتتاح ۸۳ (۱۰۱۸)، (تحفة الأشراف: ۱۴۹۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۷۱، ۲۸۵، ۴۵۰)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۷۱ (۱۵۲۹)، وفضائل القرآن ۳۳ (۳۵۴۰) (صحيح)

نفس قراءة، چونکه قرآن مصدر هم راځی بمعنی قرأة لهذا مراد د یو نبی مطلق آسمانی کتاب لوستل دی، یا د قرآن نه معروف معنی مراد اخستلې شی، او د نبی نه مراد حضور اقدس (ﷺ) دې، یجهر به: دا د یتغنی تفسیر دې، چه د یو راوی د طرف نه مدرج دې، په دې حدیث کښې د اذن نه مراد رضا او قبول دې، ګنی الله تعالی خو هره خبره ښه اوری، هیڅ یوه خبره دهغه نه پټه نه ده، بلکه داسې وئیل پکار دی، چه د اذن معنی خو غوږ ایخودلو سره اوریدل دی، الله تعالی د غوږ یا د بلې آلې محتاج نه دې، ددې وجې نه اذن دلته په مجازی معنی کښې مستعمل دې.

## بَابُ التَّشْدِيدِ فِيمَنْ حَفِظَ الْقُرْآنَ ثُمَّ نَسِيَهُ

### باب: ۲۱-دَ قرآن یادول او بیا دَهغې دَهیرولو مذمت.

مامن امرئ یقرأ القرآن ثم ینساه الا لقی الله یوم القیمة اجذم:

یعنی کوم سړې چه قرآن مجید زده کړی، او هغه اولولی، یاد ئې کړی، یعنی حفظ ئې کړی، او بیا هغه پریږدی او هیر ئې کړی، دهغه باره کښې وعید دې، (چه مخکښې راروان دې)

**د نسیان قران نه مراد:**

دویم تفسیر ددې حدیث دا کړې شوې دې، چه د نسیان نه مراد نسیان الفاظ نه دې، بلکه ترک العمل بما فی القرآن دې، کما فی قوله تعالی کذلک اتتک آیاتنا فنسیتها الآیة، صاحب منهل اولا دا دویمه معنی لیکلې ده، او بیا و یحتمل سره ئې اوله معنی لیکلې ده، او حضرت سهارنپوری رحمه الله په بذل کښې صرف اوله معنی لیکلې ده، او دا ئې هم لیکلې دی، چه د نسیان نه مراد د حنفیه په نزد دادی، چه کتلو سره هم نشی لوستلې، او د شافعیه په نزد دادی، چه زبانی ئې نه شی لوستلې.

صاحب منهل لیکلې دی، چه دا حدیث شافعیه دپاره حجت دې، چه دا وائی، چه نسیان قرآن کبیره ګناه ده، چه دهغې تلافی توبې سره او دوباره یادولو سره کیږی، که هغه قلیل وی، او که کثیر وی، او د مالکیه په نزد د قدر واجب (یعنی ماتجوز به الصلوة) نسیان حرام دې، او د مازاد علی القدر الواجب نسیان مکروه دې.

د اجذم تفسیر کښې څو اقوال دې، مقطوع الید چه هغه ته ګوډ وئیلې شی، مقطوع الحجة لیس له عذر، صاحب جذام، خالی الید عن الخیر.

## بَابُ أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ

### باب: ۲۲-قرآن مجید په اووه حروفو باندې نازل کړې شوې دې.

دا ترجمة بلفظ الحدیث ده، او دا حدیث متفق علیه بلکه په ټولو صحاح سته کښې موجود دې، الا ابن ماجه (منذری) ملاعلی قاری رحمه الله فرمائي چه دا حدیث بالاتفاق متواتر دې تواترا معنویا، او بعض محدثین وائی، چه لفظا هم متواتر دې، ځکه چه دا حدیث په دې الفاظو سره د یویشت (۲۱) صحابه کرامو نه روایت دې، لیکن د حاکم په یو روایت کښې د علی سبعة احرف په ځائې علی ثلاثة احرف دې، ددې تاویل دا کړې شوې دې، چه په شروع کښې د

دريو اجازت ورکړې شوې وو، روستو بيا اووه پورې اجازت ورکړې شو، او د انزال نه مراد حديث کښې اجازت من الرسول دې، ځکه چه د قرآن مجيد نزول خو په لغت قريش باندې شوې دې، روستو بيا د اجازت په ذريعه دې کښې توسيع اوکړې شوه.

[۱۴۷۵] ( ) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدٍ الْقَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَؤُهَا، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْرَأَنِيهَا، فَكِدْتُ أَنْ أَعْجَلَ عَلَيْهِ، ثُمَّ أَمْهَلْتُهُ حَتَّى انْصَرَفَ، ثُمَّ لَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ، فَجِئْتُ بِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي سَمِعْتُ هَذَا يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَأْتَنِيهَا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْرَأْ" فَقَرَأَ الْقِرَاءَةَ الَّتِي سَمِعْتُهُ يَقْرَأُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَكَذَا أُنْزِلَتْ"، ثُمَّ قَالَ لِي: "اقْرَأْ" فَقَرَأْتُ، فَقَالَ: "هَكَذَا أُنْزِلَتْ"، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ".

عبد الرحمن بن عبد القاري فرمائي چه ما د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه نه اوريدلي دي، هغوی بيان فرمائيلو چه ما د هشام بن حکيم بن حزام نه سورهٔ فرقان واوريدو، مګر د هغه قرائت د هغې قرائت نه خلاف وو کوم چه ما لوستلو او هم رسول الله ﷺ ماته دا سورت اورولې وو. قريبه وه چه ما په هغې باندې تيزي کړې وې، مګر ما هغه ته مهلت ورکړو تردې پورې چه هغه فارغ شو، بيا ما د هغوی ګردن په خپل څادر سره اونيولو او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې مې راوستلو. ما اوويل: اې د الله رسوله! ما دهٔ نه سورهٔ فرقان واوريدو او دې ئې د هغه قرائت نه خلاف لولي کوم چه تاسو ماته لوستلې دې، نو رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل: اولوله. چنانچه هغه په هغه قرائت کښې تلاوت کړو کوم کښې چه ما د هغه نه اوريدلې وو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: هم داسې نازل کړې شوې دې. بيا ئې ماته اوفرمائيل: بې شکه دا قرآن په اووهٔ حروفو سره نازل کړې شوې دې، نو د هغې نه چه کوم آسان وی هغې لره لولئ.

## د حديث الباب د معنی په تحقيق کښې اشباع کلام:

په دې حديث کښې ډير بحثونه دی، په اوجز المسالک ص۳۵۴ کښې شيخ رحمه الله لس ذکر کړې دی، د ټولو نه نازک او اهم بحث په دې کښې تحقيق دمعنی دې، چه د سبعة احرف نه څه مراد دې، ملا علی قاري رحمه الله فرمائي چه په دې کښې يو څلوېښت (۴۱) اقوال دی، چه په هغې کښې اکثر مرجوح دی، زيات مشهور او صحيح په هغې کښې څلور پنځه معنی دی،

### (اول) مشکل لا يدری معناه

چه دا د متشابهاتو نه دې، ددې معنی مرادی معلومه نه ده، ځکه چه حرف په ډيرو معنو کښې استعماليږی، حرف هجا (الف، با، تا وغيره) کلمه، معنی، جهت، دا اول قول د ابن سعدان نحوی نه منقول دې.

---

[1]: صحيح البخاري/الخصومات ٤ (٢٤١٩)، وفضائل القرآن ٥ (٤٩٩٢)، ٢٧ (٥٠٤١)، والمرتدين ٩ (٦٩٣٦)، والتوحيد ٥٣ (٧٥٥٠)، صحيح مسلم/المسافرين ٤٨ (٨١٨)، سنن الترمذي/القراءات ١١ (٢٩٤٣)، سنن النسائي/الافتتاح ٣٧ (٩٣٨، ٩٣٩)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٩١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القرآن ٤ (٥)، مسند احمد (١/ ٤٠، ٤٢، ٤٣، ٢٦٣) (صحيح)

**(ثاني) تادية المعنى باللفظ المترادف**

يعنى دا سبع طرق او تعداد په اعتبار د الفاظ مترادفه سره دى، مثلا قل يايها الكافرون، قل للذين كفروا، قل لمن كفر، علامه سيوطى رحمه الله په اتقان كښې نقل كړې دى، چه حضرت ابن مسعود يو سړى ته سورة دخان ښودلو، چه كله په هغې كښې دا لفظ راغلو ان شجرة الزقوم طعام الاثيم، نو لفظ الاثيم دهغه د ژبې نه ادا كيدې نشو، هغه وئيل طعام اليتيم، په دې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل اتسطيع ان تقول: طعام الفاجر، قال نعم قال فافعل، يعنى تهٔ طعام الفاجر وايه، حافظ ابن عبدالبر دې قول لره اكثر علماؤ طرف ته منسوب كړې دې، ليكن دا خبره دې واضحه وى، چه ددې معنې دپاره يو لوئې مضبوط بريك (بند) دې، هغه داچه لكه حافظ ابن حجر رحمه الله وغيره ليكلي دى، لكن الاباحة المذكورة لم يقع بالتشهى بل ذلك مقصور على السماع من الرسول (صلى الله عليه وسلم) يعنى دا تعبير باللفظ المترادف په خپل اختيار سره نه دې، چه كوم څوك ئې زړهٔ غواړى، يو لفظ لره په بل لفظ مترادف سره بدل كړه، بلكه دا موقوف دې په سماع باندې، يعنى د دغې لفظ مترادف د حضور (صلى الله عليه وسلم) يا صحابه كرامو نه منقول كيدل ضرورى دى.

**(ثالث) (د سبعة احرف نه سبع لغات مراد دى)**

د سبعة احرف نه مراد سبع لغات دى، په اصل كښې عربى ژبان ډير وسيع دې، د هرې قبيلې ژبان او لغت جدا جدا دې، په قبيلو كښې شاعران هم ځان ځانله دى، لكه چه تا د نحو په كتابونو كښې لوستلې دى، على لغة هذيل، على لغة بنى طى، على لغة بنى تميم، وغيره وغيره، او دا اختلاف لغات كله خو د الفاظ مستعمله په اعتبار سره وى، چه يو لفظ دې، هغې لره يوې قبيلې والا استعمالوى، او بله قبيله نه استعمالوى، او كله دا اختلاف د اعراب په اعتبار سره وى، د اول مثال لكه تابوت او تابوه، حضرت عثمان رضي الله عنه د جمع قرآن دپاره چه كوم حضرات منتخب كړې وو، په هغې كښې درې حضرات قريشيان وو (سعيد بن العاص، عبدالرحمن بن الحارث بن هشام، عبدالله بن زبير) او يو غير قرشى حضرت زيد بن ثابت انصارى رضي الله عنه وو، حضرت عثمان رضي الله عنه اوفرمائيل چه كه ستاسو په مينځ كښې په څه لفظ يا قراءة كښې اختلاف راشي، نو لغت قريش په كښې منتخب كړئ، ځكه چه قرآن مجيد د قريشو په لغت باندې نازل شوې دې، نو د دغې حضراتو اختلاف راغلو، په لفظ تابوت كښې، قريشى حضراتو وئيل، چه دا لفظ تابوت دې، او حضرت زيد رضي الله عنه اوفرمائيل چه تابوه دې، حضرت عثمان رضي الله عنه طرف ته رجوع اوكړې شوه، هغوى اوفرمائيل چه تابوت اوليكئ، د قريشو لغت هم دادې (ترمذى شريف ج۲ص۱۳۸) او د ثانى مثال لكه ان هذان لساحران، په دې كښې دوه قراءته دى، ان هٰذين، (چه د قواعد مشهوره موافق دې) او ان هذان، په بعضو قبائلو كښې تثنيه په درېو واړو حالتونو كښې الف سره وى، او اعراب د تثنيې تقديرى وى، په دې دريمه معنى باندې دا اشكال كړې شوې دې، چه لغات عرب خو د اووه نه ډير زيات دى، واجيب عنه بان المراد افصحها، بيا په دې كښې اختلاف دې، چه دا

ټول لغات د قبیله قریش بطون دی، یا ددې نه عام دی، قیل کلها من بطون قریش، او وئیلې شوې دی، چه دا اووه لغات د قبیله مضر دی، او دهغې ټولو نه قریش هم دې، او د قبیله مضرهغه اووه شاخونه دادی، هذیل، کنانه، قیس، ضبه، تیم الرباب، اسد بن خزیمه، قریش. لیکن ددې دا مطلب اخستل پکار نه دی، چه هره کلمه د قرآن مجید اووهٔ طریقو سره لوستلې کیږی، ځکه چه وئیلې شوې دی، چه قرآن مجید کښې داسې کلمه بالکل نشته، چه اووهٔ طریقو سره لوستلې کیږی، الا الشئ القلیل مثل عبدالطاغوت، بلکه دا اووهٔ لغات په ټول قرآن مجید کښې خوارهٔ دی، فبعضه بلغة قریش و بعضه بلغة هذیل، و بعضه بلغة هوازن و بعضه بلغة یمن.

## (رابع) (د سبعة احرف نه قراءت سبع مراد دی)

د سبعة احرف نه قراءت سبعه مشهوره متواتره مراد دی، لیکن مکی ابن ابی طالب فرمائي چه کوم خلق دا ګنړی، چه د هغې مشهور قراؤ قراءتونه لکه نافع، عاصم وغیره د سبعه احرف مصداق دی، دا خبره بالکل غلطه ده، بلکه سبعه خو هم ددې احرف سبعه یو جزء دې، ګنې لازم به راشی، چه ددې قراءت سبعه نه علاوه چه کوم قراءات د نورو امامانو نه منقول دی، هغه قرآن نه دي، او دا قطعا غلطه خبره ده، ځکه چه کومو ائمه متقدمینو په قراءت کښې تصنیفات لیکلې دی، لکه ابوعبید قاسم بن سلام، ابوحاتم سجستانی، ابوجعفر طبری، دغې حضراتو ددې قراءات سبعه نه علاوه هم ډیر قراءتونه ددې نه دوچند او څلور چند لیکلې دی، بیا به دغې قراءتونو ته تاسو څه وایئ، دهغې ټولو انکار به لازم راځی،

## د حضرت شیخ الحدیث او د علامه جزری رائې:

زمونږ حضرت شیخ رحمه الله په تقریر بخاري کښې فرمائیل، چه زما په نزد راجح داده، چه ددې نه قراءات سبعه مراد دی [1] اګر چه حافظ ابن حجر هغه سړی ته جاهل وئیلې دی، څوک چه

---

[1] علامه جزری رحمه الله هم دا حدیث هم په دې معنی باندې محمول کړې دې هغه فرمائی چه د دیرشو کالو پورې د ټولو قراءتونو په اختلاف کښې د تدبر کولو نه پس دا مطلب زما ذهن ته راغلو چه د ﴿سبعة احرف﴾ نه اووه قسمه تغیر لفظی مراد دې بیا هغه د دې تغیرات سبه تفصیل او تشریح کړې ده کوم چه لاندې لیکلې شی:
۱: په حرکاتو کښې تغیر وی خو د لفظ په صورت کښې او په معن کښې بالکل تغییر نه وی لکه ﴿بالبخل﴾ او ﴿بالبخل القدس﴾ او ﴿القدس یحسب﴾ او ﴿یحسب﴾. ۲: په اعراف او معنی کښې تغیر اوشی خو د تغیر څه صورت نه وی لکه قراءة متواتره کښې ﴿فتلقي ادم من ربه کلمات﴾ او ﴿ادم من ربه کلمات﴾.
۳: په حروف او صورت کښې تغیر اوشی خو په معنی کښې نه وی ﴿الصراط، السراط، بصطة، بسطة﴾ ٤: چه په حروف او معنی کښې تغیر راشی خو په صورت کښې نه وی لکه ﴿تتلو﴾ او ﴿تبلوا﴾، ﴿ننجیك﴾ او ﴿ننجیك﴾. ٥: په حروف، معنی او صورت درې وارو کښې تغیر راشی لکه ﴿اشد منکم﴾ او ﴿اشد منهم﴾، ﴿ولا یاتل﴾ او ﴿ولا یتال﴾ فاسعوا، فامضوا. ٦: د تقدیم او تاخیر تغییر لکه ﴿فیقتلون ویقتلون﴾ او ﴿فیقتلون ویقتلون﴾. ۷: د حروفو د کمی او زیادت تغییر لکه ﴿واوصي ووصي والذکر والانثي، وما خلق الذکر والانثي﴾
... دا دې هغه اووه قسمه تغییر او پاتې شو اصولی اختلافات لکه اظهار او روم اشمام او ادغام تفیخم. او ترقیق مد او قصر اماله او فتحه تحقیق وتسهیل او ابدال ونقل پس په دی کښې په لفظ او معنی کښې هیڅ قسم بدلون نه کیږی صرف په کیفیت کښې بدلون وی پس یا خو دا تغیر نه دی......←٦

دا وائي چه ددې نه قراءات سبعه مراد دي، ليکن زما په نزد ددې قول اختيارولو وجه داده، چه دا قراءات سبعه ټول په ټوله محفوظ او مضبوط دي، منقول او مروج دي، لکه چه خپله قرآن مجيد کښې الله تعالى فرمائي : انا نحن نزلنا الذکر وانا له لحافظون، او که د احرف سبعه نه نورې معانې مراد واخستلې شي، نو هغه ټول قراءتونه محفوظ چرته دي؟ (١) انتهٰى کلامه.

## د حضرت ګنګوهی رائې:

ليکن حضرت اقدس ګنګوهي رحمه الله په تقرير بخاري لامع الدراري ج٣ص٢٥٣ کښې ليکلې دي، چه اقرب داده، چه اول قرآن مجيد په لغت قريش باندې نازل شو، بيا روستو د نبي کريم (ﷺ) د طرف ته زياتوالي طلب کړې شو، نو په هغې باندې اضافه اوکړې شوه، او د يو نه زيات لغاتو باندې لوستلو اجازت ورکړې شو، دې اضافې او اجازت لره مجازا انزل سره تعبير اوکړې شو، او ددې نه قراءات سبعه مراد نه دي، بلکه دا قراءات خو لغت واحده دې، او د يو لغت په الفاظ مختلفه کښې څه تيسير کيدې شي، هرکله چه مقصود ددې نه تيسير دې، انتهٰى.

## (خامس) (دحضرت شاه ولی الله صاحب رائې)

دلته کښې يوه رائې زمونږ د حضرت شاه ولي الله صاحب قدس سره ده، هغه داچه دلته د سبعه نه مراد تحديد نه دې، بلکه مراد تکثير دې (مشهوره ده، چه په اکائيو کښې د اووه(٧) عدد او په دهائيو کښې د اويا(٧٠) عدد د تکثير دپاره وي، او دا سبعة احرف ټولو معاني مذکوره سابقه ته شامل دي، يعنی دا تعدد دوجوه او اختلاف عام دې، که د لغات مختلفه په اعتبار سره وي، او که د قاريانو د قراءات مختلفه د قبيلې نه وي (چه کله د مخارج حروف په اعتبار سره وي، او کله د مده، ترخيم او ترقيق وغيره صفاتو په اعتبار سره وي) او که د الفاظ مترادفه په اعتبار سره وي، عرض دا چه دا ټول صورتونه او شکلونه د سبعة احرف په مصداق کښې داخل دي.

[١٤٧٦](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، قَالَ: قَالَ الزُّهْرِيُّ: إِنَّمَا هَذِهِ الْأَحْرُفُ فِي الْأَمْرِ الْوَاحِدِ لَيْسَ تَخْتَلِفُ فِي حَلَالٍ وَلَا حَرَامٍ

زهري رحمه الله فرمائي چه دا (اووهٔ مختلف) قرائتونه د يو معنیٰ او مفهوم حامل دی. د دې نه په حلالو او حرامو کښې څه اختلاف نشته دې.

[١٤٧٧](٣) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا هَمَّامُ بْنُ يَحْيَى، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ الْخُزَاعِيِّ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أُبَيُّ، إِنِّي أُقْرِئْتُ الْقُرْآنَ، فَقِيلَ لِي: عَلَى

---

له .....اوکه دې نو په قسم اول کښې داخل دې. (ماخوذ از عنايات رحماني ص ٣٠ ج ١، شرح شاطبية مصنفه حضرت قاري فتح محمد صاحب پاني پتي مهاجر مدني رحمه الله. مرسله حضرت مولانا زين العابدين صاحب المحدث الاعظمي)

(١) د دې جواب دا دې چه په څا باندې انزال شوې دې نو هغه محفوظ دې يعنی لغت قريش او هم د دې د حفاظت وعده فرمائيلې شوې دې. ١٢

(٢): انظر ما قبله (صحيح)

(٣): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف:٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٤/٥، ١٢٧، ١٢٨) (صحيح)

حَرْفٍ أَوْ حَرْفَيْنِ؟، فَقَالَ الْمَلَكُ الَّذِي مَعِي: قُلْ: عَلَى حَرْفَيْنِ، قُلْتُ: عَلَى حَرْفَيْنِ، فَقِيلَ لِي: عَلَى حَرْفَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٍ؟، فَقَالَ الْمَلَكُ الَّذِي مَعِي: قُلْ: عَلَى ثَلَاثَةٍ، قُلْتُ: عَلَى ثَلَاثَةٍ، حَتَّى بَلَغَ سَبْعَةَ أَحْرُفٍ، ثُمَّ قَالَ: لَيْسَ مِنْهَا إِلَّا شَافٍ كَافٍ، إِنْ قُلْتَ سَمِيعًا عَلِيمًا عَزِيزًا حَكِيمًا مَا لَمْ تَخْتِمْ آيَةَ عَذَابٍ بِرَحْمَةٍ، أَوْ آيَةَ رَحْمَةٍ بِعَذَابٍ".

حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: اې ابی! ما ته قران اولوستلې شو نو اووئیلې شو: په یو حرف باندې (لوستل خوښه وې) یا په دوو حرفونو باندې؟ نو هغې فرښتې کومه چه زما سره وه، هغې اووئیل چه اووایه: په دوو حروفو باندې. نو ما اووې په دوو حروفو باندې. بیا ما ته اووئیلې شو په دوو حروفو باندې یا په دریو حروفو باندې؟ هغه فرښتې کومه چه زما سره وه هغې اووې اووایه په دریو حروفو باندې. ما اووې په دریو حروفو باندې.، تردې پورې چه خبره تر اووهٔ حروفو پورې اورسیدله. بیا ئې اووې ددې نه هر حرف شافی کافی دې. کهٔ چرې تهٔ دَ سمیعا علیما په ځائې باندې عزیزا حکیما اووائې نو صحیح دی، مګر ترځو چه آیت دَ عذاب لره دَ آیت دَ رحمت سره، یا یو آیت دَ رحمت لره دَ څهٔ آیت دَ عذاب سره بدل نهٔ کړې. "

ان قلت سمیعا علیما عزیزا حکیما: یعنی که تهٔ د سمیعا علیما په ځائې عزیزا حکیما اولولې، نو هیڅ حرج په کښې نشته، د مسند احمد په روایت کښې دی، فان الله کذلک، الله تعالی هم دغسې دې، یعنی دا ټول د الله تعالی صفات دی، که د یو صفت په ځائې بل صفت ذکر کړې شی، نو هیڅ حرج نشته، مالم تختم آیة رحمة بعذاب او آیة عذاب برحمة، یعنی مثلا که د رحمت آیت شروع وی، او تهٔ هغې لره په شدید العقاب باندې ختم کړې، یا د عذاب آیت شروع وی، او تهٔ هغې لره په غفور الرحیم باندې ختم کړې، نو دا صحیح نه دی، ځکه په دې سره نظم قرآن کښې هم خلل واقع کیږی، او په معنی کښې هم تغیر پیدا کیږی، په منهل کښې د علامه عینی رحمه الله نه نقل کړې شوې دی، چه دا ګنجائش په شروع کښې وو، لیکن هرکله چه په مصحف عثمان کښې په موجوده ترتیب قرآن باندې اجماع اوشوه، نو اوس بیا د هیڅچا دپاره جائز نه دی، چه د سمیع علیم په ځائې عزیز حکیم، قصدا اووائی، او که بغیر د قصد نه د تغییر زبان د وجې نه داسې صادر شی، نو بیا هیڅ حرج نشته، لم تبطل صلوته،

[۱۴۷۸] (۱) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَ أَضَاةِ بَنِي غِفَارٍ "فَأَتَاهُ جِبْرِيلُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يَأْمُرُكَ أَنْ تُقْرِءَ أُمَّتَكَ عَلَى حَرْفٍ، قَالَ: أَسْأَلُ اللَّهَ مُعَافَاتَهُ وَمَغْفِرَتَهُ إِنَّ أُمَّتِي لَا تُطِيقُ ذَلِكَ، ثُمَّ أَتَاهُ ثَانِيَةً، فَذَكَرَ نَحْوَ هَذَا حَتَّى بَلَغَ سَبْعَةَ أَحْرُفٍ، قَالَ: إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكَ أَنْ تُقْرِءَ أُمَّتَكَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ، فَأَيُّمَا حَرْفٍ قَرَءُوا عَلَيْهِ فَقَدْ أَصَابُوا".

د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د قبیلهٔ بنو غفار د تالاب سره وو چه په هغه باندې جبرئیل علیه السلام نازل شو اووې فرمائیل: بې شکه الله تعالیٰ تاسو ته دا حکم کوی چه خپل امت ته په یو حرف سره قرآن لولئ. حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: زهٔ دَ الله تعالیٰ نه

[۱] ): صحیح مسلم/المسافرین ۴۸ (۸۲۱)، سنن النسائي/الافتتاح ۳۷ (۹۴۰)، (تحفة الأشراف:۶۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۷/۵) (صحیح)

د عفو او مغفرت سوال کوونکی یم، ځکه چه زما امت ددې طاقت نۀ لري . " بیا جبرئیل ﷺ په دویم ځل باندې راغې او د اول په شان ذکر ئې اوکړو، تردې پورې چه اووۀ حروفو ته اورسیدو . فرمائي الله تعالیٰ حکم کوی چه خپل امت ته (کلام الله لره) په اووۀ حروفو کښې لولئ، په کوم حرف چه هم هغوی لولي هغه به صحیح وی .

**یو اشکال او جواب:**

په دې باندې یو اشکال ذهن ته راځی. هغه دا چه نبی کریم (ﷺ) خو کوشش اوکړو، او د امت د آسانئ دپاره ئې مختلف لغاتو کښې د تلاوت کولو اجازت حاصل کړو، نو هرکله چه دا تیسیر (آسانی او سهولت) منصوص من الشارع شو، نو بیا روستنو خلقو لره ددې خلاف اجماع کول څرنګه صحیح شوه، ددې جواب دا کیدې شی، چه بې شکه د نبی کریم (ﷺ) په زمانه کښې خو ددې توسیع نه تیسیر حاصل شو، لیکن روستو بیا چه کله دې تیسیر د عمومی اختلاف او نزاع شکل اختیار کړو، چه خلاف مقصود وو، نو د حضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کښې د صحابه کرامو په مشورې سره په اتفاق رائې سره په یو لغت باندې استقرار اوشو، چه هغې سره نزاع ختمه شوه، او د تسکین او تیسیر باعث شو، (وکان هذا الاستقرار والاجماع بالالهام من الله تعالى و القائه فكان خيرا محضا) والله سبحانه و تعالى اعلم، الحمد لله على احسانه چه په دې باب باندې کلام پوره شوه، چه هغې لره آسانولو کښې او پوهه کښې راوستلو کښې مونږ ډیر زیات محنت اوکړو، الله تعالیٰ دې مونږ ته په قرآن مجید باندې د عمل کولو او د هغې پوره پوره قدر کولو توفیق راکړی، والله الموفق ولا حول و لا قوة الا بالله العلي العظيم.

# بَابُ الدُّعَاءِ

## باب: ۲۳- دَدُعا آداب

اوس دلته کښې د کتاب الصلوة تر آخره پورې د دعاګانو ابواب راروان دی، ګویا مصنف د کتاب الصلوة اختتام په دعاګانو باندې کړې دې، دا باب ډیر زیات وسیع دې، په دې سره د مصنف غرض د دعاء فضیلت او اهمیت او دهغې آداب بیانول دی، په دې باب کښې ئې تقریبا شل احادیث راوړلې دی، اول حدیث د حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه دې، چه دهغې الفاظ دادی

[۱۴۷۹] (1) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ ذَرٍّ، عَنْ يُسَيْعٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ، وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ سورة غافر آية ٦٠".

د حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: دعا عبادت دې ستاسو رب فرمائیلې دی: ما ته آواز کوئ زۀ به ئې قبلوم

**قوله**: عن النبی (صلى الله عليه وسلم) قال الدعاء هی العبادة قال ربكم ادعونى استجب لكم:

(1): سنن الترمذي/تفسير البقرة ٣ (٢٩٦٩)، تفسير المؤمن ٤١ (٣٢٤٧)، الدعوات ١ (٣٣٧٢)، ن الكبري/ التفسير (١١٤٦٤)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١ (٣٨٢٨)، (تحفة الأشراف:١١٦٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٧١، ٢٧٦) (صحيح)

دا حديث د سنن اربعه او د مسند احمد روايت دي، په دې کښې حضور (ﷺ) دعا لره عين عبادت ګرزولې دې، او بيا ددې په تائيد او دليل کښې د قرآن مجيد آيت شريف تلاوت فرمائيلې دې، اول خو د نبي کريم (ﷺ) ارشاد د امت دپاره کافي او وافي دې، بيا نبي کريم (ﷺ) خپل قول په کلام الهي سره هم مدلل کړو، چه هغې سره د دعاء اهميت نور هم زيات شو.

ليکن شايد هيڅ يو مسئله داسې نشته، چه په هغې کښې د علماؤ اختلاف نه وي، [1] د دعاء باره کښې هم اختلاف دې، چه دعاء افضل ده، او که ترک دعاء او سکوت افضل دې، دا بحث به مونږ په اخر کښې بيانوؤ.

**د احاديث الباب نه مستفاد کيدونکې اداب دعاء:**

ددې باب د احاديثو نه څه کوم آداب دعاء مستفاد کيږي، په هغې کښې بعضې ډير ښکاره دي. (۱) د دعاء ابتداء داسې کول پکار دي، چه اول دې دعا کونکې د الله تعالى حمد او ثناء په ځائې راوړي، بيا صلوة النبي (ﷺ)، دهغې نه پس دې خپل مقصود د الله تعالى نه اوغواړي، (من الحديث الثالث) (۲) اګرچه دعاء بغير د رفع يدين نه هم کيدې شي، او هميشه د رفع يدين موقع هم نه وي، ليکن بهر حال په رفع يدين سره دعا کولو کښې اهتمام زيات معلوميږي، لکه ددې باب په لسم حديث کښې دي: الله تعالى حيا کونکې دې، ددې خبرې نه حيا کوي، چه څوک بنده هغه طرف ته لاسونه خوارهٔ کړي، او الله تعالى هغې لاسونه لره خالي واپس کړي، (الحديث العاشر) (۳) چه کله رفع يدين سره دعا اوکړې شي، نو د دعاء نه پس خپلو لاسونو لره په مخ او سترګو باندې راښکل پکار دي، د تفاؤل په طور باندې، چه ګويا مونږ ته څه خيز ملاؤ شوې دې، چه هغې لره مونږ خپلو سترګو سره لګوؤ. او دهغې قدر کوؤ، لکه چه ارشاد دې، ادعوا الله وانتم موقنون بالاجابة (حديث ۱۴) (۴) رفع يدين داسې کول چه د لاسونو تلي آسمان طرف ته وي، او دهغې شا زمکې طرف ته، د اکثر علماؤ رائې داده، او د بعضو علماؤ رائې، چه په هغې کښې حضرت شيخ ابن حجر مکی رحمه الله هم دې، داده، چه کومه دعا د جلب خير او منفعت دپاره وي، په هغې کښې خو داسې کول پکار دي، او کومه دعا چه د فع دشر دپاره وي، په هغې کښې بهتره داده، چه ظهور کفين آسمان طرف ته وي، او بطون کفين زمکې طرف ته وي، او په دې کښې قلب د حال طرف ته اشاره ده، لکه چه د استسقاء په خطبه کښې تحويل رداء (يعنى څادر الته کول) کولې شي، (حديث ۸، ۹) (۵) ليعزم المسالة: يعنى دعا عزم او پختګی سره غوختل پکار دي، داسې دې نه وائي، چه يا الله که ته اوغواړې، نو داسې اوکړه، عرض دا چه د کمال احتياج اظهار پکار دي، په دعاء کښې تعليق بالمشية لره بعضو مکروه او بعضو حرام ليکلې دې، لهذا ډير

---

[1] ) اوس اوس يوه خبره ذهن کښې راغله چه اخر دومره اختلاف ولې دې او ورسره دا جواب ذهن ته راغلو چه د دې اختلاف سبب د دلائلو او علم کم والې نه دې بلکه وسعت علم او کثرت ادله دې او کوم امام هم چه کوم قول اختيار کړې دې هغه سره د دې دليل دې، سبحان الله! د شريعت جامعيت اود علم فراخي، د علم اندازه اولګوئ، زه خو وايم چه کله جزئيات او مسائل فرعيه کښې د دلائلو او تحقيق دا حال دې نو د عقائدو به څه حال وي. الحمد لله الذي هدانا للاسلام وما کنا لنهتدي لولا ان هدانا الله. ۱۲

زیات کوشش سره دعا غوختل پکار دی، او د الله تعالی نه د قبولیت پوره امید ساتل پکار دی، ځکه چه دا دعا د کریم ذات نه ده، د بعضو علماؤ نه منقول دی، چه سړی دې ذ خپل تقصیر احساس د دعاء نه منع نه کړی، ځکه چه الله تعالی خو د خپل بدترین مخلوق ابلیس دعا هم رد کړې نه ده، قال رب انظرنی الی یوم یبعثون قال انک من المنظرین، (٦) کان علیه الصلوة والسلام یستحب الجوامع من الدعاء، داسې دعاګانې اختیارول پکار دی، چه ښه جامع وی، یعنی د دارینو په مقاصدو باندې مشتمل وی، یا دا چه د ټولو مسلمانانو سړو او ښځو دپاره وی، یا دا چه د دعا په ټولو آدابو باندې حاوی وی، ځکه چه دعا د احکم الحاکمین نه کولې شی، ددې وجې نه د فضول خبرو دعاګانې، یا داسې دعا چه په هغې کښې فضول الفاظ وی، د ادب نه خلاف دی، د ټولو نه جامع او مانع دعاګانې هغه کیدې شی، کومې چه ماثور او منقول دی، ځکه چه د حضور اقدس (ﷺ) برابر هیڅ یو انسان فصیح او بلیغ او زیات علم والا کیدې نشی، صاحب منهل یو څو جامع دعاګانې د نمونې په طور باندې لیکلې دی، (١) ربنا آتنا فی الدنیا حسنة و فی الآخرة حسنة و قنا عذاب النار (٢) اللهم اکفنی بحلالک عن حرامک واغننی بفضلک عمن سواک (٣) اللهم انی اسئلک الجنة وما قرب الیها من قول او عمل و اعوذ بک من النار و ما قرب الیها من قول او عمل.
(٤) اللهم انی اسئلک من الخیر کله عاجله و آجله ما علمت ومالم اعلم (من المنهل)

### جامع ترین دوه ماثور دعاګانې:

زۀ وایم، علماؤ لیکلې دی، چه په دعاګانو کښې د ټولو نه جامع په مذکوره دعاګانو کښې اوله دعاء ربنا آتنا فی الدنیا حسنة الخ ده، او په ادعیه ماثوره من الحدیث کښې د ټولو نه جامع دعا هغه ده، کومه چه امام ترمذی د حضرت ابوامامه ﷺ نه نقل کړې دې، هغوی فرمائي چه یو ځل مونږ حضور (ﷺ) ته عرض اوکړو، چه تاسو مونږ ته ډیرې دعاګانې ښودلې دی، لیکن هغه ټولې مونږ ته یادې نه دی، نو نبی کریم (ﷺ) اوفرمائیل چه زۀ تاسو ته داسې دعا ښایم، چه د ټولو دعاګانو جامع ده: اللهم انا نسالک من خیر ما سالک منه نبیک محمد (صلی الله علیه وسلم) و نعوذ بک من شر ما استعاذ منه نبیک محمد (صلی الله علیه وسلم) وانت المستعان وعلیک البلاغ ولا حول و لاقوة الا بالله، (قال الترمذی هذا حدیث حسن غریب، و فی تحفة الاحوذی جلد٤ ص٢٦٦واخرجه الطبرانی فی الکبیر) ددې دعا په جامعیت کښې هیڅ کلام نشته، لکه چه خپله حضور (ﷺ) فرمائیلې دی، په تحفة الاحوذی کښې علامه شوکانی رحمه الله نقل کړې دی، ولا شئ اجمع ولا انفع من هذا الدعاء، زمونږ حضرت شیخ نورالله مرقده هم ددې دعاء ډیر زیات معتقد وو، او ددې به یې ډیر زیات ترغیب فرمائیلو، او حضرت ابوامامه ﷺ چه ددې دعاء راوی دې، دهغه لوئې احسان ئې منلو، چه هغه د حضور (ﷺ) نه دومره جامع دعا زده کړه، او مونږ ته ئې راؤرسوله، ما د حضرت مولانا تهانوی رحمه الله په یو مکتوب کښې اولیدل، چه هغوی د مکتوب الیه په حق کښې دعائیه کلمات دارنګې لیکلې وو، الله تعالی دې تاته د دارینو حلاوت درنصیب کړی، په اصل کښې تنګی او مشقت هیڅ څیز نه دې، که په زړۀ کښې حلاوت وی، او حلاوت په صبر او

شکر باندې مرتب کیږي، پس زما په خیال دا دوه څیزونه بنیادي او معیاري دي، د حدیث دعاء ده: اللهم اجعلني صبورا و اجعلني شكورا،
او په حدیث کښې دي: ما اعطى احد عطاء اوسع من الصبر، د صبر میدان دومره وسیع دې، چه ټول مصیبتونه او د ناخوښه خبرې راغونډوي، (٧) يستجاب لاحدكم ما لم يعجل، په دعاء کښې تلوار کول پکار نه دي، چه دا اوائي، چه څومره ورځو نه دعا کوم، اوسه پورې قبوله نه شوه، که داسې سوچ کوي، یا ژبې سره وائي، نو بیا د قبولیت دعا هیڅ وعده نشته.

## کومه دعا قابل قبول ده:

علامه قسطلاني په شرح بخاري کښې د قبولیت دعا باره کښې یوه نکته لیکلې ده، هغه دا چه د الله تعالی قول ادعوني استجب لكم، ماته آواز اوکړه زهٔ اورم، په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته، چه کوم سړې الله تعالی نه دعا غواړي، لیکن د هغه په زړهٔ کښې لږ شان د ذرې برابر اعتماد وي، په خپل مال باندې یا په خپل عزت باندې، یا په خپلو دوستانو او عزیزانو باندې، یا په خپل کوشش باندې، نو هغه في الحقيقت الله تعالی لره صرف په خپلې ژبې سره رابللې دې، په زړهٔ سره ئې نه دې رابللې، او د هغه د زړه اعتماد د خپل مقصود په تحصیل کښې غیر الله باندې دې، او که سړې الله تعالی لره په داسې وخت کښې راؤبلي، چه هغه وخت کښې دهغه زړهٔ غیر الله طرف ته لږ شان هم متوجه نه وي، نو بیا ظاهره داده، چه دهغه دعاء به ضرور قبلیږي، انتهى كلامه، احقر وائي، چه په حدیث کښې دي، چه کوم سړې اسم اعظم سره دعا کوي، هغه ضرور قبلیږي، د حضرت جنید بغدادي نه منقول دي، چه چا دهغه نه د اسم اعظم باره کښې تپوس اوکړو، چه اسم اعظم کوم یو دې، نو هغوی ورته اوفرمائیل چه اسم اعظم لفظ د الله دې، لیکن ددې دپاره یو شرط دې، هغه داچه ان تقول الله و ليس في قلبك سواه، معلومه شوه، چه اصل څیز په دعاء کښې توجه، کمال احتیاج او افتقار الی الله دې.

## دعاء افضله ده، او که ترک دعاء او تفویض (رضا بقضاء)

ددې نه پس پوهه شئ، چه د جمهور علماؤ رائې خو داده، چه دعاء غوختل سنت دي، او هغه عین عبادت دې، لیکن د بعضو صوفیانو دې سره اتفاق نشته، هغوی فرمائي چه ترک دعاء او تفویض اولی دې، علمه بحالي اولى من سوالي، دا حضرات فرمائي، چه تسلیم او رضابالقضاء اصل دې، او د بعضو رائې داده، چه د نورو دپاره خو دعاء اولی ده، او په خپل حق کښې تفویض اختیارول اولی دي، یا داسې اوایئ، چه که خپل ځان سره دعاء کښې نور هم شریک کړي، نو بیا خودعا کول اولی دي، ګنې تفویض اولی دې، او یو قول دادې، چه که په یو وخت کښې یو خاص باعث یا وجه د دعاء کولو دپاره اوموندلې شي، نو بیا دعاء اولی ده، ګنې په عامو حالاتو کښې ترک دعاء اولی ده، د جمهورو په مسلک باندې یو اشکال کیږي، چه په حدیث شریف کښې دي: من شغله ذكري عن مسالتي اعطيته افضل ما اعطى السائلين، چه څوک زما په ذکر کښې دمشغولیدلو د وجې نه زما نه سوال اونه

کړې شی، نو هغه ته زړهٔ د دعاکونکو نه هم زياته ورکړه کوم، ددې حديث نه په ظاهر کښې د ترک دعاء افضل کيدل معلوميږی، جواب دادې، چه او د کوم سړی حال چه دا وی، چه هغه د الله تعالی د جلال او صفاتو په معرفت کښې مستغرق اوسيږی، نو دا حالت دهغه په حق کښې د دعاء نه افضل دې، (قسطلانی) حافظ رحمه الله هم په فتح الباری کښې د کتاب الدعوات په شروع کښې ددې څيزونو نه بحث کړې دې، هغوی ليکلې دی:

**د قائلين تفويض (ترک دعاء) دپاره دليل :**

يو جماعت وائی، چه ترک دعاء او سکوت اولی دې، او د آيت کريمه ادعونی استجب لکم په جواب کښې هغوی دا وائی، چه دلته د دعاء نه عبادت مراد دې، او ددې دپاره قرينه د آيت آخر دې، ان الذين يستکبرون عن عبادتی الآية، ګنی دواړه فقرې به بې ربط پاتې شی، دغه شان دحديث شريف الدعاء هو العبادة مطلب هم دادې، چه دعاء نوم د عبادت دې، پس په دې آيت د امر بالدعاء نه مقصود امر بالعبادت دې،

**(جواب از طرف جمهور)**

جمهور دا وائی، چه آيت کريمه په خپل ظاهر باندې دې، د دعاء نه هم دعاء مراد ده، پاتې شو اشکال د عدم ربط، نو دهغې نه جواب دادې، چه دعاء يو خاص قسم عبادت دې، او په آيت ثانيه کښې لفظ د عبادت مذکور دې، چه مطلق او عام دې، چه کله د عام انتفاء اوشی، نو د خاص انتفاء به په طريق اولی سره کيږی،

**(د امام قشيری رائې)**

مخکښې حافظ ليکلې دی، چه ابو القاسم قشيری (چه د مشاهير صوفياء او اکابر اولياؤ نه دې) په خپله رساله (رساله قشيری) کښې په دې مسئله کښې اختلاف ليکلې دې، او مسلک جمهور يعنی اختيار د دعاء ته ئې ترجيح ورکړې ده، او دريم قول ئې دا نقل کړې دې، چه بعضې خلق وائی، چه اولی دادی، چه ژبې سره خو داعی وی، او زړهٔ سره راضی بقضاء وی، او بيا هغوی خپله رائې دا ليکلې ده، چه اولی دادی، چه کوم وخت سالک په خپل زړهٔ کښې اشاره د دعاء اومومی، نو دعاء اولی ده، او کوم وخت چه اشاره د ترک دعاء اومومی، نو هغه وخت کښې ترک دعاء اولی ده، په دې باندې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائې چه دا خو د لويو خلقو خبرې دی، د هغوی اشاره قلبی معتبر ده، د عامو خلقو په اعتبار سره اول قول بهتر دې، (الدعاء باللسا والرضاء بالقلب)

**(د اکمال الشيم تبصره)**

په اکمال الشيم شرح تبويب الحکم کښې د دعاء په مسئله کښې د صوفيانو په طريق باندې لوئې بحث کړې شوې دې، د دعاء حقيقت، دهغې اقسام، د عارف او غير عارف په دعاء کښې فرق، دغه شان دعاء او ترک دعاء کښې کوم ته ترجيح ده، ډير خائسته مضمون دې، دهغې مطالعه کول پکار دی، څو لکيرې دهغې نه دلته کښې نقل کوم، په حديث کښې وارد دی، الدعاء مخ العبادة، ليکن هغه سالک چه هغه ته اوسه پورې د خپل نفس نه خلاصې نصيب شوې نه دې، هغه که دعاء او سوال لره مقصود اوګڼی، نو دا دهغه خطاء ده، وجه

داده، چه تر څو پورې نفس موجود دې، په دعاء او سوال کښې هم نفسانيت موجود دې، چه نفس به د خپلو خوندونو او مزو سوال کوي، او د نظر او د زړه د توجه به نه هغه حاجت وي، او نه به د الله تعالى د بندګئ هغه حالت وي.

## د عارفينو دعاء د عبادت مغز دې:

په خلاف د عارفينو چه دهغوى دعاء البته د عبادت مغز دې، ځکه چه د عبادت مقصود اظهارافتقار او احتياج دې، او دعاء او سوال کول، دا عين افتقار او احتياج ظاهرول دي، پس دعارف کامل نفس فنا شوې وي، دهغه نفساني غرض هيڅ نه وي، الى اخره(اکمال الشيم ص۶۴)

[۱۴۸۰](¹)حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ مِخْرَاقٍ، عَنْ أَبِي نَعَامَةَ، عَنِ ابْنٍ لِسَعْدٍ، أَنَّهُ قَالَ: سَمِعَنِي أَبِي وَأَنَا أَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْجَنَّةَ وَنَعِيمَهَا وَبَهْجَتَهَا، وَكَذَا، وَكَذَا، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ وَسَلَاسِلِهَا وَأَغْلَالِهَا، وَكَذَا، وَكَذَا، فَقَالَ: يَا بُنَيَّ، إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "سَيَكُونُ قَوْمٌ يَعْتَدُونَ فِي الدُّعَاءِ" فَإِيَّاكَ أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ، إِنَّكَ إِنْ أُعْطِيتَ الْجَنَّةَ أُعْطِيتَهَا وَمَا فِيهَا مِنَ الْخَيْرِ، وَإِنْ أُعِذْتَ مِنَ النَّارِ أُعِذْتَ مِنْهَا وَمَا فِيهَا مِنَ الشَّرِّ.

د حضرت سعد رضي الله عنه يو صاحب زاده فرمائي، چه زما پلار زما نه واوريدل او ما داسې دعا کوله: اې الله! زۀ ستانه د جنت سوال کووم او د هغې د نعمتونو او رونقونو او دا، او دا او د جهنم نه پناه غواړم او د هغې د زنځيرونو او طوقونو نه او د هغې د داسې داسې مصيبتونو نه. نو هغوى اوفرمائيل: ځويه! ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي، هغوى ﷺ فرمائيل: ''عنقريب به څه خلق وي چه هغوى به په دُعا کښې مبالغه کوي.'' نو خيال ساتئ د هغوى نه مۀ کيږئ. کۀ چرې تاته جنت ملاؤ شو نو د هغې تمام خيرات تاته ملاؤ شو، او کۀ چرې د جهنم نه بچ شوې نو د هغې د تمامو آفتونو نه بچ شولې.

**قوله:** سيکون قوم يعتدون في الدعاء: دا حديث په کتاب الطهارة باب الاسراف في الوضوء کښې تيرې شوې دې، او د اعتداء في الدعاء معاني هم هلته تير شوې دي.

[۱۴۸۱](²)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ، أَخْبَرَنِي أَبُو هَانِئٍ حُمَيْدُ بْنُ هَانِئٍ، أَنَّ أَبَا عَلِيٍّ عَمْرَو بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ صَاحِبَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يَدْعُو فِي صَلَاتِهِ لَمْ يُمَجِّدِ اللَّهَ تَعَالَى، وَلَمْ يُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "عَجِلَ هَذَا" ثُمَّ دَعَاهُ، فَقَالَ لَهُ أَوْ لِغَيْرِهِ: "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِتَحْمِيدِ رَبِّهِ جَلَّ وَعَزَّ وَالثَّنَاءِ عَلَيْهِ، ثُمَّ يُصَلِّي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ يَدْعُو بَعْدُ بِمَا شَاءَ".

صحابئ رسول ﷺ حضرت فضاله بن عبيد رضي الله عنه بيان کوي چه رسول الله ﷺ د يو کس نه واوريدل چه هغه په مونځ کښې دُعا کوله، هغه د الله تعالى حمد وثنا نۀ وه کړې او نۀ ئې د حضور ﷺ د پاره درود وئيلي وو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل دۀ تيزي اوکړه.'' کله چه په تاسو کښې څوک مونځ لولي نو اول دې دخپل رب حمد وثنا اوکړي، بيا دې د نبي ﷺ د

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:۳۹۴۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۷۲، ۱۸۳) (حسن صحيح)

(²): سنن الترمذي/الدعوات ۶۵ (۳۴۷۷)، سنن النسائي/السهو ۴۸ (۱۲۸۵)، (تحفة الأشراف:۱۱۰۳۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۱۸) (صحيح)

پاره دورد اولولی، ددې نه پس چه د هغه څۀ خوښه شی دُعا دې اوکړی .

[۱۴۸۲](١)حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ الْأَسْوَدِ بْنِ شَيْبَانَ، عَنْ أَبِي نَوْفَلٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَحِبُّ الْجَوَامِعَ مِنَ الدُّعَاءِ وَيَدَعُ مَا سِوَى ذَلِكَ".

د ام المومنين حضرت عائشې رضي الله عنها بيان دې چه رسول الله ﷺ به جامعه دُعا خوښوله او د هغې نه علاوه به ئې پريخودلې .

[۱۴۸۳](٢)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي إِنْ شِئْتَ، اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي إِنْ شِئْتَ لِيَعْزِمْ الْمَسْأَلَةَ، فَإِنَّهُ لَا مُكْرِهَ لَهُ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" په تاسو کښې دې څوک داسې دُعا بالکل نۀ کوی چه يا الله ! مالره اوبخښې کۀ غواړې نو . يا الله په ما باندې رحم اوکړې کۀ غواړې نو . . کوم څۀ چه غواړئ نو په عزيمت او پختګئ سره ئې غواړئ . الله لره هيڅ څوک نۀ شی مجبور کولې ".

[۱۴۸۴](٣)حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يُسْتَجَابُ لِأَحَدِكُمْ مَا لَمْ يَعْجَلْ، فَيَقُولُ: قَدْ دَعَوْتُ فَلَمْ يُسْتَجَبْ لِي".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : قبلولې به شی دُعا د يو کس ستاسو نه ترڅو چه هغه تيزی اونۀ کړی . يعنی داسې اووائی چه ما دُعا اوکړه مګر قبوله نۀ شوه .

[۱۴۸۵](٤)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَيْمَنَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ، عَمَّنْ حَدَّثَهُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَسْتُرُوا الْجُدُرَ، مَنْ نَظَرَ فِي كِتَابِ أَخِيهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ فَإِنَّمَا يَنْظُرُ فِي النَّارِ، سَلُوا اللَّهَ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا، فَإِذَا فَرَغْتُمْ فَامْسَحُوا بِهَا وُجُوهَكُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ كُلُّهَا وَاهِيَةٌ، وَهَذَا الطَّرِيقُ أَمْثَلُهَا وَهُوَ ضَعِيفٌ أَيْضًا.

محمد بن کعب قرظی د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ديوالونو لره (په کپړو وغيره سره) مۀ پټوئ . کوم کس چه د خپل رور په کتاب کښې (يا په تحريرکښې) د هغه د اجازت نه بغير اوکتل نو هغه په اور کښې ګوری. دَ الله تعالیٰ نه چه غواړئ نو خپل تلی خوره وئ او غواړی ئې، د لاسونو په شا سره مۀ غواړئ او

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:١٧٨٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٨/٦، ١٨٨، ١٨٩) (صحيح)

٢): صحيح البخاري/الدعوات ٢١ (٦٣٣٩)، والتوحيد ٣١ (٧٤٧٧)، سنن الترمذي/الدعوات ٧٨ (٣٤٩٧)، (تحفة الأشراف:١٣٨٧٢، ١٣٨١٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الذكر والدعا ٣ (٢٦٧٩)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٨ (٣٨٥٤)، موطا امام مالك/ القرآن ٨ (٢٨)، مسند احمد (٢٤٣/٢، ٤٥٧، ٢٨٦) (صحيح)

٣): صحيح البخاري/الدعوات ٢٢ (٦٣٤٠)، صحيح مسلم/الذكر والدعاء ٢٥ (٢٧٣٥)، سنن الترمذي/الدعوات ١٢ (٣٣٨٧)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٨ (٣٨٥٣)، (تحفة الأشراف:١٢٩٣٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القرآن ٨ (٢٩)، مسند احمد (٤٨٧/٢، ٣٩٦) (صحيح)

٤): سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١١٩ (٣٨٦٦)، (تحفة الأشراف:٦٤٤٨) (ضعيف)

کله چه تاسو د دعا نه فارغ شئ نو هغې لره په خپلو مخونو باندې راکاږئ." امام ابوداود ﷫ فرمائي چه دا حديث د محمد بن کعب نه په څو سندونو سره مروی دې او ټول ضعيف دی اودا مذکوره حديث په دغه ټولوکښې ښه دې، مګردا هم ضعيف دې.

**قوله:** حدثني عبدالله بن عباس ﷠ ان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) قال لا تستر والجدر: په ديوالو باندې (دهغې د ښائسته کولو دپاره) پردې مه زوړندوې، ځکه چه په دې کښې اسراف او تفاخر دې، چه د متکبرينو طريقه ده، ليکن که دا زوړندول ضرورة او مصلحة وی، مثلا لدفع الحر والبرد، نو جائز دی، (منهل) احقر وائي، چه دلته کښې دوه څيزونه دی، يو سترجدار، يعنی ديوال لره ښائسته کولو دپاره په هغې باندې پرده وغيره زوړندول، هغه خو ظاهره خبره ده، چه د تفاخر او زينت دپاره وی، هغه خو بهرحال ممنوع دی، او دويم څيز تعليق الستر على الباب، دا د عام ضرورت او مصلحت د وجې نه وی، مثلا د حجاب د ضرورت دپاره، او ددې ثبوت د ډيرو احاديثو نه کيږی، مثلا د مرض الوفات والا حديث کښې تير شو (باب الدعافي الركوع والسجود) ان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) كشف الستارة والناس صفوف خلف ابى بكر الحديث، دغه شان حضرت عبدالله بن مسعود ﷠ ته حضور (ﷺ) اوفرمائيل: اذنك على ان يرفع الحجاب الخ، رواه مسلم، دغه شان د حضرت ابوذر ﷠ حديث مرفوع دې، من كشف سترا فادخل بصره فى البيت الخ رواه الترمذى، باقي دا وئيلې شې، چه د دروازې والا پرده هم قيمتي او پرتکلف پکار نه ده.

**قوله:** من نظر فى كتاب اخيه بغير اذنه فانما ينظر فى النار، کوم سړې چه د بل سړی په کتاب کښې بغير د هغه د اجازت نه ګوری، نو هغه په اور کښې ګوری، يعنی داسې څيز لره ګوری، چه اور ته د رسولو دپاره ذريعه او سبب دې، يا مطلب دادې، چه څرنګه اور طرف ته مسلسل کتلو سره نظر خرابيږی (ځکه چه دا نظر ته نقصان ورکوی) دغه شان ددې نه هم پرهيز کول پکار دی، د کتاب نه څه مراد دی؟ بعضو وئيلې دی، چه ددې نه هغه خط يا ليکل مراد دې، چه د چا ذاتی وی، او په هغې کښې د راز خبرې وی، صاحب منهل وائی، بلکه په دې کښې عموم دې، علمی کتابونه هم په دې کښې داخل دی، او دا کتمان علم نه دې، بلکه حفظ مال دې، کتاب د سړی خپل قيمتی مال دې، او کتمان علم خو دادې، چه د څه څيز تپوس ترې اوکړې شی، هغې لره د علم باجود نه ښکاره کوی.

**قوله:** فاذا فرغتم فامسحو بها وجوهكم: ددې حديث باره کښې مصنف فرمائي، چه دا حديث بجميع طرق ضعيف دې، ددې وجې نه بعضې علماء د دعاء نه پس د مسح الوجه باليدين قائل نه دی، صاحب منهل ليکلې دی، چه ددې حديث شواهد په روايات حديثيه کښې موجود دی، (لم ذكرها) ددې وجې نه جمهور ددې قائل دی، ان ربكم حى كريم، حيى بروزن على، په دې کښې دوه يا ګانې دی اول مکسور ده او دويمه مشدّد. دا د حياء نه ماخوذ ده (د حيوه نه نه ده ماخوذ) ليکن حياء خو مقوله د انفعال ده په دې وجه ددې نه ددې لازمی معنی مراد ده، يعنی احسان او انعام، وهذا التوجيه مشهور فى مثل هذه الاوصاف التى اطلق على الله تعالى مثل الرحمة والغضب،

**قوله**: ان یردهما صفرا: صفر بمعنی خالی، یقال بیت صفر ای خال عن المتاع ورجل صفر الیدین ای خال من الخیر (ترجمه) بې شکه الله تعالی ډیر لوئی کریم او حیادار دې، چه کله یو بنده هغه طرف ته لاس پورته کړی، نو ددې خبرې نه حیاء کوی، چه هغې لره خالی واپس کړی، سبحان الله څومره امید افزا حدیث دې، الله تعالی دې د عمل کولو توفیق راکړی.

[١٤٨٦] (١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ الْبَهْرَانِيُّ، قَالَ: قَرَأْتُهُ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ يَعْنِي ابْنَ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنِي ضَمْضَمٌ، عَنْ شُرَيْحٍ، حَدَّثَنَا أَبُو ظَبْيَةَ، أَنَّ أَبَا بَحْرِيَّةَ السَّكُونِيَّ حَدَّثَهُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ يَسَارٍ السَّكُونِيِّ ثُمَّ الْعَوْفِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَاسْأَلُوهُ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا".
قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ: لَهُ عِنْدَنَا صُحْبَةٌ، يَعْنِي مَالِكَ بْنَ يَسَارٍ.

د ابو بحریه سکونی مالک بن یسار سکونی عوفی نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کله چه تاسو د الله نه سوال کوئ نو د خپل لاس په تلو باندې غواړئ، د لاسونو په پشت باندې مه غواړئ. امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه سلیمان بن عبد المجید وئیلې دی چه زمونږ د علم مطابق مالک بن یسار ته د صحابیت شرف حاصل دې.

[١٤٨٧] (٢) حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ نَبْهَانَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَدْعُو هَكَذَا بِبَاطِنِ كَفَّيْهِ وَظَاهِرِهِمَا".

حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمائی چه ما رسول الله ﷺ لره اولیدو، هغوی به د لاسونو د تلی په جانب سره او د لاسونو په شا طرف سره هم دعا کوله.

عن انس بن مالک قال رایت رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یدعوا هکذا بباطن کفیه وظاهرهما: ظاهر کفین سره به حضور (ﷺ) د استسقاء په مانځه کښې دعا فرمائیله. کما تقدم فی محله، او بعضو محدثینو فرمائیلې دی، چه ظاهر کفین سره دعاء به نبی کریم (ﷺ) په نماز استسقاء کښې هم نه فرمائیله، بلکه صورت حال دادې، چه هغوی به استسقاء کښې مبالغه فی الرفع کوله، او لاسونه به ئې دومره پورته کړل، چه سر ته به اورسیدل، چه دهغې د وجې نه د لاسونو تلی به ښکته طرف ته شو، او دهغې شا به بره شوه،

[١٤٨٨] (٣) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى يَعْنِي ابْنَ يُونُسَ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ يَعْنِي ابْنَ مَيْمُونٍ صَاحِبَ الْأَنْمَاطِ، حَدَّثَنِي أَبُو عُثْمَانَ، عَنْ سَلْمَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ رَبَّكُمْ تَبَارَكَ وَتَعَالَى حَيِيٌّ كَرِيمٌ يَسْتَحْيِي مِنْ عَبْدِهِ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَيْهِ أَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا".

د حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه نه روایت دې هغوی فرمائی: چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "بې شکه ستاسو رب ډیر حیاء والا او سخی دې، بنده چه کله د هغه طرف ته لاس اوچتوی نو هغه ته حیا ورځی چه هغې لره خالی واپس کړی"

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف:١١٢٠٩) (حسن صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:١٣١٧) (صحيح)
(٣): سنن الترمذي/الدعوات ١٠٥ (٣٥٥٦)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٣ (٣٨٦٥)، (تحفة الأشراف:٤٤٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٨/٥) (صحيح)

[١٤٨٩](١)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ يَعْنِي ابْنَ خَالِدٍ، حَدَّثَنِي الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدِ بْنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "الْمَسْأَلَةُ: أَنْ تَرْفَعَ يَدَيْكَ حَذْوَ مَنْكِبَيْكَ أَوْ نَحْوَهُمَا، وَالِاسْتِغْفَارُ: أَنْ تُشِيرَ بِإِصْبَعٍ وَاحِدَةٍ، وَالِابْتِهَالُ: أَنْ تَمُدَّ يَدَيْكَ جَمِيعًا".

د حضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه سوال (د دعا ادب) دادې چه ته خپل لاس د خپلو اوګو پورې یا هغې ته قریب اوچت کړې . او استغفار دادې چه په خپلې یوې ګوتې سره اشاره اوکړې او ابتهال (عجز وانکساری) داده چه خپلو دواړو لاسونو لره اوږد کړې.

عن ابن عباس ﷺ قال المسئلة ان ترفع يديک حذو منکبيک و الاستغفار ان تشير باصبع واحدة والابتهال ان تمد يديک جميعا.

## شرح حدیث:

په دې حدیث کښې د درې قسمه دعاګانو درې طریقې ذکر شوې دی، (١) عام حالاتو کښې چه کومه دعا د خیر کولې شی، دهغې طریقه خو داده، چه رفع یدین به اوکړی حذاء منکبین، یعنی په هغې کښې به زیاته مبالغه نه کوی، (٢) هغه دعاء چه د معاصی او د خپلو ګناهونو نه استغفار دپاره وی، دهغې باره کښې دادی، چه د دعاء په وخت کښې به یوې ګوتې سره اشاره اوکړی، یا خو سبا للنفس الامارة والشیطین، لکه د کنځلو کولو په وخت کښې په غصه کښې چه سرې ګوته چلوی، یعنی د نفس اماره زورلو طرف ته اشاره، یا اشاره الی التوحید، یعنی خدائې وحده لا شریک طرف ته اشاره، چه اې الله زمونږ دعاګانې واوره (٣) څه ناګهانی آفت یا مصیبت راغلو، او دهغې د دفع کولو دپاره په زارۍ سره دعا کول، په دې کښې دې رفع یدین مبالغې سره اوکړی (مبالغه په لفظ مدسره پوهه کښې راځی، ددې نه مخکښې درفع لفظ وو) او اوبه وائی، یا الله یاالله.

[١٤٩٠](٢)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدِ بْنِ عَبَّاسٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِيهِ: وَالِابْتِهَالُ هَكَذَا: وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَجَعَلَ ظُهُورَهُمَا مِمَّا يَلِي وَجْهَهُ.

عباس بن عبد الله بن معبد بن عباس دې مذکوره حدیث لره بیان کړو نو په هغې کښې ئې اووئیل چه ابتهال (عجز و انکساری او په دعا کښې مبالغه) داسې ده او (عملاً ئې) خپل لاسونه اوچت کړل او د هغې شا طرف ئې خپل مخ طرف ته کړو.

بهذا الحديث قال فيه والابتهال هكذا: د ابن عباس ﷺ اول حدیث قولی وو، او دا فعلی دې، هغوی خپل لاسونه پورته کړل او خلقو ته ئې اوښودل، و جعل ظهورهما مما يلي وجهه: ظهور کفین ئې پورته او بطون کفین ئې ښکته طرف ته کړل، لکه چه مخکښې تیر شوې دی، چه د بعضو علماؤ رائې داده، چه په دعاء خیر کښې د لاسونو تلی مخ طرف ته کول پکار دی، او په دعاء دفع شر کښې ددې برعکس کول پکار دی، او دا هم ممکن ده، چه ددې نه مقصود دا نه وی، بلکه مبالغه فی الرفع مراد وی، چه دهغې صورت اوس مخکښې تیر شو.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٥٣٥٦) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٥٣٥٦) (صحيح)

[١٤٩١]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْبَدِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَخِيهِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَذَكَرَ نَحْوَهُ.

عباس بن عبد الله بن معبد بن عباس دَ خپل رور ابراهیم بن عبد الله نه، هغوی دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : او دَ مذکوره روایت هم معنیٰ ئې بیان کړو .

[١٤٩٢]([2])حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ حَفْصِ بْنِ هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا دَعَا فَرَفَعَ يَدَيْهِ مَسَحَ وَجْهَهُ بِيَدَيْهِ".

سائب بن یزید دَ خپل پلار نه روایت کوی چه نبی کریم ﷺ به کله دُعا کوله او خپل لاسونه به ئې پورته کول نو په خپل مخ باندې به ئې راښکل .

[١٤٩٣]([3])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مَالِكِ بْنِ مِغْوَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ أَنِّي أَشْهَدُ أَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، الْأَحَدُ، الصَّمَدُ، الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ، فَقَالَ: "لَقَدْ سَأَلْتَ اللَّهَ بِالِاسْمِ الَّذِي إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى، وَإِذَا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ".

دَ عبد الله بن بریده رضی الله عنه نه روایت دې چه ددوی والد صاحب بیان کوی چه رسول الله ﷺ دَ یو کس نه واوریدل چه دُعا ئې کوله : {اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ أَنِّي أَشْهَدُ أَنَّكَ أَنْتَ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ} اې الله ! زهٔ ستانه سوال کووم په دې بناء باندې چه زهٔ دا ګواهی کووم چه هم تهٔ الله ئې . ستا نه سوا بل څوک معبود نشته دې . تهٔ یواځې ئې، بې نیاز ئې چه نهٔ دَ چانه پیدا دې او نهٔ ددهٔ نه څوک پیدا دی او هیڅ څوک ددهٔ همَ لا (همسر) نشته دې . " نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : " تا دَ الله نه په هغه نوم سره سوال کړې دې، چه هغې سره سوال اوکړې شی نو عنایت ئې فرمائی، او په هغې سره دُعا اوکړې شی نو قبلوی ئې .

[١٤٩٤]([4])حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ خَالِدٍ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ فِيهِ: "لَقَدْ سَأَلْتَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ".

مالک بن مغول هم دا حدیث بیان کړې دې، په دې کښې ئې وئیلې دی : " بې شکه دهٔ دَ الله عز وجل نه په لوی نوم (اسم اعظم) سره سوال کړې دې "

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٥٣٥٦، ١٨٨٨٠) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:١١٨٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢١/٤) (ضعيف)

[3]: سنن الترمذي/الدعوات ٦٤ (٣٤٧٥)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٩ (٣٨٥٧)، (تحفة الأشراف:١٩٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٩/٥، ٣٥٠، ٣٦٠) (صحيح)

[4]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف:١٩٩٨) (صحيح)

[۱۴۹۵]()حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ الْحَلَبِيُّ، حَدَّثَنَا خَلَفُ بْنُ خَلِيفَةَ، عَنْ حَفْصٍ يَعْنِي ابْنَ أَخِي أَنَسٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا وَرَجُلٌ يُصَلِّي، ثُمَّ دَعَا: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنَّ لَكَ الْحَمْدُ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ الْمَنَّانُ بَدِيعُ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ، يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ، يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَقَدْ دَعَا اللَّهَ بِاسْمِهِ الْعَظِيمِ الَّذِي إِذَا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ، وَإِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى".

د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دي چه هغه د رسول الله ﷺ سره ناست وو او يو کس مونځ کولو . هغه دعا کوله : {اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُکَ بِأَنَّ لَکَ الْحَمْدُ، لَا إِلٰـهَ إِلَّا أَنْتَ الْمَنَّانُ بَدِيعُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ، يَاذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ يَاحَيُّ يَاقَيُّوم} اې الله ! زۀ ستانه سوال کووم څکه چه تمام تعريفونه هم تالره دی، ستا نه سوا هيڅ معبود نشته دې، تۀ بې انتهاء احسان کوونکې ئې، د زمکې او د آسمان بې د نمونې پيدا کوونکې ئې . اې د جلال او اکرام والا ذاته ! اې حی ذاته ! اې نګرانی کوونکی ذاته! [1] نو نبې کريم ﷺ اوفرمائيل : په تحقيق سره دۀ د الله نه د هغه په اسم اعظم سره سوال کړې دې، کله چه په دې سره دعا اوکړې شی نو قبلوی ئې، او کله چه په دې سره اوغوښتلې شی نو ورکړه کوی .

عن انس انه کان مع رسول الله (صلی الله علیه وسلم) جالسا.......... فقال النبی (صلی الله علیه وسلم) لقد دعا الله باسمه العظيم الخ، او ددې نه وړپسې حديث کښې راروان دی، اسم الله الاعظم فی هاتين الآيتين والهکم اله واحد لا اله الا هو الرحمن الرحيم و فاتحة و سورة آل عمران الم الله لا اله الا هو الحی القيوم.

## د اسم اعظم بحث:

د ډيرو رواياتو نه معلوميږی، چه په اسماء الهيه کښې يو اسم اسم اعظم هم دې، چه دهغې خاصه داده، چه هغې سره کومه دعاء هم اوغوختلې شی، هغه قبليږی، ليکن ددې تعيين په هيڅ يو حديث کښې نه دې راغلې، بلکه داسې راغلې دی، چه په دې آيت کښې دې، او په فلانې آيت کښې دې، ددې وجې نه ددې په تعيين کښې د علماؤ هم اختلاف پيدا شو، څو اقوال دی، بعضې دهغې نه دادی: (۱) الحی القيوم (۲) لا اله الا هو الحی القيوم (۳) رب (٤) لا اله الا هو رب العرش العظيم (۵) الله، د حضرت جنيد بغدادی رحمه الله نه منقول دی، چه اسم اعظم دلفظ الله دې، ليکن ددې دپاره يو شرط دې، هغه دا چه ان تقول الله و ليس فی قلبک سواه، يعنی کوم وخت چه لفظ د الله وائې، او الله تعالی ته آواز کوې، نو هغه وخت په زړۀ کښې سوا د الله تعالی نه بل څه څيز نه وی.

او د بعضو علماؤ رائې داده، چه په حديث کښې کوم د اسم اعظم لفظ راغلې دې، نو دلته کښې د افعل صيغه دتفضيل دپاره نه ده، بلکه د عظيم په معنی کښې ده، او ټول اسماء الهيه عظيم دی، بعضو ته په بعضو باندې هيڅ فوقيت او فضيلت نشته، کنی لازم به راشی، چه د اعظم نه علاوه کوم اسماء دی په هغې کښې څه نقص دې، (عياذا بالله تعالی) لکه چه د اسم تفضيل مقتضی ده، بهر حال دا يو اختلافی مسئله ده، او دا اختلاف دهغې

[1]: سنن النسائي/السهو ۵۸ (۱۲۹۹)، (تحفة الأشراف:۵۵۱)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ۱۰۰ (۳۵٤٤)، سنن ابن ماجه/الدعاء ۹ (۳۸۵۸)، مسند احمد (۱۲۰/۳، ۱۵۸، ۲٤۵) (صحيح)

قسم نه دي، کوم چه په تفضيل بعض القرآن على بعض کښې تير شوې دي، ليکن صحيح د جمهورو رائې ده، لکه چه د ظاهر احاديثو نه معلوميږي. صاحب منهل ليکلې دي، چه په اسماء الهيه کښې بعضو ته په بعضو باندې کوم فضيلت دې، دهغې علت مونږ ته معلوم نه دې، الله تعالی په هغې باندې ښه پوهيږي.

[١٤٩٦]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اسْمُ اللَّهِ الْأَعْظَمُ فِي هَاتَيْنِ الْآيَتَيْنِ وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ سورة البقرة آية ١٦٣، وَفَاتِحَةِ سُورَةِ آلِ عِمْرَانَ الم ۱ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ۲ سورة آل عمران آية ١-٢".

شهر بن حوشب د حضرت اسماء بنت يزيد رضي الله عنها نه روايت کوی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: دَ الله تعالیٰ اسم اعظم په دې دوو آيتونو کښې دې: {وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ} (البقره: ١٦٣٩٣) او دَ سورۀ آل عمران په دې ابتدائی آيتونو کښې {الم اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ}

[١٤٩٧]()حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: سُرِقَتْ مِلْحَفَةٌ لَهَا، فَجَعَلَتْ تَدْعُو عَلَى مَنْ سَرَقَهَا، فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا تُسَبِّخِي عَنْهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: لَا تُسَبِّخِي: أَيْ لَا تُخَفِّفِي عَنْهُ.

ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها بيان کوی چه دَ هغې يو لحاف غلا کړې شو نو هغې غل ته بد دُعا اوکړه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: دَ هغه ګناه لره مۀ سپکه وه. امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ "لا تسبخی" معنیٰ "لا تخففی" ده، يعنی مۀ سپکه وه مۀ کمه وه.

**تشريح: قوله:** عن عطاء عن عائشة رضي الله عنها قالت سرقت ملحفة لها فجعلت تدعو على من سرقها:

يو ځل د حضرت عائشې رضي الله عنها څادر پټ شو، هغې سارق ته هيرې کولې، په دې باندې نبی کريم (ﷺ) اوفرمائيل لا تسبخی عنه.

## شرح حديث:

د غل نه عذاب داخرت مۀ سپکوه، يعنی ستا هغه ته بدې ردې وئيل د انتقام د قبيلې نه دي، او هرکله چه تۀ دهغه نه دلته کښې انتقام واخلې، نو ظاهره خبره ده، چه د آخرت په عذاب کښې به تخفيف وی (لهذا که تۀ هغه ته زياته سزا ورکول غوارې، نو دهغې شکل دادې چه خاموش شه)

(**اشکال**): په دې باندې دا اشکال کيدې شی، چه دا خبره په ظاهر کښې د نبی کريم (ﷺ) د شفقت على الامة خلاف ده، چه هغوی داسې مشوره ورکوی، چه هغې سره يو امتی ته په آخرت کښې زيات عذاب رسيږي،

[1]): سنن الترمذي/الدعوات ٦٥ (٣٤٧٨)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٩ (٣٨٥٥)، (تحفة الأشراف:١٥٧٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦١/٦) (حسن لغيره)

[2]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف:١٧٣٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥/٦، ١٣٦)، ويأتي برقم (٤٩٠٩) (حسن) (ملاحظه هو: ضعيف ابي داود٩٠/٢، والصحيحة: ٣٤١٣)

**جواب**: ددې جواب دا کیدې شي، چه دلته کښې نبی کریم (ﷺ) د حکمت عملي او حسن تدبیر نه کار واخستلو، سمدستي خو نبی کریم (ﷺ) حضرت عائشې رضي الله عنها ته دا خبره اوکړه، دې دپاره چه خبره زر دهغې پوهې ته راشي، او هغه دې لره قبوله کړي، او بیا چه کله غصه ئې ختمه شي، نو مشوره ورته ورکړي، چه معاف ئې کړه، فمن عفا و اصلح فاجره علی الله، وجه ددې داده، چه کله انسان په جوش کښې وي، نو هغه وخت کښې دهغه د منشاء نه خلاف نصیحت کار نه ورکوي، ددې وجې نه نبی کریم (ﷺ) دا طریقه اختیار کړه.

افاده شیخنا مولانا محمد زکریا قدس الله سره، او دا هم وئیلې شي، (کما ذکره فی البذل) چه د نبی کریم (ﷺ) مقصد په لاتسبخی سره دې طرف ته توجه راوستل وو، چه دا ته کومې هیرې کوې، دا د انتقام د قبیلې نه دی، که انتقام دې د خپل حق نه کم واخستلو، نو بیا خو به د سارق نه په عذاب کښې صرف تخفیف کیږي، او که انتقام دې پوره واخستلو، نو معامله به برابر سرابر شي، او که چرته انتقام زیات شو، نو خپله به د آخرت په گرفت او مؤاخذه کښې راشي.

[۱۴۹۸]( )حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعُمْرَةِ، فَأَذِنَ لِي، وَقَالَ: "لَا تَنْسَنَا يَا أُخَيَّ مِنْ دُعَائِكَ"، فَقَالَ كَلِمَةً مَا يَسُرُّنِي أَنَّ لِي بِهَا الدُّنْيَا، قَالَ شُعْبَةُ: ثُمَّ لَقِيتُ عَاصِمًا بَعْدُ بِالْمَدِينَةِ فَحَدَّثَنِيهِ، وَقَالَ: "أَشْرِكْنَا يَا أُخَيَّ فِي دُعَائِكَ".

د حضرت عمر رضي الله عنه بیان دې چه ما د رسول الله ﷺ نه د عمرې کولو رخصت اوغوښتو، هغوی ماته اجازت راکړو اووې فرمائیل: زما خوږه روره! مونږ لره په خپله دُعا کښې مهٔ هیره وه. "هغوی ﷺ داسې لفظ اوفرمائیلو کهٔ چرې ماته دَ هغې په بدله کښې دُنیا هم ملاو، شي نو ماته خوښه نهٔ ده. شعبه وائي چه زهٔ بیا ورستو دَ حضرت عاصم سره په مدینه کښې ملاو، شوم نو هغوی ماته دا حدیث بیان کړو. دَ هغوی لفظ وو: زما عزیز روره! مونږ لره په خپله دعا کښې شریکه وه.

**تشریح: قوله**: عن عمر رضي الله عنه قال استاذنت النبی (صلی الله علیه وسلم) فی العمرة فاذن لی و قال لا تنسنا یا اخي من دعائک:

ابن حجر رحمه الله فرمائي چه دا هغه عمره ده، چه ددې هغوی په زمانه د جاهلیت کښې نذر منلې وو([2])(منهل) احقر وائي، چه ددې عمرې دپاره دا ضروری نه ده، چه دې لره هغوی قصدا او مستقل د مدینې منورې نه کړې وي، دې دپاره چه دا سوال پیدا نه شي، چه د تاریخ او سیرت په کتابونو کښې ددې عمرې ذکر چرته دې؟ بلکه کیدې شي، چه د سفر دوران کښې چرته ایسار شوې وي، او د هلته نه مکې مکرمې ته تلې وي، او دا عمره ئې کړې وي، لکه چه حضور (ﷺ) د جعرانې نه کړې وه، والله تعالی اعلم.

[1]): سنن الترمذي/الدعوات ۱۱۰ (۳۵۶۲)، سنن ابن ماجه/المناسك ۵ (۲۸۹۴)، (تحفة الأشراف:۱۰۵۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹/۱) (ضعيف)

[2]) وفيه ان نذر الجاهلية متعلق بالاعتكاف كما هو مصرح في الروايات لا بالعمرة. والله أعلم.

فقال كلمة ما يسرني ان لي بها الدنيا: نبی کریم (ﷺ) ماته داسې خبره اوکړه، چه هغه زما په نزد دومره قیمتی ده، چه که دهغې په بدله کښې ماته ټوله دنیا هم ملاؤ شی، نو دا ماته خوښه نه ده، هغه خبره یا خو هم دا جمله ده، کومه چه دلته په حدیث کښې ذکر ده، یا خاص طور سره لفظ اخی، چه په دې کښې د یاء دمتکلم طرف ته اضافت دې، او یا ممکن ده (لکه چه صاحب منهل لیکلې دی) چه ددې نه علاوه څه بله خبره هم نبی کریم (ﷺ) هغوی ته ارشاد فرمائیلې وی، چه هغې لره عمر رضی الله عنه مصلحة نه وی ذکر کړی د تفاخر وغیره آفات نفس نه دبچ کیدلو دپاره، والله اعلم.

[۱۴۹۹](١) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَ: مَرَّ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَدْعُو بِأُصْبُعَيَّ، فَقَالَ: "أَحِّدْ أَحِّدْ" وَأَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ.

حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه بیان کوی چه نبی کریم ﷺ په ما باندې تیر شو او ما خپلې دوا ګوتې اوچتې کړې وې او دعا مې کووله نو حضور ﷺ اوفرمائیل: "په یو سره، په یو سره." او په شهادت والا ګوتې سره ئې اشاره اوفرمائیله.

**تشریح: قوله**: عن سعد بن ابی وقاص قال مر علی النبی (صلی الله علیه وسلم) وانا ادعو باصبعی: ددې نه په ظاهر کښې اشاره بالمسبحه مراد ده په تشهد کښې، په احادیثو کښې تشهد هم دعاء سره تعبیر کړې شوې دې، او د اصبعین نه مراد د دواړو لاسونو مسبحه ګوتې دی، لا اصبعين من يد واحدة (كذا فی تقرير الكنكوهي) احد احد په اصل کښې وحد وو، واؤ لره همزې سره بدل کړې شو، دې صحابی چونکه په تشهد کښې دواړو ګوتو سره اشاره کوله، ددې وجې نه نبی کریم (ﷺ) اوفرمائیل، چه یوې ګوتې سره اشاره کوه.

فان الذی تدعوه واحد، ځکه چه وحدانیت طرف ته اشاره ده، دهغې سره مناسب یو ګوته ده.

**تنبیه**: دا باب او په دې باندې کلام الحمد لله ختم شو، یوه خبره ذهن ته راځی، خیال راغلو، چه هغې لره لیکل پکار دی، ممکنه ده، چه لوستونکو ته فائده اورسوی، هغه داچه کومه دعا په بې پرواهی او غفلت سره اوغوختلې شی، هغه د الله تعالی په نزد نه قبلیږی، په حدیث شریف کښې دی، ان الله تعالی لا یستجیب دعاء من قلب غافل لاه رواه الترمذی من حدیث ابی هریرة مرفوعا، لهذا ددې خیال ساتل ډیر ضروری دی، په خلاف د مونځ، چه هغه غفلت سره هم قبلیږی، یا قبلیدې شی، چه دهغې وجه په ظاهر کښې داده، چه د مونځ هیئت کذائیه عبادت دې، لاسونه تړل او اودریدل، بار بار ښکته کیدل، اشرف الاعضاء یعنی تندې په زمکه باندې کیخودل وغیره وغیره، دویمه خبره داده، چه په دعاء کښې د کوم حاجت سوال کولې شی، هغه خو پیش کیږی، لیکن دې سره سره دا خیال ساتل هم پکار دی، چه دعا لره د عبادت په نیت غوختل پکار دی، د امتثال امر هم نیت وی، د احتیاج او افتقار الی الله صفت موجود وی، کومه دعا چه په داسې طریقې سره وی، په هغې باندې مداومت ساتل پکار دی، او د حصول غرض نه پس هم منقطع کول پکار نه دی، لکه

(١): سنن النسائي/السهو ٣٧ (١٢٧٤)، (تحفة الأشراف: ٣٨٥٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات (٣٥٥٢) (صحيح)

چه د بندګۍ تقاضه ده) په اصل کښې د صوفیاء کرامو منشاء هم داده، هغوی هم دا فرمائي چه دعا که غواړې، نو په دې کیفیت سره، صرف د نفس د خواهشاتو حصول ددې نه مقصود نه وی، او هم دا هغه دعاء ده، چه هغې ته مخ العبادة فرمائیلې شوې ده، والله الموفق لما یحب و یرضی.

## باب التَّسْبِیحِ بِالْحَصَی

### باب ٢٤- (دَشمیر په غرض سره) په کنکرو باندې تسبیح وئیل

او امام نسائی ترجمه قائمه کړې ده، باب عقد التسبیح، او په دې کښې هغوی د عبدالله بن عمرو بن العاص حدیث ذکر کړې دې، رایت رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یعقد التسبیح او په یو بل طریق کښې داسې دی، یعقدهن بیده، او دلته په دې باب کښې راروان دی. یعقد التسبیح بیمینه او د یسیره بنت یاسر په حدیث مرفوع کښې راروان دی، وان یعقدن بالانامل فانهن مسئولات مستنطقات، د عقد ترجمه غوټه کول دی، لیکن دلته کښې مراد ددې نه عد یعنې شمارل دی، ځکه چه بعضو وختونو کښې د شمارلو په وخت کښې تار وغیره کښې غوټه اچولې شی، ددې روایاتو نه معلومیږی، چه په انامل باندې شمار کول اولی دی، په نسبت سره تسبیح او وړو کاڼړو باندې شمارلو نه، دې دپاره چه د قیامت په ورځ دا ګواهی ورکړی، او دې دپاره چه د ذکر برکت هغوی ته حاصل شی، د نبی کریم (ﷺ) د قول او فعل نه خو عد بالانامل ثابت دې، او په کاڼړو او هډوکو باندې شمار کول د نبی کریم (ﷺ) د تقریر نه ثابت دی، کما فی حدیث الباب، و بین یدیها نوی او حصی، دغه شان مخکښې کتاب کښې د کتاب النکاح په آخر کښې د ابوهریره رضی الله عنه باره کښې راوی وائی، وهو علی سریر له معه کیس فیه حصی او نوی وهو یسبح بها.

او دې احادیثو نه د اذکارو او تسبیحاتو په کاڼړو وغیره باندې شمارلو جواز ثابتیږی، او هم په دې باندې علماؤ سبحۀ مروجه (تسبیح) قیاس کړې دې، ځکه چه په دې دواړو کښې فرق منظوم او غیر منظوم دې، په منظوم کښې نور هم زیات سهولت دې، بلکه بعضو روایاتو کښې ددې تسبیح ترغیب راغلې دې، لکه په مسند الفردوس (للدیلمی) کښې د سیدنا علی رضی الله عنه نه مرفوعا مروی دی. نعم المذکر السبحة، او علامه سیوطی رحمه الله خو دې باره کښې یو مستقل جزء تالیف کړې دې، المنحة فی السبحة، او په هغې کښې علامه سیوطی رحمه الله ددې په ثبوت کښې ډیر آثار روایت ذکر کړې دی، په بذل کښې لیکلې دی، چه سبحه ته صوفیاء سوط الشیطان وائی، او د حضرت جنید بغدادی رحمه الله په لاس کښې آخره پوره تسبیح وو، چه په هغې باندې ئې ذکر کولو، او فرمائیل ئې: چه د کوم څیز په وجه مونږ دلته رارسیدلې یو، هغې لره ولې پریږدو، البته صاحب منهل د صاحب مدخل نه تسبیح باره کښې یو بل هدایت او تنبیه نقل کړې ده، چه په خپل ځائې صحیح ده، هغه دا چه سبحه لره په قاعده کښې استعمالول پکار دی، هغې لره د قلادې پشان زوړندول، یا د بنګړی پشان لاس کښې اچول، او دخپرو اترو په وخت کښې دې لره تاوهل، ګویا تسبیح هم

نولی او خبرې هم کوی، یا د معتاد طریقې نه علاوه لوئې لوئې او اوږدې اوږدې تسبیح جوړول وغیره دا ټول امور او طریقې غلطې او بدعت دي، او د شهرت غوختلو ځیزونه دی، الله تعالی دې ددې نه حفاظت راکړی.

[۱۵۰۰] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ أَبِي هِلَالٍ حَدَّثَهُ، عَنْ خُزَيْمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهَا، أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى امْرَأَةٍ وَبَيْنَ يَدَيْهَا نَوًى أَوْ حَصًى تُسَبِّحُ بِهِ، فَقَالَ: "أُخْبِرُكِ بِمَا هُوَ أَيْسَرُ عَلَيْكِ مِنْ هَذَا، أَوْ أَفْضَلُ، فَقَالَ: سُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَاءِ، وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الْأَرْضِ، وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ بَيْنَ ذَلِكَ، وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا هُوَ خَالِقٌ، وَاللهُ أَكْبَرُ مِثْلُ ذَلِكَ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ مِثْلُ ذَلِكَ، وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ مِثْلُ ذَلِكَ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ مِثْلُ ذَلِكَ".

عائشه بنت سعد بن ابی وقاص د خپل پلار (حضرت سعد رضی الله عنه) نه روایت کوی چه هغه د رسول الله ﷺ سره یوې ښځې ته راغې او د هغې ښځې مخې ته د کجورو هډوکی یا کنکری وو او هغه ښځې به په هغې باندې تسبیح وئیلو. حضور ﷺ اوفرمائیلو: "آیا تاته زۀ هغه ځیز اونۀ ښایم چه هغه ستا د پاره ددې نه آسان یا افضل وی؟ نو حضور ﷺ اوفرمائیل: [ سبحان الله عدد ما خلق السماء ...... الخ ] الله لره تسبیح ده د هغه مخلوق په تعداد کښې کوم چه هغه په اسمان کښې پیدا کړې دي او الله لره تسبیح ده د هغه مخلوق په تعداد کښې کوم چه هغه په زمکه کښې پیدا کړې دي. الله لره تسبیح ده د هغه مخلوق په تعداد کښې کوم چه هغه ددې دواړو په مامین کښې پیدا کړې دي، الله لره تسبیح ده د هغه مخلوق په تعداد کښې کوم چه به هغه پیدا کوی. او الله اکبر ددې په مثل او الحمد لله ددې په مثل او لا اله الا الله ددې په مثل او ولا حول ولا قوة الا بالله ددې په مثل."

**قوله**: انه دخل مع رسول الله (صلی الله علیه وسلم) علی امراة و بین یدیها نوی او حصی تسبح به، مسکن ده، چه ددې نه مراد حضرت جویریه رضی الله عنها وی، چه دهغې قصه مخکښې هم راروانه ده. یا بل څوک وی، که هغه د نبی کریم (ﷺ) محرم وه، نو بیا خو هیڅ اشکال نشته، او که اجنبیه وه، نو کیدې شی، چه دا واقعه د قبل الحجاب وی، یا داسې اوایئ، چه دخول فی البیت، رؤیت لره مستلزم نه دی، (بذل)

[۱۵۰۱] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ هَانِئِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ حُمَيْضَةَ بِنْتِ يَاسِرٍ، عَنْ يُسَيْرَةَ، أَخْبَرَتْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَهُنَّ أَنْ يُرَاعِينَ بِالتَّكْبِيرِ وَالتَّقْدِيسِ وَالتَّهْلِيلِ، وَأَنْ يَعْقِدْنَ بِالْأَنَامِلِ فَإِنَّهُنَّ مَسْئُولَاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ".

حضرت یسیره رضی الله عنها خبر ورکړې دي چه نبی کریم ﷺ دوی (صحابیاتو) ته حکم ورکړې وو چه دوی د الله تعالی د تکبیر (الله اکبر) تقدیس (سبحان الملک القدوس) او د تهلیل (لا اله الا الله) پابندی اختیار کړی او دا چه په خپلو ګوتو باندې ددې شمیر کوی ځکه چه ددې نه به سوال کولې شی او دا بل بللې شی.

(۱): سنن الترمذي/الدعوات ۱۱٤ (۳۵٦۸)، (تحفة الأشراف: ۳۹۵٤) (ضعیف)

(۲): سنن الترمذي/الدعوات ۱۲۱ (۳۵۸۳)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۳۷۰، ۳۷۱) (حسن)

[١٥٠٢](١)حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَثَّامٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَعْقِدُ التَّسْبِيحَ"، قَالَ ابْنُ قُدَامَةَ: "بِيَمِينِهِ".

حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه بيان كوي چه ما رسول الله ﷺ لره اوليدو چه هغوی په خپل لاس (گوتو) سره د تسبيح شميركولو. (استاذ) ابن قدامه وضاحت كړي دي چه په خپل ښي لاس سره.

[١٥٠٣](٢)حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أُمَيَّةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ مَوْلَى آلِ طَلْحَةَ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِ جُوَيْرِيَةَ وَكَانَ اسْمُهَا بَرَّةَ، فَحَوَّلَ اسْمَهَا، فَخَرَجَ وَهِيَ فِي مُصَلَّاهَا، وَرَجَعَ وَهِيَ فِي مُصَلَّاهَا، فَقَالَ: "لَمْ تَزَالِي فِي مُصَلَّاكِ هَذَا؟" قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: "قَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ أَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ لَوْ وُزِنَتْ بِمَا قُلْتِ لَوَزَنَتْهُنَّ: سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ وَرِضَا نَفْسِهِ وَزِنَةَ عَرْشِهِ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ".

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه بيان دي چه رسول الله ﷺ د حضرت جويريې رضي الله عنها له خوا نه لاړو ... ددې نه وړاندې ددې نوم برّه (نيک او صالحه) وو. او رسول الله ﷺ ددې نوم بدل كړي وو ... حضور ﷺ د هغې د خوا اووتلو او هغه په خپله مصلّی باندې وه، حضور ﷺ بيا واپس تشريف راوړو نو (وې كتل چه) هغه لا په خپله مصلّی باندې ده. حضور ﷺ پوښتنه اوكړه آيا تهٔ د هغه وخت نه په مصلّی باندې ئې؟ هغې اوفرمائيل: او. حضور ﷺ اوفرمائيل: ما ستا (د خوا نه د تللو نه) بعد څلور كلمات درې خله وئيلي دی، كهٔ چرې هغه ستا د تسبيحاتو او ذكر سره وزن كړې شي نو دا (زما كلمات به) درون‌د شي. يعنی {سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ وَرِضَا نَفْسِهِ وَزِنَةَ عَرْشِهِ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ} پاكی ده الله لره د هغه تعريفونو سره، دومره قدرې څومره چه د هغه مخلوق دې او دومره قدرې چه په هغې سره راضي شي، او د هغه د عرش د وزن برابر، او دومره قدرې څومره چه د هغه د كلماتو سياهی ده."

[١٥٠٤](٣)حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي حَسَّانُ بْنُ عَطِيَّةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي عَائِشَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ أَبُو ذَرٍّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ذَهَبَ أَصْحَابُ الدُّثُورِ بِالْأُجُورِ يُصَلُّونَ كَمَا نُصَلِّي وَيَصُومُونَ كَمَا نَصُومُ، وَلَهُمْ فُضُولُ أَمْوَالٍ يَتَصَدَّقُونَ بِهَا وَلَيْسَ لَنَا مَالٌ نَتَصَدَّقُ بِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ، أَلَا أُعَلِّمُكَ كَلِمَاتٍ تُدْرِكُ بِهِنَّ مَنْ سَبَقَكَ، وَلَا يَلْحَقُكَ مَنْ خَلْفَكَ إِلَّا مَنْ أَخَذَ بِمِثْلِ عَمَلِكَ؟" قَالَ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "تُكَبِّرُ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَتَحْمَدُهُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَتُسَبِّحُهُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَتَخْتِمُهَا بِلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، غُفِرَتْ لَهُ ذُنُوبُهُ وَلَوْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ".

[1]: سنن الترمذي/الدعوات ٢٥ (٣٤١١)، ٧٢ (٣٤٨٦)، سنن النسائي/السهو ٩٧ (١٣٥٦)، (تحفة الأشراف: ٨٦٣٧) (صحيح)
[2]: صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٩ (٢١٤٠ و ٢٧٢٦)، (تحفة الأشراف: ٦٣٥٨)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الافتتاح ٩٤ (١٣٥٣)، سنن الترمذي/الدعاء ١٠٤ (٣٥٥٥)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥٦ (٣٨٠٨)، مسند احمد (١/٢٥٨، ٣١٦، ٣٢٦، ٣٥٣) (صحيح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٥٨٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/المساجد ٢٦ (٥٩٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٣٢ (٩٢٦)، موطا امام مالك/القرآن ٧ (٢٢)، سنن الدارمي/الصلاة ٩٠ (١٣٩٣) (صحيح)

حضرت ابوهریره رضي الله عنه بیان کوی چه حضرت ابوذر رضي الله عنه اوفرمائیل : اې دَ الله رسوله ! دې مال او دولت والا خو اجر او ثواب یوړو (او مونږ خالي لاس پاتې شو) هغوی مونځ کوی څنګه چه مونږ کوو روژې نیسي څنګه چه مونږ نیسو او دَ هغوی سره زائد اموال دی کوم چه هغوی صدقه کوی لیکن زمونږ سره نشته دې چه صدقه ئې کړو . رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : ابوذر ! آیا زهٔ تاته داسې کلمات نهٔ ښایم چه په هغې سره تهٔ دَ خپل ځان نه مخکښې تلونکې بیا مومې او ورستو پاتیکیدونکې تالره بیا نهٔ مومي .؟ ابو ذر رضي الله عنه او فرمائیل او اې دَ الله رسوله ! حضورِ اوفرمائیل : دَ هر مونځ نه پس دری دیریش کرته الله اکبر دری دیرش کرته الحمد لله او دری دیرش کرته سبحان الله او ددې اختتام دې په لااله‌الا الله وحده لا شریك له له الملك وله الحمد وهو علی کل شيئ قدیر، باندې وی . په دې سره به دَ هغه ګناه اوبخښلې شی، اګر چه دَ سمندر دَ زګ برابر وی ."

**تشریح: قوله:** قال ابوذر یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ذهب اصحاب الدثور بالاجور:
دثور د دثر جمع ده، بمعنی دمال کثیر، او اجور د اجر جمع ده،

**شرح حدیث:**

د حدیث مضمون خو واضح دې، د صحابه کرامو مخښې ته چونکه هر وخت دار آخرت وو، دهغې په فکر کښې به اوسیدل، او په خپلو کښې به ئې په امور آخرت کښې تنافس او سیالی کوله، یعنی په اعمال صالحه کښې ئې د یو بل نه مخکښې کیدل غوختل، وفی ذلک فلیتنافس المتنافسون، نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) اوفرمائیل : زهٔ تاته داسې کلمات ښایم تدرک بهن من سبقک، چه دهغې په ذریعې سره به تهٔ دهغې خلقو مرتبې ته اورسې، کوم چه ستا نه مخکښې دی یعنی په مرتبه کښې، ولا یلحقک من خلفک، او کوم خلق چه په مرتبه کښې ستا نه روستو دی، هغوی به تاته نشی رسیدلې، الا من اخذ بمثل عملک، خو داچه که هغوی هم ستا پشان عمل کول شروع کړی، یعنی دا کلمات لوستل شروع کړی، مخکښې هغه کلمات حدیث مذکور دی، دهر فرض مانځه نه پس دغه کلماتو لره په اهتمام سره وئیل پکار دی، سرسری طور سره نه، بلکه معنی طرف ته توجه ساتلو سره، او ددې خبرې اختیار دې، چه که د سنتو نه پس ئې لولی او که د فرضو او سنتو په مینځ کښې، نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) د دغې کلماتو ترغیب په ډیر احادیثو کښې عمومی طور سره هم فرمائیلې دی، او خصوصی طور سره خپلې نیازبینې لور سیدة نساء الجنة فاطمة الزهراء رضي الله عنها ته هم، لکه چه د صحاح په روایاتو کښې مشهور دی، مشهور نوم د دغې کلماتو تسبیحات فاطمه دې، او بعضو احادیثو کښې دهغې نه په معقبات سره تعبیر کړې شوې دې، معقبات لا یخیب قائلهن، دا تسمیه یا خو ددې وجې نه ده، چه دا کلمات د مونځونو په عقب کښې یعنی د مونځونو نه پس وئیلی شی، او یا ددې وجې نه، چه دا کلمات په خپلو کښې یو بل پسې راځی یعنی لوستلو کښې، زهٔ تاسو ټولو ته نصیحت کوم، چه کم ازکم د هر فرض مانځه نه پس دې لره ضرور لولئ، او دغه شان د شپې په کټ کښې سملاستلو نه پس او د اودهٔ کیدو نه مخکښې، په دغه وخت کښې که څوک سترې والې لرې کولو دپاره اولولی، نو دهغې فائده

هم ورکوی، د ډیروخلقو تجربه ده، په حدیث کښې راځی، چه ددې ثواب ډیر زیات دې، او وخت پکښې ډیر کم خرچ کیږی، والله الموفق.

## باب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا سَلَّمَ

### باب: ٢٥-سړې به دَسلام نه پس کومه دُعا وائی

بعینه هم دا ترجمه د ترمذی شریف ده، او امام بخاری رحمه الله کتاب الصلوة کښې ترجمه قائمه کړې ده، باب الدعاء قبل السلام، او کتاب الدعوات کښې باب الدعاء بعد الصلوة، صاحب مشکوة باب قائم کړې دې، باب الذکر بعد الصلوة،

### د فرض مونځونو نه پس دعاء سره متعلق ابحاث اربعه مفیده علمیه:

دلته کښې څو بحثونه دی، د فرض مانځه نه پس دعاء مشروع ده او که نه. د فرض مانځه نه پس ذکر (اوراد او تسبیحات) مشروع دی او که نه، که دا څیزونه مشروع دی، نو بیا سمدستی بعد السلام او که د رواتب نه پس، د فرض مانځه نه پس چه کومې دعا ګانې منقول دی هغه کومې دی، د فرض مانځه نه پس رفع یدین سره د امام او مقتدیانو په جمع دعا کول ثابت دی او که نه؟ دا ټول څلور بحثونه دی، چه ددې مقام شروح حدیث کتلو سره په پوهه کښې راغلې دی، او دا تجزیه به په دې مقام باندې پوهیدلو کښې معین وی.

### بحث اول: (د فرض مونځونو نه پس دعا مشروع ده که نه؟)

مولانا ادریس صاحب کاندهلوی په التعلیق الصبیح کښې لیکلې دی، چه د دعاء بعد الصلوة امر خو په قرآن مجید کښې موجود دې، فاذا فرغت فانصب والی ربک فرغب، (علی تفسیر ابن عباس رضی الله عنه ددې د انکار ګنجائش نشته، دغه شان ذکر بعد الصلوة هم مامور به من الله دې، فاذا قضیتم الصلوة فاذکروا الله قیاما و قعودا و علی جنوبکم الآیة، په فتح الباری(ج١١ ص ١١٥) کښې دی، وسئل الاوزاعی هل الذکر بعد الصلوة افضل ام تلاوة القرآن فقال لیس شئ یعد القرآن و لکن کان هدی السلف الذکر،١ه حافظ ابن حجر رحمه الله د ترجمة البخاری "باب الدعاء بعد الصلوة" لاندې لیکلې دی چه په دې ترجمة سره مصنف رد فرمائې په هغې خلقو باندې، کوم چه دا وائی، چه د فرض مانځه نه پس دعا مشروع نه ده، لحدیث مسلم عن عائشة کان النبی (صلی الله علیه وسلم) اذا سلم لا یثبت الا قدر ما یقول اللهم انت السلام و منک السلام تبارکت یا ذالجلال والاکرام (ظاهره خبره ده، چه ددې کلماتو په وئیلو کښې یو منټ هم نه لګی، نو بیا چه کله د مانځه نه پس هغوی بالکل ایساریدل نه، نو بیا دعاء ئې څرنګه کوله) ددې جواب حافظ رحمه الله دا ورکړې دې، چه په دې حدیث کښې د راوی غرض دادې، چه د مانځه نه پس به نبی کریم (ﷺ) مستقبل قبله دومره ایساریدو، او که دعاء به ئې غوختله، نو ارخ به ئې بدل کړو، کما هو مصرح فی الروایات، د مطلق جلوس نفی مقصود نه ده، د حافظ ابن قیم باره کښې هم دا مشهوره ده، چه هغوی هم بعد المکتوبة د دعاء قائل نه دې، او نه دهغه شیخ ابن تیمیه رحمه الله ددې قائل وو، هغوی دا فرمائې چه په احادیثو کښې د مانځه متعلق کومې دعاګانې وارد دی، دهغې اصل محل بعد التشهد قبل

السلام دي، په هغې احادیثو کښې د دبر نه مراد آخر صلوة دې، بعد السلام نه دې، هغه وائی، چه ما خپل شیخ ابن تیمیه رحمه الله ته دې باره کښې رجوع اوکړه، نو هغوی اوفرمائیل چه د حیوان دبر دهغه داخلی جزء دې، خارجی حصه نه ده، دغه شان دلته کښې هم دا مراد دې، او دویمه خبره داده، چه صلوة محل د رحمت دې، محل مناجات دې، لهذا اصل وخت د دعاء هم دغه دې، د مانځه نه خارج د دعاء څه موقع ده، البته دلته کښې یو لطیف نکته بله ده، هغه دا چه د مانځه نه پس چه کوم اذکار ماثوره لوستلې شی، دهغې نه پس مونځګزار که صلوة او سلام هم اولولی، او بیا دعا اوغواړی، نو په دې کښې هیڅ خرج نشته، لیکن په دې صورت کښې دا دعاء بعد الصلوة نشوه، بلکه بعد الذکر شوه، یعنی د مانځه نه علاوه یو بل عبادت نه پس شوه، حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه ابن قیم رحمه الله دا رائې قوت سره رد کړې ده، او د ډیرو احادیثو نه ئې دعاء بعد السلام ثابت کړې ده.

**بحث ثانی: (ذکر د فرائضو نه فورا پس اوکه د رواتبو نه پس؟)**

د مانځه نه پس د ذکر او تسبیحاتو په مشروعیت باندې د ټولو اتفاق دې، ددې نه هیڅوک انکار نه کوی، پاتې شوه دا خبره، چه اذکار به د رواتب نه پس وی او که روستو، نو په دې کښې د جمهورو په نزد اطلاق دې، هیڅ تنګی نشته، لکه حافظ ابن حجر په فتح الباری جلد ۱۱ ص۱۱۵ کښې لیکلې دی: وفی هذه الاحادیث ان الذکر المذکور یلی الصلوة المکتوبة ولا یؤخر الی ان یصلی الراتبة لما تقدم والله اعلم، خپله د ابن قیم رحمه الله په نزد هم اذکار مشروعه بعد السلام لوستلې شی، لکه آیة الکرسی او معقبات او معوذات، د ابن قیم که اختلاف دې، نو په دعاء کښې دې، دغه شان زمونږ د حضرت شاه ولی الله صاحب دهلوی رحمه الله هم رائې ده، (کما فی معارف السنن) چه ټول اذکار او اوراد ماثوره د فرض مونځ نه پس قبل السنن لوستلې شی، لیکن د شیخ ابن الهمام رحمه الله رائې (کما فی فتح القدیر) په ډیر قوت سره داده، چه دې اذکارو لره د رواتب نه پس لوستل پکار دی، د مکتوباتو او رواتبو په مینځ کښې فصل کول پکار نه دې، مونږ خپل بعضې استاذان لیدلې دی، چه هغوی به تسبیح فاطمه بعد السلام لوستل، او دبعضو معمول د سنتو نه پس د لوستلو وو.

**بحث ثالث: (د فرض مونځ نه پس منقول دعاګانې)**

ترمذی شریف کښې د حضرت ابوامامه رضی الله عنه حدیث دې، چه د نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) نه تپوس اوکړې شو، چه کومه دعاء زیات قبولیت لری، نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) اوفرمائیل، جوف اللیل الآخر، و دبر الصلوت المکتوبات، یعنی د آخری شپې دعاء، او د فرض مونځونو نه پس دعاء، ذکر الامام النووی فی کتاب الاذکار ص٦٦، د مانځه نه پس ډیرې دعاګانې دلته په کتاب (سنن ابوداؤد) کښې ذکر دی، هغې ټولو لره حفظ کول پکار دی، څومره چه هم یادې شی نو بهتره ده، مصنف په دې باب کښې شپږ اووه دعاګانې ذکر کړې دی،

[۱۵۰۵]( )حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنِ الْمُسَيَّبِ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ وَرَّادٍ مَوْلَى الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، كَتَبَ مُعَاوِيَةُ إِلَى الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ: أَيُّ شَيْءٍ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِذَا سَلَّمَ مِنَ الصَّلَاةِ، فَأَمْلَاهَا الْمُغِيرَةُ عَلَيْهِ، وَكَتَبَ إِلَى مُعَاوِيَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، اللَّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ".

د حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه نه روایت دی چه حضرت معاویه رضی الله عنه، حضرت مغیره رضی الله عنه ته خط اولیکلو او تپوس ئې ترینه اوکړو چه رسول الله ﷺ به د مونځ نه د سلام ګرځولو نه پس څۀ فرمائیل: نو حضرت مغیره رضی الله عنه هغه ته اولیکل چه رسول الله ﷺ به دا لوستل: {(لَاإِلٰـهَ إِلَّااللهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيكَ لَهُ،لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُوَهُوَعَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ،اللّٰهُمَّ لَامَانِعَ لِمَاأَعْطَيْتَ وَلَامُعْطِيَ لِمَامَنَعْتَ وَلَايَنْفَعُ ذَاالْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ)} د الله نه سوا هيڅ څوک معبود نشته دې هغه احد دې هيڅ څوک د هغه سره شریک نشته دې. ملک هم د هغه دې تعریف هغه لره دې، او هغه په هر څيز باندې قادر دې. اې الله! څه چه تۀ عنات اوفرمائې د هغې څوک بندوونکې نشته دې او څه چه تۀ منع کړې د هغې څوک ورکوونکې نشته دې او هيڅ يو مالدار ته ستا په مقابله کښې د هغه مال فائده نۀ شي ورکولې.

(۱) وراد کاتب د مغیره رضی الله عنه وائی، چه حضرت معاویه رضی الله عنه حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه ته خط اولیکو، او تپوس ئې ترې اوکړو، چه حضور (ﷺ) به د مانځه نه پس کومه دعا لوستله، نو مغیره په ما باندې په جواب کښې اولیکل، چه نبی کریم (ﷺ) به دا دعاء لوستله: لااله الا الله وحده لا شريک له له الملک وله الحمد وهو على کل شئ قدير اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطى لما منعت و لا ينفع ذا الجد منک الجد. (واخرجه الشيخان ايضا) بعضو رواياتو کښې دی، چه دا دعاء به رسول الله (ﷺ) د مانځه نه پس درې کرته لوستله.

[۱۵۰۶]( )حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ عَلَى الْمِنْبَرِ، يَقُولُ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْصَرَفَ مِنَ الصَّلَاةِ، يَقُولُ: "لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ أَهْلَ النِّعْمَةِ وَالْفَضْلِ وَالثَّنَاءِ الْحَسَنِ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ".

ابو الزبير فرمائی چه ما د حضرت زبير رضی الله عنه نه په منبر باندې واوريدل چه نبی کريم ﷺ به کله د مانځۀ نه سلام واړولو نو دا به ئې لوستل: {(لَاإِلٰـهَ إِلَّااللهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيكَ لَهُ،لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَعَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ،لَاإِلٰـهَ إِلَّااللهُ،مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْكَرِهَ الْكَافِرُونَ،أَهْلَ النِّعْمَةِ وَالْفَضْلِ وَالثَّنَاءِ الْحَسَنِ،لَاإِلٰـهَ إِلَّااللهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْكَرِهَ الْكَافِرُونَ)} د الله نه سوا هيڅ څوک معبود نشته دې،

[1]: صحيح البخاري/الأذان ١٥٥ (٨٤٤)، والزكاة ٥٣ (١٤٧٧)، والدعوات ١٨ (٦٣٣٠)، والرقاق ٢٢ (٦٤٧٣)، والقدر ١٢ (٦٦١٥)، والاعتصام ٣ (٧٢٩٢)، صحيح مسلم/المساجد ٢٦ (٥٩٣)، سنن النسائي/السهو ٨٥ (١٣٤٢)، (تحفة الأشراف: ١١٥٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٥/٤، ٢٤٧، ٢٥٠، ٢٥١، ٢٥٤، ٢٥٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٨٨ (١٣٨٩) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/المساجد ٢٦ (٥٩٤)، سنن النسائي/السهو ٨٣ (١٣٤٠)، (تحفة الأشراف: ٥٢٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤)، (صحيح)

هغه احد دې، ملک هم دَ هغه دې، هغه لره تعریف دې، او هغه په هر څیز باندې قادر دې، دَ الله نه سوا هیڅ څوک معبود نشته دې، مونږ خالص هم دَ هغه اطاعت کوو، اګر که کافرانو ته دا ناخوښه وی. «اې الله» هم ته دَ نعمت او فضل والا او دَ بهترین تعریف مستحق ئې. دَ الله نه سوا بل هیڅ څوک معبود نشته دې، مونږ خالص دَ هغه اطاعت کوو، اګر که کفارو ته دا ناخوښه وی."

(۲) عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په منبر باندې ناست وو، او وې فرمائیل، چه حضور (صلی الله علیه وسلم) دَ مانځه نه فارغیدو نه پس دا دعاء لوستله. لااله الا الله وحده لا شریک له له الملک و له الحمد وهو علی کل شئ قدیر، لااله الا الله مخلصین له الدین ولو کره الکافرون اهل النعمة والفضل والثناء الحسن لا اله الا الله مخلصین له الدین ولو کره الکافرون (اخرجه الشیخان ایضا) او د مسلم په روایت کښې دی، یقول بصوته الاعلی یعنی دا دعاء به نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) لږ په اوچت آواز سره لوستله، د آخری جملې مطلب دادې، چه مونږ خپل عبادت الله تعالی لره خالص کوؤ، او په هغې کښې غیر لره نه شریکوؤ(نه شرک اکبر او نه شرک اصغر) اګر چه کافران خلق زمونږ دې اخلاص فی العبادات لره څومره هم ناخوښوی.

[۱۵۰۷]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، قَالَ: كَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ يُهَلِّلُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ، فَذَكَرَ نَحْوَ هَذَا الدُّعَاءِ، زَادَ فِيهِ: وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ لَا نَعْبُدُ إِلَّا إِيَّاهُ لَهُ النِّعْمَةُ، وَسَاقَ بَقِيَّةَ الْحَدِيثِ.

ابو الزبیر فرمائی چه حضرت عبد الله بن زبیر به دَ هر مانځه نه پس [لااله الاالله وحده...الخ] لوستلو او دَ مذکوره بالا حدیث په مثل ئې دُعا ذکر کړه او دا اضافه ئې اوکړه: {(وَلَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، لَا نَعْبُدُ إِلَّا إِيَّاهُ، لَهُ النِّعْمَةُ)} او باقی حدیث ئې بیان کړو.

[۱۵۰۸]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ وَهَذَا حَدِيثُ مُسَدَّدٍ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ دَاوُدَ الطُّفَاوِيَّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو مُسْلِمٍ الْبَجَلِيُّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: سَمِعْتُ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: وَقَالَ سُلَيْمَانُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ فِي دُبُرِ صَلَاتِهِ: "اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ، أَنَا شَهِيدٌ، أَنَّكَ أَنْتَ الرَّبُّ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ، أَنَا شَهِيدٌ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ أَنَا شَهِيدٌ أَنَّ الْعِبَادَ كُلَّهُمْ إِخْوَةٌ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ اجْعَلْنِي مُخْلِصًا لَكَ، وَأَهْلِي فِي كُلِّ سَاعَةٍ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ اسْمَعْ وَاسْتَجِبْ، اللَّهُ أَكْبَرُ الْأَكْبَرُ، اللَّهُمَّ نُورَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، رَبَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، اللَّهُ أَكْبَرُ الْأَكْبَرُ، حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ، اللَّهُ أَكْبَرُ الْأَكْبَرُ".

حضرت زید بن ارقم رضی الله عنه بیان کوی چه ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه واوریدل چه هغوی به د مانځه نه پس دا لوستل: {اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ، أَنَا شَهِيدٌ، أَنَّكَ أَنْتَ الرَّبُّ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ، أَنَا شَهِيدٌ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ أَنَا شَهِيدٌ أَنَّ الْعِبَادَ كُلَّهُمْ إِخْوَةٌ، اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ اجْعَلْنِي مُخْلِصًا لَكَ، وَأَهْلِي فِي كُلِّ سَاعَةٍ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ اسْمَعْ وَاسْتَجِبْ، اللَّهُ

---

[1]: صحيح مسلم/المساجد ٢٦ (٥٩٤)، سنن النسائي/السهو ٨٤ (١٣٤١)، (تحفة الأشراف: ٥٢٨٥) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٦٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٩/٤)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (١٠١) (ضعيف)

أَكْبَرُ الْأَكْبَرُ، اللَّهُمَّ نُورَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ، قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، رَبَّ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ، اللَّهُ أَكْبَرُ الْأَكْبَرُ، حَسْبِيَ اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ، اللَّهُ أَكْبَرُ الْأَكْبَرُ} " اې الله ! زمونږه ربه ! او د هر څيز ربه ! زهٔ ګواه يم چه تهٔ احد رب ئې، ستا هيڅ څوک شريک نشته دې . الله ! زمونږه ربه او د هر هر شئ ربه ! زهٔ ګواه يم چه محمد ﷺ ستا بنده او رسول دې، اې الله ! زمونږ ربه ! او د هر هر څيز ربه ! زهٔ ګواه يم چه ټول بندګان (د يو بل سره) رونړه دی . اې الله ! زمونږه ربه او د هر څيز ربه ! ما لره او زما اهل لره په هر ساعت کښې، په دنيا او آخرت کښې خپل مخلص اوګرځئ . اې د جلال او اکرام خاونده ! زما دُعا واورې او قبوله ئې کړې . الله د ټولو نه لوی دې، ډير زيات لوی، اې الله اد آسمانونو اود زمکې نور دې ...سليمان بن داود د نورپه ځائې باندې د رب ذکر کړې دې (يعنې) اې د آسمانونو اود زمکې ربه ... الله د ټولو نه لوی دې، ډير زيات لوی، ما لره الله کافی دې او هغه بهترين کار ساز دې . الله د ټولو نه لوی دې ډير زيات لوی ."

(۳) زيد بن ارقم رضی الله عنه فرمائي چه حضور (ﷺ) به د مانځه نه پس دا دعاء لوستله.

اللهم ربنا و رب كل شئ انا شهيد انک انت الرب وحدک لا شريک لک اللهم ربنا ورب كل شئ انا شهيد ان محمدا عبدک و رسولک اللهم ربنا و رب كل شئ انا شهيد ان العباد كلهم اخوة اللهم ربنا و رب كل شئ اجعلنى مخلصا لک و اهلى فى كل ساعة فى الدنيا يا ذالجلال والاكرام، اسمع واستجب الله اكبر الله اكبر اللهم نور السموت والارض، قال سليمان بن داؤد رب السموت والارض الله اكبر الله اكبر حسبى الله و نعم الوكيل الله اكبر الله اكبر (اخرجه النسائي والدار قطنى ايضا)

[۱۵۰۹] (¹) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَمِّهِ الْمَاجِشُونِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَلَّمَ مِنَ الصَّلَاةِ، قَالَ: "اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ، وَمَا أَسْرَفْتُ، وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ".

د حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه روايت دې هغه فرمائي چه رسول الله ﷺ به کله د مونځ نه سلام اوګرځوو نو دا به ئې فرمائيل : {اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا أَخَّرْتُ، وَمَا أَسْرَرْتُ وَمَا أَعْلَنْتُ، وَمَا أَسْرَفْتُ، وَمَا أَنْتَ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّي، أَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَأَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ} " اې الله ! ماته اوبخښې هغه تقصيرات، کوم چه ما وړاندې کړې دی، کوم چه ما ورستو کړې دی، کوم چه ما پټ کړې دی، او کوم چه ما ښکاره کړې دی او کوم چه ما د حد نه تجاوز کړې دې، او د کومو متعلق چه تهٔ زما نه زيات باخبر ئې، هم ته مقدم (مخکښې کوونکې) ئې او هم موٴخر (ورستو کوونکې) ئې . (د نيکئ توفيق ورکوې يا محروم کوې ئې ) ستا نه علاوه بل څوک معبود نشته دې ."

(٤) حضرت علی رضی الله عنه فرمائي چه نبی کريم ﷺ به د مانځه د سلام نه پس دا دعاء لوستله.

اللهم اغفرلى ما قدمت وما اخرت وما اسررت وما اعلنت وما اسرفت وما انت اعلم به منى انت المقدم والمؤخر لا اله الا انت (اخرجه مسلم ايضا والبخارى من حديث ابى موسى الاشعرى)

¹): انظر حديث رقم : ٧٦٠، (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٨) (صحيح)

[۱۵۱۰]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ طُلَيْقِ بْنِ قَيْسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو: "رَبِّ أَعِنِّي وَلَا تُعِنْ عَلَيَّ، وَانْصُرْنِي وَلَا تَنْصُرْ عَلَيَّ، وَامْكُرْ لِي وَلَا تَمْكُرْ عَلَيَّ، وَاهْدِنِي وَيَسِّرْ هُدَايَ إِلَيَّ، وَانْصُرْنِي عَلَى مَنْ بَغَى عَلَيَّ، اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي لَكَ شَاكِرًا لَكَ، ذَاكِرًا لَكَ، رَاهِبًا لَكَ، مِطْوَاعًا إِلَيْكَ مُخْبِتًا أَوْ مُنِيبًا، رَبِّ تَقَبَّلْ تَوْبَتِي، وَاغْسِلْ حَوْبَتِي، وَأَجِبْ دَعْوَتِي، وَثَبِّتْ حُجَّتِي، وَاهْدِ قَلْبِي، وَسَدِّدْ لِسَانِي، وَاسْلُلْ سَخِيمَةَ قَلْبِي".

دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی چه رسول الله ﷺ به دا دُعا لوستله : {"رَبِّ أَعِنِّي وَلَا تُعِنْ عَلَيَّ، وَانْصُرْنِي وَلَا تَنْصُرْ عَلَيَّ، وَامْكُرْ لِي وَلَا تَمْكُرْ عَلَيَّ، وَاهْدِنِي وَيَسِّرْ هُدَايَ إِلَيَّ، وَانْصُرْنِي عَلَى مَنْ بَغَى عَلَيَّ، اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي لَكَ شَاكِرًا لَكَ، ذَاكِرًا لَكَ، رَاهِبًا لَكَ، مِطْوَاعًا إِلَيْكَ مُخْبِتًا أَوْ مُنِيبًا، رَبِّ تَقَبَّلْ تَوْبَتِي، وَاغْسِلْ حَوْبَتِي، وَأَجِبْ دَعْوَتِي، وَثَبِّتْ حُجَّتِي، وَاهْدِ قَلْبِي، وَسَدِّدْ لِسَانِي، وَاسْلُلْ سَخِيمَةَ قَلْبِي} : "اې زما ربه! زما مدد اوکړې، زما خلاف دَ چا سره مد اونهٔ فرمائې، (کوم چه مالره ستا دَ اطاعت نه منع کوی.) زما نصرت اوفرمائې او زما خلاف دَ هیچا سره نصرت اونهٔ فرمائې، زما په حق کښې تدبیر اوفرمائې او زما خلاف تدبیر اونهٔ فرمائې . زما رهنمائی اوفرمائې او هدایت زما دَ پاره آسان اوفرمائې . او ځوک چه زما خلاف بغاوت کوی دَ هغوی په مقابله کښې زما مدد اوکړې . یا الله ! ماله خپل شکرګزار جوړ کړې، خپل ذکر کوونکې مې جوړ کړې، ستانه یریدونکی، ازحد اطاعت ګزار او ډیر زیات تواضع کوونکی مې جوړ کړې . اې زما ربه ! زما توبه قبوله کړې، زما خطاګانې اوینځې . زما زړهٔ ته هدایت اوفرمائې، (او په هدایت باندې ئې ثابت قدم اولرې) زما ژبې لره په حق باندې مستقیم اولرې او زما دَ زړهٔ نه خیرې (بغض، حسد ، او کینه وغیره) اوباسې."

(۵) حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائې چه حضور (ﷺ) به دا دعاء غوختله،

رب اعنی ولا تعن علی وانصرنی ولا تنصر علی وامکرلی ولا تمکر علی واهدنی و یسر هدای الی وانصرنی علی من بغی علی اللهم اجعلنی لک شاکرا، لک ذاکرا، لک راهبا، لک مطواعا، الیک مخبتا، او منیبا رب تقبل توبتی واغسل حوبتی، واجب دعوتی و ثبت حجتی واهد قلبی و سدد لسانی واسلل سخیمة قلبی (واخرجه الترمذی ایضا)

[۱۵۱۱]( ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ مُرَّةَ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "وَيَسِّرِ الْهُدَى إِلَيَّ" وَلَمْ يَقُلْ: هُدَايَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: سَمِعَ سُفْيَانُ مِنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَالُوا: ثَمَانِيَةَ عَشَرَ حَدِيثًا.

عمرو بن مره په خپل سند سره دَ مذکوره بالا هم معنیٰ بیان کړې دې او [وَيَسِّرِ الْهُدَى إِلَيَّ] ئې وئیلې دی [هدای] ئې نهٔ دی وئیلی.

[1]): سنن الترمذي/الدعوات ۱۰۳ (۳۵۵۱)، سنن ابن ماجه/الدعاء ۲ (۳۸۳۰)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (۶۰۷، ۶۰۸)، (تحفة الأشراف:۵۷۶۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲۷/۱) (صحيح)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف:۵۷۶۵) (صحيح)

[۱۵۱۲]( )حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمٍ الأَحْوَلِ، وَخَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا سَلَّمَ، قَالَ: "اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ".

د ام المؤمنین حضرت عائشې ﵂ نه منقول دی چه نبی کریم ﷺ به کله سلام اوګرځوو نو دا به ئې لوستل: {اللَّهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ} "اې الله ته (سراسر) سلامتي یې. او هم ستا نه سلامتي (حاصلیږي). ته د ډیرو برکتونو والا ئې اې د جلال او اکرام خاونده. امام ابوداود ﷫ فرمائي: چه سفیان د عمرو بن مره نه اوریدلي دي. او د محدثینو وینا ده چه هغوی ددۀ نه اتلس احادیث اوریدلي دي.

(٦) حضرت عائشه ﵂ فرمائي چه حضور (ﷺ) به د مانځه د سلام نه پس دا دعاء غوختله، اللهم انت السلام و منک السلام تبارکت یا ذا الجلال والاکرام،

**ترجمه**: اې الله تۀ د هر عیب او نقص نه پاک او محفوظ یې، او د آفات دنیوی او آخروی نه سلامتي هم ستا د طرف نه ده، ستا د طرف نه خیر او ښیګړه ښه ډیره او په کثرت سره ده، اې دعظمت او احسان والا، او د مسلم او ترمذي دروایت نه معلومیږي، چه دا دعاء به نبی کریم (ﷺ) قبلې ته مخامخ لوستله، او ددې نه مخکښې چه کوم حدیث په کتاب کښې راروان دې، یعنې حدیث ثوبان، په هغې کښې دومره زائد دې، چه نبی کریم (ﷺ) به ددې دعاء نه مخکښې درې ځله استغفار لوستلو، د مسلم په روایت کښې دی، چه د اوزاعی نه تپوس اوکړې شو، کیف الاستغفار نو هغوی اوفرمائیل: استغفرالله، استغفرالله.

[۱۵۱۳]( )حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ أَبِي عَمَّارٍ، عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ، عَنْ ثَوْبَانَ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنْصَرِفَ مِنْ صَلَاتِهِ "اسْتَغْفَرَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ"، ثُمَّ قَالَ: "اللَّهُمَّ". فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

د حضرت ثوبان ﵁ (دا ازاد کړې شوې غلام دې د رسول الله ﷺ) نه منقول دی چه نبی کریم ﷺ به کله د مونځ نه پاسیدو او تلل به ئې غوښتل نو درې ځله به ئې استغفار (استغفر الله) فرمائیل بیا به ئې د هغې نه پس فرمائیل: [ اللهم انت السلام ...... الخ ] او د حضرت عائشه ﵂ د حدیث په مثل ئې بیان کړو.

امام ترمذي یوه بله دعا ذکر کړې ده، فرمائي: وروی انه کان یقول سبحان ربک رب العزة عما یصفون و سلام علی المرسلین والحمد لله رب العالمین، (اخرجه ابویعلی الموصلی عن ابی هریرة ﵁ قال قلنا لابی سعید هل حفظت عن رسول الله (صلی الله علیه وسلم) شیئا کان یقول بعد ما سلم

[۱]: صحيح مسلم/المساجد ٢٦ (٥٩٢)، سنن الترمذي/الصلاة ١٠٩ (٢٩٨)، سنن النسائي/السهو ٨٢ (١٣٣٩)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٣٢ (٩٢٤)، (تحفة الأشراف:١٦١٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٦٢، ١٨٤، ٢٣٥)، سنن الدارمي/الصلاة ٨٨ (١٣٨٧) (صحيح)

[۲]: صحيح مسلم/المساجد ٢٦ (٥٩١)، سنن الترمذي/الصلاة ١٠٩ (٣٠٠)، سنن النسائي/السهو ٨١ (١٣٣٨)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٣٢ (٩٢٨)، (تحفة الأشراف:٢٠٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٧٥، ٢٧٩)، سنن الدارمي/الصلاة ٨٨ (١٣٨٨) (صحيح)

(٨) او صاحب مشكوة په باب الذكر بعد الصلوة كښې يو حديث دا هم ذكر كړې دې، عن سعد بن ابى وقاص انه كان يعلم بنيه هؤلاء الكلمات ويقول ان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) كان يتعوذ بهن دبر الصلوة اللهم انى اعوذبک من الجبن واعوذ بک من البخل واعوذ بک من ارذل العمر واعوذ بک من فتنة الدنيا وعذاب القبر، (رواه البخارى)
امام نووى رحمه الله په كتاب الاذكار كښې د مانځه نه پس دعاګانو كښې دا دعاګانې هم ذكر كړې دى، (٩) د كعب بن عجره رضي الله عنه نه روايت دې، چه حضور (صلى الله عليه وسلم) اوفرمائيل: معقبات لا يخيب قائلهن دبر كل صلوة، يعنى هغه كلمات چه دهغې لوستونكې ناكامه كيږى نه، د هر فرض مانځه نه پس ٣٣ كرته سبحان الله، ٣٣ كرته الحمد لله، ٣۴ كرته الله اكبر.
(١٠) عقبه بن عامر رضي الله عنه فرمائي چه نبى كريم (صلى الله عليه وسلم) ماته حكم اوفرمائيلو ددې خبرې، چه د هر مانځه نه پس دې زۀ معوذتين لولم، او په يو روايت كښې بالمعوذات دې (دجمع صيغې سره) لهذا مناسب دى، چه دې دواړو سورتونوسره قل هو الله احد هم شامل كړى، قاله النووى.
(١١) د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دې، چه يوه ورځ نبى كريم (صلى الله عليه وسلم) زما لاس اونيولو، او راته ئې اوفرمائيل والله انى لاحبک، او بيا ئې دا اوفرمائيل چه زۀ تاته وصيت كوم، چه دې دعاء لره د مانځه نه پس چرې هم پرېږده، اللهم اعنى على ذكرک و شكرک و حسن عبادتک (دا آخرى دواړه احاديث ددې كتاب په آئنده باب كښې راروان دى،
(١٢) د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې، چه حضور (صلى الله عليه وسلم) به مونځ پوره كيدو نه پس ښې لاس په تندى باندې كيخودو، او دا دعاء ئې لوستله، اشهد ان لا اله الا الله الرحمن الرحيم اللهم اذهب عنى الهم والحزن (١٣) د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې، چه نبى كريم (صلى الله عليه وسلم) به د مانځه نه فارغيدو نه پس دا دعاء لوستله، اللهم اجعل خير عمرى آخره و خير عملى خواتمه، واجعل خير ايامى يوم القاک (١٤) د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه نه روايت دې، چه نبى كريم (صلى الله عليه وسلم) به د مانځه نه پس دا دعاء لوستله، اللهم انى اعوذبک من الكفر والفقر وعذاب القبر، (دې دريو واړو احاديثو لره ابن السنى روايت كړې دې)

## بحث رابع: (دفرض مونځ نه پس په هيئت اجتماعى او رفع يدين سره دعا ثابت ده كه نه؟)

خلاصه ددې داده، چه د فرض مانځه نه پس بعد السلام رفع يدين سره دعاء كول د بعضې احاديث مرفوعه نه ثابت ده، چه دهغې تحقيق او حواله مخكښې مضمون كښې انشاء الله راروان دى، چه ظاهره خبره ده، دهغې د استحباب دپاره كافى ده، په دې باندې حضرت مولانا محمد يوسف بنورى رحمه الله په معارف السنن كښې كلام فرمائيلې دې، او ددې سلسلې روايات ئې مع حواله په كتاب مذكور كښې جمع كړې دى، او دغه شان مولانا عبدالرحمن مباركپورى (مشهور اهل حديث) هم په تحفة الاحوذى شرح ترمذى كښې دغه روايات سره د سند نه ذكر كړې دى، او د بحث په ابتداء كښې هغوى دا ليكلې دى، چه د علماء اهل حديث په دې كښې اختلاف دې، چه د فرض مانځه نه پس رفع يدين سره د امام

او مقتديانو يو ځائې دعاء کول ثابت دي او که نه؟ يو جماعت دې ته بدعت وائي، چه چرته په صحيح حديث کښې د حضور (ﷺ) نه دا ثابت نه دی، او يو جماعت د جواز قائل دې، او هغې خلقو د پنځو احاديثو نه استدلال کړې دې:

١) عن ابی هريرة رضی الله عنه ان رسول الله (صلی الله عليه وسلم) رفع يديه بعد ما سلم وهو مستقبل القبلة فقال اللهم خلص الوليد بن الوليد وعياش بن ابی ربيعة و سلمة بن هشام الخ، (ذکره الحافظ ابن کثير فی تفسيره ص١٧٢، نقلا عن ابن ابی حاتم وابن جرير بسنديهما قلت و فی سنده علی بن زيد بن جدعان وهو متکلم فيه)

٢) عن محمد بن يحيی الاسلمی قال رايت عبدالله بن الزبير وراى رجلا رافعا يديه قبل ان يفرغ من صلوة فلما فرغ منهما قال ان رسول الله (صلی الله عليه وسلم) لم يکن يرفع يديه حتی يفرغ من صلوته، (ذکره السيوطی فی رسالته فض الوعاء وقال رجاله ثقات قلت و ذکره الحافظ الهيثمی فی مجمع الزوائد وقال رواه الطبرانی و رجاله ثقات انتهی.

٣) حديث انس عن النبی (صلی الله عليه وسلم) انه قال ما من عبد بسط کفيه فی دبر کل صلوة ثم يقول اللهم الهی واله ابراهيم واسحق و يعقوب واله جبرئيل و ميکائيل واسرافيل اسالک ان تستجيب دعوتی فانی مضطر و تعصمنی فی دينی فانی مبتلی و تنالنی برحمتک فانی مذنب و تنفی عنی الفقر فانی متمسکن، الا کان حقا علی الله ان لا يرد يديه خائبين (اخرجه الحافظ ابوبکر ابن السنی فی عمل اليوم والليلة) (قال صاحب التحفة) قلت فی سنده عبدالعزيز بن عبدالرحمن القرشی قال فی الميزان اتهمه احمد وقال النسائی وغيره ليس بثقة ، ١هـ .مختصرا.

٤) حديث الاسود بن عبدالله العامری عن ابيه قال صليت مع رسول الله (صلی الله عليه وسلم) الفجر فلما سلم انحرف و رفع يديه و دعا، قال صاحب معارف السنن اخرجه ابن ابی شيبه فی مصنفه والاسود هذا ابن عبدالله بن حاجب بن عامر من رجال ابی داؤد ذکره الحبان فی الثقات وقال الذهبی محله الصدق کما فی التهذيب. ١هـ

٥) ما اخرجه الطبرانی فی الکبير عن ابن عباس، وفی الاوسط عن ابن عمر رضی الله عنهما قال صلی رسول الله (صلی الله عليه وسلم) الفجر ثم اقبل علی القوم فقال اللهم بارک لنا فی مدينتنا و بارک لنا فی مدنا و صاعنا، ذکرها السمهودی فی الوفاء ج١ص٣٧، و رجالهما ثقات کما قاله (کذا فی معارف السنن ج٣ص١٢٣) ليکن په دې آخری روايت کښې د رفع يدين تصريح نشته، ليکن ظاهر هم دا معلوميږی، چه دا دعاء هم رفع يدين سره وه، ځکه چه د مانځه نه پس خلقو ته متوجه کيدلو سره وه، او په دعاء کښې رفع يدين د آداب دعاء نه دی.

صاحب تحفه ليکلی دی، چه د جواز قائلينو د عموماتو نه هم استدلال کړې دې، چه د صلوة مکتوبه نه پس دعاء کول مندوب او مرغب فيه ده، (قاله الحافظ فی الفتح اخرج الطبرانی من رواية جعفر بن محمد الصادق قال الدعاء بعد المکتوبة افضل من الدعاء بعد النافلة کفضل المکتوبة علی النافلة) او د نبی کريم (ﷺ) نه دعاء بعد المکتوبه ثابت هم ده، او رفع يدين مستقل د آداب دعاء نه دې، نو د حضور (ﷺ) نه په ډيرو احاديثو کښې رفع يدين فی الدعاء ثابت دې، او بعد المکتوبه رفع يدين فی الدعاء نه منع په هيڅ يو حديث کښې ثابت نه ده، بلکه د رفع ثبوت موجود دې.

صاحب تحفة الاحوذی ددې سلسلې روایات حدیثیه او په هغې باندې جرح او تعدیل ذکر کولو نه پس په اخره کښې لیکلې دی، چه په دې باندې د علامه سیوطی رحمه الله یوه مستقله رساله هم شته، فض الوعاء فی احادیث رفع الیدین فی الدعاء، او قول راجح زما په نزد دادې، چه رفع یدین فی الدعاء بعد الصلوة جائز دې، په دې کښې هیڅ حرج نشته، انشاء الله تعالی، والله تعالی اعلم، لیکن په دې باندې شدت سره مواظبت کول د امر واجب پشان، او په پریخودونکې باندې نکیر کول صحیح نه دی، انتهی کلامه.

هم دغه شان د حضرت مولانا الحاج الشاه اشرف علی تهانوی نور الله مرقده هم په دې کښې یو مستقل رساله په عربی کښې شته، استحباب الدعوات عقیب الصلوت، چه په اصل کښې تلخیص دې د یو مالکی عالم د تالیف "مسلک السادات الی سبیل الدعوات" چه دهغې ترجمه حضرت مولانا مفتی محمد شفیع رحمه الله کړې ده، چه د امداد الفتاوی جلد اول په آخر کښې ملحق ده، د اصل رسالې تالیف په سنه ۱۳۲۱ هـ کښې اوشو، او حضرت تهانوی رحمه الله دهغې تلخیص په سنه ۱۳۵۴ هـ کښې اوکړو، دهغې په خطبه کښې حضرت تهانوی رحمه الله لیکلې دی: په مسلک السادات الی سبیل الدعوات کښې عموما د احکام دعاء د تحقیق، او بالخصوص د دعاء مستحب کیدل د هر منفرد او امام او جماعت دپاره (د احادیث معتبره او د مذاهب اربعه د روایات فقهیه نه) ثابت ده، ما دهغې رسالې خلاصه اولیکله، دې دپاره چه دهغې بې باک خلقو ژبه بنده شی، چه د مانځه نه پس دعاء کولو باندې د بدعت حکم لګوی، احقر دهغې رسالې نه په دې پوهه شوې دې، چه رفع یدین سره دعاء بعد المکتوبه د بعضو صحیح احادیثو نه ثابت ده، یعنی احیاناً، او په هغې باندې مداومت او مواظبت د امت د تعامل او توارث (په هغې رساله کښې د استصحاب حال لفظ دې) نه ثابت دی، او د ټولو مذاهب اربعه په کتب فقهیه کښې دهغې ثبوت ملاویږی، والله تعالی اعلم، الحمد لله علی احسانه مباحث اربعه پوره شو، نسال الله التوفیق لنا وللمسلمین و نسال الله ربنا رضاه والجنة آمین والحمد لله رب العالمین.

## بَابٌ فِي الاسْتِغْفَارِ

### باب: ۳۶- د استغفار بیان

[۱۵۱۴] (١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ وَاقِدٍ الْعُمَرِيُّ، عَنْ أَبِي نُصَيْرَةَ، عَنْ مَوْلًى لِأَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَصَرَّ مَنِ اسْتَغْفَرَ، وَإِنْ عَادَ فِي الْيَوْمِ سَبْعِينَ مَرَّةً".

د سیدنا ابو بکر صدیق رضی الله عنه نه مروی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چا چه استغفار اختیار کړو هغهٔ دَ مُصر (دَ اصرار کوونکو) خلقو نه نهٔ دې، اګر کهٔ په یو ورځ کښې اویا کرته دَ ګناه اعاده اوکړی.

**تشریح: قوله:** عن ابی بکر ن الصدیق قال قال رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ما اصر من استغفر

(١) سنن الترمذي/الدعوات ١٠٧ (٣٥٥٩)، (تحفة الأشراف:٦٦٢٨) (ضعيف)

وان عاد فی الیوم سبعین مرة: قلت و اخرجه ایضا الترمذی وقال حدیث غریب انما نعرفه من حدیث ابی نصیرة ۱ هـ، په اصل کښې اصرار علی المعصیة (یوه ګناه بار بار کول) ډیر سخت څیز دې، اګر که هغه معصیت صغیره ولې نه وی، او کومه ګناه چه کله کله صادریږی، هغه اګر که کبیره ولې نه وی، دومره سخته نه ده، لیکن په دې حدیث کښې نبی کریم (ﷺ) دا فرمائی، چه استغفار دومره مؤثر څیز دې، چه هغه اصرار علی المعصیت لره هم بې اثره او کالعدم کوی، حضرت په بذل کښې لیکلې دی، چه د استغفار نه مراد صرف تلفظ باستغفرالله نه دې، بلکه ندامت سره توبه کول مراد دی، ځکه چه د توبې او استغفار تحقق بغیر د ندامت نه کیدې نشی، ددې حدیث نه معلومه شوه، چه که څه ګناه د توبې نه پس هم صادره شی، یا صادریږی، نو بیا هم په دې خیال باندې توبه پریښودل نه ده پکار، چه د داسې توبې نه څه فائده؟ توبه په هر حال کښې فائده منده ده، لکه چه خپله په دې حدیث کښې ذکر دی، مقصود ددې حدیث نه دادی، چه د ګناهونو د کثرت باوجود د الله تعالی د رحمت نه مایوسه کیدل پکار نه دی، او دا مطلب نه دې، چه بار بار ګناه کوه، او بیا روستو توبه او استغفار کوه، توبه خو هله توبه وی، چه کله د آئنده نه کولو پخه اراده وی، بیا ددې باوجود هم که ګناه صادره شی، نو دوباره استغفار کول پکار دی، په حدیث کښې دی: لولا انکم تذنبون لخلق الله خلقا یذنبون و یغفرلهم (رواه الترمذی عن ابی ایوب مرفوعا) ددې حدیث نه مقصود هم ترغیب فی الاستغفار دې وفی حدیث آخر کلکم خطاؤن و خیر الخطائین التوابون.

عن الاغر المزنی رضی الله عنه قال قال رسول الله (صلی الله علیه وسلم) انه لیغان علی قلبی وانی لاستغفر الله فی کل یوم مائة مرة، قلت والحدیث اخرجه ایضا مسلم وروی مسلم عن بن عمر ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) قال یا ایها الناس توبوا الی الله فانی اتوب الیه فی یوم مائة مرة.

[۱۵۱۵] (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنِ الْأَغَرِّ الْمُزَنِيِّ، قَالَ مُسَدَّدٌ فِي حَدِيثِهِ، وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلْبِي وَإِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ فِي كُلِّ يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ".

د حضرت اغر مزنی رضی الله عنه نه مروی دی ... د مسدد په روایت کښې دی چه دوی ته شرف صحبت حاصل وو ... چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " زما په زړهٔ باندې هم پرده غوندې راځی او زهٔ د الله هره ورځ سل ځله استغفار کووم. "

## شرح حدیث:

انه لیغان علی قلبی، غین بمعنی غیم (وریځ) زما زړهٔ خیرن کیږی، یعنی بعضې حاجات و ضروریات بشریه کښې مشغول کیدلو د وجې نه، او یا توجه الی الخلق او په مصالح امت کښې مشغول کیدلو د وجې نه زما د زړهٔ دا حالت شی (کوم چه په حدیث کښې ذکر دې) حالانکه په دې دواړو کښې د اول خو کم ازکم مباح درجه ده، او ثانی خو عین عبادت دې، لیکن ظاهره خبره ده، چه د توجه الی الحق جل وعلا په مقابله کښې د توجه الی الخلق درجه

(۱): صحیح مسلم/الذکر والدعاء ۱۲ (۲۷۰۲)، سنن النسائي/ في الیوم واللیلة (٤٤٢)، (تحفة الأشراف:۲۱٦۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۲۱۱، ۲٦۰، ٥/٤۱۱) (صحیح)

کمه ده، اګرچه هغه هم اوچت عبادت دې، بلکه د نبی کریم (ﷺ) فرض منصبی دې.
ما د حضرت شیخ نه اوریدلې دی، چه حضرت مولانا محمد الیاس صاحب نورالله مرقده به فرمائیل، چه عوامو او هرقسم خلقو سره ملاویدلو او خبرو اترو کولو کښې ډیر زیات وخت لګی، چه هغې سره بعضې وخت کښې په زړهٔ کښې یو قسم تنګی او دروندوالې محسوسیږی، چه بیا روستو په ذکر او مراقبې سره لرې شی، او ظاهره خبره ده، چه څومره زړهٔ او باطن صاف او شفاف وی، هغومره زر به په هغې باندې د دورې اثر ښکاره کیږی، څومره چه کپړه سپینه او صفا وی، هغومره په هغې باندې خیرن والې ښکاره کیږی، او د حضور (ﷺ) د باطن د صفایئ به څه وائې.
په بذل کښې د حضرت ګنګوهی رحمه الله د تقریر نه نقل کړې دی، و کان ترقیه کل لحظة یریه ان السابق منه کان معصیة و منقصة، یعنی حضور اکرم (ﷺ) هر وخت او هر ساعت په باطنی او روحانی ترقۍ باندې وو، (کما قال الله تعالی و للآخرة خیر لک من الاولی) نو ددې ترقۍ د وجې نه به چه هغوی کومې درجې ته اورسیدل، نو دهغې نه لاندې درجې تصور به چه کله هغوی ته راتلو، نو هغه به ئې په خپل حق کښې تقصیر ګڼړلو، او په هغې باندې به ئې استغفار فرمائیلو، او په عون المعبود کښې دی، علامه سیوطی رحمه الله فرمائي چه دا حدیث د هغې متشابهاتو نه دې، چه دهغې معنی معلومه نه ده، او اصمعی امام لغت ددې حدیث په تفسیر باندې اودریدو، او وې فرمائیل، چه که ددې تعلق د حضور (ﷺ) د زړه نه علاوه د بل چا زړه سره وو، نو ما به په دې باندې کلام کړې وو، علامه سندهی رحمه الله هم دا لیکلې دی، چه د حضور (ﷺ) د قلب اطهر په وجه ددې کلام حقیقت معلوم نه دې، د حضور (ﷺ) مرتبې پورې د چا وهم او ګمان رسیدلې شی، بس دومره وئیلې شی، چه هغوی ته به څه داسې حالت پیښیدو، چه استغفار طرف ته به داعی وو، چه په هغې باندې به هغوی هره ورځ استغفار کولو، نو بیا د نورو خلقو څه حال پکاردې، والله تعالی اعلم.

[١٥١٦]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ مِغْوَلٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوقَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "إِنْ كُنَّا لَنَعُدُّ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَجْلِسِ الْوَاحِدِ مِائَةَ مَرَّةٍ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَتُبْ عَلَيَّ إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ".

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه بیان کوی بې شکه مونږ به شمیر کولو چه رسول الله ﷺ به په یو یو مجلس کښې سل ځله دا کلمات فرمائیل: {رَبِّ اغْفِرْ لِي وَتُبْ عَلَيَّ إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ} " اې زما ربه ! ما لره اوبخښې او (په خپل رحمت سره) زما طرف ته رجوع اوفرمائې . بې شکه تهٔ د تولو نه زیات رجوع فرمائیلو والا او رحم کوونکی ئې ".
عن ابن عمر رضی الله عنه قال ان کنا لنعد لرسول الله (صلی الله علیه وسلم) فی المجلس الواحد مائة مرة رب اغفرلی و تب علی انک انت التواب الرحیم.
په یو مجلس کښې به مونږ د حضور (ﷺ) استغفار سل کرته شمارلو، په دې کښې د کثرت

[1]: سنن الترمذي/الدعوات ٣٩ (٣٤٣٤)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (٤٥٨)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥٧ (٣٨١٤)، (تحفة الأشراف: ٨٤٢٢) وقد أخرجه: مسند احمد (٢١/٢) (صحيح)

استغفار ترغیب دې، چه هرکله نبی کریم (ﷺ) معصوم وو، او دهغې باوجود به هغوی دومره په کثرت سره استغفار فرمائیلو، نو زمونږ څه حال کیدل پکار دی، د استغفار دا کثرت به هغوی د تعلیم امت دپاره، او د فسبح بحمد ربک واستغفره د امتثال دپاره فرمائیلو، ددې حدیث نه دا هم مستفاد کیږی، چه نبی کریم (ﷺ) به استغفار احیانا آواز سره هم لوستلو، ځکه خو نورو خلقو شمارلو.

ما د خپل یو پخواني استاذ نه اوریدلي دی، چه زهٔ گنگوه کښې د حضرت گنگوهی رحمه الله په خدمت کښې دهغوی د وصال نه څو میاشتې مخکښې حاضر شوم، نو هغه وخت ما اولیدل، چه گنگوهی صیب په خانقاه شریف کښې په کټ کښې تشریف فرما وو، او بالجهر ئې استغفار لوستلو، دا واقعه ما د عبرت دپاره لیکلې ده، چه اوگورئ، اول خو خپله سرور کائنات (ﷺ) د استغفار څومره اهتمام فرمائې، او بیا دغه شان زمونږ اکابر، بلکه د اکابرو اکابر، والله الموفق لما یحب و یرضی، باقي د استغفار معنی معافي غوختل دی، لکه چه یو مجرم د حاکم مخکښې حاضر شی، او د خپل جرم اعتراف کولو نه پس معافي غواړی، او که په استغفار کښې دا حالت نه وی، صرف زباني وی، نو بیا دا استغفار په خپله گناه ده، چه دهغې دپاره د یو بل استغفار ضرورت دې، لکه رابعه بصریه فرمائي : استغفارنا یحتاج الی استغفارات کثیرة (الحصن الحصین)

[۱۵۱۷](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ بْنِ مُرَّةَ الشَّنِّيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي عُمَرُ بْنُ مُرَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ بِلَالَ بْنَ يَسَارِ بْنِ زَيْدٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُنِيهِ، عَنْ جَدِّي، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ قَالَ: أَسْتَغْفِرُ اللَّهَ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ، غُفِرَ لَهُ وَإِنْ كَانَ قَدْ فَرَّ مِنَ الزَّحْفِ".

حضرت زید رضی الله عنه (ازاد کرده غلام د نبی کریم ﷺ) د نبی کریم ﷺ نه اوریدلي دی : کوم کس چه دا وائی {أَسْتَغْفِرُ اللَّهَ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ} نو هغه ته بخشش کولې شی اگر کهٔ هغه د جهاد نه تښتیدلې هم وی ."

[۱۵۱۸](۲) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ مُصْعَبٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ لَزِمَ الِاسْتِغْفَارَ، جَعَلَ اللَّهُ لَهُ مِنْ كُلِّ ضِيقٍ مَخْرَجًا، وَمِنْ كُلِّ هَمٍّ فَرَجًا، وَرَزَقَهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ".

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل " چاچه د استغفار التزام اوکړو، الله تعالی به د هغه د پاره د هرې تنگئ نه د وتلو لاره او د هر غم نه د راحت سامان پیدا کړی . او دداسې داسې مقاماتو نه به رزق مهیا کوی چه هغه به ددهٔ په وهم او گمان کښې هم نهٔ وی .

۱): سنن الترمذي/الدعوات ۱۱۸ (۳۵۷۷)، (تحفة الأشراف:۳۷۸۵) (صحيح)
۲): سنن النسائي/اليوم والليلة (۴۵۶)، سنن ابن ماجه/الأدب ۵۷ (۳۸۱۹)، (تحفة الأشراف:۶۲۸۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۴۸) (ضعيف)

[۱۵۱۹]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ. ح حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ الْمَعْنَى، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، قَالَ: سَأَلَ قَتَادَةُ أَنَسًا: أَيُّ دَعْوَةٍ كَانَ يَدْعُو بِهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثَرَ؟ قَالَ: "كَانَ أَكْثَرُ دَعْوَةٍ يَدْعُو بِهَا: اللَّهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ". وَزَادَ زِيَادٌ: وَكَانَ أَنَسٌ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ بِدَعْوَةٍ دَعَا بِهَا، وَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ بِدُعَاءٍ دَعَا بِهَا فِيهَا.

عبد العزيز بن صهيب بيان کوی چه حضرت قتاده د حضرت انس رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به کومه دعا زياته کووله؟ هغوی اوفرمائيل هغوی صلی الله علیه وسلم به اکثر دا دعا زياته کووله: { اللَّهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ } ؛اې الله ! اې زمونږه ربه! مونږ ته په دنيا کښې هر قسم خير عنايت اوفرمائې او په آخرت کښې هم جمله حسنات مونږ ته عنايت اوفرمائې، او د اور د عذاب نه مو محفوظ کړې . زياد مزيد وئيلي دی چه حضرت انس رضی الله عنه به کله څۀ دُعا کول غوښتل نو هم په دې الفاظو سره به ئې دُعا کووله او کله چه به ئې څۀ (خاص) دُعا کووله نو په هغې کښې به ئې دا هم شاملوله.

سال قتادة انسا ای دعوة کان يدعو بها النبی (صلی الله عليه وسلم) اکثر: د حضرت انس رضی الله عنه نه سوال اوکړې شو، چه حضور اکرم (صلی الله علیه وسلم) به کومه دعا په کثرت سره غوختله، نو هغوی جواب ورکړو، چه زيات تر به هغوی دا دعا غوختله: اللهم آتنا فی الدنيا حسنة و فی الآخرة حسنة و قنا عذاب النار، زياد راوی وائی، چه د حضرت انس رضی الله عنه معمول دا وو، چه که هغه به مختصر شان صرف يوه دعا غوختله، نو په دې دعاء باندې به ئې اکتفاء کوله، او که ډير دعاګانې به ئې غوختلې، نو نورو دعاګانو سره به هغوی دا دعاء هم ضرور لوستله، دا دعاء ډيره جامع ده، حضرت امام بخاری رحمه الله په دې دعاء باندې مستقل باب قائم کړې دې، باب قول النبی (صلی الله عليه وسلم) ربنا آتنا فی الدنيا حسنة، دا مخکښې تير شوې دی، چه د قرآن مجيد په دعاګانو کښې د ټولو نه زياته جامع دعا هم داده، او د حديث په دعاګانو کښې د ټولو نه جامع دعاء هغه ده، چه د حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه مروی ده، چه دلته په باب الدعاء کښې تيره شوې ده، د حسنة په تفسير کښې ډير اقوال دی، د تفسير په کتاب کښې کتل پکار دی.

[۱۵۲۰]([2])حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَأَلَ اللَّهَ الشَّهَادَةَ صَادِقًا بَلَّغَهُ اللَّهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ".

ابوامامه بن سهل بن حنيف د خپل پلار نه روايت کوی هغه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: کوم شخص چه په رښتونی زړۀ سره د شهادت سوال اوکړو الله تعالیٰ به هغۀ لره د شهادت منازلو ته رسوی اګر کۀ هغۀ ته په خپله بستره باندې مرګ راشی.

[1]): صحيح مسلم/الذكر والدعاء ۷ (۲۶۹۰)، سنن النسائي/عمل اليوم والليلة ۳۰۷ (۱۰۵۶)، (تحفة الأشراف:۹۹٦، ۱۰٤۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تفسير البقرة ۳٦ (٤٥۲۲)، والدعوات ٥٥ (٦۳۸۹)، مسند احمد (۳/۱۰۱) (صحيح)

[2]): صحيح مسلم/الإمارة ٤٦ (۱۹۰۹)، سنن الترمذي/الجهاد (۱٦٥۳)، سنن النسائي/الجهاد ۳٦ (۳۱٦۲)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۱٥ (۲۷۹۷)، (تحفة الأشراف:٤٦٥٥)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الجهاد ۱٦ (۲٤٥۱) (صحيح)

[۱۵۲۱]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ الثَّقَفِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيعَةَ الْأَسَدِيِّ، عَنْ أَسْمَاءَ بْنِ الْحَكَمِ الْفَزَارِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: كُنْتُ رَجُلًا إِذَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثًا نَفَعَنِي اللَّهُ مِنْهُ بِمَا شَاءَ أَنْ يَنْفَعَنِي، وَإِذَا حَدَّثَنِي أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِهِ اسْتَحْلَفْتُهُ، فَإِذَا حَلَفَ لِي صَدَّقْتُهُ، قَالَ: وَحَدَّثَنِي أَبُو بَكْرٍ، وَصَدَقَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَا مِنْ عَبْدٍ يُذْنِبُ ذَنْبًا فَيُحْسِنُ الطُّهُورَ، ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ يَسْتَغْفِرُ اللَّهَ إِلَّا غَفَرَ اللَّهُ لَهُ، ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ: وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ سورة آل عمران آیه ۱۳۵ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ".

سیدنا علی رضي الله عنه بیان کوي چه زهٔ داسې کس ووم چه کله به ما د نبی کریم ﷺ نه حدیث واوریدو نو الله تعالیٰ به چه د هغې نه څه غوښتل فائده به ئي ترینه راکوله . او کله چه به یو بل صحابی رضي الله عنه حدیث بیانولو، نو ما به د هغه نه قسم اخستلو او کله چه به هغه قسم اوخوړو نو ما به د هغه تصدیق کولو . فرمائی چه ما ته حضرت ابوبکر رضي الله عنه حدیث بیان کړو او هغوی رښتیا اووې، هغوی اوفرمائیل . چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل هغوی ﷺ فرمائیل : هیڅ یو بنده داسې نشته دې چه هغه څهٔ ګناه اوکړی، بیا اودس اوکړی په ښهٔ شان سره، بیا اودریږی او دوه رکعته مونځ اوکړی او د الله تعالیٰ نه استغفار اوکړی، مګر الله تعالیٰ هغه لره معاف کوی . بیا حضور ﷺ دا آیت تلاوت اوفرمائیلو . {وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ} إِلَى آخِرِ الْآيَةِ]آل عمران :۱۳۵[-} " متقیان هغه خلق دی کهٔ چرې کله د څهٔ بې حیائۍ کار اوکړی یا په خپلو ځانونو باندې څهٔ ظلم اوکړی، نو الله لره یاده وی او د خپلو ګناهونو معافی غواړی . او د الله تعالیٰ نه سوا بل څوک دې چه هغه معافی اوکړی . او دا خلق سره د پوهې نه په قصد باندې دا نهٔ کوی او نهٔ اصرار کوی . "

عن اسماء بن الحکم قال سمعت علیا رضي الله عنه.........و حدثنی ابوبکر و صدق ابوبکر:

یعنی ما ته دهغه د صدق پوره اعتقاد دې، (ددې وجې نه دهغه نه قسم نه شو اخستلې)

## صلوة التوبه او صلوة الحاجة :

په دې حدیث باندې امام ترمذی ترجمه قائمه کړې ده، "باب الصلوة عند التوبة" او فرمائیلي دی، هذا حدیث حسن لا نعرفه الا من هذا الوجه. ١ هـ.

هم دغه شان امام ترمذی یو بل باب قائم کړې دې، باب ما جاء فی صلوة الحاجة، او په هغې کښې امام ترمذی د حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه حدیث ذکر کړې دې، په هغې کښې دادی، چه حضور (ﷺ) ارشاد اوفرمائیلو کوم سړې ته چه څه خاص حاجت وی، الله تعالی طرف ته، یا د هغه یوبنده طرف ته، نو هغه لره پکار دی، چه په ښه شان سره اودس اوکړی، بیا دوه رکعته مونځ اوکړی، دهغې نه پس د الله تعالی حمد او ثنا او درود شریف اولولی، او بیا دا دعا اولولی، لااله الا الله الحلیم الکریم سبحان الله رب العرش العظیم والحمد لله رب العالمین، اسالک موجبات رحمتک و عزائم مغفرتک والغنیمة من کل بر والسلام من کل اثم لا تدع لی ذنبا الا غفرته ولا هما الا فرجته ولا حاجة هی لک رضی الا قضیتها یا ارحم الراحمین.

---

[1]): سنن الترمذي/الصلاة ١٨٢ (٤٠٦)، وتفسير آل عمران ٤ (٣٠٠٦)، سنن النسائي/اليوم والليلة (٤١٤، ٤١٥، ٤١٦)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٩٣ (١٣٩٥)، (تحفة الأشراف: ٦٦١٠)، وقد أخرجه: مسند أحمد (١/٢، ٨، ٩، ١٠) (صحيح)

[۱۵۲۲] (¹) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ الْمُقْرِءُ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عُقْبَةَ بْنَ مُسْلِمٍ، يَقُولُ: حَدَّثَنِي أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيُّ، عَنِ الصُّنَابِحِيِّ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ بِيَدِهِ، وَقَالَ: "يَا مُعَاذُ، وَاللَّهِ إِنِّي لَأُحِبُّكَ، وَاللَّهِ إِنِّي لَأُحِبُّكَ، فَقَالَ: أُوصِيكَ يَا مُعَاذُ لَا تَدَعَنَّ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ تَقُولُ: اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ"، وَأَوْصَى بِذَلِكَ مُعَاذٌ الصُّنَابِحِيَّ، وَأَوْصَى بِهِ الصُّنَابِحِيُّ أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ.

د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه نه منقول دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ددوی لاس اونیولو اووې فرمائیل: اې معاذ! قسم په الله باندې! زما تاسره محبت دې. " بیا ئې اوفرمائیل: اې معاذ! زهٔ تاته وصیت کووم چه دَ هر یو مونځ نه پس دا دُعا ترک نهٔ کړې: {اللَّهُمَّ أَعِنِّي عَلَى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ}" اې الله په خپل ذکر کولو، شکر ادا کولو او په بهترین انداز کښې دَ عبادت کولو زما مدد اوکړې. چنانچه حضرت معاذ رضی الله عنه دا وصیت (خپل شاگرد) صنابحی ته اوکړو اوبیا صنابحی داوصیت (خپل شاگرد) ابوعبد الرحمن ته اوکړو.

**تشریح: قوله**: عن الصنابحي عن معاذ بن جبل ان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) اخذ بيده وقال يا معاذ والله اني لاحبك........واوصى بذلك معاذ الصنابحي،

په منهل کښې لیکلي دی، چه په دې آخری جمله کښې اشاره ده دې طرف ته، چه دا حدیث مسلسل دې، ¹ هـ، زهٔ وایم، صرف دې سره خو تسلسل نه ثابتیږی، اگر چه دا صحیح ده، چه دا حدیث د خپلو بعضو طرقو په اعتبار سره مسلسل دې.

## الحدیث المسلسل او دهغې تعریف:

حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله دې حدیث لره په خپله رساله "الفضل المبين في المسلسل من حديث النبي الامين" کښې ذکر فرمائیلې دې، او په دې حدیث کښې تسلسل په دې خبره کښې دې، چه څرنگه حضور (صلی الله علیه وسلم) دا حدیث حضرت معاذ رضی الله عنه ته انا احبک فقل فرمائیلو سره واؤرولو، دغه شان حضرت معاذ رضی الله عنه خپل شاگر صنابحی (عبد الرحمن بن عیله) ته دا حدیث انا احبک فقل سره واؤرولو، او بیا دغه شان صنابحی خپل شاگرد ته دا حدیث هم په دې جملې (انا احبک فقل) سره واؤرولو، وهكذا الى آخره، تردې پورې چه حضرت شاه ولی الله رحمه الله ته خپل استاذ شیخ ابوطاهر مدنی دا حدیث دغه شان واؤرولو، بیا د شاه صاحب نه لاندې هم دا سلسله دغه شان روانه وه، حتی چه مونږ هم د خپل استاذ شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا کاندهلوی قدس سره نه دا حدیث په سنه ۱۳۷۹هـ کښې، چه زما د مشکوة کال وو، دغه شان واؤریدو.

احادیث مسلسل په کثرت سره دی، او بعضې په هغې کښې داسې دی، چه دهغې تسلسل ناقص دې، په مینځ کښې منقطع شوې دې، لکه الحديث المسلسل بالاولية چه دهغې تسلسل په سفیان بن عیینه باندې نه دې، دهغې نه مخکښې صحابی پورې نشته، او دا هم ضروری

¹): سنن النسائي/السهو ٦٠ (١٣٠٤)، وعمل اليوم والليلة ٤٦ (١٠٩)، (تحفة الأشراف: ١١٣٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٤/٥، ٢٤٥، ٢٤٧) (صحيح)

ده، چه يو حديث د يو شيخ د سند په اعتبار سره مسلسل وي، هغه به د نورو اسانيدو په اعتبار سره هم مسلسل وي، پس دا حديث دمعاذ د ابوداؤد دسند په اعتبار سره مسلسل نه دي.
او حديث مسلسل هغه دي، چه دهغي د سند ټول رواة په يو خاص صفت کښې مشترک وي، يا چه د سند ټولو راويانو د يو خاص څيز التزام کړې وي، دهغې خاص صفت تعلق که د الفاظو اداء سره وي، لکه هر راوي د روايت په وخت کښې داسې اوائي، حدثني فلان قال سمعت فلانا، د ابتداء سند نه آخره پورې، يا د راوي څه حالت سره دهغې تعلق وي، که هغه حالت قولي وي يا فعلي وي، د اول مثال حديث الباب دې، او د ثاني مثال لکه قبض لحيه د حضرت انس ﷺ په حديث کښې دی، چه يو ځل حضور (ﷺ) د تقدير باره کښې اوفرمائيل، چه بغير ددې نه د ايمان حلاوت نه نصيب کيږي، لايجد العبد حلاوة الايمان حتی يومن بالقدر خيره شره حلوه و مره قال انس و قبض رسول الله (صلى الله عليه وسلم) علی لحيته وقال آمنت بالقدر، او هغه وخت نبی کريم (ﷺ) خپله ګيره مبارکه په موټی کښې راؤنيوله او وې فرمائيل، آمنت بالقدر، او بيا هر راوی دا حديث خپل شاګرد ته دغسې واؤرولو اوريدلې مې دی، چه احاديث مسلسل اکثر ضعيف دی، او په هغې احاديثو کښې صحيح ترين حديث المسلسل بقراءة سورة الصف دې، (قاله الحافظ)

[۱۵۲۳](١)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ الْمُرَادِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، أَنَّ حُنَيْنَ بْنَ أَبِي حَكِيمٍ حَدَّثَهُ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ اللَّخْمِيِّ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: "أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقْرَأَ بِالْمُعَوِّذَاتِ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ".

د حضرت عقبه بن عامر ﷺ نه روايت دې هغوی فرمائي چه رسول الله ﷺ ماته حکم فرمائيلې وو چه د هر مانځه نه پس معوذات لوله.

[۱۵۲۴](٢)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ سُوَيْدٍ السَّدُوسِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يُعْجِبُهُ أَنْ يَدْعُوَ ثَلَاثًا، وَيَسْتَغْفِرَ ثَلَاثًا".

حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ بيان کوی چه رسول الله ﷺ ته دا خبره خوښه وه چه د دعا کلمات درې درې واره اولوستلې شي او درې ځله استغفار اوکړې شي.

## په دعاء کښې د تکرار استحباب:

عن عبدالله ان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) كان يعجبه ان يدعو ثلاثا و يستغفر ثلثا، نبی کريم (ﷺ) ته دا خبره خوښه وه، چه هره دعا درې کرته اوغوختلې شي، ځکه چه په دې کښې د کمال احتياج اظهار دې، او دا څيز په اهتمام باندې دلالت کوی، او د شان عبديت سره ډير مناسب دې، امام بخاری ﷺ په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې، باب تکرار الدعاء، او

(١): سنن الترمذي/فضائل القرآن ١٢ (٢٩٠٣)، سنن النسائي/السهو ٨٠ (١٣٣٧)، (تحفة الأشراف:٩٩٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٥/٤، ٢٠١) (صحيح)

(٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف:٩٤٨٥)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ اليوم والليلة (٤٥٧)، مسند احمد (٣٩٤/١، ٣٩٧)، (ضعيف)

په هغې کښې هغوی هغه حديث ذکر کړې دې، چه په هغې کښې په حضور (ﷺ) باندې د سحر کولو ذکر دې، (او نبی کريم (ﷺ) دهغې نه خبر کړې شوې هم دې) نو نبی کريم (ﷺ) دهغې د ازالې دپاره الله تعالی نه بار بار دعا غوختلې وه، (او ظاهری تدبير ئې هم فرمائيلې وو، چه د بخاری شريف په هم دغه باب کښې ذکر دې، او په هغې تدبير کښې ئې هم الله تعالی سره کامله رابطه وه) او هغوی ته الله تعالی شفاء عطاء اوفرمائيله، عن ابی موسی الاشعری رضي الله عنه قال كنت مع رسول الله (صلى الله عليه وسلم) فى سفر فلما دنونا من المدينة كبر الناس ورفعوا اصواتهم:

نبی کريم (ﷺ) هغوی د ذکر بالجهر نه منع کړل، غالبا هغوی مبالغه فی الجهر کړې وه، ددې وجې نه نبی کريم (ﷺ) منع کړل، ګنی نفس جهر خو مشروع دې، لکه تلاوت قرآن بالجهر بالاجماع مشروع دې، دغه شان آمين او دعاء بالجهر هم، ليکن د جهر او سر خپلې مواقع وی، نه هر وخت کښې جهر اولی دې، او نه هر وخت کښې سر اولی دې، کله هغه او کله دا اولې دې، اوس په لاره کښې هغوی ذکر جهری شروع کړو، نبی کريم (ﷺ) هغوی دهغې نه منع کړل.

[۱۵۲۵]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ هِلَالٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنِ ابْنِ جَعْفَرٍ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ، قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَا أُعَلِّمُكِ كَلِمَاتٍ تَقُولِينَهُنَّ عِنْدَ الْكَرْبِ، أَوْ فِي الْكَرْبِ: اللَّهُ، اللَّهُ رَبِّي لَا أُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا هِلَالٌ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَابْنُ جَعْفَرٍ هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ.

حضرت اسماء بنت عميس رضي الله عنها بيان کوی چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل: ايا زهٔ تاسو ته داسې کلمات اونهٔ ښايم کوم چه تهٔ دَ پريشانئ په حالت کښې لولې ... يعنی (اللَّهُ اللَّهُ رَبِّي لَا أُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا) " الله الله هم زما رب دې زهٔ دَ هغه سره هيڅ څيز شريک نهٔ جوړوم . امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ حديث راوی هلال، دا دَ عمر بن عبد العزيز مولیٰ (ازاد کرده غلام) دې او دَ ابن جعفر نه مراد عبد الله بن جعفر دې.

[۱۵۲۶]([2])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، وَعَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، وَسَعِيدٍ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ، أَنَّ أَبَا مُوسَى الْأَشْعَرِيَّ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَلَمَّا دَنَوْا مِنَ الْمَدِينَةِ كَبَّرَ النَّاسُ وَرَفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّكُمْ لَا تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلَا غَائِبًا، إِنَّ الَّذِي تَدْعُونَهُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ أَعْنَاقِ رِكَابِكُمْ"، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا مُوسَى، أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَنْزٍ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ؟" فَقُلْتُ: وَمَا هُوَ؟ قَالَ: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ".

---

[1]): سنن النسائي/ اليوم والليلة (٦٤٧، ٦٤٩، ٦٥٠)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٧ (٣٨٨٢)، (تحفة الأشراف:١٥٧٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٦٩) (صحيح) (الصحيحة ٢٧٥٥ وتراجع الألباني ١١٩)

[2]): صحيح البخاري/الجهاد ١٣١ (٢٩٩٢)، والمغازي ٣٨ (٤٢٠٥)، والدعوات ٥٠ (٦٣٨٤)، ٦٦ (٦٤٠٩)، والقدر ٧ (٦٦١٠)، والتوحيد ٩ (٧٣٨٦)، صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٣ (٢٧٠٤)، سنن الترمذي/الدعوات ٣ (٣٣٧٤)، ٥٨ (٣٤٦١)، سنن النسائي/اليوم والليلة (٥٣٦، ٥٣٧، ٥٣٨)، سنن ابن ماجه/الأدب ٥٩ (٣٨٢٤)، (تحفة الأشراف:٩٠١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٩٤، ٣٩٩، ٤٠٠، ٤٠٢، ٤٠٧، ٤١٧، ٤١٨) (صحيح)

حضرت ابو موسی اشعری ﷺ بیان کوی چه زهٔ په یو سفر کښې د رسول الله ﷺ سره وم کله چه مونږ مدینې ته نزدې اورسیدو نو خلقو الله اکبر الله اکبر وئیل شروع کړل او خپل آوازونه ئې بلند کړل، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل : اې خلقو ! تاسو چا کونږ یا غائب ته آواز نهٔ کوئ، بې شکه چا ته چه تاسو آواز کوئ هغه ستاسو او ستاسو د سورلو د گردنونو په درمیان کښې دې (یعنې انتهائی قریب دې، لهذا د چغې وهلو ضرورت نشته دې) ابو موسی ! آیا زهٔ تاسو ته د جنت یوه خزانه اونهٔ ښایم؟ ما عرض اوکړو هغه څهٔ دی؟ وې فرمائیل : [ لا حول ولا قوة الا بالله ] د څهٔ بدئ نه بچ کیدل او لرې کیدل او د خیر همت بیا موندل د الله نه بغیر ممکن نهٔ دی .

او دا نهی، نهی ارشاد او شفقت ده، لکه په ورپسې روایت کښې راروان دی، یاایها الناس اربعوا علی انفسکم چه په خپل حال باندې رحم اوکړئ، یعنی دومره مشقت ولې اوچتوئ، یوخو د سفر اومسافت قطع کولو مشقت دې،اودویم د ذکر بالجهر مشقت دې.

## د ذکر بالجهر ثبوت:

ددې کتاب په کتاب الجنائز باب الدفن بالليل کښې یو حدیث راروان دې، د حضرت جابر بن عبدالله نه روایت دې، چه دهغې مضمون دادې، چه حضور (ﷺ) د مدینې په قبرستان کښې د یو سړی دفن کولو دپاره خپله بنفس نفیس قبر ته کوز شو، مخکښې په روایت کښې دی، راوی وائی، چه مونږ اولیدل چه دا هغه سړې وو(د چا په قبر کښې چه حضور (ﷺ) کوز شوې وو) چه ذکر بالجهر ئې کولو ، فاذا هو الرجل الذی کان یرفع صوته بالذکر (بذل ج۴ص۱۹۷)

ددې زمانې معتدل اهل حدیث هم په ذکر جهری باندې نکیر نه کوی، بلکه تحریک رأس عند الذکر باندې نکیر کوی، لیکن دې غریبانانو ته څه خبر دې، په اصل کښې ددې تعلق تجربې سره دې،اودا دعلاج په طور باندې دې،د ذکر تاثیر زیاتولو دپاره، او د صوفیانو سره ددې ماخذ د حدیث نه هم شته، آیا په تشهد کښې د کلمة التوحید په وخت کښې اشاره بالمسبحه مشروع نه ده، خصوصا د مالکیه په نزد خو په دې اشاره کښې تحریک اصبع یمینا و شمالا (یعنی په گوتو سره ښی اوگس طرف ته اشاره کول) هم مستحب دې.

ان الذی تدعونه بینکم و بین اعناق رکابکم: څوک چه تاسو رابلئ، هغه ستاسو او ستاسو د سورلو د څټونو په مینځ کښې دې.

## شرح حدیث :

دا کنایه ده د غایت قرب نه، لیکن د قرب او بعد تعلق چونکه دمکان او جهت په اعتبار سره وی، او الله تعالی د مکان نه منزه دې، ددې وجې نه دا قرب په اعتبار د علم د الله تعالی سره دې، نه په اعتبار د ذات د الله تعالی سره، پس حاصل دا شو، چه الله تعالی ستاسو نه او ستاسو د احوالو نه دومره واقف او خبر دې، څرنگه چه داقرب ترین څیز نه څوک واقفیت وی.

ثم قال رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یا ابا موسی الا ادلک علی کنز من کنوز الجنة فقلت و ما هو قال لا حول ولا قوة الا بالله: والحدیث اخرجه البخاری والترمذی ایضا، د کنز نه مراد داسې

عمل دي، چه د هغې په ذريعې سره په جنت كښې ثواب عظيم حاصل شي، د ثواب عظيم تشبيه خزانې سره وركړې شو ، ابن بطال ددې حديث په شرح كښې فرمائي: نبی كريم (ﷺ) خپل امت لره د بهتر نه بهتر حالت كښې ليدل غوختل، چه كله نبی كريم (ﷺ) اوليدل، چه دا خلق كلمهٔ اخلاص په اوچت اواز سره لولي، او په نيكۍ كښې كوشش كوي، نو نبی كريم (ﷺ) هغوی ته نور هم ددې كلمې تلقين اوفرمايه، دې دپاره چه توحيد سره سره ايمان بالقدر هم تازه شي، (ځكه چه د لاحول الخ حاصل ايمان بالقدر دې) احقر وائي، او دا هم وئيلې شي، چه په لاحول كښې چونكه اعتراف دتوفيق دې، چه دا ټولې نيكې د الله تعالی په مدد سره او دهغه په توفيق سره دي، نو دا اعتراف دهغې نعمت شكر شو، او په شكر سره نعمت كښې زياتوالې كيږي، او هغه د زوال نه هم محفوظ كيږي.

[۱۵۲۷]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، أَنَّهُمْ كَانُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ يَتَصَعَّدُونَ فِي ثَنِيَّةٍ، فَجَعَلَ رَجُلٌ كُلَّمَا عَلَا الثَّنِيَّةَ نَادَى لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّكُمْ لَا تُنَادُونَ أَصَمَّ وَلَا غَائِبًا"، ثُمَّ قَالَ: "يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ" فَذَكَرَ مَعْنَاهُ.

د حضرت ابو موسیٰ اشعری رضي الله عنه نه روايت دې چه هغه خلق د نبی كريم ﷺ سره وو او په يو غونډۍ باندې ختل يو سړې چه به كله هم په غونډۍ باندې ختلو نو په ښهٔ اوچت آواز سره به ئې وئيل : [لا اله الا الله والله اكبر] نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل : تاسو كونړ يا غاب ته آواز نهٔ كوئ. " (هغه ذات سميع او قريب دې، د چغو وهلو ضرورت نشته دې .) بيا ئې اوفرمائيل : اې عبد الله بن قيس ! " (ابو موسیٰ اشعری) او د مذكوره حديث هم معنیٰ ئې ذكر اوكړو .

[۱۵۲۸]([2])حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ أَبِي مُوسَى بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَقَالَ فِيهِ: فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ".

ابو عثمان د حضرت ابو موسیٰ اشعری رضي الله عنه نه هم دا حديث روايت كړې دې او په دې كښې ئې وئيلې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ؛ اې خلقو ! په خپلو ځانونو باندې رحم اوكړئ (چغې مهٔ وهئ) .

[۱۵۲۹]([3])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْحُسَيْنِ زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ شُرَيْحٍ الْإِسْكَنْدَرَانِيُّ، حَدَّثَنِي أَبُو هَانِئٍ الْخَوْلَانِيُّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا عَلِيٍّ الْجَنْبِيَّ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَالَ: رَضِيتُ بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ".

د حضرت ابو سعيد خدری رضي الله عنه بيان دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څوك چه دا كلمات اووائی {رَضِيت بِالله رَبًّا وَبِالْإِسْلَام دِينا، وَبِمُحَمَّدٍ ﷺ رَسُولاً} " زهٔ د الله په ربوبيت باندې، د اسلام په دين كيدو باندې او د محمد ﷺ په رسول كيدو باندې راضی يم ." نو ددهٔ د پاره

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف:۹۰۱۷) (صحيح)

[2]: انظر حديث رقم : ۱۵۲۶، (تحفة الأشراف:۹۰۱۷) (صحيح)

[3]: تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف:۴۲۶۸)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الإمارة ۳۱ (۱۸۸۴)، سنن النسائي/الجهاد ۱۸ (۳۱۳۳) (صحيح)

جنت واجب شو."

[۱۵۳۰]()حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ صَلَّى عَلَيَّ وَاحِدَةً صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ عَشْرًا".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: كوم يو كس چه په باندې يو ځل درود وائي، الله تعالىٰ په هغه باندې لس رحمتونه نازله وي."

من صلى علي واحدة صلى الله عليه عشرا: دا حديث او ددې نه ورپسې حديث په كتاب الاذان باب ما يقول اذا سمع المؤذن كښې تير شوې دی،

[۱۵۳۱]()حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَأَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيهِ فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوضَةٌ عَلَيَّ"، قَالَ: فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَكَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ أَرِمْتَ، قَالَ: يَقُولُونَ: بَلِيتَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِمْ".

حضرت اوس بن اوس رضي الله عنه بيان كوي چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل: ستاسو په افضلو ورځو كښې دَ جمعې ورځ دَ فضيلت والا ده، لهذا په دغه ورځ كښې په ما باندې په كثرت سره درود وائئ . بې شكه ستاسو درود په ما باندې پيش كولې شي." صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم اوفرمائيل: اې دَ الله رسوله! زمونږ درود به په تاسو باندې څنګه پيش كولې شي حالانكه ستاسو جسم به (په قبر كښې) بوسيده شوې وى؟ وې فرمائيل: بې شكه الله تعالىٰ دَ انبياوُ جسم په زمكه باندې حرام كړې دى."

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ أَنْ يَدْعُوَ الْإِنْسَانُ عَلَى أَهْلِهِ وَمَالِهِ

### باب: ۲۷ - خپل مال او اولاد ته بد دُعا كول منع دي

[۱۵۳۲]()حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، وَيَحْيَى بْنُ الْفَضْلِ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ مُجَاهِدٍ أَبُو حَزْرَةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الْوَلِيدِ بْنِ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَدْعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ، وَلَا تَدْعُوا عَلَى أَوْلَادِكُمْ، وَلَا تَدْعُوا عَلَى خَدَمِكُمْ، وَلَا تَدْعُوا عَلَى أَمْوَالِكُمْ، لَا تُوَافِقُوا مِنَ اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى سَاعَةَ نَيْلٍ فِيهَا عَطَاءٌ فَيَسْتَجِيبَ لَكُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ مُتَّصِلٌ، عُبَادَةُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ عُبَادَةَ لَقِيَ جَابِرًا.

حضرت جابر بن عبد الله بيان كوي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: " خپل ځان ته بد دُعا مهٔ كوئ، خپل اولاد ته بددُعا مهٔ كوئ، خپلو خادمانو ته بددُعا مهٔ كوئ، او خپل مال ته بد دُعا مهٔ كوئ، هسې نه چه هغه دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه دَ عطاء و قبوليت وخت وى (او دلته كښې تاسو بد دُعا كوئ چه الله تعالىٰ هغې لره) ستاسو دَ پاره قبولې كړى .امام ابوداود

[1]: صحيح مسلم/الصلاة ۱۷ (۴۰۸)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۳۵ (الوتر ۲۰) (۴۸۵)، سنن النسائي/السهو ۵۵ (۱۲۹۷)، (تحفة الأشراف:۱۳۹۷۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۷۳، ۳۷۵، ۴۸۵)، سنن الدارمي/الرقاق ۵۸ (۲۸۱۴) (صحيح)

[2]: انظرحديث رقم : ۱۰۴۷، (تحفة الأشراف:۱۷۳۶) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:۲۳۶۱) (صحيح)

رحمه الله فرمائی چه دا حدیث متصل دې، عباده بن ولید بن عباده د حضرت جابر رضی الله عنه سره ملاقات کړې دې

لا تدعوا علی انفسکم ولا تدعوا علی اولادکم، بعضې وخت کښې سړې پریشانه وی، او خپل ځان ته یا خپل اولاد ته هیرې کوی،ددې نه په دې حدیث کښې منع راغلې ده، چه چرته داسې اونشی، چه ستاسو دا هیرې د استجابت په وخت کښې واقع شی او قبولې شی.

## باب الصلاة علی غیر النبی صلی الله علیه وسلم

**باب: د نبی صلی الله علیه وسلم نه علاوه په بل چاباندې درود وئیل**

[۱۵۳۳]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ نُبَيْحٍ الْعَنَزِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَلِّ عَلَيَّ وَعَلَى زَوْجِي، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَلَّى اللَّهُ عَلَيْكِ وَعَلَى زَوْجِكِ".

د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت دې چه یوې ښځې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته اووې: زما او زما د خاوند د پاره د رحمت دعا اوفرمائئ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: الله تعالیٰ دې په تا باندې او ستا په خاوند باندې خپل رحمتونه (او برکتونه) نازل اوفرمائی. ''

**تشریح: قوله**: عن جابر بن عبدالله ان امراة قالت للنبی (صلی الله علیه وسلم) صل علی و علی زوجی.......... صلی الله علیک و علی زوجک:

### ترجمة الباب والا مسئلې باندې فقهی حیثیت سره مدلل کلام:

په دې کښې صلوة علی غیر النبی استقلالا اوموندلې شو، بعض علماء ومنهم الامام احمد ابن حنبل رحمه الله په نزد جائز دې، مستدلا بهذا الحدیث و بقوله تعالی وصل علیهم ان صلاتک سکن لهم، او د جمهورو په نزد جائز نه دې، په منهل کښې دی، قاضی عیاض په "شفاء" کښې فرمائې: صلوة و سلام انبیاء کرامو سره خاص دې، او په دلیل دخصوصیت کښې علماء دا دوه آیتونه پیش کوی، لا تجعلوا دعاء الرسول بینکم کدعاء بعضکم بعضا او یا ایها الذین آمنوا صلوا علیه و سلموا تسلیما.

### (په غیر انبیاء باندې د صلوة وسلام حکم)

د غیر انبیاء یعنی صحابه کرام او تابعینو دپاره خو د آیات قرانیه د اشارې نه مستفاد کیږی، چه دهغوی په حق کښې دعاء ترضی و ترحم و غفران دې، قال الله تعالی: یقولون ربنا اغفر لنا و لاخواننا الذین سبقونا بالایمان، وقال تعالی: والذین اتبعوهم باحسان رضی الله عنهم و رضوا عنه، او صلوة علی غیر النبی استقلالا په صدر اول کښې رائج نه وو، بلکه دا ایجاد او احداث دې د روافضو او اهل تشیع، هغوی وائی، علی علیه الصلوة والسلام، د علی رضی الله عنه او حضور (صلی الله علیه وسلم) په مینځ کښې د مساوات معامله کوی، او تشبه باهل البدع ممنوع دې، صاحب منهل لیکلې دی، په شعب الایمان للبیهقی او په سنن سعید بن منصور کښې د ابن

[۱]: تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف:۳۱۱۸)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/ الشمائل (۱۷۹)، سنن النسائي/ اليوم الليلة (۴۲۳) (صحيح)

عباس ﷺ نه موقوفا روایت دي، لا تجوز الصلوة والسلام علی غیر نبینا محمد من الانبیاء (یعنی د صلوة او سلام دواړو مجموعه د حضور (ﷺ) نه علاوه بل نبی دپاره جائز نه ده، نو د غیر نبی دپاره به څرنګه جائز شی، ملا علی قاری رحمه الله فرمائي: شاید دا دهغې آیتونو نه مستفاد دي، چه په هغې کښې د حضور (ﷺ) نه

علاوه د نورو انبیاء کرامو په حق کښې صرف د سلام صیغه استعمال شوې ده، سلام علی نوح فی العالمین، سلام علی ابراهیم، سلام علی موسی و هارون، سلام علی المرسلین، او د حضور (ﷺ) په حق کښې فرمائیلې شوې دی، صلوا علیه و سلموا تسلیما (صلوة او سلام دواړو لره جمع کړې شوې دې) لیکن حدیث الباب دجمهورو د مسلک نه خلاف دې، دغه شان هغه روایت هم چه په کتاب الزکوة باب دعاء المصدق لاهل الصدقة، کښې راروان دې، اللهم صل علی آل ابی اوفی، او دا خبره دې واضحه وی، چه امام ابوداؤد حنبلی دې، ددې وجې نه هغه مذهب احمد ترجمة الباب او حدیث الباب سره ثابت کړې دې.

**(دحدیث الباب نه جواب)**

د جمهورو د طرف نه ددې حدیث جواب دادې، چه صلوة چه په معنی د تعظیم او تکریم دې، هغه د حضور (ﷺ) سره خاص دې، او صلوة بمعنی دعاء و رحمت و برکت، دا د حضور (ﷺ) سره خاص نه دې (اګر چه د بعضو په نزد دا هم مکروه دې) او دویم جواب ددې حدیث نه دا ورکړې شوې دې، چه په غیر نبی باندې صلوة بالاستقلال زمونږ او ستاسو دپاره مکروه دې، لیکن که خپله حضور (ﷺ) داسې اوکړی، نو چونکه دا خپله د حضور (ﷺ) حق دې، ددې وجې نه هغوی ته اختیار دې، چه خپل حق نورو ته ورکړی.

**د حضرت امام بخاری رحمه الله رائې:**

امام بخاری رحمه الله هم دې سلسله کښې باب قائم کړې دې، هل یصلی علی غیر النبی (صلی الله علیه وسلم)، په دې باندې حافظ ابن حجر لیکلې دی، چه ددې غیر په مصداق کښې نور انبیاء کرام هم داخل دی، دغه شان ملائکه او عام مومنین هم، بیا ددې نه پس حافظ رحمه الله په هر یو باندې جدا جدا مستقل کلام کړې دې، یعنی صلوة علی الانبیاء، او صلوة علی الملائکة، او صلوة علی المؤمنین مع اختلاف علماء و دلائل، او ددې قسم ثالث په ذیل کښې ئې مختلف اقوال نقل کولو نه پس یو قول لیکلې دې، وقالت طائفة تجوز مطلقا (یعنی ولو استقلالا) وهو مقتضی صنیع البخاری الی آخر ما بسط من الدلائل، لهذا کوم مذهب چه د امام احمد دې، هغه د امام بخاری رحمه الله هم دې.

.......

# بَابُ الدُّعَاءِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ

**باب: ۲۹ - دَ غائبانه دُعا فضيلت**

[۱۵۳٤](۱)حَدَّثَنَا رَجَاءُ بْنُ الْمُرَجَّى، حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ، أَخْبَرَنَا مُوسَى بْنُ ثَرْوَانَ، حَدَّثَنِي طَلْحَةُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ كَرِيزٍ، حَدَّثَتْنِي أُمُّ الدَّرْدَاءِ، قَالَتْ: حَدَّثَنِي سَيِّدِي أَبُو الدَّرْدَاءِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِذَا دَعَا الرَّجُلُ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ، قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ: آمِينَ وَلَكَ بِمِثْلٍ".

ام الدرداء بيان کوی چه زما اقا ابو الدرداء ﷺ بيان کړې دي چه هغوی د رسول الله ﷺ نه اوريدلي وو: '' کله چه يو کس دَ خپل رور دَ پاره غائبانه دُعا کوی نو فرشتي وائی '' آمين '' (اې الله! قبول ئې کړې) او تاته دې هم په مثل ددې حاصل وی. ''

**(د راويه تعارف)**

حدثنی ام الدرداء قالت حدثنی سيدی ابوالدرداء: دا ام الدرداء د ابو الدرداء بی بی ده، ام الدرداء دده دی، يوه صغری چه تابعيه ده، چه دهغې نوم هجيمه دې، او وئيلې شوې دی چه جهيمه دې، او يوه ام الدرداء الکبری ده، چه دهغې نوم خيره بنت ابی حدرد دې، او دا صحابيه ده، دلته په سند کښې صغری مراد ده، نه کبری، بلکه دهغې نه خو په صحاح سته کښې هم هيڅ روايت نشته، (منهل) قالت الملائکة آمين ولک بمثل: والحديث اخرجه مسلم ايضا، کوم سړې چه د بل دپاره دهغه پشې شا د خير دعاء کوی، نو فرشتې دهغه په دعاء باندې آمين وائی، او وائی ولک بمثل، يعنی الله تعالی دې تاته هم دغه څيز نصيب کړی، شارحينو ليکلې دی، او د پشی شا په حکم کښې دا هم دی، چه چا دپاره سرا يعنی په پټه دعا اوکړې شی، چه هغه سړې ئې نه اوری، اګر چه په هغه په مجلس کښې وی، يا په هم هغه دسترخوان باندې وی.

**د خپل ځان دپاره ملائکو نه ددعا کولو شکل:**

ددې حديث نه معلوميږی، چه که يو سړې خپل ځان دپاره څه معامله کښې په ملائکو باندې دعاء کول غواړی، نو دهغې صورت دادی، چه هم هغه دعاء دې د خپل رور مسلمان دپاره دهغه نه پشې شا اوکړی، منهل کښې ليکلې دی، چه د بعضو سلفو نه منقول دی، چه هغوی به هم داسې کول (يعنی کله به چه د خپل ځان دپاره د څيز دعا کول وو، نو اول به ئې هغه دعا د بل په نيت سره کوله)

[۱۵۳۵](۲)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ أَسْرَعَ الدُّعَاءِ إِجَابَةً دَعْوَةُ غَائِبٍ لِغَائِبٍ".

د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د

[۱]: صحيح مسلم/الذکر والدعاء ۲۳ (۲۷۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۸۸)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ٥ (۲۸۹٥)، مسند احمد (٥/۱۹٥) (صحيح)

[۲]: سنن الترمذي/البر والصلة ٥۰ (۱۹۸۰)، (تحفة الأشراف: ۸۸٥۲) (ضعيف)

تولونه زیاته زر قبلیدونکی دُعا داده چه انسان دُعا دَچا غیر موجود دَپاره غائبانه دُعا اوکړی.
عن عبدالله بن عمرو بن العاص (رضی الله عنهما) ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) قال اسرع الدعاء اجابة دعوة غائب لغائب. ددې وجه داده، چه په داسې دعاء کښې اخلاص زیات وی، ددې وجې نه زر قبلیږی. چ

[۱۵۳۶]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "ثَلَاثُ دَعَوَاتٍ مُسْتَجَابَاتٌ لَا شَكَّ فِيهِنَّ: دَعْوَةُ الْوَالِدِ، وَدَعْوَةُ الْمُسَافِرِ، وَدَعْوَةُ الْمَظْلُومِ".

حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: د دریو دعاګانو په قبلیدو کښې شک نشته دې. دَ پلار دُعا، دَ مسافر دُعا، او دَ مظلوم دُعا.

**(نحوی تحقیق)**

ثلث دعوات مستجابات لا شک فیهن: مستجابات یامرفوع دې او خبر دې د مبتداء دپاره، او لا شک فیهن یا خو د خبر دپاره تاکید دې، یاخبر ثانی دې، او یا دا مستجابات مجرور دې، او د دعوات دپاره صفت دې، او لا شک فیهن دهغې دپاره خبر دې، دعوة الوالد و دعوة المسافر ودعوة المظلوم، په دې دعوت کښې دعاء بالخیر اودعاء بالشر دواړه داخل دی، دغه شان که دا دعاء د خپل ځان دپاره وی، یا د بل دپاره وی، او د مظلوم نه مراد عام دې، که مسلم وی او که کافر وی، صالح وی او که فاجر وی، لکه د مسند ابوداؤد طیالسی په روایت کښې تصریح ده: وان کان فاجرا ففجوره علی نفسه، او په مسند احمد وغیره کښې دی، ولو کان کافرا (منهل)

# بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا خَافَ قَوْمًا

## باب: ۳۰-۱ انسان ته چه دَچا نه یره وی نوکومه دُعا به کوی؟

[۱۵۳۷]()حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا خَافَ قَوْمًا، قَالَ: "اللَّهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِي نُحُورِهِمْ، وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شُرُورِهِمْ".

حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به کله دَ یو قوم نه اندیښنه وه نو داسې دعا به ئې فرمائیله: { اللَّهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِي نُحُورِهِمْ، وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شُرُورِهِمْ } " اې الله مونږ تالره دَ هغوی په مقابله کښې پیش کوو او دَ هغوی دَ شرارتونونه په تاسره پناه غواړو.

**تشریح: قوله:** ان النبی (صلی الله علیه وسلم) کان اذا خاف قوما قال اللهم انا نجعلک فی نحورهم و نعوذ بک من شرورهم،

[1]: سنن الترمذي/البروالصلة ۷ (۱۹۰۵)، والدعوات ۴۸ (۳۴۴۸)، سنن ابن ماجه/الدعاء ۱۱ (۳۸۶۲)، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۵۸، ۳۴۸، ۴۳۴، ۴۷۸، ۵۱۷، ۵۲۳) (حسن)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۱۲۷)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ اليوم والليلة (۶۰۱)، مسند احمد (۴/۴۱۴، ۴۱۵) (صحيح)

دلته کښې دا سوال پیدا کیږي، چه حضور (ﷺ) خو د جن او انس د شر نه محفوظ دې، نو بیا هغوی ته ویره څرنګه وه؟ جواب دادې، چه بهرحال نبی کریم (ﷺ) بشر وو، خوف د انسان د طبعیت خاصه ده، او یا دا وئیل پکار دی چه د نبی کریم (ﷺ) دا ویره د خپلو صحابه کرامو په اعتبار سره وه، او یا دا وئیل پکار دی، چه دا د تعلیم دامت دپاره وه، چه هغوی لره پکار دی، چه د خوف په وخت کښې دا دعاء لولی.

## د حضور اکرم (صلی الله علیه وسلم) شجاعت:

ګنی د نبی کریم (ﷺ) د شجاعت او بهادرۍ خو دا حالت وو، چه په حدیث کښې راځی، چه یو ځل د شپې په وخت کښې مدینې والو څه شور واؤریدو، چه هغې سره ټول اویریدل، چه دا څرنګه آواز دې، په دې باندې نبی کریم (ﷺ) د ابوطلحه ﷛ په اس باندې خپلې تورې سره سور شو، او د مدینې منورې نه بهر اوتلو، ددې کتلو دپاره چه دا شور څنګه دې، او لږ وخت پس ئې واپس تشریف راؤړو، او وې فرمائیل، لم تراعوا، لم تراعوا، چه ویریږئ مه، ویریږئ مه، موږ ورغلو او اومو لیدل، هیڅ خبره نشته، صلی الله تعالی علیه و علی آله واصحابه و بارک و سلم تسلیما کثیرا کثیرا.

# بَابٌ فِي الِاسْتِخَارَةِ

## باب: ٣١-۰ ۝ د استخارې احکام او مسائل

دلته کښې څو بحثونه دی، (١) د استخاره لغوی معنی (٢) استخاره کله کول پکار دی (٣) استخاره کوم وخته پورې کول پکار دیٰ (٤) د کومو کارونو دپاره استخاره کولې شی (٥) د استخارې نه مخکښې دوه رکعته ادا کولو مصلحت (٦) د استخارې نه پس څه کول پکار دی (٧) د استخارې حدیث د کومې درجې دې (٨) د استخارې مختصره طریقه.

### امور ثمانیه متعلقه باستخاره:

### د استخارې لغوی معنی

د استخارې لغوی معنی ده، دالله تعالی نه خیر طلب کول په هغې کار کښې چه د کوم اراده ئې کړې وی، او بعضو شارحینو داسې لیکلې دی، یعنی په دواؤ کارونو کښې چه کوم کار د خیر وی، هغه د الله تعالی نه طلب کول، چه دهغې طریقه په حدیث شریف کښې دا بیان کړې شوې ده، چه د استخارې په نیت سره دوه رکعته نفل مونځ به اوکړی، او هغه دعاء به اولولی، کومه چه په حدیث کښې راروانه ده، او دهغې دعاء نه مخکښې دې د الله تعالی حمد او ثناء او په حضور (ﷺ) باندې صلوة او سلام اولیږی.

[١٥٣٨] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُقَاتِلٍ، خَالُ الْقَعْنَبِيِّ وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الْمَوَالِ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُنَا الِاسْتِخَارَةَ كَمَا يُعَلِّمُنَا السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ، يَقُولُ لَنَا: "إِذَا هَمَّ

[1]: صحيح البخاري/التهجد ٢٥ (١١٦٢)، والدعوات ٤٨ (٦٣٨٢)، والتوحيد ١٠ (٧٣٩٠)، سنن الترمذي/الصلاة ٢٣٧ (٤٨٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٨٨ (١٣٨٣)، سنن النسائي/النكاح ٢٧ (٣٢٥٥)، (تحفة الأشراف: ٣٠٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٤/٣) (صحيح)

أَحَدُكُمْ بِالْأَمْرِ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ مِنْ غَيْرِ الْفَرِيضَةِ، وَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ، فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا أَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلَا أَعْلَمُ وَأَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ، اللَّهُمَّ إِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الْأَمْرَ يُسَمِّيهِ بِعَيْنِهِ الَّذِي يُرِيدُ خَيْرًا لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَمَعَادِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي فَاقْدُرْهُ لِي وَيَسِّرْهُ لِي وَبَارِكْ لِي فِيهِ، اللَّهُمَّ وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُهُ شَرًّا لِي مِثْلَ الْأَوَّلِ فَاصْرِفْنِي عَنْهُ وَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ، ثُمَّ رَضِّنِي بِهِ، أَوْ قَالَ: فِي عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ". قَالَ ابْنُ مَسْلَمَةَ، وَابْنُ عِيسَى: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ.

حضرت جابر ﷛ به فرمائیل : چه رسول الله ﷺ به مونږ ته د استخارې تعلیم (په دومره اهتمام سره) فرمائیلو لکه دَ قرآن مجید یو سورت . حضور ﷺ به مونږ ته فرمائیل چه کله په تاسو کښې یو کس دَ څه کار اراده اوکړی نو هغه لره پکار دی چه دَ فرضو نه علاوه دوه رکعته اوکړی او دا دُعا اوکړی : { اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ...... الخ} اې الله زهٔ ستا دَ علم په واسطې سره خیر او نیکی غواړم . او ستا دَ قدرت په واسطې سره قدرت طلب کووم . او ستا دَ فضل عظیم سوال کووم . بې شکه تهٔ قدرت لرې او زهٔ قدرت نهٔ لرم . تهٔ علم لرې او زهٔ نهٔ پوهیږم . او تهٔ دَ تمامو غیبونو او دَ پوشیده امورو نه باخبر ئې . اې الله ! کهٔ چرې ستا په علم کښې دا معامله (دلته کښې به دَ خپل کار نوم واخلې) زما دَ دین، دنیا ، آخرت او دَ انجام په لحاظ سره بهتر وی نو دا زما په حق کښې مقدر کړې او دې لره زما دَ پاره آسان کړې او زما دپاره په دې کښې برکت پیدا کړې . او کهٔ چرې دا معامله (دلته کښې به دَ خپل کار نوم واخلې) ستا دَ علم مطابق زما دَ پاره بده ده دَ دین، دنیا، آخرت او دَ انجام په لحاظ سره نو مالره ددې نه واړه وې او دې لره زما نه واړه وې او زما دَ پاره خیر مقدر کړې په کوم ځائې کښې چه هم وی بیا مالره په هغې باندې خوشاله کړې ." راوی وئیلې دی یا کیدې شی چه دَ [ خیرا لی فی دینی ومعاشی ومعادی وعاقبة امری ] په ځائې باندې ئې [ فی عاجل امری وآجله ] فرمائیلې دی " یعنی زما په معامله کښې داپه تیزئ سره یاپه ورستووالی سره.....بهتر وی " ابن مسلمه او ابن عیسیٰ دې سند لره په لفظ دَ "عن" سره بیانوی ."عن محمد بن المنکدر عن جابر"

**اذا هم احدکم بالامر:** ددې نه معلومه شوه، چه کوم څیز د مشورې او استخارې قابل وی، په هغې کښې استخاره د کار اراده کولو سره سمدستی کول پکار دی، دې دپاره چه د شروع نه د الله تعالی د طرف نه د امر خیر راهنمائی وی، ګنی که په استخاره کښې ناوخته کړې شی، نو کیدې شی، چه د نفس میلان دمخکښې نه یو طرف ته شی، او د استخارې نه روستو پوره فائده او راهنمائی حاصله نه شی، او استخاره د مباحات دپاره وی، [1]

[1] په صحیح بخاری کښې دی ﴿ کان یعلمنا الاستخارة فی الامور کلها ﴾ ابن ابی جمرة فرمائی : چه دا عام مخصوص عنه البعض دې ځکه چه د واجب یا مستحب په فعل کښې به استخاره نه وی او د حرام او مکروه د ترک دپاره به استخاره نه وی بلکه په مباح امر کښې یا په دې مستحب کښې چه د هغې په مقابل کښې یو بل مستحب مخې ته وی نو په دې کښې استخاره کیدې شی چه په دې کښې کوم اختیار کړی یا دا چه کوم یو اول اوکړی. حافظ ابن حجر(ح) فرمائی هم دغه شان امر واجب مخیر فیه یا هغه واجب کوم چه موسع وی. ۱۲

د واجباتو او مستحباتو دپاره نه وی، البته چه کوم واجبات موسعه دی، چه په هغې کښې تاخیر جائز دې، په هغې کښې استخاره د تعیین وخت وغیره مصلحتونو دپاره کیدې شی، مثلاً دا چه دا کار په دې کال کښې اوکړې شی، یا آئنده کال کښې، په عباداتو کښې استخاره د اصل فعل په اعتبار سره نه وی، بلکه د وخت یا حالت وغیره په اعتبار سره وی، د استخارې نه پس په کوم څیز باندې چه انشراح صدر اوشی، هغې لره دنفسانی خواهشاتو نه بغیر اختیاراول پکار دی، که یو دوه کرته سره انشراح اونشی، نو اووهٔ کرته پورې کولې شی (لکه چه په یو حدیث مرفوع کښې وارد دی، چه هغې لره ابن السنی روایت کړې دې، (بذل) او حافظ ابن حجر په فتح الباری کښې لیکلې دی،

د استخارې نه پس څه کول پکار دی، په دې کښې اختلاف دې، (۱) ابن عبدالسلام فرمائي يفعل ما اتفق یعنی چه څه کیدې شی هغه دې اوکړی، (انشاء الله په هغې کښې به خیر وی) او امام نووی رحمه الله فرمائي د استخارې نه پس چه په کوم څیز باندې انشراح صدر وی، هغه دې اوکړی، حافظ خپله رائې هم دا لیکلې ده، چه که د استخارې نه پس انشراح په هغه څیز باندې وو، په کوم څیز کښې چه دهغه رغبت او خواهش د استخارې نه مخکښې وو، نو هغې لره دې نه کوی، علامه شامی رحمه الله لیکلې دی، چه د بعضو مشائخو نه منقول دی، چه داستخارې نه پس سړی لره پکار دی، چه په اودس کښې قبلې ته مخامخ اودهٔ شی، پس که په خوب کښې سپین والې یا شین والی اوینی، نو هغې کار لره دې اوکړی، په هغې کښې خیر دې، او که تور والې یا سور والې اوینی نو پوهه دې شی، چه په هغې کښې شر دې، او دهغې نه دې ځان اوساتی.

فليركع ركعتين من غير فريضة : د فرض مونځ نفی سره معلومه شوه، چه د سنت مانځه نه پس هم استخاره کولې شی، په شرط ددې چه په هغې کښې د استخارې نیت هم کړې شوې وی، ګنی نشی کولې، (قاله النووی) او بعضې علماء وائی، چه ددې دپاره مستقل مونځ کول پکار دې.

وليقل اللهم انی استخيرک بعلمک واستقدرک بقدرتک واسالک من فضلک العظيم فانک تقدر ولا اقدر و تعلم و لا اعلم وانت علام الغيوب اللهم فان كنت تعلم ان هذا الامر (يسميه بعينه الذى يريد) خيرا لی فی دينی و معاشی و معادی و عاقبة امری فاقدره لی و يسره لی و بارک لی فيه اللهم وان كنت تعلمه شرا لی مثل الاول فاصرفنی عنه واصرفه عنی واقدر لی الخير حيث كان ثم ارضنی به او قال فی عاجل امری و آجله.

دا دعاء یادول پکار دی، ددې وجې نه دلته مو نقل کړه، د مثل الاول مطلب دادې، چه داسې دې اوائی، فی دینی و دنیاوی او د آخری جملې مطلب دادې، چه تاته اختیار دې، چه که عاجل امری و آجله وائې، او که ددې په ځائې معاشی و عاقبة امری وائې.

علماؤ لیکلې دی، چه د صلوة الاستخاره په اول رکعت کښې سوره کافرون او په دویم رکعت کښې سوره اخلاص وئیل بهتر دی، او یا په اول رکعت کښې وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ سُبْحٰنَ اللهِ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ او په دویم رکعت کښې وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللهُ وَرَسُوْلُهٗ اَمْرًا اَنْ

يَكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا اوائی، او بعضې علماء فرمائي: چه اکمل داده، چه هغه سورتونه دې هم اولولی، او دا آيتونه هم.
د دعاء استخاره نه مخکښې دوه رکعته مونځ کولو کښې مصلحت علماؤ دا ليکلې دې، چه د استخارې مقصد دادې، چه مونږ ته د دين او دنيا دواړو خير حاصل شی، او ددې عظيم مقصد حاصليدل د بادشاه دروازه ټکولو نه بغير ممکن نه دی، او د دې دروازې ټکولو صورت د مانځه نه بغير هيڅ نشی کيدې. د استخارې دا حديث د صحيح مسلم نه علاوه باقی ټولو صحاح سته کښې موجود دې، امام ترمذی رحمه الله فرمائي، حديث حسن صحيح غريب لا نعرفه الا من حديث عبدالرحمن بن ابی الموال وهو شيخ مدنی ثقة روی عنه غير واحد من الائمة، ليکن امام احمد رحمه الله ددې حديث تضعيف کړې دې.
او دې لره ئې منکر ګرزولی دې، هغوی فرمائي چه دې حديث لره د ابن المنکدر نه ابن ابی الموال نه علاوه هيچا روايت کړې نه دې، ليکن تقريباً نورو ټولو امامانو دهغه توثيق کړې دې، ابن ابی عدی وائی، چه حديث الاستخاره د ډيرو صحابه کرامو نه مروی دې، ابوايوب، ابوسعيد، ابوهريره او ابن مسعود رضی الله عنهم وغيره، هغوی فرمائي او په هغې کښې په هيڅ يو حديث کښې هم د مانځه ذکر نشته، سوا د حديث ابوايوب نه، ولم يقيد برکعتين ولا بقوله من غير الفريضة (منهل) او د سعد بن ابی وقاص حديث مرفوع دې، من سعادة ابن آدم استخارته الله (اخرجه احمد و سنده حسن) او په ترمذی شريف کښې دی، من حديث ابی بکر الصديق رضی الله عنه ان النبی (صلی الله عليه وسلم) کان اذا اراد امرا قال اللهم خرلی واخترلی او په طبرانی کښې د حضرت انس رضی الله عنه په حديث مرفوع کښې دی، ماخاب من استخار (فتح الباری ج١١ ص١٥٥) ددې نه معلومه شوه، چه د استخارې يوه مختصره طريقه داده، چه تر څو پورې خپل مقصد حل شوې نه وی، دا دعاء کومه چه اوس تيره شوه، لوستل پکار دی، ما د خپل استاذ محترم حضرت مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله نه په سبق کښې اوريدلې دی، ماخاب من استخار ولا ندم من استشار، ددې جزء اول خو د حديث نه ثابت دې، اوس نزدې تير شو، ليکن ددې جزء ثانی د تلاش باوجود چرته په روايت کښې ملاؤ نشو.

## بَابٌ فِي الْاِسْتِعَاذَةِ

### باب: ٣٢- دَ تعوذاتو بيان

دعاګانې په دوه قسمه دی، اول هغه چه د جلب منفعت د قبيلې نه دی، چه په هغې کښې امور خير طلب کولې شی،ثانی هغه چه د فع مضرت د قبيلې نه دی، چه په هغې کښې د شر او ضرر نه پناه غوختلې شی،اوسه پورې مصنف قسم اول بيانول،او ددې ځائې نه قسم ثانی بيانوی.
**فائده:** غالبا په امام نسائی رحمه الله باندې د دفع مضرت طرف غالب وو، هغوی د سنن صغری په آخر کښې مستقل عنوان د باب الاستعاذه قائم کړې دې، او بيا دهغې لاندې ئې پنځوس بابونه د استعاذه په سلسله کښې قائم کړې دی، البته د نوع اول روايات او ادعيه هغوی په کتاب الصلوة کښې ذکر کړې دی، يعنی هغه دعاګانې چه د صلوة سره متعلق دی، که د

تشهد نه پس قبل السلام والا دعاګانې وی، او که بعد السلام والا.
په سنن ابوداؤد کښې کتاب الدعوات مستقل نشته، هغه زیات تر دعاګانې دلته د کتاب الصلوة په آخر کښې ذکر کړې دی، او څه دعاګانې ئې د خوب سره متعلق د کتاب الادب په ضمن کښې ذکر کړې دی.

## د ټولو نه دزیاتو دعاګانو ذخیره په کوم کتاب کښې ده؟

په صحاح سته کښې د ټولو نه د زیاتو دعاګانو ذخیره زما په علم کښې په سنن ترمذی کښې ده، دترمذی کتاب الدعوات ډیرطویل دې، تقریباپه دیرشوصفحاتو باندې مشتمل دې، اودصحیح بخاری کتاب الدعوات تقریبا شلو صفحاتو کښې دې، بعضې محدثینو صرف په دعاګانو باندې هم مستقل تصنیفات کړې دی، چه مشهور او معروف دی.

## یو خائسته نصیحت:

زما مشوره ورته اوایئ یا نصیحت، چه هر طالب علم لره پکار دی، چه هغه د ترمذی شریف کتاب الدعوات مخښې ته کیږدی، او ټولې دعاګانې دې د اول نه تر آخره پورې اولولی، او د قراءة دوران کښې کومه دعا چه د خپل حال سره زیاته مناسبه اوګنړی، یا کومه دعا چه ئې زیاته خوښه شی، هغه ټولې دعاګانې دې په یوه کاپۍ (بیاض) کښې نقل کړی، بیادې دهغې نه هغه دعاګانې یادې کړی، اوهغه دې لولی، والله الموفق وهو المیسر.

[١٥٣٩] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَعَوَّذُ مِنْ خَمْسٍ: مِنَ الْجُبْنِ، وَالْبُخْلِ، وَسُوءِ الْعُمُرِ، وَفِتْنَةِ الصَّدْرِ، وَعَذَابِ الْقَبْرِ".

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به د پنځو خبرو نه په الله پاک سره پناه غوښتله: بزدلی، بخیلی، انتهائی بوډاوالی او د لاچارئ د عمر نه، د سینې د فتنې نه (حسد، کینه، او بد اخلاق او عقائد) او د عذاب قبر نه.

[١٥٤٠] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَخْبَرَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ، وَالْكَسَلِ، وَالْجُبْنِ، وَالْبُخْلِ، وَالْهَرَمِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ".

حضرت انس بن مالک رضی الله عنه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به دا دعا فرمائیله {(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَالْهَرَمِ، وَأَعُوذُبِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ)} "اې الله! زۀ په تاسره پناه غواړم د عاجز راتلو نه، د کسل مندئ او سستئ نه، د بزدلئ، بخیلئ، او د انتهائی بوډاوالی نه. او په تاسره پناه غواړم د قبر د

---

(¹): سنن النسائي/الاستعاذة ٢ (٥٤٤٥)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٣ (٣٨٤٤)، (تحفة الأشراف:١٠٦١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٤/١)، (ضعيف).

(²): صحيح البخاري/الجهاد ٢٥ (٢٨٢٣)، وتفسير سورة النحل ١ (٤٧٠٧)، والدعوات ٣٨ (٦٣٦٧)، ٤٢ (٦٣٧١)، صحيح مسلم/الذكر ١٥ (٢٧٠٦)، سنن النسائي/الاستعاذه ٦ (٥٤٥٤)، مسند احمد (١١٣/٣، ١١٧، ٢٠٨، ٢١٤، ٢٣١)، (تحفة الأشراف:٨٧٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ٧١ (٣٤٨٠) (صحيح)

عذاب نه، او د زندګئ او د مرګ د فتنې نه .''

[١٥٤١]()حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ سَعِيدٌ الزُّهْرِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كُنْتُ أَخْدِمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ كَثِيرًا، يَقُولُ: "اللَّهُمَّ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ، وَالْحَزَنِ، وَضَلَعِ الدَّيْنِ، وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ" وَذَكَرَ بَعْضَ مَا ذَكَرَهُ التَّيْمِيُّ.

حضرت انس بن مالک رضي الله عنه فرمائی چه ما به د رسول الله ﷺ خدمت کولو، او ما به د رسول الله ﷺ نه په کثرت سره دا اوریدل چه هغوی به دا دعا فرمائیله : {(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ)} '' اې الله زۀ په تاسره پناه غوارم د پریشانئ او د غم نه، د قرضې د بوج نه او د خلقو (ظالمانو) د غلبې نه او د زور آورئ نه .'' ددې نه علاوه څه نې هغه هم ذکر کړل کوم چه تیمی (معتمر بن سلیمان، په بره ذکر شوی حدیث کښې) بیان کړې دی .''

[١٥٤٢]()حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ الْمَكِّيِّ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهُمْ هَذَا الدُّعَاءَ كَمَا يُعَلِّمُهُمُ السُّورَةَ مِنَ الْقُرْآنِ، يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ".

حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما بیان کوی چه رسول الله ﷺ به دوی ته دا دعا داسې ښودله لکه قرآن مجید : {(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ)} '' اې الله زۀ په تاسره پناه نیسم د جهنم د عذاب نه، د قبر د عذاب نه، د مسیح دجال د فتنې نه، او د زندګئ او د مرګ د فتنې نه .''

[١٥٤٣]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُو بِهَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ، وَعَذَابِ النَّارِ، وَمِنْ شَرِّ الْغِنَى، وَالْفَقْرِ".

د ام المؤمنین حضرت عائشې رضي الله عنها بیان دې چه رسول الله ﷺ به په دې کلماتو سره دعا فرمائیله : {(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَعَذَابِ النَّارِ، وَمِنْ شَرِّ الْغِنَى وَالْفَقْرِ)} '' اې الله ! زۀ پناه غوارم په تاسره د اور د فتنې او د اور د عذاب نه، د مالدارئ د شر نه او د فقیرئ د شر نه .''

[١٥٤٤]()حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْفَقْرِ، وَالْقِلَّةِ، وَالذِّلَّةِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ

---

[1]): صحيح البخاري/الدعوات ٤٠ (٦٣٦٩)، سنن الترمذي/الدعوات ٧١ (٣٤٨٤)، سنن النسائي/الاستعاذة ٧ (٥٤٥٥) (تحفة الأشراف: ١١١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٢/٣، ٢٢٠، ٢٢٦، ٢٤٠) (صحيح)

[2]): صحيح مسلم/المساجد ٢٥ (٥٩٠)، سنن النسائي/الجنائز ١١٥ (٢٠٦٥)، سنن الترمذي/الدعوات ٧٠ (٣٤٩٤)، (تحفة الأشراف: ٥٧٥٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ القرآن ٨ (٣٣)، مسند احمد (٢٤٢/١، ٢٥٨، ٢٩٨، ٣١١) (صحيح)

[3]): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف: ١٧١٣٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الدعاء ٢٥ (٥٨٩)، سنن الترمذي/الدعوات ٧٢ (٣٤٨٩)، سنن النسائي/الاستعاذة ١٦ (٥٤٦٨) (صحيح)

[4]): سنن النسائي/الاستعاذه ١٣ (٥٤٦٢)، (تحفة الأشراف: ١٣٣٨٥)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الدعاء ٣ (٣٨٣٨)، مسند احمد (٣٠٥/٢، ٣٢٥، ٣٥٤) (صحيح)

أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ".

دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به دا دعا کووله : {(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْفَقْرِ وَالْقِلَّةِ وَالذِّلَّةِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ)} " اي الله ! زهٔ په تاسره پناه نیسم دَ محتاجئ نه، دَ قلت او دَ ذلت نه. او په تاسره پناه غوارم ددې خبرې نه چه زهٔ دَ ظلم ارتکاب اوکړم یا په ما باندې ظلم اوکړې شي.

[١٥٤٥](١)حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْغَفَّارِ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ مِنْ دُعَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ زَوَالِ نِعْمَتِكَ، وَتَحْوِيلِ عَافِيَتِكَ، وَفُجَاءَةِ نِقْمَتِكَ، وَجَمِيعِ سَخَطِكَ".

دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنه بیان دي چه دَ رسول الله ﷺ په دعاګانو کښې دا دعا وه : {(اللَّهُمَّ! إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ زَوَالِ نِعْمَتِكَ، وَتَحْوِيلِ عَافِيَتِكَ، وَفُجَاءَةِ نِقْمَتِكَ، وَجَمِيعِ سَخَطِكَ)} " اي الله زهٔ په تاسره پناه غوارم ددې خبرې نه چه ستا څه نعمت زائله شي یا ستا راکړې شوې صحت او عافیت واړولې شي یا څه ناګهانی عذاب راشي. او ستا دَ تمام غصې او دَ ناراضتیا نه پناه غوارم."

[١٥٤٦](٢)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا ضُبَارَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي السُّلَيْكِ، عَنْ دُوَيْدِ بْنِ نَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ السَّمَّانُ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُو، يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الشِّقَاقِ، وَالنِّفَاقِ، وَسُوءِ الْأَخْلَاقِ".

دَ حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه مروی دی چه رسول الله ﷺ به دُعا فرمائیله : {(اللَّهُمَّ! إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الشِّقَاقِ وَالنِّفَاقِ وَسُوءِ الْأَخْلَاقِ)} " اي الله ! زهٔ په تاسره پناه غوارم ددې خبرې نه چه زهٔ (دَ حق) مخالفت اوکړم یا منافق او بد اخلاق جوړ شم."

[١٥٤٧](٣)حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، عَنِ ابْنِ إِدْرِيسَ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُوعِ فَإِنَّهُ بِئْسَ الضَّجِيعُ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّهَا بِئْسَتِ الْبِطَانَةُ".

حضرت ابو هریره رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ به دا دُعا فرمائیله: {(اللَّهُمَّ! إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُوعِ فَإِنَّهُ [بِئْسَتِ] الْبِطَانَةُ)} " اي الله زهٔ په تاسره پنا غوارم دَ لوږې نه، بې شکه دا ډیر زیات بد هم خواب دې. او زهٔ په تاسره پناه غوارم دَ خیانت نه، بې شکه دَ پوشیده خصلتونو نه دا ډیر بد خصلت دې."

[١٥٤٨](٤)حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَخِيهِ عَبَّادِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْأَرْبَعِ: مِنْ

[١]): صحيح مسلم/الذكر والدعاء ٢٦ (٢٧٣٩)، (تحفة الأشراف: ٧٢٥٥) (صحيح)

[٢]): سنن النسائي/الاستعاذة ٢ (٥٤٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٣١٤) (ضعيف)

[٣]): سنن النسائي/الاستعاذة ١٩ (٥٤٧١)، (تحفة الأشراف: ١٣٠٤٠)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الأطعمة ٥٣ (٣٣٥٤) (حسن)

[٤]): سنن النسائي/الاستعاذة ١٧ (٥٤٦٩)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٢٣ (٢٥٠)، والدعاء ٢ (٣٨٣٧)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٤٩) (صحيح)

عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ، وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ، وَمِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ، وَمِنْ دُعَاءٍ لَا يُسْمَعُ".

د عباد بن ابو سعيد رحمه الله نه روايت دې چه هغوي د حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه واوريدل چه رسول الله ﷺ به دا دُعا فرمائيله : {(اللَّهُمَّ! إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْأَرْبَعِ: مِنْ عِلْمٍ لَا يَنْفَعُ، وَمِنْ قَلْبٍ لَا يَخْشَعُ، وَمِنْ نَفْسٍ لَا تَشْبَعُ، وَمِنْ دُعَاءٍ لَا يُسْمَعُ)} " اې الله ! زۀ د څلورو څيزونو نه په تاسره پناه غوارم داسې علم چه فائده نۀ ورکوي داسې زړۀ چه په هغې کښې خشوع نه وي، داسې طبيعت کوم چه مړيږي نۀ، او داسې دُعا چه هغه قبليږي نۀ.

[۱۵۴۹]([1])حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: قَالَ أَبُو الْمُعْتَمِرِ: أُرَى أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَنَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ صَلَاةٍ لَا تَنْفَعُ" وَذَكَرَ دُعَاءً آخَرَ.

د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به دا دُعا فرمائيله : {(اللَّهُمَّ! إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ صَلَاةٍ لَا تَنْفَعُ)} " اې الله ! زۀ په تاسره پناه غوارم د داسې مونځ نه چه فائده نۀ ورکوي. " او يوه بله دُعا ئې هم ذکر کړه. "

[۱۵۵۰]([2])حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ فَرْوَةَ بْنِ نَوْفَلٍ الْأَشْجَعِيِّ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ عَمَّا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو بِهِ، قَالَتْ: كَانَ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا عَمِلْتُ، وَمِنْ شَرِّ مَا لَمْ أَعْمَلْ".

فروه بن نوفل اشجعی فرمائی چه ما د حضرت عائشې رضی الله عنها نه پوښتنه اوکړه چه رسول الله ﷺ به کومه دُعا غوښتله؟ هغې رضی الله عنها اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ به دا دُعا کوله : {(اللَّهُمَّ! إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا عَمِلْتُ وَمِنْ شَرِّ مَا لَمْ أَعْمَلْ)} " اې الله زۀ په تاسره پناه غوارم د هغه اعمالو د شر نه کوم چه ما کړې دی او د هغه اعمالو د شر نه هم کوم چه ما نۀ دی کړې "

کان يقول اللهم انی اعوذ بک من شر ما عملت و من شر مالم اعمل: او په بعضو رواياتو کښې من شر ما علمت ومن شر ما لم اعلم هم راغلې دې، دلته کښې دا سوال پيدا کيږی، چه کوم عمل شوې نه دې، دهغې شر څرنګه دې؟ چه دهغې نه پناه اوغوختلې شی، جواب ددې سوال به د حديث د شرح نه معلوم شی.

## شرح حديث:

ماعملت ای من السيئات، وما لم اعمل ای من الحسنات، يعنی کوم نيک کارونه چه کول پکار وو، او ما اونه کړل، نو په دې نه کولو باندې چه کومه خرابی اوشر مرتب کيدې شی، دهغې نه پناه غوارم، او يا مطلب دادې، چه زۀ د هر څيز د شر نه پناه غوارم، که په هغې کښې زما د عمل او کسب دخل وی، او که نه وی، مثلا په چا کښې صفت جبن دې، يا صفت بخل دې، چه غير اختياری او غير کسبی دې، نو ددې صفت په وجه چه کومه خرابی مرتب کيدې شی، دهغې نه پناه غوارم، او يا دا اوايئ، چه بعضې وخت کښې د نورو د معصيت نه هم نقصان رسيږی، قال الله تعالی: واتقوا فتنة لا تصيبن الذين ظلموا منکم خاصة، لهذا دهغې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:۸۸۷) (ضعيف)
[2]: صحيح مسلم/الذکروالدعاء ۱۸ (۲۷۱٦)، سنن النسائي/السهو ٦۳ (۱۳۰۸)، والاستعاذة ۵۷ (۵۵۲۷)، سنن ابن ماجه/الدعاء ۳ (۳۸۳۹)، (تحفة الأشراف: ۱۷۴۳۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/۳۱، ۱۰۰، ۱۳۹، ۲۱۳، ۲۵۷، ۲۷۸) (صحيح)

نه هم د پناه غوښتلو ضرورت دې.
او بعضې وخت کښې انسان کوشش سره د يو معصيت نه بچ شي، ليکن په دې بچ کيدلو باندې هم شر مرتب کيدې شي، هغه داسې چه مثلاً دې بچ کيدلو لره د الله تعالی فضل ګنړلو په ځائې خپل ذات طرف ته منسوب کړي، يا ددې معصيت نه بچ کيدلو نه پس خپل ځان د نورو نه افضل اوګنړي (دا ټول توجيهات کيدې شي)

[۱۵۵۱] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، الْمَعْنَى عَنْ سَعْدِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ بِلَالٍ الْعَبْسِيِّ، عَنْ شُتَيْرِ بْنِ شَكَلٍ، عَنْ أَبِيهِ فِي حَدِيثِ أَبِي أَحْمَدَ شَكَلِ بْنِ حُمَيْدٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، عَلِّمْنِي دُعَاءً، قَالَ: "قُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ سَمْعِي، وَمِنْ شَرِّ بَصَرِي، وَمِنْ شَرِّ لِسَانِي، وَمِنْ شَرِّ قَلْبِي، وَمِنْ شَرِّ مَنِيِّي".

شتير بن شکل (د ابواحمد يعنی محمد بن عبد الله بن زبير په سند کښې ددې راوی نوم شکل بن حميد دې) دَ خپل پلار نه روايت کوی، هغه فرمائي چه ما اووې اې الله رسوله! ماته څۀ دُعا اوښائۍ. حضور ﷺ اوفرمائيل: {اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ سَمْعِي، وَمِنْ شَرِّ بَصَرِي، وَمِنْ شَرِّ لِسَانِي، وَمِنْ شَرِّ قَلْبِي، وَمِنْ شَرِّ مَنِيِّي} " اې الله! زۀ په تاسره پناه غواړم دَ خپل غوږ دَ شر نه، دَ سترګې دَ شر نه، دَ ژبې دَ شر نه، دَ زړۀ دَ شر نه، او دَ مادۀ منويه دَ شر نه.

[۱۵۵۲] (٢) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ صَيْفِيٍّ مَوْلَى أَفْلَحَ مَوْلَى أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي الْيَسَرِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَدْعُو: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَدْمِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ التَّرَدِّي، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْغَرَقِ، وَالْحَرَقِ وَالْهَرَمِ، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ يَتَخَبَّطَنِي الشَّيْطَانُ عِنْدَ الْمَوْتِ، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أَمُوتَ فِي سَبِيلِكَ مُدْبِرًا، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أَمُوتَ لَدِيغًا".

دَ حضرت ابو اليسر نه مروی دی چه رسول الله ﷺ به دا دعا فرمائيله: {اللَّهُمَّ! إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَدْمِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ التَّرَدِّي، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْغَرَقِ، وَالْحَرَقِ، وَالْهَرَمِ، وَأَعُوذُ بِكَ [مِنْ] أَنْ يَتَخَبَّطَنِيَ الشَّيْطَانُ عِنْدَ الْمَوْتِ، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أَمُوتَ فِي سَبِيلِكَ مُدْبِرًا، وَأَعُوذُ بِكَ أَنْ أَمُوتَ لَدِيغًا} " اې الله! زۀ په تاسره پناه غواړم چه څۀ مکان يا ديوال په ما باندې راپروځی يا دَ څۀ بلند مقام نه راپرېوزم. زۀ په تاسره پناه غواړم، دَ غرق کيدو نه، او دَ سوزيدو نه يا دَ از حد بوډا کيدو نه، په تاسره پناه غواړم ددې خبرې نه چه دَ مرګ په وخت کښې مالره شيطان بدخواس کړی يا ددې خبرې نه چه په جهاد کښې مړ شم په داسې حال کښې چه زۀ شا کوونکی يم، يا ددې کيفيت نه چه دَ زهريله ځناور دَ چيچلو نه ماته مرګ راشي."

عن ابی اليسر ان رسول الله (صلی الله عليه وسلم) کان يدعو اللهم انی اعوذ بک من الهدم واعوذ بک من التردی واعوذ بک من الغرق والحرق والهرم واعوذ بک ان يتخبطنی الشيطن عند الموت:
او پناه غواړم زۀ په تاسره ددې خبرې نه چه مالره شيطان د مرګ په وخت کښې خطبی او ليونې جوړ کړی، او زما دين لره خراب او فاسد کړی، په دې حديث کښې د هدم او تردی

---

(١): سنن الترمذي/الدعوات ٧٥ (٣٤٩٢)، سنن النسائي/الاستعاذة ٣ (٥٤٤٦)، ٩ (٥٤٥٧)، ١٠ (٥٤٥٨)، ٢٧ (٥٤٨٦)، (تحفة الأشراف: ٤٨٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٩/٣) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/الاستعاذة ٦٠ (٥٥٣٣)، (تحفة الأشراف: ١١١٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٧/٣) (صحيح)

وغیره امورو نه پناه غوختلې شوې ده، حالانکه دا څیزونه د اسباب شهادت نه دی؟ جواب دادې، چه دا څیزونه ډیر سخت دی، بعضې وخت کښې انسان ته په دې باندې صبر کول مشکل شی، نو شیطان ته د خپولو دپاره ښه موقع ملاؤ شی، او هغه سړی لره په ناشکرۍ او بې صبرۍ کښې مبتلاء کړی، چه سراسر د دین دنقصان دی.

[١٥٥٣](١)حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي مَوْلًى لِأَبِي أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي الْيَسَرِ، زَادَ فِيهِ "وَالْغَمِّ".

د حضرت ابو ایوب یو ازاد کړې شوې غلام، حضرت ابو الیسر رضی الله عنه روایت کوی ... په دې حدیث کښې د [ الغم ] اضافه هم ده .

[١٥٥٤](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ يَقُولُ: "اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبَرَصِ، وَالْجُنُونِ، وَالْجُذَامِ، وَمِنْ سَيِّئِ الْأَسْقَامِ".

د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه مروی دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به دا دعا کوله : {(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنَ الْبَرَصِ وَالْجُنُونِ وَالْجُذَامِ وَسَيِّئِ الْأَسْقَامِ)} " اې الله ! زۀ په تاسره پناه غواړم د برص بیمارۍ نه، د پاګل پن نه، او د جذام نه، او د بدو بیمارو نه . "

ومن سيئ الاسقام: د سخت قسم مرضونو نه پناه غواړم، نبی کریم (صلی الله علیه وسلم) د مطلق اسقام نه پناه نه ده غوختلې، بلکه د سیئ الاسقام نه ئې پناه غوختلې دې، علامه طیبی رحمه الله فرمائي چه په اصل کښې خبره داده، چه امراض او مصیبتونو باندې د الله تعالی د طرف نه اجر او ثواب ډیر زیات دې،(٣) لیکن کوم امراض چه ډیر سخت وی، لکه سل، استسقاء او امراض مزمنه طویله، نو په هغې کښې چونکه د جزع فزع (ژړا فریاد) او د بې صبرۍ خطره وی، ددې وجې نه صرف دهغې نه عافیت طلب کړې شوې دې، او کوم امراض چه معمولی اوسپک وی، په هغې باندې چونکه صبر کول آسان دی، ددې وجې نه دهغې نه پناه نه ده غوختلې شوې، د دارآخرت ثواب عظیم حاصلولو دپاره.

[١٥٥٥](٤)حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ الْغُدَانِيُّ، أَخْبَرَنَا غَسَّانُ بْنُ عَوْفٍ، أَخْبَرَنَا الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ الْمَسْجِدَ، فَإِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، يُقَالُ لَهُ: أَبُو أُمَامَةَ، فَقَالَ: "يَا أَبَا أُمَامَةَ، مَا لِي أَرَاكَ جَالِسًا فِي الْمَسْجِدِ فِي غَيْرِ وَقْتِ الصَّلَاةِ؟" قَالَ: هُمُومٌ لَزِمَتْنِي وَدُيُونٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "أَفَلَا أُعَلِّمُكَ كَلَامًا إِذَا أَنْتَ قُلْتَهُ أَذْهَبَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ هَمَّكَ، وَقَضَى عَنْكَ دَيْنَكَ؟" قَالَ: قُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "قُلْ إِذَا أَصْبَحْتَ وَإِذَا أَمْسَيْتَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف:١١١٢٤) (صحيح)

(٢): تفرد به ابوداود، (تحفة الأشراف:١١٥٩، ١٤٢٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الاستعاذة ٣٦ (٥٥٠٨)، مسند احمد (١٠٩٢/٣) (صحيح)

(٣) لکه په یوحدیث کښې راځی چه په آخرت کښې کله اصحاب العاهات والمصائب ته دهغوی په مصائبو باندې اجر ملاویږی نوهغه وخت به اصحاب العافیه دا تمنا کوی چه کاش په دنیا کښې زمونږ د بدن غوښې په قینچیانو سره شوکولې شوې چه دهغې ثواب اوس دلته ملاؤ شوې وې.

(٤): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف:٤٣٤٠) (ضعيف)

الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَالْبُخْلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ غَلَبَةِ الدَّيْنِ وَقَهْرِ الرِّجَالِ". قَالَ: فَفَعَلْتُ ذٰلِكَ فَأَذْهَبَ اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ هَمِّي، وَقَضَى عَنِّي دَيْنِي.

حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه بیان کوی چه نبی کریم ﷺ یوه ورځ جمات ته تشریف راوړو نو څهٔ ګوری چه یو انصاری سړی دې چه دَ هغه نوم ابوامامه وو، حضور ﷺ اوفرمائیل: اې ابوامامه! څهٔ خبره ده چه زهٔ تا لره په جمات کښې وینم؟" هغوی اووې اې دَ الله رسوله! ماله غمونو او قرضونو ګیر کړې دې، نو حضور ﷺ اوفرمائیل آیا زهٔ تاته داسې کلمات اونهٔ ښایم، کهٔ چرې تهٔ هغې لره لولې نو الله تعالیٰ به ستا غمونو لره لرې کوی او ستا قرضونه به ادا کوی." (یعنی ستا دَ قرضونو دَ ادا کولو سبب به پیدا کوی) ما اووې ولې نهٔ اې دَ الله رسوله! حضور ﷺ اوفرمائیل:" دَ سحر او ماښام دا کلمات وایه: {اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ، وَأَعُوذُبِكَ مِنَ الْعَجْزِوَالْكَسَلِ، وَأَعُوذُبِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَأَعُوذُبِكَ مِنْ غَلَبَةِالدَّيْنِ وَقَهرِالرِّجَالِ}" اې الله! زهٔ په تاسره پناه نیسم دَ پریشانئ او دَ غم نه، دَ عاجز کیدو او دَ کسل مندئ نه، او ستا پناه نیسم دَ بزدلئ او دَ بخیلئ نه او په تاسره پناه غواړم دَ قرضې او دَ ظالمانو دَ غلبې نه." حضرت ابو امامه رضی الله عنه بیان کوی چه ما دا دُعا کول شروع کړل نو الله تعالیٰ زما پریشانو لره لرې کړل او دَ قرضونو (دَ ادا کولو) سبب ئې هم پیدا اوفرمائیلو."

یاابا امامة مالی اراک جالسا فی المسجد فی غیر وقت الصلوة قال هموم لزمتنی و دیون یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم)............ قل اذا اصبحت واذا امسیت اللهم انی اعوذ بک من الهم والحزن واعوذ بک من العجز والکسل واعوذ بک من الجبن والبخل و اعوذ بک من غلبة الدین و قهر الرجال، قال ففعلت ذلک فاذهب الله همی و قضی عنی دینی. دا دعاء د "دعاء اداء قرض" په نوم سره مشهور ده، لکه امام نووی رحمه الله دې حدیث لره کتاب الاذکار کښې د "دعاء قضاء الدین" په عنوان سره ذکر کړې ده، او هغه دې لره صرف سنن ابوداؤد ته منسوب کړې ده، ددې نه علاوه هغوی یوه دعاء د اداء قرض آسانئ دپاره بله ذکر کړې ده، هغه دا چه یو مکاتب د حضرت علی رضی الله عنه خدمت کښې حاضر شو، او عرض ئې اوکړو، چه زهٔ د اداء کتابت نه عاجزه شوې یم، زما مدد اوکړه، هغوی ورته اوفرمائیل، زهٔ تاته هغه دعا ښایم، کومه چه حضور (ﷺ) ماته په تعلیم کښې فرمائیلې وه، که په تاباندې د غر هومره قرض هم وی، نو الله تعالی به هغه ادا کړی، دا دعا لوله اللهم اکفنی بحلالک عن حرامک و اغننی بفضلک عمن سواک (رواه الترمذی) دغه شان په ترمذی شریف کښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث دې، چه حضور (ﷺ) ماته اوفرمائیل لاحول ولا قوة الا بالله کثرت سره وایه، ځکه چه دا د جنت د خزانو نه دې، په دې باندې مکحول شامی فرمائي چه کوم سړې لاحول ولا قوة الا بالله ولا منجا من الله الا الیه لولي، دهغه نه به اویا قسمه نقصانات او ضررونه دفع شی، چه په هغې کښې ادنی درجه د فقر ده.

دا خبره زده کول پکار دی، چه د دعاء څه آداب او شرائط دی، چه په کتابونو کښې ذکر دی، امام نووی رحمه الله د "کتاب الاذکار" په آخر کښې يو باب د "آداب دعاء" په عنوان سره قائم کړې دې، په هغې کښې دا اختلاف ليکلې دې، چه دعاء افضله ده او که سکوت، هغوی فرمائي چه مذهب مختار چه په هغې باندې ټول فقهاء او محدثين او لوئې لوئې علماء سلفا و خلفا متفق دی. دادې، چه دعاء مستحب ده. دا بحث دلته په ډير تفصيل سره د باب الدعاء په شروع کښې تير شوې دې، امام نووی رحمه الله د امام غزالی رحمه الله داحياء العلوم نه نقل کړې دی، آداب الدعاء عشرة، او بيلې بيلې هغې لره بيان کړې دی، او ليکلې دی، چه د دعاء د شرطونو نه داده، چه د سړی روزی او خوراک څکاک حلال وی. او په آدابو کښې د ټولو نه اهم او مؤثر حضور قلب دې، حضرت امام بخاری رحمه الله په دې سلسله کښې يو باب دا هم قائم کړې دې، باب الوضوء عند الدعاء، او په هغې کښې ئې دا حديث ذکر کړې دې، چه حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه فرمائي چه يوه ورځ جناب رسول الله (ﷺ) اوبۀ طلب کړې، او اودس ئې اوکړو، او بيا ئې دواړه لاسونه پورته کړل، او دا دعاء ئې اوغوختله، اللهم اغفر لعبيد ابی عامر، دا عبيد د ابوموسی اشعری رضي الله عنه د ترۀ نوم وو، په يو غزوه کښې په غشی لګيدلې وو، او دهغې نه وفات شو، د وفات په وخت کښې هغه خپل وراره حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه ته اوفرمائيل چه زما سلام د حضور (ﷺ) په خدمت کښې عرض کړه، او زما د طرف نه د استغفار درخواست اوکړه (حاشيه بخاری) ددې نه معلومه شوه، چه د دعاء د آدابو نه يو ادب اودس کول هم دی، (د يو خاص دعاء دپاره اهتمام په وخت کښې)

زۀ هم د خپل ځان دپاره او د خپلو والدينو دپاره که هغه والدين نسبی وی، يا روحانی وی، او د ټولو اصولو او فروعو او د اقاربو او احبابو دپاره د حضور (ﷺ) په وسيلې سره مغفرت تامه او الفوز بالجنة والنجاة من النار طلب کوم، اللهم منی الدعاء و عليک الاجابة.

وهذا آخر کتاب الصلوة، و به قد تم الجزء الثانی من الدر المنضود علیٰ سنن ابی داؤد.

فالحمد لله اولا و آخرا والصلوة والسلام علی نبيه سرمدا و دائما.

محمد عاقل عفا الله عنه

۲۰ جمادی الاولی سنه ۱٤۱۷ھ يوم الجمعه.

ترجمه بشتو: ۲۵ ذی الحجة سنه ۱٤۳۳ھ

[الحمد لله ! جلد سوم ختم شو.]